په پښتو ژبه د نورالإيضاح آسانه او جامع شرحه

# فتح الإيضاح

پښتو شرح

# نور الإيضاح

۲ دوهم ټوک

باب سجود السهو- فصل فی زیارة النبی ﷺ


تألیف و ترتیب:

مولوی حبيب الرحمن مدني

فاضل وفاق المدارس العربیه

مولوي محمّدصادق کامران

فاضل جامعه محمّدیه کوئټه



صداقت کتب خانه

په پښتو ژبه د **نورالإیضاح** آسانه او جامع شرح

# فتح الإيضاح

## پښتو شرح

# نور الإیضاح

**دوهم ټوک**

باب سجود السهو- فصل في زيارة النبي صلى الله عليه وسلم


**تألیف او ترتیب:**

**مولوی حبیب الرحمن مدني**

فاضل وفاق المدارس العربیه

**مولوي محمّدصادق کامران**

فاضل جامعه محمّدیه

بسم الله الرحمن الرحيم

# فتح الإيضاح پښتو شرح نور الإيضاح (دوهم ټوک)

**تالیف او ترتیب:** مولوي حبیب الرحمن مدني او مولوي محمد صادق کامران

**خپرندوی:** صداقت کتب خانه

**چاپ کال:** ۱٤۰۰ش - ۲۰۲۲ م.

**د خپرونو لړ:** ۳۹۹

**چاپ شمېر:** ۱۰۰۰ ټوکه

**د تر لاسه کولو ځایونه:**

صداقت کتب خانه

اوله ناحیه، نوی سړک - کریم اعتماد مارکېټ - کندهار

Sadaqat.books@gmail.com / ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

**کندهار:** صداقت خپرندویه ټولنه- ارګ بازار- قلم او کتاب مارکېټ **هلمند**: تاج منور خپرندویه ټولنه. **هرات:** صداقت کتاب پلورنځی- کوچه ګدام. **غزني:** نعماني کتاب پلورنځی. **پکتیکا:** مجاهد کتاب پلورنځی. **خوست:** اسلامي کتاب پلورنځی.

# فهرس

## بَابُ الْعِيْدَيْنِ

## فَصْلٌ فِيْ صَلَاةِ الْجَنَازَةِ ۱۲۰



## فَصْلٌ ۱۲۸

## كِتَابُ الزَّكوٰة ........ ۲۷۳

## بَابُ الْمَصْرِفِ



## بَابُ صَدَقَةِ الْفِطْرِ

## کتاب الحج ........ ۳۲۴

## فَصۡلٌ (لا شيء بقتل غراب... إلخ)

# بَابُ سُجُوْدِ السَّهْوِ

## (دا) باب د سجدهٔ سهوي (په بيان کي) دی

**تشريح**: د "سهو" معنیٰ ده "هېرېدل"، " د ضرورت په وخت کي شی له ذهنه وتل" (نه يادېدل)، بل لفظ "نِسيان" دی، د لغت په اعتبار سره د سهو او نسيان تر مينځ څه فرق نسته، لېکن بعضو دا فرق بيان کړی دی چي که له معلوم شي څخه داسي بې خبره سي چي په معمولي غوندي تنبيه سره ور ته يادسي، نو دې ته سهو وايي او نسيان د شي بالکل هېرېدلو ته وايي.

د سجدهٔ سهوي تعريف دا دی چي کله په لمانځه کي په هېره داسي کمي يا زياتوب وسي چي په هغه سره لمونځ خو نه فاسدېږي لېکن داسي نقصان پکښي راسي چي د هغه تلافي (جبران) په لمانځه کي کېدلای سي، نو په سجدې سره د هغه نقصان وتلافي کولو ته سجدهٔ سهو وايي او طريقه يې شريعت دا ټاکلې ده چي په آخري ناسته کي دي تر تشهّد ويلو وروسته راسته طرف ته سلام وګرځول سي او دوې سجدې دي وکړل سي او بيا دي التحيات پوره کړل سي او سلام دي وګرځول سي. (شفاء الارواح)

**د دوو سجدو حکمت**: حکيمُ الأمة اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د سهوي د دوو سجدو حکمت دا دی چي په اوله سجده کي نفس ته په دې خبره تنبيه ورکول دي چي زه له دغه خاوري څخه پيدا سوی يم او دويمه سجده پر دې تنبيه ده چي همدې خاوري ته به بيرته ځم. (فتح الهدايه)

### د سجدهٔ سهوي طريقه

﴿۵۹۹﴾ يَجِبُ سَجْدَتَانِ بِتَشَهُّدٍ وَ تَسْلِيْمٍ لِتَرْكِ وَاجِبٍ سَهْوًا واجبېږي دوې سجدې سره د تشهّد او سلام ويلو ديو واجب د پرېښوولو په وجه په هېره وَإِنْ تَكَرَّرَ که څه هم دا (په هېره پرېښوول) مکرّر سي (څو ځلي وسي).

**تشريح**: په دې عبارت کي اولاً د سجدهٔ سهوي طريقه بيان سوې ده او ثانياً د سجدهٔ سهوي د وُجوب سبب بيان سوی دی. د سجدهٔ سهوي طريقه دا ده چي په آخره ناسته کي دي تر تشهّد ويلو وروسته راسته طرف ته يو سلام وګرځوي او دوې سجدې دي وکړي، بيا دي کښېني او تشهّد، درود شريف او دعاء دي ووايي او سلام دي وګرځوي.

د سجدۂ سهوي د واجبېدلو سبب په لمانځه کي د يو واجب پرېښوول دي چي په هېره يو واجب پرېږدي مثلاً تشهّد نه ووايي، نو سجدۂ سهو واجبيږي. که څه هم مکرر يعني څو واجبات په هېره پرېږدي مثلاً سورة الفاتحه نه ووايي او اوله ناسته هم ځني پاته سي، همدارنګه تعديلُ الارکان هم پرېږدي، نو د دې ټولو لپاره هم صرف يو وار سجدۂ سهو کول کافي کيږي.

## د قصداً غلطي کولو حکم

﴿٦٠﴾ وَإِنْ كَانَ تَرْكُهُ عَمَدًا او که د واجب پرېښوول قصداً وي (په قصده يې پرې اېښی وي) أَثِمَ نو ګنهګاره کيږي وَوَجَبَ إِعَادَةُ الصَّلٰوةِ او واجب دي د لمانځه راګرځول لِجَبْرِ نَقْصِهَا د لمانځه د نقص (کمی) پوره کولو لپاره (يعني چي د واجب پرېښوولو په وجه په لمانځه کي واقع سوې کمي او تاوان پوره سي او تلافي يې وسي).

**لغات:** ﴿جَبْر﴾ د نصر د باب مصدر دی: د تاوان تلافي کول (جبران). واقع سوې کمي پوره کول. (يا په بله وينا د واقع سوي تاوان اصلاح او سمون). د نقصان بدله ورکول (يعني د فوت سوي شي د نقصان عوض ورکول چي د پېښ سوي نقصان خلاء که سي). ﴿نَقْص﴾ د نصر له بابه اسم مصدر دی: کمي، نقصان. د "نقصها" ضمير "صلاة" ته راجع دی.

**تشريح:** که څوک قصداً په لمانځه کي يو واجب پرېږدي، نو د هغه لمونځ راګرځول واجب دي، محض په سجدۂ سهوي کولو سره د هغه غلطي تلافي نه کيږي، او راګرځول (اعاده) يې ځکه واجبيږي چي په لمانځه کي کومه لا پروايي او کمي سوې ده، هغه پوره سي، خو بيا هم که لمونځ نه راوګرځوي، نو د کراهت تحريمي سره کيږي. (طحطاوي علی مراقی الفلاح ص: ۲۵۱)

﴿٦١﴾ وَلَا يَسْجُدُ فِي الْعَمَدِ لِلسَّهْوِ او سجده به نه کوي په عمد کي (يعني چي قصداً يې واجب پرې اېښی وي) د سهوي لپاره وَقِيلَ: إِلَّا فِي ثَلَاثٍ او ويل سوي دي: مګر په دريو کي (يعني په دريو صورتونو کي د قصداً واجب پرېښوولو په وجه به سجدۂ سهو کوي) تَرْكُ الْقُعُوْدِ الْأَوَّلِ ① اوله ناسته پرېښوول أَوْ تَأْخِيْرُهُ سَجْدَةً مِنَ الرَّكْعَةِ الْأُوْلٰى إِلٰى أٰخِرِ الصَّلٰوةِ ② يا د اول رکعت سجده ځنډول (وروسته کول) د لمانځه وآخر ته وَتَفَكُّرُهُ عَمَدًا حَتّٰى شَغَلَهُ عَنْ رُكْنٍ ③ او د لمونځ ګزار قصداً فکر کول (سوچ وهل) تر دې چي هغه مشغوله (غافله) کړي له يو ه رکن څخه.

**تشریح:** که لمونځ ګزار قصداً یو واجب پرېږدي، نو د هغه تلافي په سجدهٔ سهوي سره نه سي کېدلای لکه مخکښې چې ذکر سوه، خو دیوه قول مطابق درې شیان داسي دي چې که هغوی قصداً هم وکړل سي، نو په سجدهٔ سهوي سره یې تلافي کیږي (یا په بله وینا سجدهٔ سهو د هغوی لپاره کافي کیږي):

① یو دا چې قعدهٔ اولیٰ (اوله ناسته) قصداً پرېږدي، ② د اول رکعت یوه سجده قصداً په دویم رکعت یا درېیم رکعت کي یا بالکل په آخري رکعت کي اداء کړي (د آخري رکعت تخصیص نسته)، ③ په لمانځه کي قصداً د یو شي په باره کي سوچ وهل شروع کړي او د یوه رکن (یعني درې واره د سبحان ربي العظیم ویلو) په اندازه په هغه سوچ کي مشغوله پاته سي، نو په سجدهٔ سهوي سره د دې شیانو تلافي کیږي چي که سجدهٔ سهو وکړي، نو لمونځ یې صحیح کیږي، علامه طحطاوي رَحِمَهُ الله دوه شیان پر دې نور هم اضافه کړي دي: ① په قعدهٔ اولیٰ کي قصداً درود ویل، ② قصداً فاتحه پرېښوول، دا ټوله پنځه شیان سوه چې د هغوی د قصداً پرېښوولو په صورت کي په سجدهٔ سهوي سره تلافي کیږي.

**یادونه:** پورته چې کوم قول په "قِیْلَ" سره ذکر سو، هغه ضعیف دی، پر هغه عمل او فتویٰ نسته، علامه شامي رَحِمَهُ الله د البحر الرائق پر حاشیه لیکلي دي "لأن السّجدة شرعت جابرةً نظراً للمعذور لا للمتعمّد، ولِمَا اتّفقوا علیه من أن سبب وجوبه ترك الواجب الأصلي أو تغییره ساهیًا، وهٰذا هُوالّذی یعتمد للفتویٰ والعمل". (منحة الخالق علی البحر الرائق ج:۲، ص:۹۹)

نو صحیح خبره دا ده چي پورته کوم پنځه شیان ذکر سول، که هغوی قصداً وکړل سي، نو محض په سجدهٔ سهو کولو سره تلافي نه کیږي، بلکي د لمونځ اعاده واجبیږي او که په هېره وکړل سي، نو په سجدهٔ سهوي سره تلافي کیږي، یعني که په هېره قعدهٔ اولیٰ پرېږدي او ولاړ سي، نو تر څو چي ولاړي ته نژدې سوی نه وي، بیرته دي راوګرځي، لیکن که نه راوګرځي یا ولاړي ته نژدې سي بیا راوګرځي، نو سجدهٔ سهو لازمیږي، برابره ده فرض لمونځ وي او که نفل وي (عالمګیري ج:۱، ص:۱۲۷)، ② په هر رکعت کي دوې سجدې فرض دي او دواړه پرلپسې یو ځای کول واجب دي، لهٰذا که څوک په هېره یوه سجده پرېږدي بیا د لمانځه په دوران کي د خپلي هیري احساس ورته وسي، نو هغه ته پکار دي چي هېره سوې سجده د لمانځه په دوران کي اداء کړي او په آخر کي سجدهٔ سهو وکړي، له شروع څخه د نورو ارکانو راګرځولو ته ضرورت نسته (حلبي ص:۴۵۶)، ③ که د فرضي لمانځه په اوله ناسته (قعدهٔ اولیٰ) کي له تشهد ویلو څخه وروسته په هېره درود شریف ویل شروع کړي او تر "علیٰ آل محمد" پوري یې ووایي، نو سجدهٔ سهو واجبیږي، راجح قول همدا دی (شامي ج:۱، ص:۶۹۴)، ④ که د فرضو په اولو دوو رکعتو کي یا د نفلو په هسې یو رکعت کي سورة الفاتحه په هېره

پرېږدي، یا د سورة الفاتحې یو آیت یا یوه حصه پرېږدي، نو د هغه د تلافی لپاره سجدهٔ سهو لازمیږي، لیکن که څوک قصداً داسي وکړي، نو لمونځ واجبُ الاعاده پاتیږي. (در مختار ج:۱، ص:۴۲۶)

## د سجدهٔ سهوي لپاره د سلام ګرځولو حکم

﴿۷۶۲﴾ وَيُسَنُّ الْإِتْيَانُ بِسُجُوْدِ السَّهْوِ بَعْدَ السَّلَامِ او سنت دي سجدهٔ سهو تر سلام وروسته اداء کول.

**تشریح:** د عبارت مطلب دا دی چي تر سجدهٔ سهوي مخکي سلام ګرځول سنت دي او یو قول دا دی چي واجب دي، خو اول قول راجح دي چي سنت دي، لهذا که یو څوک سلام نه وګرځوي او سجدهٔ سهو وکړي نو هم جائز دي، خو مکروه تنزیهي دي او د لمونځ راګرځولو ضرورت نسته.

﴿۷۶۳﴾ وَيَكْتَفِيْ بِتَسْلِيْمَةٍ وَاحِدَةٍ عَنْ يَمِيْنِهٖ فِي الْأَصَحِّ او اکتفاء به کوي په یوه سلام ګرځولو باندي ښي راسته طرف ته، د صحیح قول مطابق.

**تشریح:** د سجدهٔ سهوي لپاره د سلام ګرځولو په باره کي درې قوله نقل سوي دي: ① یو قول دا دی چي صرف یو سلام دي یوه طرف ته یعني راسته طرف ته وګرځوي او سجدهٔ سهو دي وکړي، همدا قول اصح دی او پر همدې فتویٰ ده، ② دویم قول دا دی چي دواړو طرفونو ته دي سلام وګرځوي، بیا دي سجدهٔ سهو وکړي، بعضي فقهاؤ د همدې قول تصحیح کړې ده، خو شیخ الاسلام خواهر زاده رَحِمَهُ الله فرمایي چي دواړو طرفونو ته سلام ګرځول د خبرو کولو په څېر دي، ③ درېیم قول دا دی چي صرف یو سلام دي وګرځوي، هغه هم د مخ وطرف ته، یعني راسته او چپه طرف ته دي مخ نه ګرځوي، پر دې قول هیڅ حنفي عالم فتویٰ نه ده ورکړې، خو اصح او مفتیٰ بهٖ اول قول دی (کما ذکر). (انوار الایضاح بتغیر)

﴿۷۶۴﴾ فَإِنْ سَجَدَ قَبْلَ السَّلَامِ او که تر سلام مخکي سجده وکړي كُرِهَ تَنْزِيْهًا نو مکروه تنزیهي دي.

**تشریح:** که د سجدهٔ سهوي لپاره سلام نه وګرځوي، بلکي بغیر له سلام څخه سجدهٔ سهو وکړي، نو که څه هم سجدهٔ سهو خو صحیح کیږي، لیکن داسي کول مکروه تنزیهي دي (لکه مخکي چي ذکر سوه).

## د سجدهٔ سهوي د ساقطېدلو صورتونه

﴿۷۶۵﴾ وَيَسْقُطُ سُجُوْدُ السَّهْوِ او ساقطيږي سجدهٔ سهوه بِطُلُوْعِ الشَّمْسِ بَعْدَ السَّلَامِ فِي الْفَجْرِ د لمر په راختلو سره تر سلام وروسته د سهار په لمانځه کي وَاحْمِرَارِهَا فِي الْعَصْرِ او د لمر په سُور کېدلو سره د مازيګر په لمانځه کي وَبِوُجُوْدِ مَا يَمْنَعُ الْبِنَاءَ بَعْدَ السَّلَامِ او تر سلام وروسته د داسي شي په موجودېدلو (واقع کېدلو) سره کوم چي بناء منع کوي (بناء لره منع وي).

**تشريح:** له دې ځايه هغه صورتونه بيانوي چي سجدهٔ سهو پکښي ساقطيږي او د ساقطېدلو مطلب دا دی چي په دې صورتونو کي سجدهٔ سهو کول جائز نه دي:

① که د سهار په لمانځه کي سجدهٔ سهو واجب سي او لمونځ ګزار اول سلام وګرځوي او تر اوسه يې سجدهٔ سهو نه وي کړې چي لمر را وخيږي، نو له هغه شخصه سجدهٔ سهو ساقطيږي او پر هغه د لمانځه اعاده هم نسته.

② واحمرارها: که د مازيګر په لمانځه کي سجدهٔ سهو واجب سي او د اول سلام تر ګرځولو وروسته او د سجدهٔ سهوي تر کولو مخکي لمر متغيّر (سور غوندي) سي، نو سجدهٔ سهو ساقطيږي او د لمانځه اعاده هم نسته.

③ وبوجود: يعني په کوم شي سره چي لمونځ ماتيږي او د بناء مانع دی، مثلاً قصداً او دس ماتول (قصداً باد خارجول او داسي نور)، يا قصداً خبري کول او داسي نور، که داسي شي له اول سلام ګرځولو شخه وروسته واقع سي، نو په دې سره هم سجدهٔ سهو ساقطيږي او د کراهت سره لمونځ صحيح کيږي په دې ټولو صورتونو کي. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

## پر مقتدي کله سجدهٔ سهو واجبيږي؟

﴿۷۶۶﴾ وَيَلْزَمُ الْمَأْمُوْمَ بِسَهْوِ إِمَامِهِ لَا بِسَهْوِهٖ او (سجدهٔ سهو) لازميږي پر مقتدي د خپل امام په سهوي (هېري) سره، نه په خپل سهوي سره.

**تشريح:** مسئله دا ده چي کله په لمانځه کي له امام شخه څه سهو وسي، نو سجدهٔ سهو پر امام هم واجبيږي او پر مقتدي هم، که بيا هم امام سجدهٔ سهو نه وکړي، نو پر مقتدي هم سجدهٔ سهو اداء کول لازم نه دي.

لا بسهوه: یعني که له مقتدي څخه په لمانځه کي یو سهو وسي، مثلاً په اوله ناسته کي تشهّد نه وواییي، نو د هغه په وجه نه پر امام سجدۀ سهو لازمیږي او نه پر مقتدي؛ ځکه د صحت او فساد په اعتبار سره د امام لمونځ د مقتدي پر لمانځه مبني نه دی.

## مسبوق مقتدی به هم د امام سره سجدۀ سهو کوي

﴿٤٦٧﴾ وَيَسْجُدُ الْمَسْبُوْقُ مَعَ إِمَامِهٖ او مسبوق به د خپل امام سره سجدۀ سهو کوي ثُمَّ يَقُوْمُ بِقَضَاءِ مَا سُبِقَ بِهٖ بیا (تر دې وروسته) به ولاړیږي د هغه (پاته) لمونځ د راګرځولو لپاره کوم چي له ده څخه مخکي تېر سوی دی (یعني تر سجده سهوي کولو وروسته به د تېر سوي لمانځه لپاره ولاړیږي).

**لغات**: ﴿المسبوق﴾ هغه مقتدی چي اول رکعت ځني تېر سوی وي هغه ته مسبوق وايي، نور بیا که دوه رکعته ځني تیر سوي وي او که درې یا څلور سره چي صرف په آخره ناسته کي د امام سره شریک سوی وي.

**تشریح**: که پر امام سجدۀ سهو واجب سي، نو پر مسبوق مقتدي هم سجدۀ سهو کول لازم دي، تر دې چي که مسبوق د خپل لمانځه د پوره کولو لپاره ولاړ سي بیا هغه ته معلومه سي چي پر امام سجدۀ سهو سته، نو واپس دي راوګرځي او په سجدۀ سهو کي دي ور سره شریک سي. او مسبوق ته پکار دي چي د خپل پاته لمانځه د پوره کولو لپاره هغه وخت ولاړ سي کله چي امام دواړو خواوو ته سلام وګرځوي او مسبوق ته اطمینان سي چي پر امام سجدۀ سهو لازم نه ده، د "ثُمَّ" په ذکر کولو کي همدې طرف ته اشاره ده؛ ځکه لفظ د "ثُمَّ" د تراخی لپاره راځي. (طحطاوي علی مراقی الفلاح)



## مسبوق به خپل لمونځ څنګه پوره کوي؟

**مسئله (١)**: مسبوق به د امام تر سلام وروسته پاته لمونځ داسي پوره کوي چي د قرائت په اعتبار سره خپل پاته رکعتونه به اول رکعتونه بولي او د ناستي (قعده) په اعتبار سره به هغه آخري رکعتونه بولي، مثلاً که له یو چا څخه د ماپښین د لمانځه درې رکعته تېر سوي وي او صرف آخري رکعت ونیسي، نو دا کس چي د امام تر سلام ګرځولو وروسته د خپل پاته درې رکعتو لپاره ولاړ سي نو په داسي ترتیب سره به یې کوي چي په اول رکعت کي به د سورة الفاتحه سره سورت یو ځای کوي او بیا تر رکوع او سجدو وروسته به ناسته (قعده) کوي؛ ځکه دلته د هغه دوه رکعته پوره سول: یو رکعت د امام سره او دویم د هغه خپل یو رکعت، او تر ناستي (قعدې) وروسته به په دویم رکعت کي

بیا د سورة الفاتحه سره سورت یو ځای کوي او په آخري رکعت کي به صرف سورة الفاتحه وایي. (طحطاوي، حلبي کبیر ص:۴۶۸، ۴۶۹)

## که د ماښام د لمانځه صرف یو رکعت ونیسي؟

**مسئله (۲)**: که یو څوک د ماښام په لمانځه کي صرف یو رکعت د امام سره ونیسي، نو هغه به په پاته دوو رکعتونو کي د سورة الفاتحه سره سورت یو ځای کوي او غوره دا ده چي پر اول رکعت ناسته (قعده) هم وکړي، خو که ناسته نه وکړي، نو هم استحساناً لمونځ صحیح کیږي. (حلبي کبیر ص:۴۶۸)

## که مسبوق په هېره سلام وګرځوي؟

**مسئله (۳)**: که مسبوق مقتدي په هېره سلام وګرځوي، نو د دې دري صورتونه دي: ① یو دا چي هغه د امام تر سلام مخکي سلام وګرځوي، ② د امام سره یو ځای سلام وګرځوي، ③ د امام تر سلام وروسته سلام وګرځوي، په اول او دویم صورت کي پر مسبوق سجدهٔ سهو واجب نه ده او په دریم صورت کي پرې واجب ده، برابره ده یوه طرف ته یې سلام ګرځولی وي او که دواړو طرفونو ته. (البحر الرائق ج:۲، ص:۱۰۸)

| |
|---|
| ﴿۴۶۸﴾ وَلَوْسَهَا الْمَسْبُوْقُ فِيْمَا يَقْضِيْهِ او که سهوه سي مسبوق په هغه (پاته لمانځه) کي کوم چي راګرځوي سَجَدَ لَهٗ اَيْضًا لَا اللَّاحِقُ نو مسبوق دي د هغه لپاره هم سجدهٔ سهوه وکړي، نه لاحق. |

**لغات**: ﴿لاحق﴾ کوم څوک چي په اول رکعت کي د امام سره شریک سوی وي، لیکن وروسته په یو رکعت کي په یو وجه شریک نه سي مثلاً وروسته په خوب یا داسي بل څه سره د بې اودسه کېدلو په وجه شریک نه سي، نو داسي مقتدي ته په اصطلاح کي لاحق وایي.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي که مسبوق د خپل پاته (مسبوقانه) لمونځ د راګرځولو په وخت کي سهو سي، نو د هغه لپاره هم په آخر کي سجدهٔ سهو کول ضروري دي.

لا اللاحق: یعني که لاحق په خپل پاته (لاحقانه) لمونځ کي سهو سي، نو پر هغه سجدهٔ سهو نسته. مثلاً یو سړی د امام سره لمونځ شروع کړي خو د لمانځه په دوران کي یې اودس مات سي او د اودس لپاره ولاړ سي. کله چي هغه تر اودس کولو وروسته واپس راسي، نو امام یو رکعت کړی وي، اوس چي کله هغه دا یو رکعت راګرځوي، که په دې کي سهو سي، نو پر هغه سجدهٔ سهو نسته: ځکه هغه حکماً مقتدي دی او پر مقتدي په خپل سهوي سره سجدهٔ سهو نه لازمیږي.



## لاحق به خپل لمونځ څنګه پوره کوي؟

**مسئله**: پر لاحق کس ضروري دي چي اولاً خپل پاته لمونځ (فوت شده رکعت) راوګرځوي، بیا که امام تر اوسه سلام نه وي ګرځولی، نو د هغه سره دي شریک سي او لمونځ دي پوره کړي او که امام سلام ګرځولی وي، نو بیا دي یوازي خپل لمونځ پوره کړي، او که د دې خلاف وکړي یعني د پاته لمونځ له راګرځولو څخه بغیر اول د امام سره شریک سي او د امام تر سلام ګرځولو وروسته خپل پاته لمونځ را وګرځوي، نو لمونځ یې صحیح کیږي، خو ګنهګاره کیږي. (عالمګیري ج:۱، ص:۹۲)

## د جمعې یا د اختر په لمانځه کي سهو کېدل

﴿۷۶﴾ وَلَا يَأْتِي الْإِمَامُ بِسُجُوْدِ السَّهْوِ فِي الْجُمُعَةِ وَالْعِيْدَيْنِ او نه به اداء کوي امام سجدۀ سهو په جمعه او اخترونو کي.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي که امام د جمعې یا د اختر په لمانځه کي داسي سهو او غلطي وکړي چي د هغه په وجه سجدۀ سهو واجبیږي، نو د امام لپاره ښه دا ده چي سجدۀ سهو نه وکړي؛ څکه په دې لمنځونو کي مجمع زیاته وي، نو د سجدۀ سهوي په کولو کي د نا خبره عوامو د لمونځ خرابېدلو قوي اندېښنه سته، همدا حکم د هغه جماعت د لمانځه دی کوم چي په لویه اجتماع او جلسه کي په زیاته مجمع سره ودریږي. (طحطاوي علی مراقی الفلاح ص:۲۵۳، کتاب المسائل ص:۳۱۰)

## د قعدۀ اولیٰ (اولي ناستي) د هېرېدلو حکم

﴿۷۷﴾ وَمَنْ سَهَا عَنِ الْقُعُوْدِ الْأَوَّلِ مِنَ الْفَرْضِ او څوک چي سهوه سي (تېر وځي) له اولي ناستي څخه د فرضو (یعني د فرضو اوله ناسته څني هېره سي) عَادَ إِلَيْهِ مَا لَمْ يَسْتَوِ قَائِمًا فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ نو هغه (اولي ناستي) ته دي بیرته راوګرځي تر څو چي سیده درېدلی نه وي، د ظاهر روایت مطابق وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا زیاته صحیح ده وَالْمُقْتَدِيْ كَالْمُتَنَفِّلِ يَعُوْدُ وَلَوِ اسْتَتَمَّ قَائِمًا او مقتدی د نفل کونکي په څېر دی راګرځي به (ناستي ته) که څه هم هغه پوره (سیده) درېدلی وي فَإِنْ عَادَ وَهُوَ إِلَى الْقِيَامِ أَقْرَبُ بیا که هغه راوګرځي په داسي حال کي چي هغه ولاړي ته زیات نژدې وي سَجَدَ لِلسَّهْوِ نو سجدۀ سهو به کوي وَإِنْ كَانَ إِلَى الْقُعُوْدِ أَقْرَبَ او که ناستي ته زیات نژدې وي لَا سُجُوْدَ عَلَيْهِ فِي الْأَصَحِّ نو پر هغه سجدۀ سهو نسته، د اصح قول مطابق وَإِنْ

عَادَ بَعۡدَ مَا اسۡتَتَمَّ قَائِمًا او که هغه راوګرځي وروسته تر دې چې پوره (سيده) دریدلی وي اِخۡتَلَفَ التَّصۡحِيۡحُ فِيۡ فَسَادِ صَلٰوتِهٖ نو د هغه د لمانځه د فاسدېدلو په باره کې (د علماؤ) تصحيح مختلفه ده (يعني د بعضو په نيز صحيح دا ده چې د هغه لمونځ فاسديږي او د بعضو په نيز صحيح دا ده چې لمونځ يې نه فاسديږي).

**لغات**: ﴿لـم يستو﴾ د افتعال له بابه د جحد صيغه ده، مصدر: استواء: سيده کېدل، برابرېدل.

﴿استتمّ﴾ د استفعال د باب ماضي ده: پوره کول، بشپړ کول.

**تشريح**: يعني که له امام يا منفرد څخه په فرضو يا وترو کي قعدهٔ اولیٰ (اوله ناسته) هېره سي، نو تر څو چې سيده (پوره) دریدلی نه وي، پر هغه واجب دي چې بېرته د ناستي وطرف ته راوګرځي. همدا ظاهر روايت او اصح قول دی.

والمقتدی: يعني څرنګه چې نفل کونکی په هر حال کي د ناستي (قعده) وطرف ته راګرځي، ځکه د نفل کونکي هره قعده "قعدهٔ اخيره" ده يعني فرض او لازم ده (ځکه د نفلو هر دوه رکعته مستقل لمونځ دی، کمامرّ)، نو همداسي مقتدی که څه هم سيده دریدلی وي، پر هغه د ناستي وطرف ته راګرځېدل لازم دي، همدارنګه که مقتدي قعدهٔ اولیٰ پرېږدي او ولاړ سي او امام ناست وي، نو پر مقتدي لازم دي چې ناستي ته را وګرځي (بېرته کښېني).

فإن عاد إلخ: پور ته معلومه سوه چې که په فرضو يا وترو کي له امام يا منفرد څخه قعدهٔ اولیٰ هېره سي، نو تر څو چې سيده (پوره) دریدلی نه وي، پر هغه واجب دي چې د ناستي وطرف ته را وګرځي، اوس که هغه په داسي حالت کي راوګرځي چې ولاړي ته زيات نژدې وي، نو پر هغه سجدهٔ سهو واجب ده او که ناستي ته زيات نژدې وي، نو د اصح قول مطابق پر هغه سجدهٔ سهو واجب نه ده. خلاصه دا چې د سجدهٔ سهوي حکم متعلق دی د قُرب او عدمِ قُرب سره او د عَود حکم متعلق دی د استواء او عدمِ استواء سره. او دلته يې "اصح" ځکه ويلي دي چې د بعضو په نيز سجدهٔ سهو واجبيږي: ځکه قعدهٔ اولیٰ کوم چې واجب ده په هغې کي تأخير راغلی. (شفاء الارواح)

وإن عاد بعد ما إلخ: يعني کله چې قعدهٔ اولیٰ پرېږدي او سيده ودرېږي، نو بيا ناستي ته را ګرځېدل پکار نه دي، لېکن که هغه را وګرځي، نو د بعضو په نيز د هغه لمونځ فاسديږي او هغو همدې قول ته صحيح ويلي دي او بعضي ويلي دي چې لمونځ يې نه فاسديږي او هغو بيا همدې قول ته صحيح ويلي دي، لېکن په "عمدة الفقه" کي دي چې صحيح مذهب دا دی چې د هغه لمونځ اداء کيږي، خو په داسي کړنه سره ګنهګاره کيږي او په دې صورت کي هم سجدهٔ سهو کول واجبيږي.

## که له قعدهٔ اخیره څخه په هېره ولاړ سي

﴿۱۷۷﴾ وَإِنْ سَهَا عَنِ الْقُعُوْدِ الْأَخِيْرِ او که سهوه سي (تېروځي) له آخري ناستي څخه (آخره ناسته ځني هېره سي) عَادَ مَا لَمْ يَسْجُدْ نو راودي ګرځي تر څو چي هغه سجده نه وي کړې (د زائد رکعت لپاره) وَ سَجَدَ لِتَأْخِيْرِهٖ فَرْضَ الْقُعُوْدِ او سجدهٔ سهو دي وکړي د فرض ناستي د ځنډولو په وجه فَإِنْ سَجَدَ بيا که هغه سجده وکړي (د زائد رکعت لپاره) صَارَ فَرْضُهٗ نَفْلًا نو د هغه فرض نفل ګرځي وَ ضَمَّ سَادِسَةً إِنْ شَاءَ او شپږم رکعت دي ور سره ضمّ (یو ځای) کړي که یې خوښه وي وَلَوْ فِي الْعَصْرِ که څه هم د مازیګر په لمانځه کي وي وَ رَابِعَةً فِي الْفَجْرِ او څلورم رکعت (دي ور سره ضمّ کړي) د سهار په لمانځه کي.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چي که څوک قعدهٔ اخیره (آخري ناسته) هېره کړي یعني په څلور رکعتیز لمانځه کي پنځم رکعت ته ولاړ سي، یا په درې رکعتیز (یعني د ماښام او وترو په) لمانځه کي څلورم رکعت ته ولاړ سي یا په دوه رکعتیز (د سهار په) لمانځه کي درېیم رکعت ته ولاړ سي، نو تر څو چي یې د هغه زائد رکعت سجده نه وي کړې، بیرته دي د قعده (ناستي) وطرف ته راوګرځي او سجدهٔ سهو دي وکړي؛ ځکه په قعدهٔ اخیره کي کوم چي فرض ده تأخیر راغلی.

**فإن سجد إلخ:** او که د قعده وطرف ته نه راوګرځي او د زائد رکعت سجده وکړي، نو تر سجده کولو وروسته د هغه لمونځ د فرضو پر ځای نفل ګرځي، اوس دي د هغه سره یو رکعت بل یو ځای کړي (ضمّ کړي) چي نفل جُفت وګرځي (مثلاً د څلور رکعتیز لمانځه په صورت کي شپږ رکعته نفل سي) او طاق پاته نه سي، دلته یې "إن شاء" ویلي دي، لهذا که خوښه یې نه وي نو بل زائد رکعت دي نه ور سره یو ځای کوي او پر پنځم رکعت دي سلام وګرځوي، په دې صورت د هغه څلور رکعته نفل سوه او یو رکعت یې ضایع سو. لیکن زائد رکعت ور سره یو ځای کول ښه دي.

**ولو في العصر:** یعني که څه هم د مازیګر لمونځ وي، په هغه کي دي هم زائد یعني شپږم رکعت ور سره ضمّ کړي او که د سهار لمونځ وي، نو څلورم رکعت دي ور سره ضمّ کړي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

﴿۱۷۸﴾ وَ لَا كَرَاهَةَ فِي الضَّمِّ فِيْهِمَا عَلَى الصَّحِيْحِ او کراهت نسته په ضمولو (د بل زائد رکعت کي په دې دواړو (یعني د مازیګر او سهار په لمانځه) کي د صحیح قول مطابق.

**لغات:** ﴿الضم﴾ د نصر د باب مصدر دی: یو شی د بل شي سره یو ځای کول، ضمول.

**تشريح**: د تېر عبارت په آخر کي ذکر سوه چي د مازيګر او سهار په لمانځه کي دي هم زائد رکعت ور سره ضموي، اوس دلته فرمايي چي د صحيح قول مطابق په دې دواړو لمنځونو کي د زائد رکعت په ضمولو کي هيڅ کراهت نسته، د "علی الصحيح" په قيد سره يې د بعضو قول رد کړی دی، ځکه د بعضي حضراتو قول دا دی چي په دې دواړو لمنځونو کي دي بل رکعت نه ور سره ضموي، ځکه د مازيګر تر لمانځه وروسته نوافل مکروه دي، همدارنګه د سهار تر لمانځه وروسته او مخکي هم نوافل مکروه دي، نو دلته يې د "صحيح" په قيد سره د هغو قول رد کړی، ځکه کله چي دلته ټوله رکعتونه نفل وګرځېده او تر دې وروسته فرض دويم ځل کول کيږي نو ښکاره خبره ده چي اوس نفل د مازيګر تر لمانځه وروسته نه واقع کيږي، همدارنګه تر دې لمنځونو وروسته د نفلو کراهت هغه وخت دی کله چي د لمونځ ګزار په اختيار سره وي او دلته فرض نفل ګرځېدل بغير له اختيار څخه دي. علامه ابن نجيم رَحِمَهُ الله په البحر الرائق کي د مازيګر او سهار د لمانځه په هکله په دې مسئله کي فرمايي "التطوع إنما يكره فيهما إذا كان عن اختيار أمّا إذا لم يكن عن اختيار فلا، وعليه الاعتماد.... وعليه الفتوىٰ... وقال في فتح القدير: والنهي عن التنفل القصدي بعدهما". (البحر الرائق ج: ۲، ص: ۱۱۳)

﴿ متن ﴾ وَلَا يَسْجُدُ لِلسَّهْوِ فِي الْأَصَحِّ او سجدۀ سهو به نه کوي د صحيح ترين قول مطابق.

**تشريح**: مخکي ذکر سوه چي که څوک قعدۀ اخيره هېره کړي او د بل رکعت لپاره ولاړ سي او د هغه رکعت سجده هم وکړي، نو يو بل زائد رکعت دي ور سره ضم کړي او دا ټوله رکعتونه نفل وګرځېده. اوس دلته فرمايي چي کله يو بل رکعت ور سره ضم کړي، نو د بعضو په نېز پر هغه سجدۀ سهو سته. لېکن صحيح قول دا دی چي پر هغه سجدۀ سهو کول لازم نه دي؛ ځکه دلته نقصان د فساد په وجه دی چي په سجدۀ سهوي سره د هغه تلافي نه سي کېدلای، اوس خو پر هغه دوباره فرض لمونځ کول لازم دي.

## که په آخري قعده کي د سلام کولو پر ځای ولاړ سي

﴿ متن ﴾ وَإِنْ قَعَدَ الْأَخِيْرَ ثُمَّ قَامَ او که آخره ناسته وکړي بيا ولاړ سي عَادَ وَسَلَّمَ مِنْ غَيْرِ إِعَادَةِ التَّشَهُّدِ نو را دي وګرځي (ناستي ته) او سلام دي وګرځوي بغير له راګرځولو څخه د تشهّد (يعني التحيات دي بيرته نه وايي) فَإِنْ سَجَدَ بيا که سجده وکړي (د زائد رکعت لپاره) لَمْ يَبْطُلْ فَرْضُهٗ نو د ده فرض نه باطليږي (او نفل نه ګرځي) وَضَمَّ إِلَيْهَا أُخْرىٰ او ور سره ضم دي کړي د

هغه (زائد رکعت) سره بل رکعت لِتَصِيْرَ الزَّائِدَتَانِ لَهُ نَافِلَةً د دې لپاره چې وګرځي دا دوه زائد(اضافي) رکعتونه د ده لپاره نفل وَ سَجَدَ لِلسَّهْوِ او سجدۀ سهو دې وکړي.

**لغات:** ﴿قَامَ﴾ د نصر د باب ماضي ده قَوْمًا وَقِيَامًا: دريدل، ولاړيدل، ﴿عَادَ﴾ د نصر د باب ماضي ده، مصدر: عَوْدًا: راګرځېدل، واپس کېدل، ﴿إِعَادَة﴾ د افعال د باب مصدر دی: راګرځول، دوباره کول.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چې که څوک په قعدۀ اخيره (آخري ناسته) کي د تشهّد په اندازه کېښني، بيا تر دې وروسته ولاړ سي (يعني د تشهّد په اندازه ناستې څخه وروسته په څلور رکعتيز لمانځه کي د پنځم رکعت لپاره يا په دوه رکعتيز لمانځه کي د درېيم رکعت لپاره ولاړ سي)، نو د دې کس فرض اداء سوه، لېکن هغه ته پکار دي چې سملستي د ناستي (قعده) وطرف ته راوګرځي او کله چې را وګرځوي، نو تشهّد دې بيرته نه وايي، بلکي سجدۀ سهو دې وکړي او سلام دې وګرځوي، او که د پنځم يا درېيم رکعت سجده وکړي، نو په دې صورت کي غوره دا ده چې بل (شپږم يا څلورم) رکعت دې هم ور سره يو ځای کړي، د دې لپاره چې آخري دوه رکعته نفل وګرځي (يعني چې هغه يو زائد رکعت ضايع نه سي)، لېکن سجدۀ سهو کول په هر صورت کي ضروري دي، فرض لمونځ خو ځکه اداء سو چې د سلام په لفظ د لمانځه څخه وتل زموږ په نېز واجب دي، او په دې صورت کي صرف د سلام لفظ پاته سوی دی او د واجب په پرېښوولو سره لمونځ نه فاسديږي؛ ځکه د واجب پرېښوولو په وجه چې کوم نقصان او کمي راغلې ده، هغه په سجدۀ سهو سره پوره کيږي.

## پر اولو دوو رکعتو د آخري دوو رکعتو بناء کول

﴿۵۵﴾ وَلَوْ سَجَدَ لِلسَّهْوِ فِي شَفْعِ التَّطَوُّعِ او که سجدۀ سهو وکړي د نفلو په دوه رکعتو کي لَمْ يَبْنِ شَفْعًا آخَرَ عَلَيْهِ اِسْتِحْبَابًا نو نه دې بناء کوي دوه نور رکعته پر هغه، د مستحب والي په اعتبار سره (يعني مستحب دا ده چې د هغه دوه رکعتو نفلو سره دې دوه نور رکعته نه يو ځای کوي) فَإِنْ بَنٰى بيا که هغه بناء وکړي (يعني دوه نور رکعته ور سره يو ځای کړي) أَعَادَ سُجُوْدَ السَّهْوِ فِي الْمُخْتَارِ نو سجدۀ سهو دې راوګرځوي (يعني بله سجدۀ سهو دې وکړي)، د مختار (خوښ سوي) قول مطابق.

**لغات:** ﴿شفع التطوع﴾ د نفلو دوه رکعتيز لمونځ.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چې که يو څوک دوه رکعته نفل وکړي، لېکن په هغوی که څه سهو او غلطي وسي، چې د هغه په وجه سجدۀ سهو وکړي، بيا دئ وغواړي چې پر هغه دوو رکعتو نور دوه

رکعته نفل بناء کړي، نو دغه کس لره د دې (بناء کولو) اجازه نشته، بلکې سلام دې وګرځوي او په نوې تحريمه سره دې دوه رکعته نفل وکړي؛ دليل دا دی چې سجدهٔ سهو د لمانځه په آخر کې مشروع شوې ده، د لمانځه د دوو شفعو په مينځ کې مشروع نه ده (يا په بله وينا دا چې په شريعت کې د سجدهٔ سهوې ځای د لمانځه آخر تاکل شوی دی، نه د لمانځه مينځ)، اوس که د بناء کولو اجازه ورکول شي، نو بلا ضرورته به د سجدهٔ سهوې باطلول لازم شي؛ ځکه د لته سجدهٔ سهو د لمانځه په مينځ کې واقع شوې ده، حال دا چې د لمانځه په مينځ کې مشروع نه ده.

فإن بنٰی إلخ: فرمايي بيا هم که هغه بناء وکړي چې نور دوه رکعته (دويمه شفعه) هم وکړي، نو صحيح کيږي؛ ځکه تر اوسه تحريمه باقي ده، خو په آخر کې به بله سجدهٔ سهو کوي، همدا مختار او اصح قول دی؛ ځکه کله چې يې بناء وکړه، نو هغه سجدهٔ سهو د لمانځه په مينځ کې واقع شوه، لهذا هغه باطله او غيرِ معتبره شوه، نو ځکه اوس پر دغه نفل کونکي د سجدهٔ سهوې اعاده واجب ده.

قوله استحبابًا: د دې لفظ په تشريح کې علامه طحطاوي رَحِمَهُ الله د البحر الرائق په حواله سره ليکلي دي چې دغه نفل کونکي لره بناء کول مکروه تحريمي دي؛ ځکه په بناء کولو کې د يوه واجب ماتول راځي چې هغه د سجدهٔ سهو باطلول دي، له دې څخه معلومه شوه چې بناء نه کول واجب دي، مستحب نه دي، "قال الطحاوي: إذا علمت ما ذكر مع ظهوره يكون عدم البناء واجبًا لا مستحبًّا". (طحطاوي ص: ۲۵۶، البحر الرائق ج: ۲، ص: ۱۱۴)

## د سجدهٔ سهو کونکي اقتداء کول

﴿۴۷۶﴾ وَلَوْ سَلَّمَ مَنْ عَلَيْهِ سَهْوٌ او که سلام وګرځوي هغه کس پر چا چې سجدهٔ سهو (واجب) وي فَاقْتَدٰی بِهٖ غَيْرُهٗ بيا اقتداء وکړي په ده پسې بل څوک. صَحَّ إِنْ سَجَدَ لِلسَّهْوِ نو (اقتداء يې) صحيح ده که دغه سجدهٔ سهو وکړي وَإِلَّا فَلَا يَصِحُّ کنې نو صحيح نه ده.

**تشريح:** مسئله دا ده پر کوم لمونځ ګزار چې سجدهٔ سهو واجب وي، کله چې هغه سلام وګرځوي او تر سلام وروسته يو داسې فعل نه وکړي کوم چې د لمانځه منافي وي، بيا په همدې حال کې يو بل کس په هغه پسې نيت وتړي، اقتداء پسې وکړي، نو په داسې صورت کې حکم دا دی چې که دا لمونځ ګزار يعني امام (چې په هغه پسې بل چا اقتداء کړې ده) سجدهٔ سهو وکړي، نو هغه مقتدي د ده په لمانځه کې داخليږي او که امام سجدهٔ سهو نه وکړي، نو هغه د ده په لمانځه کې داخل نه شمېرل کيږي؛ ځکه تر سلام ګرځولو وروسته که لمونځ ګزار سجده وکړه، نو ويل کيږي چې تحريمه باقي ده او کله چې تحريمي باقي ده، نو په هغه پسې د بل چا اقتداء کول هم صحيح دي. او که تر

سلام وروسته یې، سجده نه وکړه، نو ویل کیږي به چې تحریمه باقي پاته نه سوه او کله چې تحریمه باقي نه ده، نو اقتداء پسې کول به هم صحیح نه وي. (مأخوذ از انوار الایضاح و شفاء الارواح)

## تر کوم وخته پوري سجدهٔ سهو کولای سي؟

﴿۷۷﴾ وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ وَإِنْ سَلَّمَ عَامِدًا لِلْقَطْعِ او سجدهٔ سهو به کوي که څه هم هغه قصداً دلمونځ قطع کولو (ختمولو) لپاره سلام گرځولی وي مَا لَمْ يَتَحَوَّلْ عَنِ الْقِبْلَةِ أَوْ يَتَكَلَّمْ تر څو چي له قبلې څخه اوښتی نه وي یا (تر څو چي) یې خبري نه وي کړي.

**لغات:** ﴿عامدًا﴾ د ضرب له بابه د فاعل صیغه ده، مصدر: عَمْدًا: قصداً یو کار کول، په قصده کول.

• ﴿لم يتحوّل﴾ د تفعّل له بابه د جحد صیغه ده: اوښتل، گرځېدل.

**تشریح:** که پر لمونځ گزار سجدهٔ سهو واجب وي، لېکن هغه د لمونځ ختمولو په قصد سره سلام وگرځوي، او سجدهٔ سهو هغه ته یاد پاته نه سي، نو تر څو چي هغه له قبلې څخه اوښتی نه وي او نه یې د چا سره خبره کړي وي په لنډه توگه دا چي تر سلام گرځولو وروسته داسي شی څني صادر سوی نه وي کوم چي د لمانځه منافي وي چي په هغه سره لمونځ ماتیږي، نو تر دې مخکي که سجدهٔ سهو ورته یاده سي، نو سجدهٔ سهو به کوي، او پاته سوه دا خبره چي هغه خو د لمونځ ختمولو په قصد سره سلام گرځولی دی، نو د دې جواب دا دی چي هغه سلام د خلاف مشروع کېدلو په وجه لغو کیږي، هغه لره اعتبار نسته. (شفاء الارواح، انوار الایضاح بحوالهٔ در مختار مع الشامي ج: ۲، ص: ۴۸۷، کتاب المسائل ص: ۳۱۰)

## په څلور رکعتیز یا درې رکعتیز لمانځه کي پر دویم رکعت سلام گرځول

﴿۷۸﴾ وَلَوْ تَوَهَّمَ مُصَلٍّ رُبَاعِيَّةً أَوْ ثُلَاثِيَّةً أَنَّهُ أَتَمَّهَا او که وهم وسي لمونځ گزار ته په څلور رکعتیز یا درې رکعتیز لمانځه کي چي هغه لمونځ پوره کړی دی (یعني دا گومان وکړي چي ما دا لمونځ پوره کړی) فَسَلَّمَ ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهُ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ نو سلام وگرځوي بیا پوه سي چي هغه دوه رکعته کړي دي أَتَمَّهَا وَسَجَدَ لِلسَّهْوِ نو هغه دي پوره کړي او سجدهٔ سهو دي وکړي.

**لغات:** ﴿توهّم﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: وهم کول، دیو خبري گومان کول، دیو شي خیال په زړه کي راوستل. ﴿مُصَلٍّ﴾ د تفعیل د باب فاعل دی: لمونځ کونکی (لمونځ گزار). مُصَلٍّ په اصل کي مُصَلِّيٌ وو، د مُنَقٍّ په څېر تعلیل پکښې وسو کوم چي مخکي تېر سو.

**تشریح**: د عبارت تر حل مخکي دا قاعده یادلرئ! چي کوم څوک په هېره د لمانځه په مینځ کي سلام وګرځوي، د هغه لمونځ نه ختمیږي، بلکي باقي پاتیږي: "سَلَامُ مَنْ عَلَیهِ بَقِیَّةٌ مِنَ الصلاۃِ لَا یقطعُ الصلاۃَ".

حاصل د عبارت دا دی چي که څوک په څلور رکعتیز یا درې رکعتیز لمانځه کي له قعدۀ اولیٰ څخه وروسته په دې ګومان سلام وګرځوي چي همدا قعدۀ اخیره (آخري ناسته) ده، نو لمونځ یې نه فاسدیږي.
اوس د دغه کس پاره حکم دا دی چي که هغه پر خپل ځای ناست وي او سینه یې له قبلې څخه اړولې نه وي او نه یې د لمانځه یو منافي عمل کړی وي، نو بغیر له تکبیر ویلو څخه دي پر خپل مخکیني لمانځه بناء وکړي او په آخر کي دي سجدۀ سهو وکړي. د دې لپاره چي د هغه نقصان تلافي وسي کوم چي په لمانځه کي پېښ سوی دی.
لیکن که له قعده (ناستي) څخه وروسته په دې ګومان سلام وګرځوي چي پر ما صرف همدا دوه رکعته واجب دي، حال دا چي په حقیقت کي څلور رکعته واجب وي، مثلاً مقیم پر ځان د مسافر په ګومان کولو سره پر دویم رکعت سلام وګرځوي، یا د ماپښین په لمانځه کي د جمعې په ګومان کولو سره پر دویم رکعت سلام وګرځوي، نو په دې صورت کي په سلام ګرځولو سره لمونځ فاسدیږي. (شامي ج: ۱. ص: ۵۶۷. ط: مصري)

## د لمانځه په دوران کي فکر او سوچ وهل

﴿۴۷۹﴾ وَإِنْ طَالَ تَفَكُّرُهُ وَلَمْ يُسَلِّمْ حَتَّى اسْتَيْقَنَ او که اوږد سي (ډېر وخت ونیسي) د ده فکر کول (سوچ وهل) او سلام نه وګرځوي تر هغه وخته چي یقین یې سي (یعني تر هغه وخته په فکر لګیا وي چي خپل لمونځ ورته معلوم سي چي ما دومره رکعته کړي دي) إِنْ كَانَ قَدْرَ أَدَاءِ رُكْنٍ نو که هغه (فکر کول) د یوه رکن اداء کولو په اندازه وي (یعني د یوه رکن په اندازه وخت ونیسي) وَجَبَ عَلَيْهِ سُجُودُ السَّهْوِ نو پر هغه سجدۀ سهو واجب ده وَإِلَّا لَا کنې (واجب) نه ده.

**لغات**: ﴿طال﴾ د نصر د باب ماضي ده، مصدر: طُوْلًا: اوږدېدل. ﴿تَفَكُّر﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: فکر او سوچ کول، غور کول. ﴿استیقن﴾ د استفعال د باب ماضي ده، مصدر: استیقاناً: یقین کول.

**تشریح**: یعني که تر التحیّات ویلو وروسته لمونځ ګزار ته مثلاً دا شبهه پیدا سي چي ما څلور رکعته کړي دي او که دوه رکعته او په همدې فکر او سوچ کي د یوه رکن اداء کولو په اندازه ځنډ وکړي (یا د ملمانځه د رکعتونو په شمېر کي ورته شک سي او په قعده اولیٰ کي پکښې فکر من سي او سلام نه وګرځوي. او د هغه دا فکر د یوه رکن په اندازه وخت ونیسي) یعني دومره وخت په تفکّر کي وي چي په هغومره وخت کي درې واره "سبحان الله" ویلای سي. بیا هغه ته یاده سي چي ما دومره رکعته کړي دي. نو په دې صورت کي سجدۀ سهو کول واجب دي نو که تفکّر د یوه رکن له وخت څخه کم وي، نو سجدۀ سهو واجب نه ده. (شفاء الارواح. انوار الایضاح)

# فَصْلٌ فِي الشَّكِّ

(دا) فصل په (بيان د احکامو د) شکّ کې دی

**تشریح**: د "شک" معنیٰ ده: د يو شي په کېدلو يا نه کېدلو کې داسې ترّدد کول چې يوه طرف ته هم ترجيح حاصله نه سي يعني په کېدلو يا نه کېدلو کې يې برابر ترّدد وي، او که په دې دواړو کې يوه طرف ته ترجيح وي، نو دې ته "ظن" (گومان) ويل کيږي او د هغه مخالف طرف ته "وهم" ويل کيږي، او که په ترجيح کې زياتوب وي خو د يقين درجې ته نه رسيږي، نو دې ته "غلبهٔ ظن" ويل کيږي. (شفاء الاراواح بحوالهٔ عمدة الفقه)

## د رکعتونو په شمېر کې شکمن کېدل

| ﴿٨٠﴾ تَبْطُلُ الصَّلٰوةُ بِالشَّكِّ فِيْ عَدَدِ رَكَعَاتِهَا باطليږي لمونځ په شک لوېدلو سره د لمانځه د رکعتونو په شمېر کې إِذَا كَانَ قَبْلَ إِكْمَالِهَا (په دې شرط) کله چې وي دغه شک د لمانځه له پوره کولو څخه مخکې وَهُوَأَوَّلُ مَا عَرَضَ لَهٗ مِنَ الشَّكِّ او (په دې شرط چې) دغه اول شک وي کوم چې ده ته پېښ سوی وي أَوْكَانَ الشَّكُّ غَيْرَ عَادَةٍ لَهٗ يا شک د ده عادت نه وي. |
|---|

**لغات**: ﴿إِكمال﴾ د افعال د باب مصدر دی: مکمل کول، پوره کول.

**تشریح**: مسئله دا ده چې که لمونځ گزار ته په خپل لمانځه کې دا شک پېښ سي چې درې رکعته مې کړي دي او که څلور رکعته او دغه شک اول ځل ورته پېښ سوی وي، نو په داسې صورت کې دې له نوي سره لمونځ وکړي.

وهوأول الخ: يعني د اول ځل شک پېښېدلو په معنیٰ کې د فقهاؤ اختلاف دی. د بعضې حضراتو په نېز د دې معنیٰ دا ده چې له بالغ کېدلو څخه وروسته دا شک اول ځل ورته پېښ سوی وي، او د بعضې مشايخو په نېز د دې معنیٰ دا ده چې هېره د هغه عادت نه وي بلکې کله نا کله هېره ورته پېښيږي، دا يې معنیٰ نه ده چې په خپل عمر کې هيڅکله سهو سوی نه وي، او همدا صحيح (او راجح) قول دی (عمدة الفقه). دلته مصنف رَحِمَهُ الله د "أول ما عرض... أو كان الشك غير عادة له" په عبارت کې دوه

متباين قولونه سره جمع کړي دي، نو ځکه دا فيصله مشکله ده چي د مصنف رحمه الله په نيز کوم قول معتمد او معتبر دی. (طحطاوي ص:۲۵۸)

إذا کان: يعني دا مسئله هغه وخت ده کله چي دوه شرطونه موجود سي: ① يو دا چي دغه شک د لمونځ پوره کولو او سلام ګرځولو څخه مخکي يعني په لمانځه کي دننه ورته پېښ سوی وي.

②دويم شرط "وهو أوّل ما عرض إلخ" دی، چي وضاحت يې وسو.

## تر سلام ګرځولو وروسته شکمن کېدل

| ﴿۸۱﴾ فَلَوْ شَكَّ بَعْدَ سَلَامِهِ نو که شک وکړي تر سلام وروسته (يعني تر سلام ګرځولو وروسته لمونځ ګزار ته شک سي، د رکعتونو په شمېر کي) لَا يُعْتَبَرُ نو د هغه اعتبار به نه کول کېږي (يعني تر سلام وروسته شک معتبر نه دی) إِلَّا أَنْ تَيَقَّنَ بِالتَّرْكِ مګر دا چي يقين يې سي پر پرېښوولو. |
|---|

**لغات**: ﴿تيقّن﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: يقين کول.

**تشريح**: مسئله دا ده چي که تر لمونځ کولو او سلام ګرځولو وروسته لمونځ ګزار ته شک سي، نو په دې شک سره يې لمونځ نه باطلېږي، مثلاً که د ماپښين تر لمونځ پوره کولو او سلام ګرځولو وروسته لمونځ ګزار ته شک سو چي درې رکعته مي کړي دي او که څلور رکعته، نو دلته به همدا ويل کېږي چي هغه څلور رکعته کړي دي، ها! که په دې باره کي يې يقين سو چي بېله شکه درې رکعته مي کړي دي، نو که يې د لمانځه يو منافي عمل نه وي کړی، نو خپل پاته لمونځ دي پوره کړي يعني ولاړ دي سي يو رکعت دي بل وکړي او په آخر کي دي سجدهٔ سهو وکړي(انوار الايضاح بتغيرٍ، شفاء الارواح بحوالهٔ عمدة الفقه)، (او صاحب د ثمرة النجاح مطلق ليکلي دي چي که يې يقين سو چي مثلاً درې رکعته مي کړي دي، نو اول لمونځ يې باطلېږي؛ دوباره دي لمونځ وکړي؛ ځکه شک نسته بلکي يقين دی چي لمونځ درې رکعته سوي دي. والله أعلم).

## اکثره شک واقع کېدل

| ﴿۸۲﴾ وَإِنْ كَثُرَ الشَّكُّ او که زيات وي شک (زياتره وخت شک ورته پېښېږي) عَمِلَ بِغَالِبِ ظَنِّهِ نو عمل دي کوي پر غالب ګومان فَإِنْ لَمْ يَغْلِبْ لَهُ ظَنٌّ او که هغه لره هيڅ غالب ګومان نه وي أَخَذَ بِالْأَقَلِّ نو نيول (عمل) دي کوي پر کم مقدار وَقَعَدَ بَعْدَ كُلِّ رَكْعَةٍ ظَنَّهَا آخِرَ صَلٰوتِهِ |
|---|

ټـه او کښېـني دي لـه هـر هغـه رکعت څخـه وروسـته چـي پـر هغـه د خپـل لمانځـه دآخـر ګومـان کوي (يعني چي پر هغه يې د خپل لمانځه دآخري رکعت ګومان وي).

**تشريح**: مسئله دا ده چي که د رکعتونو د مقدار په باره کي لمونځ ګزار ته زياتره وخت شک واقع کيږي، نو د دې دوه صورتونه دي: يا خو يو طرف ته به د هغه ظن غالب (غالب ګومان) وي يا به نه وي، که يو طرف ته يې ظن غالب وي، نو پر هغه دي عمل کوي او سجدهٔ سهو دي نه کوي. لېکن پر ظن غالب د عمل کولو په صورت کي که په تفکر (فکر وهلو) کي د يوه رکن په اندازه وخت تېر سي، نو سجدهٔ سهو واجبيږي.

**فإن لم يغلب إلخ**: او که يوه طرف ته يې هم ظنّ غالب نه وي، بلکي دواړو طرفونو ته يې برابر خيال وي، نو پر اقلّ يعني پر کم (لږ) يوه دي عمل کوي، مثلاً لمونځ ګزار ته دا شک پېښ سي چي دا اول رکعت دی او که دويم رکعت او ديوه په بار کي يې هم غالب ګومان نه وي، نو په اول دي عمل وکړي چي دا زما اول رکعت دی او که شک يې دا وي چي دويم رکعت دی او که درېيم رکعت نو دويم رکعت دي واخلي چي دا زما دويم رکعت دی او داسي نور.

**وقعد إلخ**: يعني پر اقلّ د عمل کولو په صورت کي دي په هر رکعت باندي قعده (ناسته) کوي، مثلاً که په څلور رکعتيز لمانځه کي لمونځ ګزار ته دا شک پېښ سي چي دا اول رکعت دی او که دويم، نو اقلّ يعني اول رکعت دي واخلي او پر دې (اول) رکعت دي قعده وکړي: ځکه دا امکان سته چي دغه رکعت دي دويم رکعت وي او پر دويم رکعت قعده واجب ده، همدارنګه پر دويم رکعت دي هم قعده وکړي؛ ځکه لمونځ ګزار هغه دويم رکعت ګڼلی دی او بيا دي پر درېيم رکعت هم قعده وکړي؛ ځکه ممکنه ده چي دا دي څلورم رکعت وي او پر څلورم رکعت قعده فرض ده، بيا دي پر څلورم رکعت هم قعده وکړي؛ ځکه د لمونځ ګزار په نېز هغه څلورم رکعت دی او پر څلورم رکعت قعده فرض ده، او په همدې آخري قعده کي دي سجدهٔ سهو وکړي او لمونځ دي ختم کړي. حاصل دا چي د قعدهٔ واجبه او قعدهٔ مفروضه د پاته کېدلو له بيري څخه دي په هر رکعت باندي قعده کوي (يعني چي نه قعدهٔ اولیٰ کوم چي واجب ده پاته سي او نه قعدهٔ اخيره کوم چي فرض ده پاته سي)، دلته مصنف رَحِمَهُ الله د شک په صورت کي د سجدهٔ سهو تذکره نه ده کړې، لېکن په طحطاوي کي د سجدهٔ سهو په هکله پوره تفصيل ذکر سوی دی. (شفاء الارواح)



# بَابُ سُجُوْدِ التِّلَاوَةِ

## (دا) باب په (بیان د) سجدۀ تلاوت کي دی

**تشریح**: د سجدۀ تلاوت لپاره هم هغه ټوله شیان شرط دي کوم چي د لمانځه لپاره شرط دي، مثلاً له بې اودسي او جنابت څخه پاکوالی، اسلام عقل او بلوغ او داسي نور. همدا وجه ده چي په مکروه وختونو کي سجدۀ تلاوت صحیح نه ده.

### د سجدۀ تلاوت واجبېدلو سبب

| |
|---|
| ﴿۷۸۳﴾ سَبَبُهُ التِّلَاوَةُ عَلَى التَّالِيْ وَالسَّامِعِ د سجدۀ تلاوت (د واجبېدلو) سبب تلاوت کول (لوستل) دي د تلاوت کونکي او اورېدونکي لپاره فِي الصَّحِيْحِ د صحیح قول مطابق. |

**تشریح**: مسئله دا ده چي سجدۀ تلاوت هغه وخت پر انسان واجبېږي کله چي هغه د سجدې آیت تلاوت کړي یا د سجدې آیت واوري، ګواکي څرنګه چي د تلاوت کونکي (قرآن لوستونکي) لپاره د سجدې واجبېدلو سبب تلاوت دی، همداسي د اورېدونکي (سامع) لپاره هم د سجدې واجبېدلو سبب تلاوت دی (چي د اهلیت لرونکي کس څخه د آیة السجدة تلاوت واوري)، که تلاوت نه وي نو اورېدل هم نه راځي، نو په دې وجه د تالي او سامع دواړو لپاره د سجدۀ تلاوت واجبېدلو سبب تلاوت دی او همدا صحیح قول دی، او بعضو ویلي دي چي پر سامع د سجدې واجبېدلو سبب اورېدل دي (خو مصنف رحمه الله وویل چي د صحیح قول مطابق د تالي او سامع دواړو لپاره د سجدې د وجوب سبب تلاوت دی). (شفاء الارواح)

| |
|---|
| ﴿۷۸۴﴾ وَهُوَ وَاجِبٌ عَلَى التَّرَاخِيْ او سجدۀ تلاوت واجب ده په ځنډ سره (یعني د تأخیر ګنجائش پکښې شته چي وروسته یې اداء کړي) إِنْ لَّمْ يَكُنْ فِي الصَّلٰوةِ (په دې شرط) که په لمانځه کي نه وي. |

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي د سجدې د آیت تر تلاوت وروسته سمدستي سجده کول ضروري نه دي، تر دې چي که څه موده وروسته هغه وکړي، نو هم د سجدې اداء کونکی شمېرل کېږي، نه قضاء راوړونکی، لېکن شرط دا دی چي د سجدې آیت به د لمانځه څخه دباندي په بل حالت کي تلاوت سوی وي، که څوک په لمانځه کي دننه د سجدې آیت تلاوت کړي، نو بیا په لمانځه کي سجده کول واجب دي، تر لمانځه وروسته په سجده کولو سره هغه نه اداء کېږي، بلکي

ګنهګاره کیږي، په دې صورت کې له استغفار او توبې څخه بغیر بل د معافۍ صورت نشته. (شفاء الارواح بحوالۀ بهشتي زیور)

## سجدۀ تلاوت ځنډول مکروه دي

﴿۸۵﴾ وَكُرِهَ تَأْخِيرُهُ تَنْزِيهًا او سجدۀ تلاوت ځنډول مکروه تنزیهي دي.

**لغات**: ﴿تأخير﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: ځنډول، وروسته کول.

**تشریح**: غوره دا ده چې سجدۀ تلاوت ژر تر ژره اداء کړي، که بلا وجه سجدۀ تلاوت وځنډوي، نو کراهتِ تنزیهي لازمیږي.

په "شامي" وغیره کې ذکر سوي دي چې پر کوم چا سجدۀ تلاوت واجب سي، لېکن هغه په یو وجه سملستي سجده نه سي کولای، نو مستحب دا ده چې په هغه وخت کې دا آیت ووایي "سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ" [البقرة]، او بیا چې کله موقع پیدا کړي، نو سجدۀ تلاوت دې اداء کړي. (شامي ج: ۲، ص: ۵۸۳، کتاب المسائل ص: ۵۰۲)

## د سجدې د آیت په ویلو سره سجده واجبیږي، که څه هم په فارسي ژبه وي؟

﴿۸۶﴾ وَيَجِبُ عَلَى مَنْ تَلَا آيَةً وَلَوْ بِالْفَارِسِيَّةِ او واجبیږي پر هغه کس کوم چې آیت د سجدې تلاوت کړي وي که څه هم په فارسي ژبه وي.

**تشریح**: یعني څوک چې د سجدې آیت ووایي، نو پر هغه سجده کول واجب دي، که څه هم په فارسي ژبه د سجدې آیت ووایي، او دلته له فارسي ژبې څخه مراد هر هغه ژبه ده کوم چې عربي نه وي، مطلب د هري ژبې همدغه حکم دی. لنډه دا چې د سجدې د آیت د ترجمې په ویلو یا اورېدلو سره سجدۀ تلاوت واجبیږي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

آیا د سجدۀ تلاوت د واجبېدو لپاره د سجدې پوره آیت ویل شرط دي؟، په دې باره کې د فقهاؤ اختلاف دی، راجح او صحیح قول دا دی چې د سجدې د وجوب لپاره د سجدې ټول آیت ویل ضروري دي، لېکن که پوره آیت ووایي او د سجدې والا الفاظ نه پکښې ووایي، نو سجدۀ تلاوت نه واجبیږي. او بعضي خلګ پر دې فتویٰ ورکوي چې که د سجدې آیت پوره نه ووایي، بلکې څه حصه یې ووایي، نو هم سجده کول واجب دي. (انوار الایضاح)

﴿۸۷﴾ وَقِرَاءَةُ حَرْفِ السَّجْدَةِ مَعَ كَلِمَةٍ قَبْلَهُ أَوْ بَعْدَهُ مِنْ آيَتِهَا كَالْآيَةِ او د سجدې حرف ویل (لوستل) د یو کلمې سره کوم چې له حرف سجده څخه مخکې وي یا تر هغه وروسته

وي له همدې آيت څخه د ټوله آيت (لوستلو) په ځېر دى فِي الصَّحِيْحِ د صحيح قول مطابق.

**تشريح:** يعني څرنګه چي د سجدې د آيت په ويلو (تلاوت كولو) سره سجدۀ تلاوت اجبيږي. همداسي د سجدې په آيت كي چي كوم لفظ پر سجده دلالت كوي كه څوك صرف هغه لفظ او تر هغه مخكينى يا وروستنى كلمه يو ځاى ور سره ووايي، نو هم سجدۀ تلاوت واجبيږي. مثلاً په "سورة الاعراف" كي په "وَلَهٗ يَسْجُدُوْن" باندي سجده كيږي، همدې ته "لفظ د سجدې" (يا د سجدې حروف) ويل كيږي، نو كه تر دغه لفظ مخكينى كلمه "وَيُسَبِّحُوْنَهٗ" هم يو ځاى ور سره ووايي، نو سجده واجبيږي، صرف د "وَلَهٗ يَسْجُدُوْن" په اداء كولو سره سجده نه واجبيږي، همدا صحيح قول دى، خو په "سورة الإقراء" كي چي كوم د سجدې لفظ دى "واسْجُدْ وَاقْتَرِب"، هغه له دغه قاعدې څخه مستثنىٰ دى يعني كه صرف "وَاسْجُدْ" ووايي، نو هم سجده واجبيږي، كه څه هم وروستنى لفظ "وَاقْتَرِبْ" نه ور سره ووايي.

او په متن كي د "فى الصحيح" په قيد سره يې د هغو حضراتو قول رد كړى دى چي هغوى وايي چي كه د سجدې د آيت اكثره حصه ولوستل سي، نو بس سجده واجبيږي، برابره ده اكثره حصه د سجدې د لفظ څخه مخكي وي او كه وروسته وهو رواية عن محمد واختاره الزيلعى، نو مصنف رَحِمَهُ الله د هغو له قول څخه احتراز وكړى.

او كه څوك د سجدې ټوله آيت ووايي، لېكن لفظ د سجدې نه پكښې ووايي، نو پر هغه سجده نه واجبيږي. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

## د سجدۀ تلاوت د آيتونو شمېر

﴿۸۸﴾ وَ آيَاتُهَا أَرْبَعَ عَشَرَةَ آيَةً او د سجدې آيتونه څوارلس آيته دي فِي الْأَعْرَافِ وَالرَّعْدِ وَالنَّحْلِ وَالْإِسْرَاءِ وَمَرْيَمَ ① په سورة الاعراف كي، ② په سورة الرعد كي، ③ په سورة النحل كي، ④ په سورة الإسراء (سورة بني اسرائيل) كي، ⑤ په سورة مريم كي وَ أُوْلَى الْحَجِّ وَالْفُرْقَانِ وَالنَّمْلِ وَالسَّجْدَةِ وَ صٓ ⑥ او د سورة الحج په اوله سجده (اول آيت د سجدې) كي، ⑦ په سورة الفرقان كي، ⑧ په سورة النمل كي، ⑨ په سورة السجده كي، ⑩ په سورة صٓ كي وَ حٰمٓ

السَّجْدَةِ وَالنَّجْمِ وَانْشَقَّتْ وَاِقْرَأْ ⑪ او په سورة حمٓ سجده کې، ⑫ په سورة النجم کې، ⑬ په سورة انشقت (سورة الانشقاق) کې، ⑭ او په سورة اقرأ (سورة العلق) کې.

**تشریح:** په دې عبارت کې د سجدهٔ تلاوت دآیتونو شمېر بیان سوی دی او هغه ټوله څوارلس آیتونه دي چې د هغوی په تلاوت کولو سره سجده واجبیږي، او په قرآن کریم کې پر دغه هر مقام نښان موجود دی، او په "سورة الحج" کې دوه د سجدې آیتونه دي، خو په هغوی کې صرف پر اول آیت سجده لازم ده، پر دویم آیت زموږ په نیز په نېز سجده نسته، او په "سورة صٓ" کې په "رَاكِعًا وَأَنَابَ" باندې د سجدې نښان صحیح نه دی، بلکې صحیح دا ده چې په "حُسْنَ مَآبٍ" باندې سجده وسي او په "سورة حمٓ" کې په "لَا يَسْئَمُوْنَ" باندې سجده کول پکار دي. (ایضاح المسائل ص:۳۹، الجوهرة النیرة ج:۱، ص:۹۷)

**فایده:** هغه څوارلس د سجدې آیتونه دا دي:

(۱)... اِنَّ الَّذِيْنَ عِنْدَ رَبِّكَ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَيُسَبِّحُوْنَهٗ وَلَهٗ يَسْجُدُوْنَ. ﴿سورة الاعراف: ۲۰۶ پ:۹، رکوع:۱۴﴾

(۲)... وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ طَوْعًا وَّ كَرْهًا وَّ ظِلٰلُهُمْ بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ. ﴿سورة الرعد: ۱۵ پ:۱۳، رکوع:۸﴾

(۳)... يَخَافُوْنَ رَبَّهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ. ﴿سورة النحل: ۵۰ پ:۱۴، رکوع:۱۲﴾

(۴)... وَيَخِرُّوْنَ لِلْاَذْقَانِ يَبْكُوْنَ وَيَزِيْدُهُمْ خُشُوْعًا. ﴿سورة بني اسرائیل: ۱۰۹ پ:۱۵، رکوع:۱۲﴾

(۵)... اِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُ الرَّحْمٰنِ خَرُّوْا سُجَّدًا وَّ بُكِيًّا. ﴿سورة مریم: ۵۸ پ:۱۶، رکوع:۷﴾

(۶)... په سورت حج کې اوله سجده: وَمَنْ يُّهِنِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ مُّكْرِمٍ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ. ﴿سورة الحج: ۱۸ پ:۱۷، رکوع:۹﴾

(۷)... وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ اسْجُدُوْا لِلرَّحْمٰنِ، قَالُوْا وَمَا الرَّحْمٰنُ اَنَسْجُدُ لِمَا تَاْمُرُنَا. ﴿سورة الفرقان: ۶۰ پ:۱۹، رکوع:۱۷﴾

(۸)... اَلَّا يَسْجُدُوْا لِلّٰهِ الَّذِيْ يُخْرِجُ الْخَبْءَ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُخْفُوْنَ وَمَا تُعْلِنُوْنَ. ﴿سورة النمل: ۲۶ پ:۱۹، رکوع:۱۷﴾

(۹)... اِنَّمَا یُؤْمِنُ بِاٰیٰتِنَا الَّذِیْنَ اِذَا ذُکِّرُوْا بِهَا خَرُّوْا سُجَّدًا وَّ سَبَّحُوْا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا یَسْتَکْبِرُوْنَ. ﴿سورة السجدة (الم تنزیل): ۱۵ پ: ۲۱، رکوع: ۱۵﴾

(۱۰)... وَظَنَّ دَاوٗدُ اَنَّمَا فَتَنّٰهُ فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهٗ وَخَرَّ رَاکِعًا وَّاَنَابَ. ﴿سورة صٓ: ۲۴ پ: ۲۳، رکوع: ۱۱﴾

(۱۱)... فَاِنِ اسْتَکْبَرُوْا فَالَّذِیْنَ عِنْدَ رَبِّكَ یُسَبِّحُوْنَ لَهٗ بِالَّیْلِ وَالنَّهَارِ وَهُمْ لَا یَسْـَٔمُوْنَ. ﴿حمٓ السجدة: ۳۸ پ: ۲۴، رکوع: ۱۹﴾

(۱۲)... فَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ وَاعْبُدُوْا. ﴿سورة النجم: ۶۲ پ: ۲۷، رکوع: ۷﴾

(۱۳)... وَاِذَا قُرِئَ عَلَیْهِمُ الْقُرْاٰنُ لَا یَسْجُدُوْنَ. ﴿سورة الانشقاق: ۲۱ پ: ۳۰، رکوع: ۹﴾

(۱۴)... وَاسْجُدْ وَاقْتَرِبْ. ﴿سورة العلق: ۱۹ پ: ۳۰، رکوع: ۲۱﴾

دغه څوارلس د سجدې مقامات په هغه قرآن مجید کې متعین کړل سوي وه کوم چې حضرت عثمان غني ﷛ مُرتّب کړی وو، څرنګه چې د حضرت عثمان ﷛ قرآن پاک ډېر معتبر او معتمد قرآن دی، نو ځکه په هغه کې بیان سوي مقامات به هم داعتماد او اعتبار وړ وي.

او په "سورة الحج" کې دویم د سجدې آیت چې په هغه کې زموږ په نیز سجده نسته، دا دی: ﴿یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا ارْکَعُوْا وَاسْجُدُوْا وَاعْبُدُوْا رَبَّکُمْ وَافْعَلُوا الْخَیْرَ لَعَلَّکُمْ تُفْلِحُوْنَ﴾ (سورة الحج: ۷۷) او د سورت صٓ سجده د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز د شکر سجده ده.

او د شوافعو په نیز هم د سجدو شمېر څوارلس دي، خو فرق دا دی چې زموږ په نیز د سورت حج اوله سجده سجدۀ تلاوت ده، لېکن دویمه سجده سجدۀ تلاوت نه ده، بلکې سجدۀ صلاة (یعني د لمانځه سجده) ده او امام شافعي رَحِمَهُ الله د سورت حج دواړه سجدې سجدۀ تلاوت شمېري. (فتح الهدایه)

## سجدۀ تلاوت پر چا واجب ده؟

| ﴿۸۹﴾ و، یَجِبُ السُّجُوْدُ عَلٰی مَنْ سَمِعَ او واجبیږي سجده پر (هر) هغه کس کوم چې (د سجدې آیت) واوري وَاِنْ لَّمْ یَقْصِدِ السَّمَاعَ که څه هم هغه د اورېدلو قصد (اراده) نه وي کړی. |
|---|

**تشریح:** په ټوله قرآن کې څوارلس د سجدې آیتونه دي، د دې آیتونو په لوستونکي او اورېدونکي هریوه باندې سجده کول واجب دي، اورېدونکي برابره ده د قرآن کریم د اورېدلو په اراده سره د سجدې

آیت اورېدلی وي، یا په یو بل کار مشغوله وي او بغیر له ارادې یې د سجدې آیت اورېدلی وي، او که څوک په دې ځایونو کې سجده نه وکړي، نو ګنهکاره کیږي. (البحر الرائق ج:۲، ص:۱۲۸، ط: بیروت)

## پر حیض او نفاس والا ښځي سجدهٔ تلاوت نسته

﴿۹۰﴾ إِلَّا الْحَائِضَ وَالنُّفَسَاءَ مګر (نه واجبیږي پر) حیض والا او نفاس والا ښځي.

**تشریح**: یعني که ښځه د حیض یا نفاس په حالت کې د سجدې آیت واوري، نو پر هغې سجده نه واجبیږي او وروسته هم پر هغې سجده واجب نه ده، لیکن که څوک د جنابت په حالت کې د سجدې آیت واوري، نو تر غسل کولو وروسته پر هغه سجده کول واجب دي. (بهشتي زیور، در مختار)

او د حیض او نفاس په حالت کې د ښځې لپاره د سجدې آیت لوستل جائز نه دي، خو که هغه یې ووایي، نو هم پر هغې سجده نه واجبیږي، ها! کوم څوک چې له هغې څخه د سجدې آیت واوري، پر هغه سجده واجبیږي، همدارنګه که عاقل بچی یا کافر کس د سجدې آیت ووایي، نو که څه هم خپله پر دوی سجدهٔ تلاوت نه واجبیږي، لیکن کوم څوک چې له دوی څخه د سجدې آیت واوري، پر هغه سجده واجبیږي. (انوار الایضاح بحوالهٔ کتاب المسائل ص: ۵۰۰)

## پر امام او مقتدي هم سجدهٔ تلاوت نسته

﴿۹۱﴾ وَالْإِمَامَ وَالْمُقْتَدِيَ بِهِ او (نه واجبیږي پر) امام او هغه کس کوم چې په امام پسې اقتداء کوي.

**تشریح**: دا عبارت هم تر "إِلَّا" لاندې راځي، اصل عبارت داسې دی "وَإِلَّا الإِمَامَ وَالمُقتَدِيَ بِهِ".

حاصل د عبارت دا دی چې که یو مقتدی په غلطۍ سره د سجدې آیت ووایي، نو نه د هغه پر امام سجده واجبیږي او نه د دې امام پر نورو مقتدیانو او نه خپله پر دغه مقتدي سجده واجبیږي کوم چې د سجدې آیت ویلی دی، نه په لمانځه کې او نه وروسته. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

او پاتې سو هغه څوک چې د دغه مقتدي سره په لمانځه کې شریک نه وي، بلکې ځان ته لمونځ کوي یا لمونځ نه کوي، که هغه د مقتدي د سجدې آیت واوري، نو پر هغه سجده واجبیږي، خو کله چې په لمانځه کې وي، نو سجده به تر لمانځه وروسته اداء کوي. (انوار الایضاح بحوالهٔ در مختار و طحطاوي)

## که امام او مقتدیان له بل چا څخه د سجدې آیت واوري، نو څه حکم دی؟

﴿۴۹۲﴾ وَلَوْ سَمِعُوْهَا مِنْ غَيْرِهٖ او که دوی (امام او مقتدیان) واوري د سجدې آیت له بل چا څخه سَجَدُوْا بَعْدَ الصَّلٰوةِ نو سجده دې تر لمانځه وروسته وکړي وَلَوْ سَجَدُوْا فِيْهَا او که په لمانځه کې دننه سجده وکړي لَمْ تُجْزِهِمْ نو دوی لره کفایت نه کوي (کافي او معتبره نه ده) وَلَمْ تَفْسُدْ صَلٰوتُهُمْ فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او د دوی لمونځ نه فاسدیږي، په ظاهر روایت کې.

**لغات**: ﴿سمعوها﴾ د سمع له بابه د جمع مذکر غائب ماضي معلومي صیغه ده، د دې ضمیر امام او د هغه مقتدیانو ته راجع دی، د ها ضمیر آیة السجدة ته راجع دی، د غیره ضمیر مقتدي ته راجع دی، د فیها ضمیر صلاة (لمانځه) ته راجع دی.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې که امام او مقتدیان له یو داسې کس څخه د سجدې آیت واوري کوم چې د دوی سره په لمانځه کې شریک نه وي، نو دوی به په لمانځه کې دننه سجدهٔ تلاوت نه کوي، بلکې تر لمانځه وروسته به یې کوي، لېکن که دوی په لمانځه کې دننه سجده وکړي، نو هغه لره اعتبار نشته، بلکې تر لمانځه وروسته د سجدې راګرځول ضروري دي، خو د ظاهر روایت مطابق په داسې صورت کې د دوی لمونځ نه فاسدیږي، او د "نوادر" روایت دا دی چې لمونځ یې فاسدیږي او بعضو ویلي دي چې د لمونځ فاسدېدل د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی. (شفاء الارواح بحوالهٔ حاشیه)

## د سجدې د آیت په ترجمه سره هم سجده واجبیږي

﴿۴۹۳﴾ وَيَجِبُ بِسَمَاعِ الْفَارِسِيَّةِ إِنْ فَهِمَهَا او واجبیږي په اورېدلو د (سجدې د آیت په) فارسي سره (هم) عَلَى الْمُعْتَمَدِ د معتمد مذهب مطابق.

**تشریح**: که څوک د سجدې د آیت ترجمه واوري، یا یې خپله ووایي او په پوه سي چې دا د سجدې آیت دی او دا د سجدې د آیت ترجمه ده، یا بل څوک د دې خبر ورکړي، نو احتیاطاً پر هغه سجدهٔ تلاوت واجب ده، او که هغه ته خبر نه وي چې دا د سجدې آیت دی، نو هغه په دې کې معذور دی او پر هغه سجدهٔ تلاوت نشته، دا د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی او همدا معتمد مذهب دی، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په هر حالت کې پر هغه سجده واجبیږي، برابره ده هغه په پوهیږي او که نه په پوهیږي، لېکن وروسته امام صاحب رَحِمَهُ الله د صاحبینو قول ته رجوع وکړه. (شفاء الارواح)

## له بیده کس یا مجنون څخه د سجدې آیت اورېدل

﴿٩٤﴾ وَاخْتَلَفَ التَّصْحِيْحُ فِيْ وُجُوْبِهَا بِالسَّمَاعِ مِنْ نَائِمٍ أَوْ مَجْنُوْنٍ او مختلفه سوې ده تصحیح (اختلاف سوی دی د صحیح مذهب په تعیین کي) د سجدې په واجبېدلو کي په اورېدلو سره (د سجدې د آیت) له بیده کس یا لېوني څخه.

**تشریح:** که څوک له بیده کس یا لېوني څخه د سجدې آیت واوري، نو په دې صورت کي د سجدې د وجوب په هکله د صحیح مذهب په تعیین کي د علماؤ اختلاف دی، د بعضو په نېز صحیح دا ده چي سجده واجبېږي او د بعضو په نېز نه واجبېدل صحیح دي، لېکن اصح دا ده چي نه واجبېږي. (شفاء الارواح)



## که بیده کس د سجدې آیت ووایي

**مسئله:** که بیده کس د سجدې آیت ووایي او تر وېښېدلو وروسته هغه ته خبر ورکول سي چي تا د سجدې آیت ویلی دی، نو پر داسي کس سجدهٔ تلاوت واجب ده، که نه؟ په دې باره کي هم دوه روایتونه دي، د یوه روایت په اعتبار سره واجب ده او د بل روایت په اعتبار سره واجب نه ده (لهذا احتیاط په همدې کي دی چي سجده وکړل سي). (شامي ج: ٢، ص: ٥٨١، کتاب المسائل ص: ٤٩٩)

## له مرغه څخه یا له ازانګې څخه د سجدې آیت اورېدل

﴿٩٥﴾ وَلَا تَجِبُ بِسَمَاعِهَا مِنَ الطَّيْرِ وَالصَّدٰى او نه واجبېږي سجده په اورېدلو سره د سجدې د آیت له مرغه او له ازانګې څخه.

**لغات:** ﴿الطیر﴾ اسم جنس دی، مرغه (مارغه)، واحد: طَائِر، جمع: طُيُوْر. ﴿الصَّدىٰ﴾ ازانګه، انګازه، دړغ انعکاس.

**تشریح:** که څوک له یو مرغه مثلاً له طوطي یا له مینا څخه د سجدې آیت واوري، نو په دې سره پر هغه سجدهٔ تلاوت نه واجبېږي، همدارنګه که څوک د سجدې د آیت ازانګه واوري، مثلاً یو څوک په غره یا په لوی پوخ عمارت یا داسي بل ځای کي د سجدې آیت په زوره ووایي او هغه ازانګه وکړي او له دې ازانګې څخه یو څوک د سجدې تلاوت واوري، نو پر دغه اورېدونکي سجدهٔ تلاوت نه واجبېږي. (مستفاد شفاء الارواح)



## له راډیو څخه د سجدې آیت اورېدل

**مسئله (١):** که څوک له راډیو څخه د سجدې آیت واوري، نو پر اورېدونکي سجدهٔ تلاوت نه واجبېږي، ځکه د راډیو زیاتره پروګرامونه له مخکي څخه ریکارډ سوي وي، وروسته نشرول کېږي (داسي نه وي چي څوک مخامخ ناست وي او تلاوت کوي)، خو که په راډیو او داسي نورو کي براهِ

راست بغیر له ریکارډ څخه تلاوت کیږي، نو په دې صورت کې د سجدې د آیت په اورېدلو سره سجدهٔ تلاوت واجبیږي؛ ځکه هغه د اسپیکر (گویا) په درجه کې ایښوول کېدای سي.(انوار الایضاح)

## له ټېپ (ټایپ)، ایم پي ترې څخه د سجدې د آیت اورېدلو حکم

**مسئله (۲)**: د ټېپ یا ایم پي ترې ریکارډ سوی آواز هم په ظاهره دا زانګې سره مشابه دی. نو ځکه اکثره مفتیان له ټېپ ریکارډر وغیره څخه د سجدې آیت اورېدل د سجدهٔ تلاوت موجب نه ګرځوي. لېکن د بعضې محققینو علماؤ رایه دا ده چې له ټېپ څخه د سجدې د آیت په اورېدلو باندې سجدهٔ تلاوت واجبېدل پکار دي؛ ځکه کله چې دغه آواز له داسې آله څخه را وځي کوم چې د ده په اختیار کې ده. نو د هغه نسبت به دا آلې وطرف ته نه کیږي بلکې د تلاوت کونکي وطرف ته به کیږي. چې د هغه په اهلیت کې هیڅ شبهه نسته، پر همدې بناء داحتیاط تقاضا دا ده چې له ټېپ، ایم پي ترې وغیره څخه د سجدې د آیت په اورېدلو باندې سجدهٔ تلاوت وکړل سي. (انوار الایضاح)

| ﴿۷۹۶﴾ وَتُؤَدّٰى بِرُكُوْعٍ أَوْ سُجُوْدٍ فِي الصَّلٰوةِ غَيْرِ رُكُوْعِ الصَّلٰوةِ وَسُجُوْدِهَا او اداء کیږي سجدهٔ تلاوت په لمانځه کي په رکوع یا سجده کولو سره بغیر د لمانځه له رکوع او سجدې څخه. |
|---|

**تشریح**: د دې عبارت مطلب دا دی چې کله په لمانځه کي د سجدې آیت ولوستل دي او سجده واجب سي، نو د هغه لپاره سنت صورت خو همدا دی چې په لمانځه کي یوه زائده سجده وکړي، خو که د سجدې پر ځای یوه زائده رکوع وکړي، نو بیا هم سجده اداء کیږي، خلاصه دا چې سجدهٔ تلاوت په لمانځه کي دننه په رکوع کولو سره هم اداء کیږي او په سجده سره هم، خو سجده کول افضل دي؛ ځکه دا یې اصل دی، او دا خبره یاد ساتئ! چې په رکوع سره د اداء کولو په صورت کي په رکوع کي د سجدهٔ تلاوت نیت کول ضروري دي (لکه په راروان عبارت کي به هم ذکر سي).

او که څوک د لمانځه څخه دباندې په رکوع سره سجدهٔ تلاوت اداء کړي، نو په دې صورت کي سجدهٔ تلاوت نه اداء کیږي. (انوار الایضاح بحوالهٔ طحطاوي)

## د لمانځه په رکوع یا سجده سره د سجدهٔ تلاوت اداء کولو حکم

| ﴿۷۹۷﴾ وَيُجْزِئُ عَنْهَا رُكُوْعُ الصَّلٰوةِ او کافي کیږي (کفایت کوي) د سجدهٔ تلاوت له طرفه د لمانځه رکوع إِنْ نَوَاهَا (په دې شرط) که چیرې یې (په رکوع کي) د سجدهٔ تلاوت نیت (هم) کړی وي وَسُجُوْدُهَا او (کافي کیږي د سجدهٔ تلاوت له طرفه) د لمانځه سجده وَإِنْ لَمْ يَنْوِهَا که څه هم (په سجده کي) د سجدهٔ تلاوت نیت یې نه وي کړی إِذَا لَمْ يَنْقَطِعْ فَوْرُ التِّلَاوَةِ بِأَكْثَرَ مِنْ آيَتَيْنِ کله چې منقطع (ختم) سوی نه وي (ترآیهٔ السجدة رووت) د تلاوت جوش (تسلسل) له دوو آیتونو څخه په زیات ویلو سره. |
|---|

**لغات**: ﴿يُجْزِئ﴾ د افعال له بابه مضارع معلومه ده: کافي کېدل، ﴿لم ينقطع﴾ د انفعال له بابه د جحد صيغه ده: ختمېدل، بندېدل او درېدل، ﴿فور﴾ د هرشي ابتدائي حالت (اول وخت) تر څو چي کرار سوی نه وي، جوش، وېل کيږي: فعل علی الفور علی، أو فعله من فوره، أي: أدّی العمل فی أول الاوقات، كأنه قبل أن يسكن (معجم لغة الفقهاء)، د عنها ضمير سجدهٔ تلاوت ته راجع دی، د نواها ضمير سجده ته راجع دی، د سجودها ضمير صلاة ته راجع دی، د ينوها ضمير سجدهٔ تلاوت ته راجع دی.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي سجدهٔ تلاوت د لمانځه په رکوع سره هم اداء کيږي په دې شرط چي د رکوع کولو (رکوع ته د تللو) پر مهال د سجدهٔ تلاوت نيت هم وکړي، او که رکوع ته له تللو څخه وروسته نيت وکړي، نو اظهر دا ده چي جائز نه دي. (عمدة الفقه)

**وسجودها**: يعني د لمانځه په سجدې سره هم سجدهٔ تلاوت اداء کيږي او په هغه کي نيت کول هم ضروري نه دي، خو د هغه لپاره شرط دا دي چي د سجدې له آيت څخه وروسته فوراً (سمدستي) رکوع او سجده وکړي او د فوراً (سمدستي) مطلب دا دی چي له دوو آيتونو څخه زيات تأخير او فصل نه وکړي، لهذا که د سجدې له آيت څخه وروسته درې آيتونه يا تر دې زيات ووايي، نو په دې صورت کي د لمانځه په سجده سره سجدهٔ تلاوت نه اداء کيږي او جلا سجده کول ضروري دي، او کله چي په دې صورت کي هغه سجده وکړي، نو د تأخير په وجه سجدهٔ سهو لازميږي، او که په لمانځه کي سجدهٔ تلاوت اداء نه کړي، نو بيا وروسته د تلافی هيڅ صورت نسته ما سوا له استغفار او توبې څخه. (شفاء الارواح بحوالهٔ عمدة الفقه)

## که غير لمونځ گزار له امام څخه د سجدې آيت واوري، نو څه حکم دی؟

﴿۹۸﴾ وَلَوْ سَمِعَ مِنْ إِمَامٍ او که له امام څخه (د سجدې آيت) واوري فَلَمْ يَأْتَمَّ بِهِ بيا په هغه پسي اقتداء نه وکړي أَوِ ائْتَمَّ فِيْ رَكْعَةٍ أُخْرىٰ يا په بل رکعت کي (په امام پسي) اقتداء وکړي سَجَدَ خَارِجَ الصَّلوٰةِ نو د لمانځه څخه بهر (دباندي) به سجده کوي فِي الْأَظْهَرِ په ظاهر روايت کي.

**لغات**: ﴿ائتمّ﴾ د افتعال له بابه ماضي معلومه ده: اقتداء کول.

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چي که امام د سجدې آیت تلاوت کړي او یو داسي څوک هغه واوري کوم چي د امام سره په لمانځه کي شریک نه وي، بیا وروسته ور سره شریک سي، نو پر هغه سجده واجبیږي.

او که د امام سره په را روان رکعت کي یعني په کوم رکعت کي چي یې د سجدې آیت اورېدلی وي، تر هغه وروسته په بل رکعت کي ور سره شریک سي، نو بیا تر لمانځه وروسته سجدهٔ تلاوت اداء کول واجب دي، دا ظاهر روایت دی، او د بعضو په نېز دا اقتداء کولو په وجه هغه سجده په لمانځه کي دننه ګرځي، لهذا د لمانځه څخه بهر نه سي اداء کېدلای او که په لمانځه کي دننه اداء کړل سي، نو د امام مخالفت لازمیږي، نو ځکه نه دي یې په لمانځه کي کوي او نه تر لمانځه وروسته. (شفاء الارواح، عمدة الفقه)

| |
|---|
| ﴿۷۹۹﴾ وَإِنِ ائْتَمَّ قَبْلَ سُجُودِ إِمَامِهِ لَهَا او که اقتداء وکړي (په خپل امام پسي) د خپل امام له سجدهٔ تلاوت کولو څخه مخکي سَجَدَ مَعَهُ نو د امام سره به سجده کوي فَإِنِ اقْتَدَىٰ بِهِ بَعْدَ سُجُودِهَا فِيْ رَكْعَتِهَا او که اقتداء وکړي په امام پسي د امام له سجدهٔ تلاوت کولو څخه وروسته په هاغه رکعت کي صَارَ مُدْرِكًا لَهَا حُكْمًا نو هغه د سجدهٔ تلاوت نیونکی (موندونکی) ګرځي د حکم په اعتبار سره فَلَا يَسْجُدُهَا أَصْلًا نو ځکه دا سجدهٔ تلاوت به نه کوي بالکل. |

**لغات**: ﴿أصلًا﴾ بالکل، هیڅکله.

**تشریح**: مسئله دا ده چي که امام د سجدې آیت ووایي او یو څوک هغه واوري کوم چي د امام سره په لمانځه کي شریک نه وي، بیا هغه د امام له سجدهٔ تلاوت کولو څخه مخکي د امام سره شریک سي، نو د امام سره دي سجده وکړي، دا کافي دي.

**فإن اقتدىٰ إلخ**: او که امام سجدهٔ تلاوت وکړي، تر دې وروسته دغه کس په هاغه رکعت کي ور سره شریک سي په کوم کي چي امام د سجدې آیت ویلی دی، نو پر هغه سجدهٔ تلاوت نه واجبیږي، نه په لمانځه کي دننه او نه وروسته؛ ځکه هغه د رکعت نیولو په وجه حکماً د سجدې نیونکی (موندونکی) هم سو.

| |
|---|
| ﴿۸۰۰﴾ وَلَمْ تُقْضَ الصَّلَاتِيَّةُ خَارِجَهَا او نه به اداء کول کیږي د لمانځه سجده (کوم چي په لمانځه کي واجب سوې وي) د لمانځه څخه بهر. |

تـه او کښېـني دي لـه هـر هغـه رکعت څخـه وروسته چې پـر هغـه د خپـل لمانځـه د آخـر ګومان کوي (يعني چې پر هغه يې د خپل لمانځه دآخري رکعت ګومان وي).

**تشريح:** مسئله دا ده چې که د رکعتونو د مقدار په باره کې لمونځ ګزار ته زياتره وخت شک واقع کيږي، نو د دې دوه صورتونه دي: يا خو يو طرف ته به د هغه ظنّ غالب (غالب ګومان) وي يا به نه وي، که يو طرف ته يې ظنّ غالب وي، نو پر هغه دې عمل کوي او سجدۀ سهو دې نه کوي، لېکن پر ظنّ غالب د عمل کولو په صورت کې که په تفکّر (فکر وهلو) کې د يوه رکن په اندازه وخت تېر سي، نو سجدۀ سهو واجبيږي.

**فإن لم يغلب إلخ:** او که يوه طرف ته يې هم ظنّ غالب نه وي، بلکې دواړو طرفونو ته يې برابر خيال وي، نو پر اقلّ يعني پر کم (لږ) يوه دې عمل کوي، مثلاً لمونځ ګزار ته دا شک پېښ سي چې دا اول رکعت دی او که دويم رکعت او ديوه په بار کې يې هم غالب ګومان نه وي، نو په اول دې عمل وکړي چې دا زما اول رکعت دی او که شک يې دا وي چې دويم رکعت دی او که درېيم رکعت نو دويم رکعت دې واخلي چې دا زما دويم رکعت دی او داسې نور.

**وقعد إلخ:** يعني پر اقلّ د عمل کولو په صورت کې دې په هر رکعت باندې قعده (ناسته) کوي، مثلاً که په څلور رکعتيز لمانځه کې لمونځ ګزار ته دا شک پېښ سي چې دا اول رکعت دی او که دويم، نو اقل يعني اول رکعت دې واخلي او پر دې (اول) رکعت دې قعده وکړي؛ ځکه دا امکان سته چې دغه رکعت دې دويم رکعت وي او پر دويم رکعت قعده واجب ده، همدارنګه پر دويم رکعت دې هم قعده وکړي؛ ځکه لمونځ ګزار هغه دويم رکعت ګڼلی دی او بيا دې پر درېيم رکعت هم قعده وکړي؛ ځکه ممکنه ده چې دا دې څلورم رکعت وي او پر څلورم رکعت قعده فرض ده، بيا دې پر څلورم رکعت هم قعده وکړي؛ ځکه د لمونځ ګزار په نېز هغه څلورم رکعت دی او پر څلورم رکعت قعده فرض ده، او په همدې آخري قعده کې دې سجدۀ سهو وکړي او لمونځ دې ختم کړي، حاصل دا چې د قعدۀ واجبه او قعدۀ مفروضه د پاته کېدلو له بيرې څخه دې په هر رکعت باندې قعده کوي (يعني چې نه قعدۀ اولیٰ کوم چې واجب ده پاته سي او نه قعدۀ اخيره کوم چې فرض ده پاته سي)، دلته مصنف رَحِمَهُ الله د شک په صورت کې د سجدۀ سهو تذکره نه ده کړې، لېکن په طحطاوي کې د سجدۀ سهو په هکله پوره تفصيل ذکر سوی دی. (شفاء الارواح)



# بَابُ سُجُوْدِ التِّلَاوَةِ

## (دا) باب په (بیان د) سجدۀ تلاوت کي دی

**تشریح**: د سجدۀ تلاوت لپاره هم هغه ټوله شیان شرط دي کوم چي د لمانځه لپاره شرط دي، مثلاً له بې اودسي او جنابت څخه پاکوالی، اسلام عقل او بلوغ او داسي نور. همدا وجه ده چي په مکروه وختونو کي سجدۀ تلاوت صحیح نه ده.

### د سجدۀ تلاوت واجبدلو سبب

﴿۸۲﴾ سَبَبُهُ التِّلَاوَةُ عَلَى التَّالِيْ وَالسَّامِعِ د سجدۀ تلاوت (د واجبدلو) سبب تلاوت کول (لوستل) دي د تلاوت کونکي او اورېدونکي لپاره فِي الصَّحِيْحِ د صحیح قول مطابق.

**تشریح**: مسئله دا ده چي سجدۀ تلاوت هغه وخت پر انسان واجبېږي کله چي هغه د سجدې آیت تلاوت کړي یا د سجدې آیت واوري، ګواکي څرنګه چي د تلاوت کونکي (قرآن لوستونکي) لپاره د سجدې واجبدلو سبب تلاوت دی، همداسي د اورېدونکي (سامع) لپاره هم د سجدې واجبدلو سبب تلاوت دی (چي د اهلیت لرونکي کس څخه د آیة السجدة تلاوت واوري)، که تلاوت نه وي نو اورېدل هم نه راځي، نو په دې وجه د تالي او سامع دواړو لپاره د سجدۀ تلاوت واجبدلو سبب تلاوت دی او همدا صحیح قول دی، او بعضو ویلي دي چي پر سامع د سجدې واجبدلو سبب اورېدل دي (خو مصنف رحمه الله وویل چي د صحیح قول مطابق د تالي او سامع دواړو لپاره د سجدې د وجوب سبب تلاوت دی). (شفاء الارواح)

﴿۸۳﴾ وَهُوَ وَاجِبٌ عَلَى التَّرَاخِيْ او سجدۀ تلاوت واجب ده په ځنډ سره (یعني د تأخیر ګنجائش پې سته چي وروسته یې اداء کړي) إِنْ لَّمْ يَكُنْ فِي الصَّلٰوةِ (په دې شرط) که په لمانځه کي نه وي.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي د سجدې د آیت تر تلاوت وروسته سمدستي سجده کول ضروري نه دي، تر دې چي که څه موده وروسته هغه وکړي، نو هم د سجدې اداء کونکی شمېرل کیږي، نه قضاء راوړونکی، لېکن شرط دا دی چي د سجدې آیت به د لمانځه څخه دباندي په بل حالت کي تلاوت سوی وي، که څوک په لمانځه کي دننه د سجدې آیت تلاوت کړي، نو بیا په لمانځه کي سجده کول واجب دي، تر لمانځه وروسته په سجده کولو سره هغه نه اداء کیږي، بلکي

ګنهګاره کيږي، په دې صورت کې له استغفار او توبې څخه بغير بل د معافۍ صورت نشته. (شفاء الارواح بحوالهٔ بهشتي زيور)

## سجدهٔ تلاوت ځنډول مکروه دي

﴿۸۵﴾ وَكُرِهَ تَأْخِيرُهُ تَنْزِيهًا او سجدهٔ تلاوت ځنډول مکروه تنزيهي دي.

**لغات:** ﴿تأخير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: ځنډول، وروسته کول.

**تشريح:** غوره دا ده چې سجدهٔ تلاوت ژر تر ژره اداء کړي، که بلا وجه سجدهٔ تلاوت وځنډوي، نو کراهتِ تنزيهي لازميږي.

په "شامي" وغيره کې ذکر سوي دي چې پر کوم چا سجدهٔ تلاوت واجب سي، لېکن هغه په يو وجه سمدستي سجده نه سي کولای، نو مستحب دا ده چې په هغه وخت کې دا آيت ووايي "سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيْرُ" [البقرة]، او بيا چې کله موقع پيدا کړي، نو سجدهٔ تلاوت دې اداء کړي. (شامي ج: ۲، ص: ۵۸۳، کتاب المسائل ص: ۵۰۲)

## د سجدې د آيت په ويلو سره سجده واجبيږي، که څه هم په فارسي ژبه وي؟

﴿۸۶﴾ وَيَجِبُ عَلَىٰ مَنْ تَلَا آيَةً وَلَوْ بِالْفَارِسِيَّةِ او واجبيږي پر هغه کس کوم چې آيت د سجدې تلاوت کړی وي که څه هم په فارسي ژبه وي.

**تشريح:** يعني څوک چې د سجدې آيت ووايي، نو پر هغه سجده کول واجب دي، که څه هم په فارسي ژبه د سجدې آيت ووايي، او دلته له فارسي ژبې څخه مراد هر هغه ژبه ده کوم چې عربي نه وي، مطلب د هرې ژبې همدغه حکم دی، لنډه دا چې د سجدې د آيت د ترجمې په ويلو يا اورېدلو سره سجدهٔ تلاوت واجبيږي. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

آيا د سجدهٔ تلاوت د واجبېدلو لپاره د سجدې پوره آيت ويل شرط دي؟، په دې باره کې د فقهاؤ اختلاف دی، راجح او صحيح قول دا دی چې د سجدې د وجوب لپاره د سجدې ټوله آيت ويل ضروري دي، لېکن که پوره آيت ووايي او د سجدې والا الفاظ نه پکښې ووايي، نو سجدهٔ تلاوت نه واجبيږي. او بعضي خلک پر دې فتویٰ ورکوي چې که د سجدې آيت پوره نه ووايي، بلکي څه حصه يې ووايي، نو هم سجده کول واجب دي. (انوار الايضاح)

﴿۸۷﴾ وَقِرَاءَةُ حَرْفِ السَّجْدَةِ مَعَ كَلِمَةٍ قَبْلَهُ أَوْ بَعْدَهُ مِنْ آيَتِهَا كَالْآيَةِ او د سجدې حرف ويل (لوستل) د يو کلمې سره کوم چې له حرف سجده څخه مخکې وي يا تر هغه وروسته

وي له همدې آیت څخه د ټوله آیت (لوستلو) په څېر دی فِي الصَّحِيحِ د صحیح قول مطابق.

**تشریح:** یعني څرنګه چې د سجدې د آیت په ویلو (تلاوت کولو) سره سجدهٔ تلاوت اجبیږي. همداسې د سجدې په آیت کې چې کوم لفظ پر سجده دلالت کوي که څوک صرف هغه لفظ او تر هغه مخکینی یا وروستنی کلمه یو ځای ور سره ووایي، نو هم سجدهٔ تلاوت واجبیږي. مثلاً په "سورة الاعراف" کې په "وَلَهٗ يَسْجُدُوْن" باندې سجده کیږي، همدې ته "لفظ د سجدې" (یا د سجدې حروف) ویل کیږي، نو که تر دغه لفظ مخکینی کلمه "وَيُسَبِّحُوْنَهٗ" هم یو ځای ور سره ووایي، نو سجده واجبیږي، صرف د "وَلَهٗ يَسْجُدُوْن" په اداء کولو سره سجده نه واجبیږي، همدا صحیح قول دی، خو په "سورة الإقراء" کې چې کوم د سجدې لفظ دی "واسْجُدْ وَاقْتَرِب". هغه له دغه قاعدې څخه مستثنیٰ دی یعني که صرف "وَاسْجُدْ" ووایي، نو هم سجده واجبیږي، که څه هم وروستنی لفظ "وَاقْتَرِبْ" نه ور سره ووایي.

او په متن کې د "في الصحيح" په قید سره یې د هغو حضراتو قول رد کړی دی چې هغوی وایي چې که د سجدې د آیت اکثره حصه ولوستل سي، نو بس سجده واجبیږي، برابره ده اکثره حصه د سجدې د لفظ څخه مخکې وي او که وروسته وهو رواية عن محمد واختاره الزيلعي، نو مصنف رَحِمَهُ الله د هغو له قول څخه احتراز وکړی.

او که څوک د سجدې ټوله آیت ووایي، لیکن لفظ د سجدې نه پکښې ووایي، نو پر هغه سجده نه واجبیږي. (شفاء الاراواح، انوار الایضاح)

## د سجدهٔ تلاوت د آیتونو شمېر

﴿۸۸﴾ وَ آيَاتُهَا أَرْبَعَ عَشَرَةَ آيَةً او د سجدې آیتونه څوارلس آیته دي فِي الْأَعْرَافِ وَالرَّعْدِ وَالنَّحْلِ وَالْإِسْرَاءِ وَمَرْيَمَ ① په سورة الاعراف کې، ② په سورة الرعد کې، ③ په سورة النحل کې، ④ په سورة الإسراء (سورة بني اسرائیل) کې، ⑤ په سورة مریم کې وَ أُولَى الْحَجِّ وَالْفُرْقَانِ وَالنَّمْلِ وَالسَّجْدَةِ وَصَ ⑥ او د سورة الحج په اوله سجده (اول آیت د سجدې) کې، ⑦ په سورة الفرقان کې، ⑧ په سورة النمل کې، ⑨ په سورة السجده کې، ⑩ په سورة صَ کې وَحٰمٓ

السَّجْدَةِ وَالنَّجْمِ وَانْشَقَّتْ وَاقْرَأْ ⑪ او په سورة حمٓ سجده کې، ⑫ په سورة النجم کې، ⑬ په سورة انشقت (سورة الانشقاق) کې، ⑭ او په سورة اقرأ (سورة العلق) کې.

**تشريح:** په دې عبارت کې د سجدۀ تلاوت د آيتونو شمېر بيان سوی دی او هغه ټوله څوارلس آيتونه دي چې د هغوی په تلاوت کولو سره سجده واجبيږي، او په قرآن کريم کې پر دغه هر مقام نښان موجود دی، او په "سورة الحج" کې دوه د سجدې آيتونه دي، خو په هغوی کې صرف پر اول آيت سجده لازم ده، پر دويم آيت زموږ په نيز په نيز سجده نشته، او په "سورة صٓ" کې په "رَاكِعًا وَأَنَابَ" باندې د سجدې نښان صحيح نه دی، بلکې صحيح دا ده چې په "حُسْنَ مَآبٍ" باندې سجده وسي او په "سورة حمٓ" کې په "لَا يَسْئَمُوْنَ" باندې سجده کول پکار دي. (ايضاح المسائل ص: ۳۹، الجوهرة النيرة ج: ۱، ص: ۹۷)

**فايده:** هغه څوارلس د سجدې آيتونه دا دي:

(۱)... إِنَّ الَّذِيْنَ عِنْدَ رَبِّكَ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَيُسَبِّحُوْنَهٗ وَلَهٗ يَسْجُدُوْنَ. ﴿سورة الاعراف: ۲۰۶ پ: ۹، رکوع: ۱۴﴾

(۲)... وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا وَّظِلٰلُهُمْ بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ. ﴿سورة الرعد: ۱۵ پ: ۱۳، رکوع: ۸﴾

(۳)... يَخَافُوْنَ رَبَّهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ. ﴿سورة النحل: ۵۰ پ: ۱۴، رکوع: ۱۲﴾

(۴)... وَيَخِرُّوْنَ لِلْاَذْقَانِ يَبْكُوْنَ وَيَزِيْدُهُمْ خُشُوْعًا. ﴿سورة بني اسرائيل: ۱۰۹ پ: ۱۵، رکوع: ۱۲﴾

(۵)... اِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُ الرَّحْمٰنِ خَرُّوْا سُجَّدًا وَّبُكِيًّا. ﴿سورة مريم: ۵۸ پ: ۱۶، رکوع: ۷﴾

(۶)... په سورت حج کې اوله سجده: وَمَنْ يُّهِنِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ مُّكْرِمٍ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ. ﴿سورة الحج: ۱۸ پ: ۱۷، رکوع: ۹﴾

(۷)... وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ اسْجُدُوْا لِلرَّحْمٰنِ، قَالُوْا وَمَا الرَّحْمٰنُ اَنَسْجُدُ لِمَا تَاْمُرُنَا. ﴿سورة الفرقان: ۶۰ پ: ۱۹، رکوع: ۱۷﴾

(۸)... اَلَّا يَسْجُدُوْا لِلّٰهِ الَّذِيْ يُخْرِجُ الْخَبْءَ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُخْفُوْنَ وَمَا تُعْلِنُوْنَ. ﴿سورة النمل: ۲۶ پ: ۱۹، رکوع: ۱۷﴾

(۹)... اِنَّمَا يُؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِّرُوْا بِهَا خَرُّوْا سُجَّدًا وَّ سَبَّحُوْا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ. ﴿سورة السجدة (الم تنزيل): ۱۵ پ: ۲۱، رکوع: ۱۵﴾

(۱۰)... وَظَنَّ دَاوٗدُ اَنَّمَا فَتَنّٰهُ فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهٗ وَخَرَّ رَاكِعًا وَّ اَنَابَ. ﴿سورة ص: ۲۴ پ: ۲۳، رکوع: ۱۱﴾

(۱۱)... فَاِنِ اسْتَكْبَرُوْا فَالَّذِيْنَ عِنْدَ رَبِّكَ يُسَبِّحُوْنَ لَهٗ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَهُمْ لَا يَسْئَمُوْنَ. ﴿حم السجدة: ۳۸ پ: ۲۴، رکوع: ۱۹﴾

(۱۲)... فَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ وَاعْبُدُوْا. ﴿سورة النجم: ۶۲ پ: ۲۷، رکوع: ۷﴾

(۱۳)... وَاِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْاٰنُ لَا يَسْجُدُوْنَ. ﴿سورة الانشقاق: ۲۱ پ: ۳۰، رکوع: ۹﴾

(۱۴)... وَاسْجُدْ وَاقْتَرِبْ. ﴿سورة العلق: ۱۹ پ: ۳۰، رکوع: ۲۱﴾

دغه څوارلس د سجدې مقامات په هغه قرآن مجید کي متعین کړل سوي وه کوم چي حضرت عثمان غني ﷛ مُرتّب کړی وو، څرنګه چي د حضرت عثمان ﷛ قرآن پاک ډېر معتبر او معتمد قرآن دی، نو ځکه په هغه کي بیان سوي مقامات به هم د اعتماد او اعتبار وړ وي.

او په "سورة الحج" کي دويم د سجدې آيت چي په هغه کي زموږ په نېز سجده نسته، دا دی: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ارْكَعُوْا وَاسْجُدُوْا وَاعْبُدُوْا رَبَّكُمْ وَافْعَلُوا الْخَيْرَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ﴾ [سورة الحج: ۷۷] او د سورت صٓ سجده د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د شکر سجده ده.

او د شوافعو په نېز هم د سجدو شمېر څوارلس دي، خو فرق دا دی چي زموږ په نېز د سورت حج اوله سجده سجدهٔ تلاوت ده، لېکن دویمه سجده سجدهٔ تلاوت نه ده، بلکي سجدهٔ صلاة (يعني د لمانځه سجده) ده او امام شافعي رَحِمَهُ الله د سورت حج دواړه سجدې سجدهٔ تلاوت شمېري. (فتح الهدایه)

## سجدهٔ تلاوت پر چا واجب ده؟

﴿۴۸۹﴾ و، يَجِبُ السُّجُوْدُ عَلٰى مَنْ سَمِعَ او واجبيږي سجده پر (هر) هغه کس کوم چي (د سجدې آيت) واوري وَاِنْ لَّمْ يَقْصِدِ السَّمَاعَ که څه هم هغه د اورېدلو قصد (اراده) نه وي کړې.

**تشریح:** په ټوله قرآن کي څوارلس د سجدې آيتونه دي، د دې آيتونو په لوستونکي او اورېدونکي هربوه باندي سجده کول واجب دي، اورېدونکي برابره ده د قرآن کريم د اورېدلو په اراده سره د سجدې

آیت اورېدلی وي، یا په یو بل کار مشغوله وي او بغیر له ارادې یې د سجدې آیت اورېدلی وي، او که څوک په دې ځایونو کې سجده نه وکړي، نو ګنهګاره کیږي. (البحر الرائق ج:۲، ص:۱۲۸، ط: بیروت)

## پر حیض او نفاس والا ښځې سجدهٔ تلاوت نسته

﴿۹۰﴾ إِلَّا الْحَائِضَ وَالنُّفَسَاءَ مګر (نه واجبیږي پر) حیض والا او نفاس والا ښځې.

**تشریح**: یعني که ښځه د حیض یا نفاس په حالت کې د سجدې آیت واوري، نو پر هغې سجده نه واجبیږي او وروسته هم پر هغې سجده واجب نه ده، لیکن که څوک د جنابت په حالت کې د سجدې آیت واوري، نو تر غسل کولو وروسته پر هغه سجده کول واجب دي. (بهشتي زیور، در مختار)

او د حیض او نفاس په حالت کې د ښځې لپاره د سجدې آیت لوستل جائز نه دي، خو که هغه یې ووایي، نو هم پر هغې سجده نه واجبیږي، ها! کوم څوک چې له هغې څخه د سجدې آیت واوري، پر هغه سجده واجبیږي، همدارنګه که عاقل بچی یا کافر کس د سجدې آیت ووایي، نو که څه هم خپله پر دوی سجدهٔ تلاوت نه واجبیږي، لیکن کوم څوک چې له دوی څخه د سجدې آیت واوري، پر هغه سجده واجبیږي. (انوار الایضاح بحوالهٔ کتاب المسائل ص:۵۰۰)

## پر امام او مقتدي هم سجدهٔ تلاوت نسته

﴿۹۱﴾ وَالْإِمَامَ وَالْمُقْتَدِىْ بِهِ او (نه واجبیږي پر) امام او هغه کس کوم چې په امام پسې اقتداء کوي.

**تشریح**: دا عبارت هم تر "إلّا" لاندې راځي، اصل عبارت داسې دی "وَإِلّا الإمامَ و المُقتدىٰ بِهِ".

حاصل د عبارت دا دی چې که یو مقتدی په غلطۍ سره د سجدې آیت ووایي، نو نه د هغه پر امام سجده واجبیږي او نه د دې امام پر نورو مقتدیانو او نه خپله پر دغه مقتدي سجده واجبیږي کوم چې د سجدې آیت ویلی دی، نه په لمانځه کې او نه وروسته. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

او پاتې سو هغه څوک چې د دغه مقتدي سره په لمانځه کې شریک نه وي، بلکې ځان ته لمونځ کوي یا لمونځ نه کوي، که هغه د مقتدي د سجدې آیت واوري، نو پر هغه سجده واجبیږي، خو کله چې په لمانځه کې وي، نو سجده به تر لمانځه وروسته اداء کوي. (انوار الایضاح بحوالهٔ در مختار و طحطاوي)

## که امام او مقتدیان له بل چا څخه د سجدې آیت واوري، نو څه حکم دی؟

﴿۴۹۲﴾ وَلَوْ سَمِعُوْهَا مِنْ غَيْرِهِ او که دوی (امام او مقتدیان) واوري د سجدې آیت له بل چا څخه سَجَدُوْا بَعْدَ الصَّلٰوةِ نو سجده دې تر لمانځه وروسته وکړي وَلَوْ سَجَدُوْا فِيْهَا او که په لمانځه کې دننه سجده وکړي لَمْ تُجْزِهِمْ نو دوی لره کفایت نه کوي (کافي او معتبره نه ده) وَلَمْ تَفْسُدْ صَلٰوتُهُمْ فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او د دوی لمونځ نه فاسدیږي، په ظاهر روایت کې.

**لغات:** ﴿سمعوها﴾ د سمع له بابه د جمع مذکر غائب ماضي معلومي صیغه ده، د دې ضمیر امام او د هغه مقتدیانو ته راجع دی، د ها ضمیر آیة السجدة ته راجع دی، د غیره ضمیر مقتدي ته راجع دی، د فیها ضمیر صلاة (لمانځه) ته راجع دی.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې که امام او مقتدیان له یو داسې کس څخه د سجدې آیت واوري کوم چې د دوی سره په لمانځه کې شریک نه وي، نو دوی به په لمانځه کې دننه سجدهٔ تلاوت نه کوي، بلکې تر لمانځه وروسته به یې کوي، لیکن که دوی په لمانځه کې دننه سجده وکړي، نو هغه لره اعتبار نشته، بلکې تر لمانځه وروسته د سجدې راګرځول ضروري دي، خو د ظاهر روایت مطابق په داسې صورت کې د دوی لمونځ نه فاسدیږي، او د "نوادر" روایت دا دی چې لمونځ یې فاسدیږي او بعضو ویلي دي چې د لمونځ فاسدېدل د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی. (شفاء الارواح بحوالهٔ حاشیه)

## د سجدې د آیت په ترجمه سره هم سجده واجبیږي

﴿۴۹۳﴾ وَيَجِبُ بِسَمَاعِ الْفَارِسِيَّةِ إِنْ فَهِمَهَا او واجبیږي په اورېدلو د (سجدې د آیت په) فارسي سره (هم) عَلَى الْمُعْتَمَدِ د معتمد مذهب مطابق.

**تشریح:** که څوک د سجدې د آیت ترجمه واوري، یا یې خپله ووایي او په پوهه سي چې دا د سجدې آیت دی او دا د سجدې د آیت ترجمه ده، یا بل څوک د دې خبر ورکړي، نو احتیاطاً پر هغه سجدهٔ تلاوت واجب ده، او که هغه ته خبر نه وي چې دا د سجدې آیت دی، نو هغه په دې کې معذور دی او پر هغه سجدهٔ تلاوت نسته، دا د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی او همدا معتمد مذهب دی، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په هر حالت کې پر هغه سجده واجبیږي، برابره ده هغه په پوهیږي او که نه په پوهیږي، لیکن وروسته امام صاحب رَحِمَهُ الله د صاحبینو قول ته رجوع وکړه. (شفاء الارواح)

## له بیده کس یا مجنون څخه د سجدې آیت اورېدل

﴿۴۹۴﴾ وَاخْتَلَفَ التَّصْحِيْحُ فِيْ وُجُوْبِهَا بِالسَّمَاعِ مِنْ نَائِمٍ أَوْ مَجْنُوْنٍ او مختلفه سوې ده تصحیح (اختلاف سوی دی د صحیح مذهب په تعیین کې) د سجدې په واجبېدلو کې په اورېدلو سره (د سجدې د آیت) له بیده کس یا لېوني څخه.

**تشریح:** که څوک له بیده کس یا لېوني څخه د سجدې آیت واوري، نو په دې صورت کې د سجدې د وجوب په هکله د صحیح مذهب په تعیین کې د علماؤ اختلاف دی، د بعضو په نېز صحیح دا ده چې سجده واجبېږي او د بعضو په نېز نه واجبېدل صحیح دي، لېکن اصح دا ده چې نه واجبېږي. (شفاء الارواح)



## که بیده کس د سجدې آیت ووایي

**مسئله:** که بیده کس د سجدې آیت ووایي او تر وېښېدلو وروسته هغه ته خبر ورکول سي چې تا د سجدې آیت ویلی دی، نو پر داسې کس سجدهٔ تلاوت واجب ده، که نه؟ په دې باره کې هم دوه روایتونه دي، د یوه روایت په اعتبار سره واجب ده او د بل روایت په اعتبار سره واجب نه ده (لهذا احتیاط په همدې کې دی چې سجده وکړل سي). (شامي ج: ۲، ص: ۵۸۱، کتاب المسائل ص: ۴۹۹)

## له مرغه څخه یا له ازانګې څخه د سجدې آیت اورېدل

﴿۴۹۵﴾ وَلَا تَجِبُ بِسَمَاعِهَا مِنَ الطَّيْرِ وَالصَّدَىٰ او نه واجبېږي سجده په اورېدلو سره د سجدې د آیت له مرغه او له ازانګې څخه.

**لغات:** ﴿الطیر﴾ اسم جنس دی، مرغه (مارغه)، واحد: طَائِر، جمع: طُيُوْر، ﴿الصَّدىٰ﴾ ازانګه، انکازه، دړغ انعکاس.

**تشریح:** که څوک له یو مرغه مثلاً له طوطي یا له مینا څخه د سجدې آیت واوري، نو په دې سره پر هغه سجدهٔ تلاوت نه واجبېږي، همدارنګه که څوک د سجدې د آیت ازانګه واوري. مثلاً یو څوک په غره یا په لوی پوخ عمارت یا داسې بل ځای کې د سجدې آیت په زوره ووایي او هغه ازانګه وکړي او له دې ازانګې څخه یو څوک د سجدې تلاوت واوري، نو پر دغه اورېدونکي سجدهٔ تلاوت نه واجبېږي. (مستفاد شفاء الارواح)



## له راډیو څخه د سجدې آیت اورېدل

**مسئله (۱):** که څوک له راډیو څخه د سجدې آیت واوري، نو پر اورېدونکي سجدهٔ تلاوت نه واجبېږي؛ ځکه د راډیو زیاتره پروګرامونه له مخکې څخه ریکارډ سوي وي، وروسته نشرول کېږي (داسې نه وي چې څوک مخامخ ناست وي او تلاوت کوي)، خو که په راډیو او داسې نورو کې براهِ

راست بغیر له ریکارډ څخه تلاوت کیږي، نو په دې صورت کې د سجدې دآیت په اورېدلو سره سجدهٔ تلاوت واجبیږي؛ ځکه هغه داسپیکر (ګویا) په درجه کې اینبوول کېدای سي. (انوار الایضاح)

## له ټېپ (ټایپ)، ایم پي تري څخه د سجدې دآیت اورېدلو حکم

**مسئله (۲)**: د ټېپ یا ایم پي تري ریکارډ سوی آواز هم په ظاهره دازانګې سره مشابه دی، نو ځکه اکثره مفتیان له ټېپ ریکارډر وغیره څخه د سجدې آیت اوریدل د سجدهٔ تلاوت موجب نه ګرځوي. لېکن د بعضي محققینو علماؤ رایه داده چي له ټېپ څخه د سجدې دآیت په اورېدلو باندي سجدهٔ تلاوت واجبېدل پکار دي؛ ځکه کله چي دغه آواز له داسي آله څخه راوځي کوم چي دده په اختیار کي ده، نو د هغه نسبت به دآلې وطرف ته نه کیږي بلکي د تلاوت کونکي وطرف ته به کیږي، چي د هغه په اهلیت کي هیڅ شبهه نسته، پر همدې بناء داحتیاط تقاضا داده چي له ټېپ، ایم پي تري وغیره څخه د سجدې دآیت په اورېدلو باندي سجدهٔ تلاوت وکړل سي. (انوار الایضاح)

| ﴿۴۹۶﴾ وَتُؤَدّٰی بِرُكُوْعٍ أَوْ سُجُوْدٍ فِي الصَّلٰوةِ غَيْرِ رُكُوْعِ الصَّلٰوةِ وَ سُجُوْدِهَا او اداء کیږي سجدهٔ تلاوت په لمانځه کي په رکوع یا سجده کولو سره بغیر د لمانځه له رکوع او سجدې څخه. |
|---|

**تشریح**: د دې عبارت مطلب دا دی چي کله په لمانځه کي د سجدې آیت ولوستل دي او سجده واجب سي، نو د هغه لپاره سنت صورت خو همدا دی چي په لمانځه کي یوه زائده سجده وکړي، خو که د سجدې پر ځای یوه زائده رکوع وکړي، نو بیا هم سجده اداء کیږي، خلاصه دا چي سجدهٔ تلاوت په لمانځه کي دننه په رکوع کولو سره هم اداء کیږي او په سجده سره هم، خو سجده کول افضل دي؛ ځکه دا یې اصل دی، او دا خبره یاد ساتئ! چي په رکوع سره د اداء کولو په صورت کي په رکوع کي د سجدهٔ تلاوت نیت کول ضروري دي (لکه په راروان عبارت کي به هم ذکر سي).

او که څوک د لمانځه څخه دباندي په رکوع سره سجدهٔ تلاوت اداء کړي، نو په دې صورت کي سجدهٔ تلاوت نه اداء کیږي. (انوار الایضاح بحوالهٔ طحطاوي)

## د لمانځه په رکوع یا سجده سره د سجدهٔ تلاوت اداء کولو حکم

| ﴿۴۹۷﴾ وَيُجْزِئُ عَنْهَا رُكُوْعُ الصَّلٰوةِ او کافي کیږي (کفایت کوي) د سجدهٔ تلاوت له طرفه د لمانځه رکوع إِنْ نَوَاهَا (په دې شرط) که چیري یې (په رکوع کي) د سجدهٔ تلاوت نیت (هم) کړی وي وَ سُجُوْدُهَا او (کافي کیږي د سجدهٔ تلاوت له طرفه) د لمانځه سجده وَإِنْ لَّمْ يَنْوِهَا که څه هم (په سجده کي) د سجدهٔ تلاوت نیت یې نه وي کړی إِذَا لَمْ يَنْقَطِعْ فَوْرُ التِّلَاوَةِ بِأَكْثَرَ مِنْ آيَتَيْنِ کله چي منقطع (ختم) سوی نه وي (تراٰیة السجدة وروسته) د تلاوت جوش (تسلسل) له دوو آیتونو څخه په زیات ویلو سره. |
|---|

**لغات:** ﴿يُجْزِئ﴾ د افعال له بابه مضارع معلومه ده: کافي کېدل. ﴿لم ينقطع﴾ د انفعال له بابه د جحد صيغه ده: ختمېدل، بندېدل او درېدل. ﴿فور﴾ د هرشي ابتدائي حالت (اول وخت) تر څو چي کرار سوی نه وي، جوش، وړل کيږي: فعل على الفور على، أو فعله من فوره، أي: أدّى العمل في أول الاوقات، كأنه قبل أن يسكن (معجم لغة الفقهاء)، د عنها ضمير سجدهٔ تلاوت ته راجع دی، د نواها ضمير سجده ته راجع دی، د سجودها ضمير صلاة ته راجع دی، د ينوها ضمير سجدهٔ تلاوت ته راجع دی.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي سجدهٔ تلاوت د لمانځه په رکوع سره هم اداء کيږي په دې شرط چي د رکوع کولو (رکوع ته د تللو) پر مهال د سجدهٔ تلاوت نيت هم وکړي، او که رکوع ته له تللو څخه وروسته نيت وکړي، نو اظهر دا ده چي جائز نه دي. (عمدة الفقه)

**وسجودها:** يعني د لمانځه په سجدې سره هم سجدهٔ تلاوت اداء کيږي او په هغه کي نيت کول هم ضروري نه دي، خو د هغه لپاره شرط دا دي چي د سجدې له آيت څخه وروسته فوراً (سمدستي) رکوع او سجده وکړي او د فوراً (سمدستي) مطلب دا دی چي له دوو آيتونو څخه زيات تأخير او فصل نه وکړي، نهذا که د سجدې له آيت څخه وروسته درې آيتونه يا تر دې زيات ووايي، نو په دې صورت کي د لمانځه په سجده سره سجدهٔ تلاوت نه اداء کيږي او جلا سجده کول ضروري دي، او کله چي په دې صورت کي هغه سجده وکړي، نو د تأخير په وجه سجدهٔ سهو لازميږي، او که په لمانځه کي سجدهٔ تلاوت اداء نه کړي، نو بيا وروسته د تلافی هيڅ صورت نسته ما سوا له استغفار او توبې څخه. (شفاء الارواح بحوالهٔ عمدة الفقه)

## که غير لمونځ گزار له امام څخه د سجدې آيت واوري، نو څه حکم دی؟

﴿۴۹۸﴾ وَلَوْ سَمِعَ مِنْ إِمَامٍ او که له امام څخه (د سجدې آيت) واوري فَلَمْ يَأْتَمَّ بِهٖ بيا په هغه پسي اقتداء نه وکړي أَوِ ائْتَمَّ فِيْ رَكْعَةٍ أُخْرٰى يا په بل رکعت کي (په امام پسي) اقتداء وکړي سَجَدَ خَارِجَ الصَّلٰوةِ نو د لمانځه څخه بهر (دباندي) به سجده کوي فِي الْأَظْهَرِ په ظاهر روايت کي.

**لغات:** ﴿ائتمّ﴾ د افتعال له بابه ماضي معلومه ده: اقتداء کول.

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چې که امام د سجدې آیت تلاوت کړي او یو داسې څوک هغه واوري کوم چې د امام سره په لمانځه کې شریک نه وي، بیا وروسته ور سره شریک سي، نو پر هغه سجده واجبیږي.

او که د امام سره په را روان رکعت کې یعني په کوم رکعت کې چې یې د سجدې آیت اورېدلی وي، تر هغه وروسته په بل رکعت کې ور سره شریک سي، نو بیا تر لمانځه وروسته سجدهٔ تلاوت اداء کول واجب دي، دا ظاهر روایت دی، او د بعضو په نیز دا اقتداء کولو په وجه هغه سجده په لمانځه کې دننه ګرځي، لهذا د لمانځه څخه بهر نه سي اداء کېدلای او که په لمانځه کې دننه اداء کړل سي، نو د امام مخالفت لازمیږي، نو ځکه نه دي یې په لمانځه کې کوي او نه تر لمانځه وروسته. (شفاء الارواح، عمدة الفقه)

﴿۷۹۹﴾ وَاِنِ ائْتَمَّ قَبْلَ سُجُوْدِ إِمَامِهٖ لَهَا او که اقتداء وکړي (په خپل امام پسې) د خپل امام له سجدهٔ تلاوت کولو څخه مخکې سَجَدَ مَعَهٗ نو د امام سره به سجده کوي فَإِنِ اقْتَدٰى بِهٖ بَعْدَ سُجُوْدِهَا فِيْ رَكْعَتِهَا او که اقتداء وکړي په امام پسې د امام له سجدهٔ تلاوت کولو څخه وروسته په هاغه رکعت کې صَارَ مُدْرِكًا لَهَا حُكْمًا نو هغه د سجدهٔ تلاوت نیونکی (موندونکی) ګرځي د حکم په اعتبار سره فَلَا يَسْجُدُهَا أَصْلًا نو ځکه دا سجدهٔ تلاوت به نه کوي بالکل.

**لغات**: ﴿أصلًا﴾ بالکل، هیڅکله.

**تشریح**: مسئله دا ده چې که امام د سجدې آیت ووایي او یو څوک هغه واوري کوم چې د امام سره په لمانځه کې شریک نه وي، بیا هغه د امام له سجدهٔ تلاوت کولو څخه مخکې د امام سره شریک سي، نو د امام سره دي سجده وکړي، دا کافي دي.

فإن اقتدیٰ إلخ: او که امام سجدهٔ تلاوت وکړي، تر دې وروسته دغه کس په هاغه رکعت کې ور سره شریک سي په کوم کې چې امام د سجدې آیت ویلی دی، نو پر هغه سجدهٔ تلاوت نه واجبیږي، نه په لمانځه کې دننه او نه وروسته؛ ځکه هغه د رکعت نیولو په وجه حکماً د سجدې نیونکی (موندونکی) هم سو.

﴿۸۰۰﴾ وَلَمْ تُقْضَ الصَّلٰوتِيَّةُ خَارِجَهَا او نه به اداء کول کیږي د لمانځه سجده (کوم چې په لمانځه کې واجب سوې وي) د لمانځه څخه بهر.

**تشريح:** يعني سره هغه سجدۀ تلاوت کوم چي په لمانځه کي دننه د سجدې د آيت ويلو په وجه واجب سي او په لمانځه کي هغه سجده نه وکړل سي، نو هغه سجدۀ تلاوت د لمانځه څخه دباندي په سجده کولو سره نه اداء کيږي، لهذا که قصداً يې پرې ايښې وي، نو ګنهګاره کيږي. له توبې او استغفار څخه بغير د هغه لپاره بل صورت نسته.

﴿۸۰۱﴾ وَلَوْتَلَا خَارِجَ الصَّلٰوةِ فَسَجَدَ او که د لمانځه څخه دباندي تلاوت وکړي بيا سجده وکړي ثُمَّ أَعَادَ فِيْهَا بيا يې په لمانځه کي راوګرځوي (يعني په لمانځه کي هغه آيت دويم وار ووايي) سَجَدَ أُخْرٰى نو بله سجده دي وکړي.

**تشريح:** مسئله دا ده چي که څوک د لمانځه څخه دباندي د سجدې آيت ووايي او سجده وکړي، بيا په لمانځه کي داخل سي او هاغه آيت بيا ووايي، نو پر هغه په لمانځه کي د تلاوت کولو په وجه بله سجده واجبيږي.

### د سجدې آيت لوستل او بيا په لمانځه کي لوستل او د دواړو لپاره يوه سجده کول

﴿۸۰۲﴾ وَإِنْ لَّمْ يَسْجُدْ أَوَّلًا او که اول وار يې سجده نه وي کړې كَفَتْهُ وَاحِدَةٌ فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ نو يوه سجده هغه لره کافي کيږي (کوم چي په لمانځه کي اداء کړي) په ظاهر روايت کي.

**لغات:** ﴿كَفَتْ﴾ د ضرب له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي معلومي صيغه ده مصدر: كفاية: کافي کېدل.

**تشريح:** که څوک د لمانځه څخه دباندي د سجدې آيت ووايي، خو سجده نه وکړي، تر دې چي په فرضي يا نفلي لمانځه کي داخل سي، بيا هاغه آيت دويم وار په لمانځه کي تلاوت کړي او په همدې لمانځه کي سجدۀ تلاوت وکړي، نو دا سجده د دواړو تلاوتونو لپاره کافي کيږي، حتیٰ که هغه په لمانځه کي سجدۀ تلاوت نه وکړي، نو له هغه څخه د دواړو آيتونو سجدې ساقطيږي او د سجدې پرېښوولو په وجه ګنهګاره کيږي.

د ظاهر روايت په قيد سره مصنف رَحِمَهُ الله د "نوادر" روايت ايستلی دی او هغه دا دی چي په لمانځه کي د سجدۀ تلاوت په اداء کولو سره صرف يوه سجده اداء کيږي او بله سجده تر لمانځه وروسته اداء کول ضروري دي. (طحطاوي على مراقي الفلاح)

## د سجدې آیت په یوه مجلس کې څو واره ویل یا لوستل

﴿۸۰۳﴾ کَمَنْ کَرَّرَهَا فِیْ مَجْلِسٍ وَاحِدٍ لَا مَجْلِسَیْنِ لکه هغه کس (لره چې یوه سجده کافي کیږي) کوم چې په یوه مجلس کې د سجدې آیت مکرر (بار بار) ویلی وي. نه په دوو مجلسو کې.

**تشریح**: مسئله دا ده چې که د سجدې آیت په یوه مجلس کې بار، بار ولوستل سي، یا په یوه مجلس کې بار، بار واوریدل سي، نو صرف یوه سجده د ټولو لپاره کافي کیږي، فرمایي: څرنګه چې په دې مذکوره مسئله کې یوه سجده کافي کیږي، همدغسې په مخکینی مسئله کې هم یوه سجده د دواړو تلاوتونو لپاره کافي کیږي (دا ګواکې د مخکینی مسئلې لپاره مثال دی).

همدارنګه که څوک د سجدې آیت ووایي او سجده وکړي، بیا په هاغه مجلس کې دننه هاغه آیت بار، بار ووایي، نو هم پر هغه بله سجده نه واجبیږي، بلکې اوله سجده کافي ده. (درمختار)

لا مجلسین: یعني نه د هغه کس په شېر چې په دوو جلا مجلسونو کې د سجدې آیت ووایي چې په دې صورت کې یوه سجده نه کافي کیږي، لهذا که څوک د سجدې یو آیت ووایي، بیا مجلس بدل کړي او بل ځای ته ولاړ سي او هاغه بیا آیت ووایي، نو پر هغه دوې سجدې واجبیږي.

## د مجلس بدلېدلو وضاحت

﴿۸۰۴﴾ وَیَتَبَدَّلُ الْمَجْلِسُ بِالْاِنْتِقَالِ مِنْهُ او مجلس بدلیږي له مجلس څخه په منتقل کېدو سره وَلَوْ مُسْدِیًا اِلٰی غُصْنٍ که څه هم (په کپړه کې) داوږده تار جار ایستونکی وي و بل ښاخ ته وَبِالْاِنْتِقَالِ مِنْ غُصْنٍ اِلٰی غُصْنٍ او (مجلس بدلیږي) په منتقل کېدو سره له یوه ښاخ څخه و بل ښاخ ته وَعَوْمٍ فِیْ نَهْرٍ اَوْ حَوْضٍ کَبِیْرٍ او (مجلس بدلیږي) په لامبو وهني (اوبازي کولو) سره په ویاله (واله) کې یا په لوی حوض کې فِي الْاَصَحِّ د صحیح ترین قول مطابق.

**لغات**: ﴿مُسْدِي﴾ د افعال له بابه د فاعل صیغه ده او په مجردو کې د ضرب له بابه راځي مصدر: سَدْیًا: د کپړې اوږد تار کشول او په کپړه کې جار ایستل (یعني هغه تار کوم چې د ټوکر په اوږدول کې وي هغه په ټوکر کې جار ایستل) اوبدل. ﴿غصن﴾ ښاخ، لښت، څخله. ﴿عوم﴾ د نصر د باب مصدر دی: عَامَ یَعُوْمُ عَوْمًا: اوبازي کول، لامبو وهنه.

**تشریح**: په دې عبارت کې مصنف رَحِمَهُ الله د مجلس بدلېدلو څو صورتونه ذکر کړي دي چې سوړ به یې په تفصیل سره بیان کړو: ① حقیقي بدلېدل، مثلاله یوه ځای څخه درې، څلور ګامه (قدمه) بلې

... یا نه مسجد یا خونې (کوټې) څخه ووځي نو په دې سره مجلس بدلیږي
۲ حکمي بدلېدل. مثلا په یوه مجلس کې دننه په بل داسې کار مشغولېدل کوم چې په عرف کې
حلا کار شمېرل کیږي. مثلا د تلاوت کولو په دوران کې هلته سترخوان ... او خوراک شروع کړي او داسې نور. په دې سره هم مجلس بدلیږي. نو له دې اعمالو څخه وروسته که
هاغه آیت دویم وار ووایي. نو دوې سجدې واجبیږي ځکه مجلس بدل شو.

۳ یعني د کېږې د تارونو د اوبدلو او جار ایستلو لپاره له یوه ځای څخه بل ځای ته
نقل کېدل یا له یوه ښاخ څخه بل ... ته نقل کېدل. په دې سره هم مجلس بدلیږي. یعني که یو سړی
د ټوکر او کپړې د اوبدلو (ورېدلو) کار کوي او د کار په دوران کې د ټوکر د اوږده تارونو د جار ایستلو
لپاره له یوه ځای څخه بل ځای ته ځي او د تګ، راتګ په وخت کې بار، بار د سجدې آیت وایي. نو
څومره واره چې یې هغه آیت ویلی دی. هغومره سجدې پرې واجبیږي. ځکه چې د ټوکر اوږد تار
تقریبا دېرش متره اوږد وي. نو د هغه د اوبدلو او جار ایستلو لپاره چې له یوه ځای څخه بل ځای ته
منتقل کیږي (کرځي، راګرځي). نو په دې سره مجلس بدلیږي. نو ځکه به په دې صورت کې پر
ټوکر اوبدونکي هغومره سجدې واجبیږي. څومره چې یې آیت تلاوت کړی وي. او که هغه نژدې
تګ کوي او په نژدې ځای کې سره راګرځي. نو اتحاد مجلس باقي پاتیږي او یوه سجده واجبیږي.
او په نژدې او لیرې (قریب او بعید) کې فاصله دا دی چې د دوو، یا دریو ګامونو مقدار قریب دی او تر هغه
زیات بعید دی.

۴. همدارنګه د ښاخ په بدلېدلو سره مجلس بدلیږي. لهذا که څوک د درختې پر یوه ښاخ د
سجدې آیت ووایي. بیا پر بل ښاخ کښیني او هاغه آیت ووایي نو دوې سجدې واجبیږي.

۵. همدارنګه په نهر یا لوی حوض کې په اوبازي کولو سره مجلس بدلیږي. لهذا د اوبازي
کولو په دوران کې چې څومره واره د سجدې آیت ووایي. هغومره سجدې واجبیږي. او همدا اصح
قول دی چې په دې ټولو صورتونو کې مجلس بدلیږي. (انوار الایضاح. حاشیه بحوالهٔ شفاء الارواح)

**فایده:** لوی حوض کوم چې د ماء جاري په حکم کې دی. د هغه مدار که څه هم د اوبو پر زیاتوب
دی. لیکن فقهاؤ د آسانۍ لپاره د هغه اندازه لس لاسه طول او لس لاسه عرض متعین کړی دی یعني
داسې حوض چې لس لاسه (یعني لس شرعي ګزه) اوږد وي او لاس لاسه پراخه وي (یعني لس په لس کې
وي). (الأوزان المحموده. ص: ۱۰۱)

## د مجلس نه بدلېدلو څو صورتونه

(۱۵۵) وَلَا يَتَبَدَّلُ بِزَوَايَا الْبَيْتِ وَالْمَسْجِدِ وَلَوْ كَبِيْرًا او نه بدلیږي مجلس د خونې او مسجد په کونجانو سره که څه هم لوی مسجد وي وَلَا بِسَيْرِ سَفِيْنَةٍ او نه د کښتې په تګ (روانتیا) سره وَلَا بِرَكْعَةٍ وَبِرَكْعَتَيْنِ او نه په یوه دوو رکعتونو سره وَشُرْبَةٍ وَاَكْلِ لُقْمَتَيْنِ وَمَشْيِ خُطْوَتَيْنِ او (نه مجلس بدلیږي) په یو وار اوبه چیښلو او (یا) د دوو کولو په خوړلو او د دوو ګامو په تګ سره وَلَا بِاتِّكَاءٍ وَقُعُوْدٍ وَقِيَامٍ او نه (مجلس بدلیږي) په تکیه لګولو او (یا) کښېنستلو او ولاړېدلو (پورته کېدلو) سره وَرُكُوْبٍ وَنُزُوْلٍ فِيْ مَحَلِّ تِلَاوَتِهِ او (نه مجلس بدلیږي) په سپرېدلو او (یا) په شوه کېدلو سره د تلاوت په ځای کې وَلَا بِسَيْرِ دَابَّتِهٖ مُصَلِّيًا او نه (مجلس بدلیږي) د خپل سپارلي په تګ (تللو) سره په داسې حال کې چې هغه (سپور کس) لمونځ کونکی وي.

**لغات:** ﴿زوايا﴾ جمع د زاوية ده کونج. ﴿بيت﴾ د شپه تېرولو ځای. په اصل کې خونې او کوټې ته وايي. ﴿شربة﴾ اسم مرة دی: یو وار چیښل. غوړپ کول. ﴿خطوتين﴾ تثنیه د خطوة ده: ګام. دوو قدمونو ترمینځ مسافه (کوم چې تقریبا ۳۰ اینچه کیږي). ﴿اتكاء﴾ د افتعال د باب مصدر دی: تکیه لګول (تکیه وهل). ټیک لګول. ﴿دابة﴾ په اصل کې هر پر ځمکه تلونکي ساکښ ته وايي. او کثره استعمال یې پر هغه چارپای (څاروي) کیږي کوم چې د سپرتیا یا بار وړلو لپاره کارول کیږي. جمع: دَوَابُّ.

**تشریح:** په دې عبارت کې مصنف رحمه الله د مجلس نه بدلېدلو څو صورتونه ذکر کړي دي. حاصل یې دا دی چې (۱) د خونې یا د مسجد له یوه کونج څخه و بل کونج ته په تللو سره مجلس نه بدلیږي. که څه هم هغه لویه خونه وي، یا لوی مسجد وي. لهذا که څوک د خونې یا مسجد په یوه کونج او طرف کې د سجدې آیت تلاوت کړي او په بل کونج او طرف کې هاغه آیت بیا تلاوت کړي. نو صرف یوه سجده واجبیږي. (۲) همدارنګه د کښتې په تګ سره د سپور کس مجلس نه بدلیږي. لهذا په کښتې کې د سجدې د آیت په بار، بار ویلو سره مکرره سجده نه واجبیږي. (۳) همدارنګه په یو رکعت یا دوو رکعتونو سره هم مجلس نه بدلیږي. لهذا که څوک د سجدې آیت ووایي او بیا دوه

رکعتـه لمـونځ وکـړي، تـر دې وروسـته بیـا هاغـه آیـت ووایـي، نـو صـرف یـوه سـجده واجبیـږي، (۴) همدارنګه د اوبو په چینلو. (۵) د یوې او دوې ګولې خوراک په خوړلو. (۶) او د یوه، دوو ګامو په تګ سره مجلس نه بدلیږي، ، لهذا که څو د سجدې آیت ووایي، بیـا او به وچینبي، یا یوه، دوې ګولې وخوري، یا یو، دوه ګامه ولاړ سي، تر دې وروسته بیا هغه آیت ووایي، نو یوه سجده به کوي، (۷) همدارنګه په تکیه کولو، (۸) او کېنښستلو، (۹) ولاړېدلو، (۱۰) سپرېدلو، (۱۱) او په شوه کېدلو سره هم مجلس نه بدلیږي، دغه ټوله اعمال د مجلسِ واحد په درجه کې دي، لهذا که څوک د سجدې آیت ووایي، بیـا تکیه ولګوي او هاغه آیت دویم وار ووایي، یا د سجدې آیت په ولاړه ووایي او بیـا کېنښي، یا ناست وي بیـا ولاړ سي، یا د سجدې آیت ووایي، بیـا پر هغه ځای سپور سي، یا سپور وي، بیـا هلته شوه سي او هاغه آیت دویم وار ووایي، نو په دې ټولو صورتونو کې صرف یوه سجده واجبیږي.

ولا بسیر دابتہٖ: یعني د سپارلي (څاروي) په تګ سره هم مجلس نه بدلیږي. لهذا که څوک پر سپارلي (څاروي) سپور وي او په لمانځه مشغوله سي او د سجدې آیت بار، بار ووایي، نو دا صورت هم د مجلسِ واحد په درجه کې دي او یوه سجده کافي ده، ځکه په دې صورت کې د لمانځه صحیح کېدل د اتحاد مکان واضح دلیل دی، ها! که په لمانځه مشغوله نه وي او د سجدې آیت بار، بار ووایي، نو د هر وار ویلو لپاره جلا سجده لازم ده. (البحر الرائق ج:۲، ص:۱۳۵)

خلاصه دا چې د سجدې د مکرّر کېدو لپاره له درېو شیانو څخه د یوه موجودېدل ضروري دي: (۱) اول اختلاف تلاوت، یعني په یوه مجلس کې د سجدې مختلفه (دوه بېلابېل) آیتونه تلاوت کـول، (۲) دویـم اخـتـلاف سماعت، یعني پـه یـوه مجلس کـې د سـجدې مختلفه آیتونه اورېدل، (۳) درېیم اختلافِ مجلس، یعني د سجدې یو آیت په مختلفه مجلسونو کې ویل یا اورېدل. (شفاء الارواح بحوالة عمدة الفقه)

## د مجلس بدلېدلو حکم

﴿۸۰۶﴾ وَيَتَكَرَّرُ الْوُجُوبُ عَلَى السَّامِعِ بِتَبْدِيلِ مَجْلِسِهٖ او مکرر کیږي وجوب پر اورېدونکي د هغه د مجلس په بدلېدلو سره وَقَدِ اتَّحَدَ مَجْلِسُ التَّالِيْ په داسي حال کې چې د تلاوت کونکي مجلس یو وي لَا بِعَكْسِهٖ نه د دې په برعکس صورت کې عَلَى الْأَصَحِّ د صحیح ترین قول مطابق.

**تشریح**: مسئله دا ده چې که د اورېدونکي (سامع) مجلس بدل سي، نه د تلاوت کونکي، نو د آیت په بیا اورېدلو سره پر هغه بیا سجده واجبیږي، مثلاً تلاوت کونکی پر یوه ځای وي او یو څوک له

هغه ځخه د سجدې یو آیت واوري. بیا دغه اورېدونکی کس بل ځای ولاړ سي او هاغه آیت بیا ځني واوري، نو پر اورېدونکي دوې سجدې واجبېږي.

لابعکسه إلخ: یعني که د تلاوت کونکي مجلس بدل سي، نه د سامع، په دې توګه چي سامع پر خپل ځای پاته وي او تلاوت کونکی ګرځي را ګرځي، نو د علامه فخر الاسلام رَحِمَهُ الله د قول مطابق په دې صورت کي هم پر سامع د سجدې وجوب مکرر کیږي، او مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي اصح قول دا دی چي په دې صورت کي پر سامع د سجدې وجوب نه مکرر کیږي، ځکه د سامع په حق کي د سجدې واجبېدلو سبب سماع ده او دلته په مجلس د سماع کي تکرار نه دی راغلی (یا په بله وینا دا چي اورېدل په څو ځایو کي نه دي سوي. بلکي سامع پر خپل ځای پاته دی)، لهذا پر هغه به د سجدې وجوب هم نه مکرر کیږي.

## د سجدې آیت پرېښوول

﴿۸۰۷﴾ وَكُرِهَ أَنْ يَقْرَأَ سُوْرَةً وَيَدَعَ آيَةَ السَّجْدَةِ او مکروه دي دا چي سورت ووايي او د سجدې آیت پرېږدي لَاعَكْسُهُ نه د دې برعکس.

**لغات**: ﴿يدع﴾ د فتح د باب مضارع ده: پرېښوول.

**تشریح**: فرمايي چي په لمانځه کي یا د لمانځه څخه بغیر په بل وخت کي سورت ټوله ویل او د سجدې آیت پکښي پرېښوول مکروه تحریمي دي، او د دې برعکس مکروه نه دي یعني یوازي د سجدې آیت ویل او نور ټوله سورت پرېښوول، په دې کي څه حرج نسته.

## د سجدې د آیت سره بل آیت یو ځای کول مستحب دي

﴿۸۰۸﴾ وَنُدِبَ ضَمُّ آيَةٍ أَوْ أَكْثَرَ إِلَيْهَا او مستحب دي دیوه آیت یا زیاتو آیتونو ضمول (یو ځای کول) د سجدې د آیت سره.

**تشریح**: یعني یوازي د سجدې د آیت ویلو پر ځای مستحب دا ده چي د سجدې د آیت سره یو یا دوه آیتونه د هغه په شروع یا آخر کي هم ور سره یو ځای کړي.

## د سجدې آیت په کراره ویل مستحب دي

﴿۸۰۹﴾ وَنُدِبَ إِخْفَاؤُهَا مِنْ غَيْرِ مُتَأَهِّبٍ لَهَا او مستحب دي د سجدې آیت په کراره ویل د داسې کس مخ ته کوم چي تیار نه وي د سجدې لپاره.

**لغات**: ﴿إخفاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: پټول. پټ ساتل. دلته خني مراد په کراره ویل دي

﴿متأهب﴾ د تفعل د باب مفعول دی: تیار، چمتو. تَأَهَّبَ يَتَأَهَّبُ تَأَهُّبًا: تیاریدل. چمتو کیدل.

**تشریح**: یعني که د تلاوت کونکي گومان او اندېښنه دا وي چي پر اوریدونکي به سجده کول بوج سي. یا د هغه حالت ورته معلوم نه وي چي د سجدې لپاره آماده دی. که نه؟. نو په دې دواړو صورتونو کي مستحب دا دي چي د سجدې آیت په کراره ووایي. او که د هغه گومان دا وي چي پر اوریدونکي به بوج نه سي نو هغه په زوره (جهراً) ویل پکار دي. (شفاء الارواح)

## د سجدۀ تلاوت لپاره ولاړېدل مستحب دي

﴿٨١٠﴾ وَنُدِبَ الْقِيَامُ ثُمَّ السُّجُوْدُ لَهَا او مستحب دي ولاړېدل بیا سجده کول د هغه (سجدې د آیت) لپاره.

**تشریح**: یعني که څوک په ناسته د سجدې آیت ووایي. نو د هغه لپاره مستحب طریقه دا ده چي ولاړ سي او له ولاړي (قیام) څخه سجدې ته راسي او سجده وکړي بیا تر سجده کولو وروسته بیرته ولاړ سي. دغه دواړه قیامه مستحب دي. صروري نه دي، لهذا که څوک د همدې ناستي په حالت کي الله اکبر ووایي او سجدې ته ولاړ سي. نو بیا هم صحیح دي. (شفاء الارواح بحوالۀ عمدة الفقه و طحطاوي)

## د اجتماعاً سجدې کولو طریقه

﴿٨١١﴾ وَلَا يَرْفَعُ السَّامِعُ رَأْسَهُ مِنْهَا قَبْلَ تَالِيْهَا او نه دي پورته کوي اوریدونکی خپل سر له سجدې څخه مخکي تر تلاوت کونکي د هغه (آية السجدة) وَلَا يُؤْمَرُ التَّالِيْ بِالتَّقَدُّمِ او حکم به نه کول کیږي تلاوت کونکي ته د مخکي کېدلو (د امام په څېر) وَلَا السَّامِعُوْنَ بِالْاِصْطِفَافِ او نه (به حکم کول کیږي) اوریدونکو ته د صف جوړولو فَيَسْجُدُوْنَ كَيْفَ كَانُوْا نو څرنگه (څه ډول) چي دوی وي سجده دي وکړي.

**لغات**: ﴿اصطفاف﴾ د افتعال د باب مصدر دی: صف جوړول. صف درول.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي که یو څو کسان د لمانځه څخه بغیر په بل وخت کي له یو چا څخه د سجدې آیت واوري. مثلاً یو کس د سجدې آیت تلاوت کړي او درې کسان یې واوري یا صرف یو کس یې واوري. نو اوس که دوی سجده کول غواړي. نو مستحب دا ده چي اوریدونکي د تلاوت کونکي سره یو ځای سجده وکړي او په سجده کولو کي تر هغه مخکي سر را پورته نه کړي:

خکه کله چي دوی يو ځای سجده کوي. نو تلاوت کونکی ګواکي امام سو. نو ځکه اوريدونکي دي له هغه څخه مخکي سر نه پورته کوي. بلکي د تلاوت کونکي پورته کېدلو ته دي انتظار وکړي.

ولايؤمرالخ: يا ادب دا دی چي تلاوت کونکی دي د امام په څېر نه مخکي کول کيږي. همدارنګه اوريدونکو کسانو نه به د صف جوړولو حکم نه کول کيږي. بلکي هريو دي پر خپل ځای سجده وکړي. يعني چيري چي وي. هلته دي سجده وکړي. يا بيا چي څنګه د دوی خوښه وي هغسي دي وکړي. (شفاء الارواح ثمرة النجاح)

## د سجدهٔ تلاوت شرائط

| |
|---|
| ﴿ ۸۱۲ ﴾ وَشَرْطُ لِصِحَّتِهَا شَرَائِطُ الصَّلٰوةِ إِلَّا التَّحْرِيْمَةَ او شرط کرل سوي دي د سجدهٔ تلاوت د صحيح کېدو لپاره د لمانځه شرائط ما سوا له تحريمې څخه. |

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي د سجدهٔ تلاوت د صحيح کېدو لپاره هغه ټوله شيان شرط دي کوم چي د لمانځه د صحيح کېدو لپاره شرط دي. مثلاً طهارت. استقبال القبلة. عورت پټول او داسي نور. ما سوا له تحريمه څخه. يعني د سجدهٔ تلاوت لپاره ځانته تکبير تحريمه ويل شرط نه دي همدارنګه په سجدهٔ تلاوت کي د متعين آيت د سجدې نيت کول لازم نه دي. يعني که يو څوک د سجدې څو مختلفه آيتونه ووايي او بيا پر يوه ځای د ټولو لپاره سجدې اداء کوي. نو د هر آيت په تعيين سره سجده کولو ته ضرورت نسته. بلکي بغير له تعيينه په شمېر د سجدو په اداء کولو سره هم سجدې اداء کيږي (او په سجدهٔ تلاوت کي دي دا نيت کول کيږي چي کومه سجده پر ما واجب سوې ده د آيت ويلو په وجه. هغه اداء کوم). (شفاء الارواح. انوار الايضاح)

## د سجدهٔ تلاوت طريقه

| |
|---|
| ﴿ ۸۱۳ ﴾ وَكَيْفِيَّتُهَا أَنْ يَسْجُدَ سَجْدَةً وَاحِدَةً بَيْنَ تَكْبِيْرَتَيْنِ او د سجدهٔ تلاوت کيفيت (او طريقه) دا ده چي يوه سجده وکړي د دوو تکبيرونو په مينځ کي هُمَا سُنَّتَانِ بِلَا رَفْعِ يَدٍ وَلَا تَشَهُّدٍ وَلَا تَسْلِيْمٍ دا دوه تکبيرونه سنت دي بغير له لاس پورته کولو او بغير له تشهد ويلو او بغير له سلام ګرځولو څخه. |

**تشريح**: د سجدهٔ تلاوت طريقه دا ده چي په الله اکبر سره سجدې ته ولاړ سي او په الله اکبر سره له سجدې څخه سر را پورته کړي. او دا دواړه تکبيرونه سنت دي او د سجدې لپاره د الله اکبر ويلو په وخت کي لاسونه پورته کول. يا تر سجدې وروسته تشهد (التحيات) ويل يا سلام ګرځول نسته.

په عمدة الفقه کي دي: چي د سجدهٔ تلاوت سنت طريقه دا ده چي کله د سجدې اراده وکړي نو ولاړ دي سي (ودي دريږي) او د سجدې نيت دي وکړي، بيا دي د لاس پورته کولو څخه بغير په الله اکبر سره سجدې ته ولاړ سي او لږ تر لږه درې واره "سُبحان ربی الأعلیٰ" دي پکښي ووايي، بيا دي په الله اکبر ويلو سره سر راپورته کړي او ولاړ دي سي، او د تشهد ويلو او سلام ګرځولو ضرورت ورته نسته. (شفاء الارواح)



## د سجدهٔ شکر بيان

﴿۸۱۴﴾ سَجْدَةُ الشُّكْرِ مَكْرُوهَةٌ عِنْدَ الْإِمَامِ لَا يُثَابُ عَلَيْهَا سجدهٔ شکر مکروه ده، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په هغې (سجدهٔ شکر) باندي ثواب نه حاصليږي وَتَرْكُهَا او هغه دي پرېږدي وَقَالَا: هِيَ قُرْبَةٌ يُثَابُ عَلَيْهَا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي سجدهٔ شکر عبادت ده، په هغې باندي ثواب حاصليږي (د هغې پر کولو ثواب ورکول کيږي) وَهَيْئَتُهَا مِثْلُ سَجْدَةِ التِّلَاوَةِ او د هغې صورت (طريقه) د سجدهٔ تلاوت په څېر ده.

**لغات:** ﴿لا يُثَاب﴾ د افعال له بابه مضارع نفي مجهوله ده: ثواب حاصلېدل (ثواب رسېدل)، بدله او جزاء ورکول کېدل. ﴿قربة﴾ د نېکۍ او ثواب کار چي په هغه سره د خدای تعالیٰ قُربت او رضاء حاصليږي (يا په بله وينا هغه کار چي په هغه سره د الله تعالیٰ نږدېکت او ثواب طلبول کيږي)، نېکي او ثواب، عبادت. جمع: قُرَب وقُرُبَات. ﴿هيئة﴾ طريقه، صورت.

**تشريح:** د سجدهٔ شکر مطلب دا دی چي کله انسان ته يو نعمت حاصل سي، نو د هغه نعمت په خوشحالۍ کي مستحب او افضل دا ده چي سجده وکړي او په سجده کي د الله تعالیٰ حمد او ثناء بيان کړي، تسبيح ووايي او په الله اکبر سره سر راپورته کړي وبس، په دې سجده کي هم (د سجدهٔ تلاوت په څېر) تشهد او سلام ګرځول نسته.

علامه شامي رَحِمَهُ الله د محیط په حواله سره لیکلي دي چې امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چې زه سجدهٔ شکر واجب نه ګڼم؛ ځکه که واجب سي، نو پر بندګانو خو هر ګړی د الله تعالیٰ نعمتونه را اوريږي، نو بيا د هغوی په شکرانه کي به هر وخت سجدهٔ شکر لازميږي او په دې کي تکليف ما لا يُطاق دی، او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي دا يو ډول عبادت دی او د هغه کونکي ته ثواب حاصليږي، ګواکي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز سجدهٔ شکر مستحب او افضل ده. علامه شامي رَحِمَهُ الله د بحث په آخر کي فرمايي چي د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله اختلاف په سنت والي (سنيت) کي دی، په جواز او مشروع کېدلو کي يې هيڅ اختلاف نسته. والمعتمد أن الخلاف في سنيتها لا في الجواز (شامي ج:۱، ص:۷۳۱)، خلاصه د کلام دا چي سجدهٔ شکر داسي ځای اداء کول پکار نه دي چي هلته (عوام) خلک ورته ګوري؛ ځکه هغوی به يې واجب يا سنت وګڼي. که په تنهايي کي وکړل سي، نو هيڅ حرج پکښي نسته. (انوار الايضاح)

# فَائِدَةٌ مُهِمَّةٌ لِدَفْعِ كُلِّ مُهِمَّةٍ

عظيم الشانه فايده د هري ستونزي د ليري کولو لپاره

## د هر حاجت پوره کېدلو او د مشکلاتو د حلّ لپاره يو مجرّب عمل

﴿۸۱۵﴾ قَالَ الْإِمَامُ النَّسَفِي فِي الْكَافِي فرمايلي دي امام نسفي رَحِمَهُ الله په "کافي" کي مَنْ قَرَأَ آيَ السَّجْدَةِ كُلَّهَا فِيْ مَجْلِسٍ وَّاحِدٍ څوک چي ووايي د سجدې ټوله آيتونه په يوه مجلس کي وَ سَجَدَ لِكُلٍّ مِّنْهَا او سجده وکړي د هر آيت لپاره كَفَاهُ اللهُ مَا أَهَمَّهُ نو الله تعالی به د ده کافي سي په (هر) هغه معامله کي چي دئ يې بې قراره (او پرېشانه) کړی دی.

**لغات:** ﴿آيَ﴾ جمع د آيَةٌ ده: آيت، د قرآن پاک يوه جمله يا څو جملې چي د هغوی په آخر کي وقف وي ﴿أَهَمَّ﴾ د افعال د باب ماضي ده: غمجن او بې قراره کول، د تشويش باعث کېدل. (انوار الايضاح)

**تشريح:** بعضي فقهاؤ ليکلي دي چي کوم څوک د سجدې ټوله څوارلس (۱۴) آيتونه په يوه ناسته کي على الترتيب ووايي (چي څه مخکي موږ په تفصيل سره ټوله ذکر کړل) او د هر يوه سره سجده هم وکړي

او تېر دې ورو ستنه دعاء وکړي. نو ان شاء الله ضرور به قبوله سي. او که په څه مصيبت او ستونزه مبتلا وي. نو هغه مصيبت او تکليف به ډېر ژر ليري سي. دا د اکابرو فقهاؤ او مجتهدينو امامانو مجرب عمل دی.

دلته داسي هم کولای سي چي يو وار د سجدې ټوله آيتونه ووايي بيا پر يوه ځای د ټولو سجدې وکړي. لېکن زياته ښه دا ده چي د هر آيت د ويلو سره سجده وکړي يعني چي کله اول آيت ووايي نو سمدستي د هغه سجده وکړي بيا دويم آيت ووايي او د هغه سجده وکړي همداسي د ټولو څوارلسو آيتونو لپاره دي جلا. جلا سجدې وکړي او په آخر کي دي دعاء وغواړي. (مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص: ۲۷۲)

او که دا عمل په مبارکو شپو کي وسي، مثلاً د روژې په مياشته کي، يا په شب قدر. شب برات او د اخترونو په شپه کي (يا په مبارک وخت کي مثلا د تهجدو په وخت کي)، نو د قبوليت يې زيات اُميد سته. (انوار الايضاح)



# بَابُ الْجُمُعَةِ

(دا) باب د جمعې (دلمانځه په بیان کې) دی

**تشریح**: په شریعت کې د جمعې ورځې ته ډېر زیات فضیلت حاصل دی. د نبي کریم ﷺ حدیث دی چې لمر پر کومو ورځو راخیږي. په هغوی کې تر ټولو غوره او افضله د جمعې ورځ ده. په دې ورځ حضرت آدم علیه السلام پیدا سوی دی او په همدې ورځ جنت ته استول سوی دی. بیا په همدې ورځ له جنت څخه بهر راغلی دی او په همدې ورځ به قیامت قائم سي (مشکوة شریف ج ۱ ص: ۱۱۹). او د جمعې په ورځ الله تعالیٰ و اُمت محمدیه ته داسې ساعت ورکړی دی چې په هغه ساعت کې له الله ﷻ څخه کومه دعاء هم وغوښتل سي. یقیناً به قبوله سي (پورتنی حواله). او دغه ساعت الله تعالیٰ مخفي ساتلی دی. د دې لپاره چې بندګان له زیاتو څخه زیات وخت په عبادت و طاعت او دعاء کې صرف کړي. د ترمذي شریف په روایت کې دي چې دا ساعت د مازیګر او مانښام په مینځ کې دی (ترمذي ج: ۱ ص: ۶۵). او د مسلم شریف په روایت کې دي چې کله امام منبر ته وخېږي بیا د لمانځه ختمېدلو تر وخته پوري په دې مینځ کې دا ساعت دی (مشکوة ج: ۱. ص: ۱۱۹) خو په دې وخت کې دعاء په زړه کې کول پکار دي: ځکه د خطبې په دوران کې په ژبه سره د دعاء وغیره کولو اجازه نسته. (انوار الایضاح)

**وجهٔ تسمیه**: الجُمعة د میم په ضمه. فتحه او سکون ټولو سره ویل کېدلای سي یعني: جُمُعَة. جُمَعَة او جُمْعَة. دا لفظ له "اجتماع" څخه مشتق دی. لکه فُرْقَة چې له "افتراق" څخه مشتق دی. (۱) ځرنګه چې د جمعې په ورځ د خلګو اجتماع کیږي یعني خلک سره راجمع کیږي، نو ځکه دغه ورځې ته جمعه وایي، (۲) دویم قول دا دی چې جمعې ته ځکه جمعه وایي چې په دغه ورځ کې الله ﷻ بې شمېره برکتونه او انوار جمع کړي دي، (۳) دریم قول دا دی چې حضرت آدم علیه السلام خپل ځامن د جمعې په ورځ سره را جمع کړي وه، نو په دې مناسبت جمعه ورته وایي. (بنایه ج: ۳. ص: ۴۵)

**د جمعې د فرضیت دلائل**: صاحب د بنایې لیکلي دي چې د جمعې فرضیت په کتاب. سنت او اجماع ټولو سره ثابت دی. په کتاب یعني قرآن کریم کې د الله ﷻ دا فرمان دی: ﴿یا أیها الذین آمنوا إذا نودی للصلوٰة من یوم الجمعة فاسعوا إلیٰ ذکر الله الخ﴾ او په اتفاق د مفسرینو له ذکرُ الله څخه جمعه

مراد ده. او بيا د "فاسعوا" امر د وجوب لپاره دی. نو له دې څخه د سعی إلی الجمعة وجوب ثابت سو.

او سعی إلی الجمعة شرط دی د جمعې د لمانځه لپاره، نو کله چې يې شرط واجب سو، نو د اصل لمانځه په فرض کېدو کې خو به هيڅ شک او شبهه نه وي.

او په حديث سره د جمعې ثبوت داسې دی چې حضرت جابر او ابو سعيد رضي الله عنهما فرمايي: خطبنا رسول الله ﷺ (وقال فيه) اعلموا أن الله تعالیٰ فرض عليکم صلاة الجمعة (يعني نبي کريم ﷺ موږ ته په خطبه کې وويل: پوه سئ! چې الله تعالیٰ پر تاسو د جمعې لمونځ فرض کړ څولی دی).

او په اجماع سره د جمعې ثبوت په دې توګه دی چې د نبي کريم ﷺ له زمانې څخه واخله تر اوسنۍ زمانې پورې له څه قيل او قال څخه بغير جمعه فرض ګڼل کېږي، دا د جمعې د فرضيت واضح دليل دی. او بيا عقلاً هم د جمعې فرضيت ښکاره کېږي؛ ځکه چې الله تعالیٰ د جمعې د لمانځه په وجه موږ ته د ماپښين د لمانځه پرېښوولو حکم کړی دی او د ماپښين لمونځ فرض دی. او قاعده دا ده چې فرض د فرضو په وجه پرېښوول کېږي، يعني يو فرض هغه وخت ساقطيږي چې په مقابله کې يې بل فرض راسي، نو په دې حواله سره هم جمعه فرض سوه.

**تر ټولو مخکې د جمعې لمونځ کله وسو؟:** کله چې نبي کريم ﷺ له مکې مکرمې څخه ومدينې منورې ته هجرت وکړی. نو په قباء کې د عمرو بن عوف رضي الله عنه په کلي (محله) کې څوارلس شپې پاتې سو. هم په دې وخت کې نبي کريم ﷺ د يوه مسجد بنياد کښېښوی، چې هغه ته په اسلام کې تر ټولو اول مسجد ويل کېږي. بيا چې کله نبي ﷺ له قباء څخه د مدينې پر طرف د جمعې په ورځ روان سو. نو په لاره کې د سالم بن عوف په کلي کې د جمعې د لمانځه وخت راغلی، نبي کريم ﷺ له سپارلي څخه راشوه سو، او په هغه مسجد کې يې د جمعې لمونځ وکړيکوم چې د شيلې په مېنځ کې وو (يعني په بطن الوادي کې وو). نو دا په اسلام کې تر ټولو اول اداء کړی سوی د جمعې لمونځ دی. په دې جمعه کې په سلهاوو مسلمانان شريک سول، او په دې اړه پوره تفصيل په شرح سير کبير کې وګورئ!.

**د جمعې د پرېښوونکي او فضيلت په هکله حديث:** په حديث شريف کې د جمعې د پرېښوونکي لپاره سخته سزاء بيان سوې ده. حديث دی "مَنْ تَرَكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ مِنْ غَيْرِ ضَرُوْرَةٍ طَبَعَ اللهُ عَلَى قَلْبِهِ" رواه أحمد، حاکم. او په بل روايت کې دي: "مَنْ تَرَكَ ثَلَاثَ جُمَعٍ تَهَاوُنًا طَبَعَ اللهُ عَلَى قَلْبِهِ" رواه أحمد (يعني کوم چا که بېله څه ضرورته محض د سستۍ په وجه درې جمعې پرېښوولې، نو الله ﷻ به د هغه پر زړه مُهر ولګوي).

او د جمعې د فضیلت په هکله حدیث دی: "من توضأ فأحسن الوضوء ثم أتى الجمعة فاستمع وأنصت، غُفِر له ما بينه وبين الجمعة وزيادة ثلاثة أيام، ومن مس الحطى فقد لغا" (رواه مسلم).

(یعني څوک چې په ښه توګه اودس تازه کړي، بیا د جمعې لمانځه ته راسي او خطبې ته په ښه توجه سره غوږ ونیسي او پټه خوله کښېني. نو الله ﷻ به له دې جمعې څخه تر بلې جمعې پورې د ده ګناهونه ور وبخښي او درې ورځې نورې زیاتې. او که دې په شګو او ډبرو لاس وهې (یعني خطبې ته توجه نه کوي او بېله څه توجه جمعه اداء کوي) نو لغو کار یې وکړ).

## د جمعې د فرضیت شرطونه

﴿۸۱۶﴾ صَلٰوةُ الْجُمُعَةِ فَرْضُ عَيْنٍ عَلٰى مَنِ اجْتَمَعَ فِيْهِ سَبْعَةُ شَرَائِطَ د جمعې لمونځ فرض عین دی په (هر) هغه کس باندې چې په هغه کې اووه شرطونه جمع سي اَلذُّكُوْرَةُ وَالْحُرِّيَّةُ ① نارینه والی ② او آزاد والی (آزاد کېدل) وَالْإِقَامَةُ فِيْ مِصْرٍ أَوْ فِيْمَا هُوَ دَاخِلٌ فِيْ حَدِّ الْإِقَامَةِ فِيْهَا ③ او مقیم کېدل (مېشتېدل) په ښار کې یا په داسې ځای کې کوم چې داخل په ښار کې د مقیم کېدلو په حدّ (حکم) کې وي (یعني په داسې ځای کې پاتېدل او مېشتېدل چې هلته پاتېدل په ښار کې پاتېدل شمېرل کېږي) فِي الْأَصَحِّ د صحیح ترین قول مطابق وَالصِّحَّةُ وَالْأَمْنُ مِنْ ظَالِمٍ ④ او روغوالی (روغتیا) ⑤ او له ظالم څخه په امن کېدل وَسَلَامَةُ الْعَيْنَيْنِ وَسَلَامَةُ الرِّجْلَيْنِ ⑥ او د دواړو سترګو سالم والی (سلامتیا) ⑦ او د دواړو پښو سالم والی.

**تشریح:** فرمایي د جمعې لمونځ پر هر هغه کس فرض عین دی چې په هغه کې (لاندینې) اووه شرطونه موجود وي، او په کوم چا کې چې دا موجود نه وي، پر هغه د جمعې لمونځ نه فرض کېږي. لېکن بیا هم که هغه د جمعې لمونځ وکړي، نو د جمعې لمونځ یې کېږي او د ماپښین فرض د هغه له ذمې څخه ساقطیږي. (عمدة الفقه)

① ... اول شرط دا دی چې مذکّر (نارینه) به وي، پر ښځې جمعه (یعني د جمعې لمونځ) فرض نه دی

② ... آزاد به وي، پر غلام جمعه فرض نه ده، لهذا خپل مالک هغه جمعې ته له تللو څخه منع کولای سي، لېکن پر مزدور (اجیر) او نوکر جمعه فرض ده، لهذا مستأجر یا مالک ته دا حق نسته چې هغه له جمعې څخه منع کړي. (عمدة الفقه)

۳... په ښار کي به مقیم وي یا په داسي ځای کي به مقیم وي چي هلته استوګنه او پاتېدل داسي وي لکه په ښار کي پاتېدل ( یا په بله وینا داسي ځای کوم چي د ښار په درجه کي وي چي هلته استوګن په ښار کي استوګن شمېرل کیږي ). لهذا پر مسافر جمعه فرض نه ده او پر داسي مقیم هم جمعه فرض نه ده کوم چي د ښار په لیري اطرافو او د صحرا په کلو کي اوسیږي چي هلته د جمعې لمونځ کول صحیح نه وي. همدارنګه کوم کس چي د ښار له اطرافو څخه بهر وي. که څه هم هغه اذان اوري. بیا هم پر هغه جمعه فرض نه ده. دا اصح قول دی. دویم قول دا دی چي که د هغه لپاره بغیر له څه تکلیف څخه جمعې ته حاضرېدل ممکن وي. نو پر هغه جمعه واجب ده. ( عمدة الفقه )

۴... روغ به وي. پر مریض جمعه فرض نه ده. مراد څني داسي مریض دی کوم چي د جمعې تر مسجده پوري نه سي تللای. یا چي په تګ سره د هغه د مرض زیاتېدلو یا د روغتیا ځنډېدلو خطره وي. یا چي څوک د زیات بوډا والي په وجه مسجد ته نه سي تللای، نو پر هغه هم جمعه فرض نه ده. لېکن که د مریض یا بوډا او عاجز کس سره سپارلي او خادم وي (چي د هغه په مرسته جمعې ته تللای سي ). نو د هغه په هکله څو اقوال نقل سوي دي: بعضو ویلي دي چي د امام صاحب رحمه الله په نیز پر هغه جمعه واجب نه ده او د صاحبینو رحمهما الله په نیز واجب ده او داسي کس د هغه چا په حکم کي دی کوم چي پر تګ قدرت لري. د قواعدو له رویه همدا مناسب ښکاري چي که تکلیف او مرض زیات نه وي. نو حاضرېدل پکار دي. کنې هغه معذوره دی. ( عمدة الفقه )

۵... له ظالم یعني له ظالم حکومت. یا له غله او ډاکو. یا له یو ظالم کس څخه به پر ځان مطمئن او په امن وي. نو کوم چا ته چي د دوی د ضرر بېره وي. پر هغه جمعه فرض نه ده.

۶... په سترګو به روغ یعني بینا وي. او د کوم چا چي یوه سترګه وي. نو پر هغه هم جمعه فرض ده ( طحطاوي. عمدة الفقه ). خو هغه نابینا (ړوند کس ) کوم چي خپله مسجد ته نه سي تللای. پر هغه جمعه فرض نه ده. لهذا که داسي څوک وي چي دا نابینا په اجرت مثل یا بېله اجرته مسجد ته بیایي. نو هم پر هغه جمعه فرض نه ده. او د صاحبینو رحمهما الله په نیز فرض ده. یعني کوم نابینا چي بغیر د یو چا له مرستي څخه په لارو او بازارونو کي ګرځي را ګرځي او بلا تکلیفه مسجدونو ته تللای سي. پر هغه جمعه فرض ده. ( عمدة الفقه )

۷... په پښو به روغ وي یعني پر تګ به قادر وي. لهذا د کوم چا چي دواړي پښې نه وي. شل و شوټ وي یا د فالج وغیره په وجه یې پښې کار نه کوي، پر هغه جمعه فرض نه ده. که څه هم هغه ته داسي څوک پیدا کیږي چي هغه مسجد ته بوځي، او که د یو چا یوه پښه نه وي یا د فالج په وجه کار نه کوي او مسجد ته بلا مشقته تللای سي نو پر هغه جمعه فرض ده. کنې فرض نه ده. ( عمدة الفقه بحواله ... الارواح )

۞ ۞ ۞

او فيه هو داخل في حد الإقامة: په دې عبارت کي د ښار د فناء بيان دی. د ښار فناء د ښار هغه ځايونو او اطرافو ته وايي چي د هغوی سره د ښار ضروريات متعلق وي. مثلاً صنعتي کارخانې. (د موټرانو اډې). اسټېشن. هوايي ډګر. د لوبې ميدان او داسي نور. (انوار الايضاح)

## د جمعې د صحت شرطونه

وَيُشْتَرَطُ لِصِحَّتِهَا سِتَّةُ أَشْيَاءَ او د جمعې (د لمانځه) د صحيح کېدو لپاره شپږ شيان شرط دي اَلْمِصْرُ أَوْ فِنَاؤُهُ (۱) ښار يا د ښار فناء (نژدې اطراف) وَ السُّلْطَانُ أَوْ نَائِبُهُ باچا يا د هغه نائب.

**لغات**: ﴿سلطان﴾ باچا (بادشاه). جمع: سَلَاطِيْن. ﴿نائب﴾ قائم مقام. ځای ناستی. نماينده جمع: نُوَّاب. ﴿فناء﴾ په اصل کي د دې معنیٰ ده: د کور په څنګ اطرافو کي يا د کور په سينګ کي خالي ځمکه (يعني د کور اطراف يا غولی). همدارنګه د يو ځای مخ ته خالي ساحه. د ښار د فناء وضاحت به په تشريح کي وسي.

**تشريح**: په يو ځای کي د جمعې د لمانځه د صحيح کېدو لپاره شپږ شرطونه دي. که له هغوی څخه يو شرط موجود نه سي، نو جمعه نه صحيح کيږي. يعني نه اداء کيږي. په دې عبارت کي دوه شرطونه بيان سوي دي:

①... يو شرط دا چي ښار، ښارګوټی يا فناء د ښار به وي. په صحرا کي د جمعې لمونځ صحيح نه دی. د ښار په تحديد کي د احنافو مختلفه اقوال نقل سوي دي: بعضو ويلي دي چي مصر هغه دی چي په هغه کي سلطان يا د هغه نائب موجود وي. بعضو ويلي دي چي مصر هغه ځای دی چي په هغه کي تر ټولو غټ مسجد د هغه ځای د خلکو (آبادۍ) لپاره کافي نه وي. بعضو ويلي دي چي په هغه کي بازار موجود وي. لنډه دا چي مختلفه تعريفونه يې سوي دي. لېکن تحقيق دا دی چي په کلي توګه د مصر هيڅ جامع و مانع تعريف نه سي کېدلای. بلکي د دې مدار پر عُرف دی. که په عرف کي يو ځای او علاقه ښار ګڼل کېده. نو هلته د جمعې لمونځ جائز دی. کنې جائز نه دی (درس ترمذی) او په عمدة الفقه کي دي چي زموږ حکومت و داسي علاقې ته د ښارګوټي درجه ورکوي چي په هغه کي څلور زره آبادي وي (يا په بله وينا شاخوا څلور زره کسان پکښې استوګن وي) په عامه توګه په داسي ځای کي نور شرطونه هم موجود وي. لهذا د آبادۍ په لحاظ سره که شاوخوا څلور زره آبادي وي. هغه لويه علاقه او ښارګوټی شمېرل پکار دي. دا صرف د تمثيل په توګه دي. نه د تحديد په توګه.

أو فناءه: د دې وضاحت مخکې هم وسو يعني د ښار شاوخوا په اطرافو کې هغه ځايونه کوم چې د ښار د مصلحتونو او ضرورياتو لپاره د ښار سره متعلق او متصل وي، مثلاً صنعتي کارخانې، هديره، د لوبې ميدان، د فوج او عسکرو د اوسېدلو ځای، اسټېشن او داسې نور، دغه ټوله په فناء کې راځي او د ښار په حکم کې دي، په دوی کې د جمعې لمونځ اداء کول صحيح دي. (عمدة الفقه)

(۲)... د جمعې د صحيح کېدلو بل شرط دا دی چې سلطان يعني د اسلام باچا (امير المؤمنين) يا د هغه نائب به موجود وي، د سلطان نائب هغه کس دی چې سلطان و هغه ته د جمعې قائمولو اجازه يا حکم کړی وي. لهذا د باچا يا د هغه د نائب له حکم څخه بغير جمعه قائمول جائز نه دي. که په يو ښار او آبادي کې له دوی څخه يو هم موجود نه وي او خلک خپله يو کس مقرر کړي چې هغه خطبه او د جمعې لمونځ ور کړي، نو جائز دي. همدارنګه په کوم هيواد کې چې اسلامي حکومت قائم نه وي، نو هلته د جمعې د قيام ذمه اواري او انتظام خپله مسلمانانو ته سپارل سوي دي، مسلمانان چې څوک د جمعې امام وټاکي، د هغه په اقتداء کې د جمعې لمونځ کول صحيح دي. (عمدة الفقه)



## جمعه په څومره آبادي کې جائز ده؟

په انوارُ الايضاح کې د پورتني عبارت له تشريح څخه لاندي مسئله داسې بيان سوې ده چې د جمعې د صحت لپاره لويه آبادي شرط ده او د هغې په تعيين کې د فقهاؤ عبارات مختلف دي، د ټولو خلاصه دا ده چې داسې آبادي او علاقه چې هلته د ورځني ضرورياتو لپاره دوکانونه او داسې نور موجود وي او د حکومت داسې نظام هم وي چې مظلوم مرسته پکښې حاصلولای سي، مثلاً د پوليسو مأموريت (تانه) او داسې نور، په عامه توګه زموږ په ملک (يعني په هندوستان) کې د دريو زرو په آبادۍ کې دغه آسانتياوې موجوده وي، لهذا په داسې لويه آبادي کې جمعه قائمول صحيح دي او له دې څخه په کمه آبادي کې جمعه نه فرض کيږي، هغوی به د ماپښين لمونځ کوي. او کومه علاقه چې پر عمومي لوی سړک او پر عمومي چوک باندي واقع وي (مثلاً په جرنلي سړک (جي ټي روډ) باندي پر لوی چوک واقع علاقه) چې په هغه کې بازار او شفاخانه ، تانه ټوله شيان موجود وي، نو هلته د جمعې لمونځ صحيح دی. که څه هم د هغه ځای اوسېدونکي له دريو زرو څخه کم وي. (انوار الايضاح بحوالۀ کتاب المسائل ص: ۴۲۲. و فتاویٰ دار العلوم ديوبند ج: ۵ ص: ۴۴)

او د ښار په اطرافو کې چې کومه کارخانه واقع وي، هلته هم د جمعې لمونځ قائمول صحيح دي په دې شرط چې هلته د جمعې په قائمولو کې څه ستونزه نه وي. او داسې کلی او محله چې له ښار څخه څو کېلو متره ليري واقع وي او د هغه آبادي د ښار سره متصله نه وي، نو هلته د جمعې لمونځ نه صحيح کيږي. که څه هم هلته د ښار اذان اورېدل کيږي. او د جمعې د صحيح کېدو لپاره جامع

مسجد يا بل لوى مسجد موجودېدل هم ضروري نه دي، بلکې د لويې آبادۍ په يو ميدان کې هم د جمعې لمونځ کول صحيح دي. (انوار الايضاح بحوالهٔ کتاب المسائل ص: ۴۲۳، وکبيري ص: ۵۱۱)

## د جمعې د وخت بيان

| |
|---|
| ﴿۸۱۸﴾ وَوَقْتُ الظُّهْرِ ③ او د ماپښين وخت فَلَا تَصِحُّ قَبْلَهٗ نو له هغه څخه مخکې جمعه نه صحيح کيږي وَتَبْطُلُ بِخُرُوْجِهٖ او د هغه په وتلو سره جمعه باطليږي. |

**تشريح:** ③... درېيم شرط دا دی چې د ماپښين وخت به وي يعني د جمعې لمونځ د ماپښين په وخت کې صحيح کيږي، لهذا تر زوال مخکې د جمعې لمونځ صحيح نه دی، همدا ډول که د ماپښين وخت په داسې حال کې ووځي او د مازيګر وخت داخل سي چې امام د جمعې په لمانځه مشغوله وي، نو د جمعې لمونځ باطليږي يعني د هغه صحت نه اداءً باقي پاتيږي او نه قضاءً، بلکې دا لمونځ نفل ګرځي او عليحده د ماپښين د لمانځه قضاء به راوړل کيږي، همدارنګه که د تشهد په اندازه له ناستې څخه وروسته د ماپښين وخت ووځي، نو هم دغه حکم دی. (شفاء الارواح بحوالهٔ عمدة الفقه و حاشيه)



## د جمعې په لمانځه کې هر وخت تعجيل افضل دی

**مسئله:** له زوال څخه وروسته د جمعې لمونځ ژر تر ژره اداء کول افضل دي، برابره ده ديخ موسم وي او که د ګرمۍ؛ ځکه نبي کريم ﷺ به په يخ او ګرمي دواړو کې له زوال څخه وروسته سمدستي د جمعې لمونځ کوی، له دې څخه معلومه سوه چې په کومو مسجدونو کې ډېر په تأخير سره د جمعې وخت تاکل سوی وي، دا غلطه طريقه ده، د نبي کريم ﷺ د سنت مستمره مخالفت دی، د دې بدلول ضروري دي، الله تعالیٰ دې موږ ته د اصلاح توفيق راکړي، آمين. (تحفة الالمعی ج: ۲، ص: ۳۷۱، کتاب المسائل ص: ۴۲۶)

## د خطبې بيان

| |
|---|
| ﴿۸۱۹﴾ وَالْخُطْبَةُ قَبْلَهَا بِقَصْدِهَا فِيْ وَقْتِهَا (۴) او خطبه ويل د جمعې تر لمانځه مخکې په نيت د جمعې سره په وخت د جمعې کې وَحُضُوْرُ أَحَدٍ لِسِمَاعِهَا مِمَّنْ تَنْعَقِدُ بِهِمُ الْجُمُعَةُ وَلَوْ وَاحِدًا فِي الصَّحِيْحِ (۵) او د خطبې د اورېدو لپاره حاضرېدل د يو کس له هغه چا څخه چې د جمعې لمانځه انعقاد ورباندې کيږي د صحيح مذهب پر بناء. |

**تشریح:** ④... د جمعې د صحیح کېدلو څلورم شرط خطبه ده، نو بغیر له خطبې څخه د جمعې لمونځ نه اداء کېږي، او د خطبې لپاره هم څو شرطونه دي چې له هغوی څخه یو دا دی چې خطبه به د جمعې تر لمانځه مخکې وي، لهذا که تر لمانځه وروسته خطبه ووایي، نو نه صحیح کېږي، همدارنګه خطبه به د جمعې په وخت کې وي چې هغه تر زوال وروسته دی، لهذا که تر زوال مخکې خطبه ووایي، نو نه صحیح کېږي.

وحضور الخ: دا هم د خطبې له شرایطو څخه دي چې د خطبې اورېدلو ته به داسې څوک حاضر وي چې د هغه په موجودېدلو سره جمعه صحیح کېږي یعنې عاقل او بالغ وي، که څه هم صرف یو سړی وي او همدا صحیح ده، لهذا که امام تنها خطبه ووایي، یا صرف د ښځو او کوچنیانو مخ ته خطبه ووایي، نو صحیح دا ده چې په دې صورت کې جمعه نه صحیح کېږي، او د بعضو په نېز په خطبه کې هم کم از کم د دریو سړیو موجودېدل ضروري دي (لکه څرنګه چې د جمعې د جماعت لپاره ضروري دي)، کنې خطبه نه صحیح کېږي، اکثره فقهاء همدې طرف ته تللي دي او په دې کې احتیاط زیات دی. (عمدة الفقه)

## د "اذن عام" بیان

| ﴿۸۲۰﴾ وَالْإِذْنُ الْعَامُّ ⑤ او عامه اجازه. |
|---|

**لغات:** ﴿الإذن﴾ اجازه (اجازت).

**تشریح:** ⑤... د جمعې لپاره پنځم شرط "اذن عام" دی یعنې په عامه اجازه سره علی الاعلان د جمعې لمونځ اداء کول، د دې مطلب دا دی چې هر هغه چا ته به اجازه وي، پر چا چې جمعه فرض وي او د عامو خلکو پر مخ به د مسجد دروازې خلاصې وي، نو داسې ځای د جمعې لمونځ نه صحیح کېږي چې هلته یوازې مخصوص خلک راتللای سي او هر کس ته د راتللو اجازه نه وي، همدا وجه ده چې که څو خلک په مسجد کې جمع سي او د مسجد دروازې بندې کړي او د جمعې لمونځ وکړي نو جائز نه دي. (عمدة الفقه)

**یادونه:** په کوم زندان کې چې علیحده مسجد جوړ سوی وي او هلته په زرهاوو بندیان استوګن وي او د حکومت له طرفه د جمعې پر قائمولو څه پابندي نه وي، نو هلته د جمعې لمونځ کول صحیح دي، همدارنګه هوایي ډګر او داسې نور، که څه هم په داسې ځایونو کې دباندیني خلکو ته د راتګ اجازه نه وي: ځکه هلته صرف د حفاظت په غرض سره پر خارجي وګړو پابندي وي. کنې محض پر لمانځه خو هیڅ بندیز وي. او بېړۍ (لویه کښتي) چې کله د سمندر د غاړې سره ولاړه وي، یا په هوایي ډګر کې لویه طیاره ولاړ وي، نو د هغه د مسافرانو لپاره په بېړۍ او طیاره کې دننه د جمعې

لمونځ کول جائز نه دي؛ ځکه هلته د "اذن عام" شرط نسته. (انوار الایضاح بحوالهٔ درمختار مع الشامي. و کتاب المسائل)

## د جمعې لپاره کم از کم د دريو مقتديانو شرط

﴿۸۲۱﴾ وَالْجَمَاعَةُ ⑥ او جماعت وَهُمْ ثَلَاثَةُ رِجَالٍ غَيْرِ الْإِمَامِ او هغوی درې خلک دي له امام څخه بغير وَلَوْ كَانُوا عَبِيدًا أَوْ مُسَافِرِينَ أَوْ مَرْضٰى که څه هم هغوی غلامان يا مسافران يا مريضان وي.

**لغات**: ﴿عبيد﴾ جمع د عَبْدٌ: غلام، مريى، ﴿مرضٰى﴾ جمع د مَرِيْضٌ ده: ناروغ.

**تشريح**: ⑥... د جمعې د قيام لپاره جماعت هم شرط دی، مراد د جماعت له امام څخه بغير د دريو سړيو موجودېدل دي (چې په امام پسې به کم از کم درې سړيان ولاړ وي)، که څه هم هغوی غلامان، مسافران يا مريضان وي. "وفي الشامي: هٰذا عند أبي حنيفة و رجّح الشارحون دليله واختاره المحبوبي والنسفي، كذا في تصحيح الشيخ قاسم". (شامي ج: ۲، ص: ۱۶۵، ط: کراچي)

﴿۸۲۲﴾ وَالشَّرْطُ بَقَاؤُهُمْ مَعَ الْإِمَامِ حَتّٰى يَسْجُدَ او شرط د هغوی (دريو سړيانو) باقي پاتېدل (موجودېدل) دي د امام سره تر دې چې امام سجده وکړي فَإِنْ نَفَرُوْا بَعْدَ سُجُوْدِهٖ بيا که هغوی ولاړ سي (ووځي) د امام له سجدې څخه وروسته أَتَمَّهَا وَحْدَهٗ جُمُعَةً نو امام دې هغه لمونځ پوره کړي د جمعې (د لمانځه) په حيثيت سره وَإِنْ نَفَرُوْا قَبْلَ سُجُوْدِهٖ او که هغوی ولاړ سي د امام له سجدې څخه مخکي بَطَلَتْ نو جمعه (د جمعې لمونځ) باطليږي.

**لغات**: ﴿نفروا﴾ د ضرب له بابه د جمع مذکر غائب مضارع صيغه ده، د دې باب ډېرې معناوې دي چې ځيني يې دا دي: پرېښوول (هجرت کول)، کوچ کول او روانېدل، په تېزه وتل لکه په قرآن شريف کي چې راځيي: ﴿انْفِرُوْا خِفَافًا وَّثِقَالًا﴾ او داسي نور معناوي... (معجم الوسيط)، ﴿أتمها﴾ د افعال د باب ماضي ده: پوره کول، بشپړ کول، د ها ضمير جمعة ته راجع دی.

**تشريح**: مخکي ذکر سوه چې د جمعې د لمانځه لپاره جماعت هم شرط دی يعني لږ تر لږه درې خلک، خو د جماعت لپاره دا شرط او ضروري ده چې هغوی به د اول رکعت تر سجدې پوري د امام سره موجود وي. کنې لمونځ باطليږي.

د دې مسئلې څو صورتونه دي: یو صورت دا دی چې که خلک د جمعې د لمانځه د شروع کېدلو څخه مخکې ولاړ سي او امام تنها پرېږدي، نو په دې صورت کې بالاتفاق جمعه باطلیږي او امام به د ماپښین لمونځ کوي، او که د جمعې لمونځ شروع سي او د امام له یوه سجده کولو څخه وروسته خلګ امام پرېږدي، نو په دې صورت کې به امام خپل د جمعې لمونځ پوره کوي (یا په بله وینا پر جمعه به بناء کوي) بالاتفاق، او که د امام له سجده کولو څخه مخکې خلګ امام پرېږدي، نو د امام ابوحنیفه رَحِمَهُ الله په نیز په دې صورت کې هم جمعه، او امام به له نوي سره د ماپښین لمونځ کوي او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز نه باطلیږي او امام به خپل د جمعې لمونځ پوره کوي. (انوار الایضاح بحوالهٔ اشرف الهدایه، و مراقی الفلاح)

﴿۸۲۳﴾ وَلَا تَصِحُّ بِامْرَأَةٍ أَوْ صَبِيٍّ مَعَ رَجُلَيْنِ او نه صحیح کیږي جمعه په یوې ښځې یا یوه بچي باندې سره د دوو سړیو.

**تشریح:** مسئله دا ده چې د جمعې د لمانځه د صحیح کېدو لپاره لږ تر لږه درې بالغ سړي موجود پېدل ضروري دي، لهذا که صرف دوه سړي او یوه ښځه یا دوه سړي او یو بچی وي، نو د جمعې لمونځ نه صحیح کیږي.

﴿۸۲۴﴾ وَجَازَ لِلْعَبْدِ وَالْمَرِيضِ أَنْ يَؤُمَّ فِيهَا او جائز دي غلام او مریض لره چې امامت وکړي (امام جوړ سي) په جمعه کې.

**لغات:** ﴿يؤم﴾ د نصر له بابه مضارع معلومه ده، أَمَّ يَؤُمُّ أَمًّا: امامت کول، امام جوړېدل، د فيها ضمیر مرجع جمعة ده.

**تشریح:** مسئله دا ده چې پر مریض، غلام او مسافر که څه هم جمعه فرض نه ده، لېکن دوی هر یو د جمعې د لمانځه امام جوړول جائز دي.

﴿۸۲۵﴾ وَالْمِصْرُ كُلُّ مَوْضِعٍ لَهُ مُفْتٍ وَأَمِيرٌ وَقَاضٍ او مصر (ښار) هر هغه ځای دی چې د هغه لپاره یو مفتي او امیر او قاضي وي يُنَفِّذُ الْأَحْكَامَ وَيُقِيمُ الْحُدُودَ چې هغه (قاضي) احکام نافذوي او حدونه قائموي (جاري کوي، سزاګانې ورکوي) وَبَلَغَتْ أَبْنِيَتُهُ مِنًى او رسېدلي وي د هغه ځای ودانۍ (جوړ ځایونه) منیٰ ته (یعني د منیٰ د ودانیو په اندازه وي) فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ په ظاهر روایت کې.

**لغات**: ﴿مفتٍ﴾ د افعال له بابه د فاعل صیغه ده، په اصل کې مُفْتِيٌ، یاء پر ضمه مشکله وه، نو ځکه یې یاء ساکنه کړه بیا د اجتماع ساکنین په وجه یاء حذف کړل سوه مُفْتٍ سو، همدا تعلیل په قاضٍ کې هم وسو، أَفْتٰى يُفْتِيْ إِفْتَاءً: فتویٰ ورکول، مفتي هغه کس ته وایي کوم چې د مسائلو جواب ورکړل سي، د علم فقه ماهر، ﴿منٰى﴾ منیٰ شریفه، په عربي ژبه کې د أمنٰی او منٰی لفظ د یو شي د بهولو (بیولو) په معنیٰ سره راځي، او منیٰ شریفي ته ځکه منیٰ ویل کیږي چې هلته د هَدی څارویان ذبح کول کیږي او د هغوی وینه پکښې بهول کیږي، نو ځکه په منیٰ سره ونومل سوه: نور مطلبونه یې هم بیان سوي دي، خو دا یې مشهوره وجهٔ تسمیه ده.

**تشریح**: د ظاهر روایت مطابق مصر هر هغه ځای دی چې هغه لره درې کسان وي ① خپل مفتي ②او امیر ③ او داسي قاضي کوم چې احکام جاري کولای سي او د حدودو پر نافذولو قادر وي او د هغه ځای آبادي لږ تر لږه د منیٰ د آبادۍ سره برابره وي (د جمعې لمونځ اوس په څومره آبادي او علاقه کې جائز دی؟ په دې هکله پوره تفصیل څه مخکې بیان سو).

﴿۸۲۶﴾ وَإِذَا كَانَ الْقَاضِيْ أَوِ الْأَمِيْرُ مُفْتِيًا او کله چې قاضي یا امیر (خپله) مفتي (هم) وي أَغْنٰى عَنِ التَّعْدَادِ نو بیا له شمېر (دریو) څخه بې پروایي راولي (یعني بیا دریو کسانو (قاضي، امیر او مفتي) ته ضرورت نه پاتېږي، بلکې امیر او قاضي کافي دي، ځکه په دوی کې د افتاء صلاحیت سته).

**لغات**: ﴿أَغْنٰى﴾ د افعال د باب ماضي ده، مصدر إِغْنَاءً، کله چې د دې باب په صله کې عَن راسي، نو معنیٰ یې ده: بې نیازه کول، بې پروا کول، (ضرورت نه پاتېدل).

**تشریح**: یعني که چیرې امیر (حاکم) یا قاضي خپله مفتي هم وي او د فتویٰ ورکولو صلاحیت پکښې وي، نو هغه کافي دی، جلا بل مفتي ته ضرورت نسته.

څرنګه چې له مخکیني عبارت څخه دا وهم کېدی چې درې کسان ضروري دي (مفتي، امیر او قاضي)، نو ځکه مصنف رَحِمَهُ الله وفرمایل چې په مذکوره صورت کې (کله چې امیر یا قاضي خپله مفتي هم وي نو) د دریو شمېر یعني دریو کسانو ته ضرورت نسته. (مراقی الفلاح)

## په منیٰ کې د جمعې د لمانځه حکم

﴿۸۲۷﴾ وَجَازَتِ الْجُمُعَةُ بِمِنٰى فِي الْمَوْسِمِ او جائز ده جمعه (قائمول) په منیٰ کې په موسم (د حج) کې لِلْخَلِيْفَةِ أَوْ أَمِيْرِ الْحِجَازِ د خلیفه یا د حجاز د امیر لپاره.

**تشریح**: دعبارت حاصل دا دی چې د حج په ورځو کې په منیٰ شریفه کې د جمعې لمونځ اداء کول جائز دي، خو په دې شرط چې د حج امیر هغه کس وي کوم چې د حجاز امیر او حاکم وي. یعنې هغه صرف د حج لپاره امیر نه وي ټاکل سوی، یا خلیفة المسلمین خپله موجود وي. د حج له ورځو څخه بغیر په نورو ورځو کې هلته د جمعې لمونځ جائز نه دی؛ ځکه هغه د کلي حیثیت لري. لیکن نن سبا د موجوده حیثیت مطابق فتویٰ ورکول پکار دي. (عمدة الفقه)

**یادونه**: له مذکوره عبارت څخه دا معلومه سوه چې د حج له موسم څخه بغیر نور وختونه په منیٰ کې د جمعې لمونځ صحیح نه دی، خو دا حکم د پخوانی زمانې په اعتبار سره وو کله چې د منیٰ آبادي تر څو پېړیو پوري له مکې مکرمې څخه بالکل جلا وه او د دواړو په مینځ کې د صحراوو او غرونو فاصله وه چې په هغوی کې هیڅ قسم آبادي او عمارت نه وو، نو په دې خاطر د پخوا ټولو فقهاؤ (د آبادۍ د تسلل د نشتوالي په وجه) مکه او منیٰ جلا، جلا آبادۍ شمېرلي وه، خو څه وخت مخکې د سنه ۱۴۲۰ هجري (مطابق ۱۹۹۹ میلادي) د حج په موسم کې د پاکستان او هندوستان د سترو مفتیانو او علماؤ یو جماعت هلته د آبادۍ د اتصال خپله مشاهده وکړه او ټوله په متفقه توګه دې نتیجې ته ورسېدل چې اوس د منیٰ حیثیت د ښار د فناء په څېر دی (یعنې منیٰ شریفه ګواکې د مکې د ښار فناء ده). لهذا د حج موسم وي او که نه وي، په منیٰ کې دننه د جمعې لمونځ کول جائز دي. (انوار الایضاح بحوالهٔ انوارِ رحمت ص: ۷۱)

## د خطبې کم مقدار

﴿۸۲۸﴾ وَصَحَّ الْإِقْتِصَارُ فِي الْخُطْبَةِ عَلىٰ نَحْوِ تَسْبِيْحَةٍ أَوْ تَحْمِيْدَةٍ مَعَ الْكَرَاهَةِ او صحیح دي اکتفا کول په خطبه کې په صرف یو وار سبحان الله یا الحمدلله ویلو باندې سره د کراهته.

**تشریح**: د خطبې کمترین مقدار دا دی چې یو وار "الحمد لله"، یا "سبحان الله"، یا "لا إلٰه إلّا الله" پکښې ووایې، لیکن له دریو آیتونو څخه کم مقدار خطبه ویل مکروه دي او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د خطبې مقدار د تشهّد په اندازه دی، له هغه څخه کم مکروه دی، لهذا که څوک په خطبه کې صرف "سبحان الله" یا داسې نور ووایي، نو د خطبې فرض خو اداء کیږي، لیکن صرف پر دې اکتفا کول د سنت د مخالفت په وجه مکروه دي، او دا کراهت د بعضو په نېز تحریمي دی او د بعضو په نېز تنزیهي دی. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

## دخطبې سنتونه او آداب

﴿۸۲۹﴾ وَ سُنَنُ الْخُطْبَةِ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ شَيْئًا او د خطبې سنتونه اتلس (۱۸) شیان دي اَلطَّهَارَةُ ① پاکي.

**تشریح**: له دې ځایه مصنف رَحِمَهُ الله د خطبې سنن او آداب ذکر کوي چې هغوی یې په اتلسو (۱۸) کي منحصر کړي دي: ①... له هغوی څخه اول شی طهارت دی (چې په اوداسه به وي). یعني د بې اودسی په حالت کي خطبه ویل مکروه دي، او که یې ووایي، نو خطبه خو اداء کیږي. لېکن داسي کول مکروهِ تحریمي دي، او که د جنابت په حالت کي خطبه ووایي. نو د هغه را ګرځول مستحب دي. (طحطاوي علی مراقی الفلاح)

﴿۸۳۰﴾ وَ سَتْرُ الْعَوْرَةِ ② او عورت پټول.

**تشریح**: ②... دویم سنت ستر د عورت دی، عورت پټ ساتل که څه هم فی نفسه فرض دي لېکن د خطبې په حالت کي سنت دي، لهذا که بېله ستره خطبه ووایي. نو د کراهت تحریمي سره اداء کیږي. (پورتنی حواله)

﴿۸۳۱﴾ وَ الْجُلُوْسُ عَلَى الْمِنْبَرِ قَبْلَ الشُّرُوْعِ فِي الْخُطْبَةِ ③ او پر منبر کښېنستل د خطبې له شروع کولو څخه مخکي.

**تشریح**: ③... له خطبې شروع کولو څخه مخکي پر منبر د خطیب کښېنستل د اذان پوره کېدلو په انتظار کي.

## د جمعې دویم اذان

﴿۸۳۲﴾ وَالْأَذَانُ بَيْنَ يَدَيْهِ كَالْإِقَامَةِ ④ او اذان کول د امام مخ ته د اقامت په څېر.

**تشریح**: ④... د جمعې دویم اذان امام ته مخامخ کول سنت دي، او د دې مطلب دا نه دی چې خاص په اول صف کي به امام ته مخامخ وي. بلکي که له امام څخه دوه، درې صفه لیري یا د ټولو صفونو شاته و امام ته مخامخ وي، نو هم اذان کول جائز دي، خو د مسجد له حدودو څخه دباندي دا اذان کول د اُمت د متوارث عمل خلاف دي.

## په ولاړه خطبه ویل او په لاس کي توره وغیره نیول

﴿۸۳۳، ۸۳۴﴾ ثُمَّ قِيَامُهُ وَالسَّيْفُ بِيَسَارِهِ مُتَّكِئًا عَلَيْهِ ⑤ بیا د امام درېدل په داسي حال کي چي د هغه په چپه لاس کي توره وي چي پر هغه یې تکیه کړې وي فِي كُلِّ بَلْدَةٍ فُتِحَتْ عَنْوَةً په هر داسي ښار کي کوم چي فتح کړل سوی وي په غلبه سره وَبِدُوْنِهِ فِيْ بَلْدَةٍ فُتِحَتْ صُلْحًا او له توري څخه بغیر (درېدل) په داسي ښار کي کوم چي فتح کړل سوی وي په صلحه سره.

**لغات:** ﴿سیف﴾ توره، جمع: سُيُوف، ﴿متكئًا﴾ د افتعال له بابه فاعل دی: تکیه کول (تکیه لګول، تکیه وهل)، ﴿عنوة﴾ په زور او غلبه سره، د مټ په زور، عَنَىٰ يَعْنُوْ عَنْوَةً (باب نصر): په زوره اخیستل.

**تشریح:** ⑤... د جمعې او اختر خطبه په ولاړي ویل سنت دي، بېله عذره په ناستي خطبه ویل مکروه دي، بیا هم که یو امام په ناستي خطبه ووایي، نو هم خطبه معتبر ده. همدارنګه دا خبره هم یاد ساتئ! چي پر منبر خطبه ویل سنت دي، او که منبر نه وي، نو لاندي په ولاړي خطبه ویل هم جائز دي او له منبر څخه مراد هر لوړ (جګ) شی دی، لهذا که په کرسي یا مېز (ټېبل) یا داسي بل لوړ شي باندي خطبه وویل سي، نو سنت اداء کېږي. (انوار الایضاح بحوالۀ بدائع الصنائع ج:۱، ص:۵۹۲)

والسیف بیساره الخ: ⑥... د دې حاصل دا دی چي کوم ښار د توري په زور یعني مسلمانانو د مټ په زور او په غلبه حاصلولو سره فتح کړی وي، هلته خطیب که امامُ المسلمین یا د هغه نائب وي، نو د خطبې پر مهال په خپل راسته لاس کي توره اخیستل او پر هغه تکیه لګول سنت دي او په دې سره اصل مقصود د هغه ښار خلکو ته دا ښکاره کول دي (یعني چي په دې سره هغو ته دا یادونه ورکول سي) چي اوس تاسي د مسلمانانو په قبضه کي یاست او که تاسي له اسلام څخه سرغړونه وکړی، نو دا توره د مسلمانانو په لاس کي باقي ده، هغوی به ستاسي سره قتال کوي تر دې چي تاسي بیرته د اسلام وطرف ته را وګرځی. او په دې کي و دې طرف ته هم اشاره ده چي په داسي ښار کي (د خطیب لپاره) له توري څخه بغیر بل شی مثلاً لکړه وغیره په لاس کي اخیستل او تکیه باندي کول غوره نه دي، خو کوم ښار چي بغیر له جنګ او توري څخه فتح کړل سوی وي، هلته دي د خطبې په دوران کي توره نه اخیستل کېږي، ها! د خطبې په دوران کي لکړه (عصا) اخیستل مستحب دي، لېکن دا ضروري ګڼل او نه اخیستونکی ملامتول جائز نه دي. (شامي ج:۱، ص:۷۲۲)

## خلګو ته مخامخ خطبه ویل

﴿۸۳۵﴾ وَاسْتِقْبَالُ الْقَوْمِ بِوَجْهِهٖ ⑥ او د خلګو وطرف ته خپل مخ کول (مخامخ کېدل).

**تشریح:** ⑦... د امام لپاره سنت دا دي چې د قوم یعني د حاضرو خلګو وطرف ته مخ کړي او قبلې ته شا کړي، د دې په خلاف د قبلې وطرف ته مخ کول او د قوم وطرف ته شا کول مکروه دي.

او کله چې امام خطبه شروع کړي، نو خلګو ته پکار دي چې په صفونو کې په آرام سره کښېني او د امام خبرو ته په توجّه سره غوږ کښېږدي، او ښه دا ده چې امام ته ګوري؛ ځکه د امام او خطیب د مخ او لاسونو په اشاره سره هم د خبرو په پوهنه کې مرسته حاصلېږي او که نظر لاندې وي او خطیب ته نه وکتل سي، نو هم خبره په فهم کې راځي، خو دومره نه راځي شومره چې پکار وي (تحفة الالمعی، مراقی الفلاح)، خو کله چې خطیب له کتاب یا رسالې څخه خطبه وایي، نو بیا دا خبره نسته (اصل د خطیب خبرو ته غوږ نیول او په توجّه سره اورېدل دي، نو چا ته چې څرنګه توجّه حاصلېږي، هغسې دې وکړي). (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

﴿۸۳۶﴾ وَبِدَاءَتُهٗ بِحَمْدِ اللهِ وَالثَّنَاءِ عَلَيْهِ بِمَا هُوَ أَهْلُهٗ ⑦ او خطبه شروع کول په الحمد لله او په داسې ثناء (تعریف) سره د کوم چې الله تعالیٰ اهل دی وَالشَّهَادَتَانِ ⑧ او د شهادت دوې کلمې ویل وَالصَّلٰوةُ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ ⑨ او پر نبي ﷺ درود ویل وَالْعِظَةُ وَالتَّذْكِيْرُ ⑩ او وعظ و نصیحت کول (یاد "تذکیر" معنیٰ ده: د آخرت د عذاب او ثواب یادونه ورکول) وَقِرَاءَةُ آيَةٍ مِّنَ الْقُرْآنِ ⑪ او د قرآن کریم یو آیت ویل.

**لغات:** ﴿عِظَة﴾ وعظ، نصیحت، جمع: عِظَات، وَعَظَ يَعِظُ وَعْظًا (باب ضرب): نصیحت کول، ﴿التذكير﴾ د تفعیل د باب مصدر دی، د دې باب له معناوو څخه یوه معنیٰ هم د "وعظ او نصیحت کولو" ده. (معجم الوسیط)

**تشریح:** ⑧... د خطبې په شروع کې په کراره اعوذ بالله ویل او په حمد سره شروع کول او په خطبه کې د الله تعالیٰ حمد او ثناء بیانول سنت دي.

⑨... د شهادت دوې کلمې یعني "أشهد أن لا إله إلا الله، وأشهد أن محمدًا عبده ورسوله" د خطبې په ضمن کې ویل سنت دي.

⑩... پر نبي کريم ﷺ درود ويل. ⑪... خلکو ته وعظ او نصيحت کول. ⑫ د قرآن کريم يو آيت ويل، دا ټوله شيان ښکلي سنت دي.

| ﴿٨٣٧﴾ وَ خُطْبَتَانِ ⑫ او دوې خطبې ويل وَالْجُلُوْسُ بَيْنَ الْخُطْبَتَيْنِ ⑬ او د دوو خطبو په مينځ کي کښېنستل (ناسته کول). |
|---|

**تشريح**: ⑬... د جمعې په ورځ دوې خطبې ويل سنت دي، که صرف يوه خطبه ووايي، نو هم خطبه اداء کيږي، خو د سنت پرېښوولو په وجه داسي کول مکروه دي.

⑭... د دواړو خطبو په مينځ کي کښېنستل سنت دي. همدارنګه د جمعې په ورځ د خطبو په مينځ کي دغه وقفه د قبوليت وخت دی، په دې کي دعاء کول پکار دي په زړه کي. په ژبه سره دي هيڅ لفظ نه اداء کوي. (شامي ج: ٣، ص: ٤٢، ط: زکريا)

| ﴿٨٣٨﴾ وَإِعَادَةُ الْحَمْدِ وَالثَّنَاءِ وَالصَّلٰوةِ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ فِي ابْتِدَاءِ الْخُطْبَةِ الثَّانِيَةِ ⑭ او راګرځول (دوباره ويل) د حمد او ثناء ⑮ او (دوباره ويل) د درود شريف پر نبي ﷺ د دويمي خطبې په شروع کي. |
|---|

**تشريح**: ⑮. . په دويمه خطبه کي بيا حمد و ثناء او درود شريف ويل سنت دي.

تر دې وروسته پوهېدل پکار دي چي کله په خطبه کي د نبي کريم ﷺ نوم مبارک راسي، نو د خطبې په دوران کي خو په ژبه سره ذکر ممنوع دی، لهذا صرف په زړه، زړه کي به درود شريف وايي، نه په ژبه سره. (شامي ج: ٣، ص: ٣٥)

**يادونه**: بعضي ځايونه رواج دي چي خطيب د دې آيت ﴿إِنَّ اللّٰهَ وَمَلٰئِكَتَهُ يُصَلُّوْنَ...إلخ﴾ د ويلو په وخت کي په زوره درود شريف وايي، دا طريقه شرعاً خلاف سنت ده. (انوار الايضاح)

| ﴿٨٣٩﴾ وَالدُّعَاءُ فِيْهَا لِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ بِالْاِسْتِغْفَارِ لَهُمْ ⑯ او دعاء کول په دې (دويمه خطبه) کي د مؤمنانو سړيو او ښځو لپاره په مغفرت غوښتلو (استغفار ويلو) سره د دوی لپاره. |
|---|

فيها د ضمير مرجع الخطبة الثانية ده، بالاستغفار باء په معنیٰ د مع سره ده.

**تشريح**: ⑯... په دويمه خطبه کي د ټولو مسلمانانو نر او ښځي لپاره دعاء غوښتل خصوصاً د خلفاء راشدينو او د صحابه کرامو ذکر کول هم سنت دي.

او په دعاء کي دي د رحمت الهي د حصول، او له آفاتو او مصيبتونو څخه د حفاظت او د اسلام پر دښمنانو د فتح او کاميابي دعاء کول کيږي. (مراقي الفلاح)

## خطبه په زوره ویل

﴿۸۳۰﴾ وَأَنْ يَسْمَعَ الْقَوْمُ الْخُطْبَةَ ⑰ او دا چي واوري خلک (د ده) خطبه (یعني په دومره لوړ آواز سره خطبه ویل چي خلک يې اوري او پوهېدلای سي).

**تشریح:** ⑰... خطبه په دومره لوړ آواز سره ویل چي خلک يې واوري سنت دي. ځکه په جمعه کي مجمع زیاته وي، په همدې وجه خطبه دي پر لوړ ځای ویل کیږي چي ټولو ته آواز ورسیږي او ټوله خطیب ولیدلای سي، د خطیب او د هغه د لاس د اشاراتو په لیدلو سره هم د خبرو په پوهېدلو کي مرسته حاصلیږي. (تحفة الالمعی ج:۲، ص:۳۲۷)



### که چا ته د خطبې آواز نه رسیږي، نو هغه به څه کوي؟

**مسئله:** کوم څوک چي له امام څخه دومره لیري وي چي هغه ته د خطبې آواز بالکل نه رسیږي. د هغه لپاره افضل همدا ده چي خاموشه کښېني او په تلاوت یا په څه ذکر دي نه مشغوله کیږي. "فَأَمَّا البعید منه إذا لم یسمع الخطبة کیف یصنع؟ قال محمد بن سلمة: الإنصات له أولى من قراءة القرآن". (بدائع الصنائع ج:۱، ص:۵۹۳)

## د خطبې زیات مقدار

﴿۸۳۱﴾ وَتَخْفِيفُ الْخُطْبَتَيْنِ بِقَدْرِ سُورَةٍ مِنْ طِوَالِ الْمُفَصَّلِ ⑱ او دواړي خطبې مختصره کول په اندازه د یو سورت له طوال مفصّل څخه (یعني له طوالِ مفصل سورتونو څخه د یو سورت په اندازه دواړه خطبې مختصره ویل، او ډېر نه اوږدول).

**لغات:** ﴿تخفیف﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: سپکول، معتدل کول (اختصار پکښې کول).

**تشریح:** ⑱... خطبه مختصره ویل او زیات نه اوږدول، چي دواړه خطبې د طوالِ مفصل د یوه سورت په اندازه وي، له دې څخه زیاتوب کول مکروه دي.

په مسلم شریف کي حدیث دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: "د سړي د لمانځه اوږد والی او د هغه د خطبې مختصر والی د هغه د پوهې علامت دی" (مراقی الفلاح)، ځکه اوږد تقریر کول (یعني په ډېرو الفاظو سره مطلب بیانول) مشکل نه دي، خو په لږ وخت کي په کمو الفاظو سره مطلب بیانول او د نورو سر ورخلاصول مشکل کار دی. د نن سبا د امامانو عمل د دې برعکس دی، دوی خطبه ډېره اوږدوي او لمونځ ډېر مختصره کوي او دعویٰ د مصلحت کوي، حال دا چي که د خلکو مصلحت ته کوري نو خطبه مختصره ویل او لمونځ د سنت مطابق کول پکار دي، الله تعالی دي د عمل توفیق راکړي (آمین).

## خطبه اوږدول مکروه دي

﴿۸۳۲﴾ وَيُكْرَهُ التَّطْوِيْلُ وَتَرْكُ شَيْءٍ مِّنَ السُّنَنِ او مکروه دي (د خطبې) اوږدول او د يو شي پرېښوول (د خطبې) له سنتونو څخه.

**لغات**: ﴿تطويل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: اوږدول، طول ورکول.

**تشريح**: فرمايي چې خطبه له سنت مقدار څخه اوږدول مکروه دي؛ ځکه په جمعه کې د نورو لمنځونو په نسبت مجمع زياته وي او په حاضرينو کې روغ او مريضان هر ډول خلک وي، نو د هغوی په رعايت کې دي له سنت مقدار څخه اوږده خطبه نه وايي. همدارنګه مخکې چې کوم سنتونه ذکر سول، له هغوی څخه هر يو سنت پرېښوول مکروه دي.

## د اول اذان حکم

﴿۸۳۳﴾ وَيَجِبُ السَّعْيُ لِلْجُمُعَةِ وَتَرْكُ الْبَيْعِ بِالْأَذَانِ الْأَوَّلِ او واجب دي د جمعې لپاره تلل (روانېدل) او بيع پرېښوول په اول اذان سره (تر دې چې د لمانځه څخه فارغ سي) فِي الْأَصَحِّ د صحيح ترين قول مطابق.

**لغات**: ﴿السعی﴾ د فتح د باب مصدر دی، د دې باب له معناوو څخه يوه معنیٰ ده: تګ کول، تلل.

**تشريح**: صورت د مسئلې دا دی چې کله مؤذن د جمعې اول اذان وکړي، نو د جمعې د لمانځه و طرف ته متوجه کېدل او سعی (تګ کول) او بيع (خرڅول او رانيول) پرېښوول واجب دي. له سعي څخه مراد په اطمينان او سکون سره تلل او د هغه اُمورو پرېښوول دي کوم چې د خطبې او لمانځه د حاضرېدلو منافي دي. لهذا د اول اذان له کېدلو څخه وروسته بيع کول يعني خرڅول و رانيول يا په يو بل کار مشغولېدل مکروهِ تحريمي دي.

في الأصح: د بعضي حضراتو (لکه د امام طحاوي رحمه الله او داسي نورو) په نيز هغه اذان معتبر دی کوم چې د امام ومخ ته کيږي (يعني د حرمتِ بيع او سعی الی الجمعه په وجوب کې دويم اذان معتبر دی)، خو دا قول ضعيف دی (عمدة الفقه)، او اول قول اصح دی يعني په حرمتِ بيع او سعی الی الجمعه کې اول اذان معتبر دی، لهذا تر اول اذان وروسته بيع کول يا په يو بل کار مشغولېدل مکروه تحريمي دي. (عمدة الفقه)

**فايده**: د حضرت ابو بکر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې به د جمعې لپاره صرف همدا يو اذان کېدی کوم چې د امام ومخ ته کيږي، خو کله چې د حضرت عثمان رضي الله عنه په زمانه کې د مدينې شريفې آبادي ډېره سوه او دغه اذان د عامو خلکو د اطلاع لپاره کافي نه وو، نو حضرت عثمان رضي الله عنه له دغه اذان

څخه مخکې يو بل اذان اضافه کړی او دا کار د ټولو صحابه وو په مشوره او اجماع سره وسو او دغه د
هم سنت سو. کوم حضرات چې د اُمت اجماع حجّت نه بولي او د صحابه وو آثار هم حجت نه بولي
يعني غير مقلدين، هغوی په دې کې اختلاف کوي او د جمعې اول اذان ته "بدعت عثماني" وايي
حال دا چې دې ته بدعت ويل خپله لوی ضلالت او ګمراهي ده. او دلته له اول اذان څخه مراد هغه اذان
دی کوم چې د حضرت عثمان رضي الله عنه په زمانه کې اضافه کړی سوی دی. (شامي ج: ۱، ص: ۷۷۰)

## د خطبې په دوران کې لمونځ يا خبري کول

﴿۸۳۴﴾ وَإِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ او کله چې را ووځي امام (يعني د خطبې لپاره منبر ته راسي) فَلَا صَلٰوةَ وَلَا كَلَامَ نو نه لمونځ سته او نه خبري سته (يعني بيا نه لمونځ جائز دی او نه خبري) وَلَا يَرُدُّ سَلَامًا او نه دي د سلام جواب ورکوي وَلَا يُشَمِّتُ عَاطِسًا او نه دي د نوږي کونکي د نوږي جواب ورکوي حَتّٰى يَفْرُغَ مِنْ صَلٰوتِهٖ تر دې چې له خپل لمانځه څخه فارغ سي.

**لغات**: ﴿لا يشمّت﴾ د تفعيل له بابه د نفي صيغه ده، تشميت العاطس: نوږي (انتروسي) کونکي ته
يَرْحَمُكَ اللهُ ويل، يا ديو چا په حق کې دا دعاء کول چې هغه په داسي مصيبت مبتلا نه سي چې
دښمن وغيره په خوشاله سي.

**تشريح**: مسئله دا ده چې کله امام د خطبې لپاره منبر ته راسي، نو په دې وخت کې هر قسم لمونځ
کول منع دي، برابره ده د جمعې سنت وي او که يو بل نفل وي لکه تحيةُ المسجد وغيره. او که يو چا د
خطبې له شروع کېدو څخه مخکې سنتِ مؤکده شروع کړي وي، نو راجح دا ده چې د خطبې په شروع
کېدو سره دي هغه نه پرېږدي بلکې هغه دي پوره کړي.

همدارنګه خبري کول هم ممنوع دي، برابره ده دنياوي خبري وي او که ديني خبري وي. تر دې
چې امر بالمعروف او نهي عن المنکر کول هم منع دي، خو که د لاس يا سر يا سترګو په اشاره سره امر د
معروف او نهي د منکر وکړي، نو په دې کې څه حرج نسته. لېکن خطيب امر بالمعروف او نهي عن
المنکر کولای سي.

او د سلام جواب دي نه په ژبه سره ورکوي او نه په زړه سره. او د نوږي (انتروسي) په وخت کې
دي صرف په زړه کې الحمد لله وايي، او د خطبې په وخت کې سلام کونکی ګنهکاره کېږي. (شفاء
الارواح بحوالهٔ عمدة الفقه)

۸۲۵ وَكُرِهَ لِحَاضِرِ الْخُطْبَةِ الْأَكْلُ وَالشُّرْبُ او مکروه دي خطبې ته د حاضرېدونکي کس لپاره خوراک او څښاک کول وَالْعَبَثُ وَالْإِلْتِفَاتُ او لوبي (ساتېرى) کول او شا وخوا کتل.

**لغات**: ﴿عبث﴾ بې فايدې او بې ځايه کار، لغو کار. عَبَثَ يَعْبَثُ عَبَثًا (باب فتح): لا يعني او بې فايدې کار کول. ﴿الالتفات﴾ د افتعال د باب مصدر دی: راسته يا چپه طرف ته مخ گرځول. بې توجهي او بې رخي کول.

**تشريح**: مسئله دا ده چه کله څوک خطبې ته حاضر سي او هغه ته د خطبې آواز رسيږي. نو په غور او توجه سره خطبه اورېدل پکار دي او داسي کار دي نه کوي کوم چي د خطبې په اورېدلو کي خلل وي. مثلاً څه شی خوړل او چيښل. شاوخوا کتل او داسي نور.

۸۲٦ وَلَا يُسَلِّمُ الْخَطِيبُ عَلَى الْقَوْمِ إِذَا اسْتَوَىٰ عَلَى الْمِنْبَرِ او سلام دي نه کوي خطيب و خلکو ته کله چي منبر ته وخېږي.

**لغات**: ﴿استوىٰ﴾ د استفعال د باب ماضي ده: کله چي د دې باب په صله کي "على" راسي نو معنی يې ده: پورته کېدل (لوړېدل)، ختل. (معجم الوسيط)

**تشريح**: کله چي خطيب منبر ته وخېږي، نو سلام کول څه سنت نه دي. ځکه په صحاح ستة وو کي د دې هيڅ ذکر نسته. ليکن نه يې يو خطيب وکړي، نو د دې گنجائش سته (لکه څنګي وخت چي بعضي خطيبان د جمعې په ورځ د خپل خطبې شروع په سلام سره کوي): ځکه په بعضي رواياتو کي د دې ثبوت سته لکه دا روايت عن عطاء أن النبي ﷺ كان إذا صعد المنبر أقبل بوجهه على الناس، فقال: السلام عليكم. (مصنف عبد الرزاق باب تسليم الإمام إذا صعد ج: ۳، ص: ۸۰ حديث رقم: ۵۲۹٦. مصنف ابن ابي شيبة باب الامام إذا جلس على المنبر سلم ج ۱ ص ۴۴۹ حديث رقم ۵۱۹۵ بحوالة ثمرة النجاح، ج: ۲، ص: ۷۷)

## د جمعې تر اذان وروسته له ښار څخه وتل

۸۲۷ وَكُرِهَ الْخُرُوجُ مِنَ الْمِصْرِ بَعْدَ النِّدَاءِ مَا لَمْ يُصَلِّ او مکروه دي له ښاره څخه وتل تر اذان وروسته تر څو چي يې لمونځ نه وي کړی

**تشريح**: مسئله دا ده چي په چا باندي د جمعې لمونځ واجب وي، د هغه لپاره تر زوال وروسته له ښار څخه د سفر لپاره وتل مکروه تحريمي دي. تر دې چي د جمعې لمونځ نه وکړي. خو که تر زوال مخکي له ښار څخه ورځي. نو مکروه نه دي.

﴿۸۳۸﴾ وَ مَنْ لَّا جُمُعَةَ عَلَيْهِ إِنْ أَدَّاهَا او پر کوم چا چې جمعه واجب نه وي که هغه جمعه (د جمعې لمونځ) اداء کړي جَازَ عَنْ فَرْضِ الْوَقْتِ نو جائز کيږي (کافي کيږي) د دې وخت له فرضو (يعني د ماپښين له لمانځه) څخه.

**تشريح:** مسئله دا ده چې پر کوم چا د جمعې لمونځ واجب نه وي لکه مريض، مسافر، نابالغه هلک، يا غلام او داسې نور، که هغه حاضر سي او د خلکو سره د جمعې لمونځ اداء کړي. نو لمونځ يې اداء کيږي او د ماپښين فرض د هغه له غاړې څخه ساقطيږي، مثلاً که يو ښځه يا مسافر د جمعې لمونځ وکړي، نو د ماپښين لمونځ د هغه له ذمې څخه ساقطيږي. بلکې د مسافر سړي لپاره د جمعې لمونځ کول افضل دي، خو د ښځې لپاره په خپل کور کې د ماپښين لمونځ کول افضل دي. (شفاء الارواح)

**که غير معذور د جمعې د لمانځه څخه مخکې د ماپښين لمونځ وکړي، نو څه حکم دی؟**

﴿۸۳۹﴾ وَ مَنْ لَّا عُذْرَ لَهٗ او کوم چا لره چې هيڅ عذر نه وي لَوْ صَلَّى الظُّهْرَ قَبْلَهَا که هغه د ماپښين لمونځ وکړي د جمعې تر لمانځه مخکې حَرُمَ نو حرام دي فَإِنْ سَعٰى إِلَيْهَا وَ الْإِمَامُ فِيْهَا بيا که (د ماپښين تر لمونځ کولو وروسته) د جمعې لمانځه ته ولاړ (روان) سي په داسې حال کې چې امام د جمعې په لمانځه کې وي بَطَلَ ظُهْرُهٗ نو د ده د ماپښين لمونځ باطليږي وَإِنْ لَّمْ يُدْرِكْهَا که څه هم د جمعې لمونځ نه ونيسي (نه ومومندي).

**لغات:** قبلها د ضمير مرجع جمعة (صلاة الجمعة) ده، إليها د ضمير مرجع جمعة ده، ظهره د ضمير مرجع مَنْ دی، ﴿لم يدرك﴾ د افعال له بابه د جحد معلوم صيغه ده، أَدْرَكَ يُدْرِكُ إِدْرَاكًا: د دې باب څو معناوې دي چې له هغوی څخه ځينې دا دي: موندل، نيول، حاصلول، رسېدل، د ها ضمير جمعة ته راجع دی.

**تشريح:** مسئله دا ده چې کوم څوک د جمعې د لمونځ کولو څخه مخکې په خپل کور کې د ماپښين لمونځ وکړي، حال دا چې هغه هيڅ عذر هم نه لري، نو د هغه لمونځ خو کيږي لېکن دا فعل حرام دی.

**فإن سعى إلخ:** يعني که هغه په کور کې د ماپښين د لمونځ کولو څخه وروسته د جمعې په لمانځه کې شرکت کول وغواړي او ور روان سي، نو د دې دوه صورتونه دي: يا خو به هغه د امام سره د جمعې په لمانځه کې شريک سي يا به شريک نه سي، که هغه د امام سره شريک سي او د جمعې لمونځ ونيسي، نو هغه چې مخکې کوم د ماپښين لمونځ کړی دی هغه باطليږي او نفل ګرځي.

او که دا کس د جمعې لمونځ نه ونیسي، نو دئ چې کوم وخت له کور څخه د جمعې د لمانځه وطرف ته راون سوی وي. که په هغه وخت کي امام د جمعې په لمانځه کي وي لېکن د هغه د رسېدلو په وخت کي امام د لمانځه څخه فارغ سوی وي. نو په دې باره کي د امام صاحب رحمه الله مسلک دا دی چې د روانېدلو سره سمدستي د هغه د ماپښین لمونځ باطلیږي، نو اوس به هغه دوباره د ماپښین لمونځ کوي (په بله وینا داسي هم ویل کېدای سي چې کله د ماپښین د لمونځ کولو څخه وروسته دغه کس د جمعې د لمانځه وطرف ته روان سي، نو د هغه د روانېدلو په وخت کي که امام د جمعې په لمانځه کي وي. نو د هغه د ماپښین لمونځ باطلیږي. لهذا که امام ونیسي. نو د جمعې لمونځ دي ور سره وکړي. او که د هغه د رسېدلو په وخت کي امام فارغ سوی وي، نو د هغه د ماپښین خو باطل سوی دی او د جمعې لمونځ یې هم نه ونیوی. نو ځکه د ماپښین لمونځ به راګرځوي). (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

## د معذوره کسانو حکم

﴿۸۵۰﴾ وَكُرِهَ لِلْمَعْذُوْرِ وَالْمَسْجُوْنِ او مکروه دي د معذوره او قیدي لپاره أَدَاءُ الظُّهْرِ بِجَمَاعَةٍ فِي الْمِصْرِ يَوْمَهَا د ماپښین لمونځ په جماعت سره اداء کول په ښار کي د جمعې په ورځ.

**لغات:** ﴿مسجون﴾ د نصر له بابه مفعول دی: بندي کړی سوی، قیدي، یومها د ضمیر مرجع جُمُعَة ده.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چې معذوره کسان مثلاً مریض، ګوډ او شل، ړوند، بندي او داسي نور که په داسي ځای کي وي چې هلته د جمعې لمونځ کیږي، که دوی هلته په جماعت سره د ماپښین لمونځ اداء کړي، نو دا مکروه تحریمي دي، لهذا دوی به په هغه ورځ د ماپښین لمونځ جلا، جلا کوي، همدا حکم په زندان او بندیخانه کي د بندیانو هم دی چې د هغو لپاره د جمعې په ورځ د ماپښین لمونځ په جماعت سره اداء کول مکروه دي؛ ځکه په دې کي په ظاهره د جمعې د لمانځه مقابله معلومیږي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

## د جمعې لمانځه ته د التحیات (تشهّد) په وخت کي رسېدل

﴿۸۵۱﴾ وَمَنْ أَدْرَكَهَا فِي التَّشَهُّدِ أَوْ سُجُوْدِ السَّهْوِ او څوک چي ونیسي د جمعې لمونځ په تشهّد یا په سجدهٔ سهو کي أَتَمَّ جُمُعَةً نو پوره دي کړي همدا د جمعې لمونځ (یعني هغه د جمعې لمونځ ونیوی، لهذا همدا د جمعې لمونځ دي پوره کړي، د ماپښین لمونځ دي نه کوي).

**تشریح:** مسئله دا ده که څوک د جمعې په لمانځه کي امام په تشهّد یا په سجدهٔ سهو کي ونیسي، نو هغه د جمعې لمونځ ونیوی، لهذا دوه رکعته د جمعې لمونځ دي پوره کړي. (دا د شیخینو رحمهما الله مسلک

دی او د امام محمد رحمه الله په نېز د جمعې د نیولو لپاره کم از کم یو رکعت نیول ضروري دي. لهذا څوک چې په آخره ناسته کي د امام سره شریک سي، نو د امام محمد رحمه الله په نېز هغه د جمعې نیونکی نه سو. لهذا هغه به د امام تر سلام ګرځولو وروسته په هاغه تحریمه سره څلور رکعته د ماپښین لمونځ کوي. لېکن فتویٰ د شیخینو رحمهما الله پر قول ده). (شفاء الارواح. انوار الایضاح بحوالة تحفة الالمعي و درمختار)



**فایده**: په جمعه کي عموماً لاندیني دوې خطبې ویل کیږي:

## د جمعې اوله خطبه

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلِيِّ الذَّاتِ عَظِيْمِ الصِّفَاتِ سَمِيِّ السِّمَاتِ كَبِيْرِ الشَّانِ. جَلِيْلِ الْقَدْرِ رَفِيْعِ الذِّكْرِ مُطَاعِ الْأَمْرِ جَلِيِّ الْبُرْهَانِ. فَخِيْمِ الْاِسْمِ عَزِيْزِ الْعِلْمِ وَسِيْعِ الْحِلْمِ كَثِيْرِ الْغُفْرَانِ. جَمِيْلِ الثَّنَآءِ جَزِيْلِ الْعَطَآءِ مُجِيْبِ الدُّعَآءِ عَمِيْمِ الْاِحْسَانِ. سَرِيْعِ الْحِسَابِ شَدِيْدِ الْعِقَابِ أَلِيْمِ الْعَذَابِ عَزِيْزِ السُّلْطَانِ. وَنَشْهَدُ أَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ فِي الْخَلْقِ وَالْأَمْرِ. وَنَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَمَوْلَانَا مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ. اَلْمَبْعُوْثُ اِلَى الْأَسْوَدِ وَالْأَحْمَرِ. اَلْمَنْعُوْتُ بِشَرْحِ الصَّدْرِ وَرَفْعِ الذِّكْرِ. وَصَلَّى اللّٰهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهِ الَّذِيْنَ هُمْ خُلَاصَةُ الْعَرَبِ الْعَرْبَآءِ وَخَيْرُ الْخَلَائِقِ بَعْدَ الْأَنْبِيَاءِ.

اَمَّا بَعْدُ: فَيَآ أَيُّهَا النَّاسُ وَحِّدُوا اللّٰهَ فَاِنَّ التَّوْحِيْدَ رَأْسُ الطَّاعَاتِ. وَاتَّقُوا اللّٰهَ فَاِنَّ التَّقْوٰى مِلَاكُ الْحَسَنَاتِ. وَعَلَيْكُمْ بِالسُّنَّةِ فَاِنَّ السُّنَّةَ تَهْدِيْ اِلَى الْاِطَاعَةِ. وَمَنْ أَطَاعَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهُ فَقَدْ رَشَدَ وَاهْتَدٰى. وَاِيَّاكُمْ وَالْبِدْعَةَ فَاِنَّ الْبِدْعَةَ تَهْدِيْ اِلَى الْمَعْصِيَةِ وَمَنْ يَعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهُ فَقَدْ ضَلَّ وَغَوٰى وَعَلَيْكُمْ بِالصِّدْقِ فَاِنَّ الصِّدْقَ يُنْجِيْ وَالْكِذْبَ يُهْلِكُ. وَعَلَيْكُمْ بِالْاِحْسَانِ فَاِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ. وَلَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ فَاِنَّهُ أَرْحَمُ الرَّاحِمِيْنَ. وَلَا تُحِبُّوا الدُّنْيَا فَتَكُوْنُوْا مِنَ الْخَاسِرِيْنَ. اَلَآ وَاِنَّ نَفْسًا لَّنْ تَمُوْتَ حَتّٰى تَسْتَكْمِلَ رِزْقَهَا فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَأَجْمِلُوْا فِى الطَّلَبِ وَتَوَكَّلُوْا عَلَيْهِ فَاِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِيْنَ. وَادْعُوْهُ فَاِنَّ رَبَّكُمْ مُجِيْبُ الدَّاعِيْنَ. وَاسْتَغْفِرُوْهُ يُمْدِدْكُمْ بِأَمْوَالٍ وَّبَنِيْنَ. أَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ. وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُوْنِيْ أَسْتَجِبْ لَكُمْ. اِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِيْ سَيَدْخُلُوْنَ جَهَنَّمَ دَاخِرِيْنَ. بَارَكَ اللّٰهُ لَنَا وَلَكُمْ فِى الْقُرْآنِ الْعَظِيْمِ. وَنَفَعَنَا وَاِيَّاكُمْ بِالْآيَاتِ وَالذِّكْرِ الْحَكِيْمِ. أَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ لِيْ وَلَكُمْ وَلِسَآئِرِ الْمُسْلِمِيْنَ فَاسْتَغْفِرُوْهُ. اِنَّهُ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ.

# دجمعې دویمه خطبه

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَسْتَعِيْنُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا مَنْ يَّهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ. وَمَنْ يُّضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهُ. نَشْهَدُ أَنْ لَّآ إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ وَنَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَمَوْلَانَا مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ. أَرْسَلَهُ بِالْحَقِّ بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ مَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهُ فَقَدْ رَشَدَ وَمَنْ يَّعْصِهِمَا فَإِنَّهُ لَا يَضُرُّ إِلَّا نَفْسَهُ وَلَا يَضُرُّ اللّٰهَ شَيْئًا. أَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ. إِنَّ اللّٰهَ وَمَلَآئِكَتَهُ يُصَلُّوْنَ عَلَى النَّبِيِّ. يَآ أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا صَلُّوْا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا. اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ عَبْدِكَ وَرَسُوْلِكَ وَصَلِّ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُسْلِمَاتِ وَبَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَأَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ. قَالَ النَّبِيُّ ﷺ: أَرْحَمُ أُمَّتِيْ بِأُمَّتِيْ أَبُوْ بَكْرٍ رضي الله عنه وَأَشَدُّهُمْ فِيْ أَمْرِ اللّٰهِ عُمَرُ رضي الله عنه وَأَصْدَقُهُمْ حَيَآءً عُثْمَانُ رضي الله عنه وَأَقْضَاهُمْ عَلِيٌّ كَرَّمَ اللّٰهُ وَجْهَهُ وَفَاطِمَةُ سَيِّدَةُ نِسَآءِ أَهْلِ الْجَنَّةِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وَحَمْزَةُ أَسَدُ اللّٰهِ وَأَسَدُ رَسُوْلِهِ رضي الله عنه. اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِلْعَبَّاسِ وَوَلَدِهِ مَغْفِرَةً ظَاهِرَةً وَبَاطِنَةً لَّا تُغَادِرُ ذَنْبًا. اَللّٰهَ - اَللّٰهَ فِيْ أَصْحَابِيْ لَا تَتَّخِذُوْهُمْ غَرَضًا مِّنْ بَعْدِيْ فَمَنْ أَحَبَّهُمْ فَبِحُبِّيْ أَحَبَّهُمْ وَمَنْ أَبْغَضَهُمْ فَبِبُغْضِيْ أَبْغَضَهُمْ. وَخَيْرُ أُمَّتِيْ قَرْنِيْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ. وَالسُّلْطَانُ (الْمُسْلِمُ) ظِلُّ اللّٰهِ فِي الْأَرْضِ مَنْ أَهَانَ سُلْطَانَ اللّٰهِ فِي الْأَرْضِ أَهَانَهُ اللّٰهُ. إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ وَإِيْتَآءِ ذِي الْقُرْبٰى وَيَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ، يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ. فَاذْكُرُوْنِيْ أَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوْا لِيْ وَلَا تَكْفُرُوْنِ. وَادْعُوْهُ يَسْتَجِبْ لَكُمْ وَلَذِكْرُ اللّٰهِ تَعَالٰى أَوْلٰى وَأَعْلٰى وَأَعَزُّ وَأَجَلُّ وَأَتَمُّ وَأَهَمُّ وَأَقْوٰى وَأَكْبَرُ. (منتخبي دعاوي، خطب اللكنوية، خطبات السعيد، خطبات الأحكام)



# بَابُ الْعِيْدَيْنِ

(دا) باب د کوچني اختر او لوی اختر (داحکامو په بيان کي) دی

**تشريح**: په هر مذهب او ملت کي د خوښۍ او خوشحالۍ څو ورځي وي، اسلام په ټوله کال کي دوې ورځي مقرري کړي دي: يوه د شوال د مياشتي اوله ورځ ده چي هغه ته کوچنی اختر او عيد الفطر ويل کيږي، او بله د ذی الحجې لسمه ورځ ده چي هغه ته لوی اختر او عيد الاضحیٰ ويل کيږي، دغه دواړي په اسلام کي د عيد او خوشحالۍ ورځي دي، بيا دغه دوې ورځي يې هم عبادت ګرځولي دي چي د دوی شروع د اختر په دوه رکعته لمونځ سره کيږي. (شفاء الارواح)

**عيد ته ولي عيد ويل کيږي**؟: عيد له عَادَ يَعُوْدُ عَوْدًا څخه را اخيستل سوی دی او د عَوْد معنی معلومه ده: واپس راتلل (بيا راتلل)، راګرځېدل، او څرنګه چي دغه مقدسه ورځ هر کال واپس راځي (راګرځي)، نو په دې مناسبت عيد ورته ويل کيږي، يا دا چي په دې ورځ الله ﷻ پر خپلو بندګانو بيا احسانات راګرځوي او بيا يې په خپلو احساناتو سره نازوي.

**د اخترونو مشروعيت**: د اخترونو د وجوب او ثبوت په لړ کي د حضرت انس رضي الله عنه دا حديث زيات أهم دی، هغه فرمايي چي: قدم رسول الله ﷺ المدينة ولأهل المدينة يومان يلعبون فيهما في الجاهلية فقال رسول الله ﷺ: قدمتُ عليكم ولكم يومان تلعبون فيهما في الجاهلية وقد أبدلكم الله خيراً منهما يوم النحر ويوم الفطر (يعني د مديني د خلکو لپاره دوې د بازۍ او خوشحالۍ ورځي وې، کله چي رسول الله ﷺ مديني منورې ته راغلی، نو ورېې فرمايل: الله تعالیٰ تاسي ته د دې په بدله کي دوې بهتري ورځي در کړې، چي هغه يوه د لوی اختر ورځ ده او بله د کوچني اختر ورځ ده).

همدارنګه په بل حديث کي راځي: إن لكل قوم عيدًا وهٰذا عيدنا (يعني هر قوم او هر ملت لره اختر او د خوشحالۍ ورځ وي، او دا زموږ اختر او د خوشحالۍ ورځ ده). (فتح الهدايه)

## د اختر د لمانځه حکم

﴿٨٥٢﴾ صَلَاةُ الْعِيْدَيْنِ د دواړو اخترونو لمونځ وَاجِبَةٌ واجب دی فِي الْأَصَحِّ د صحيح ترين قول مطابق عَلٰى مَنْ تَجِبُ عَلَيْهِ الْجُمُعَةُ پرهغه سړي چي پر هغه د جمعې لمونځ واجب وي

بِشَرَائِطِهَا د جمعې د شرطونو سره سِوَى الْخُطْبَةِ ما سوا له خطبې څخه فَتَصِحُّ نو صحيح كيږي (اداء كيږي) د جمعې لمونځ بِدُوْنِهَا له خطبې څخه بغير مَعَ الْإِسَاءَةِ سره له بدوالي (كراهته) كَمَا لَوْقُدِّمَتِ الْخُطْبَةُ عَلٰى صَلَاةِ الْعِيْدِ لکه څرنګه چي که خطبه د اختر پر لمانځه مخكي كړل سي (نو بد اً مکروه اً دي).

**لغات**: في الأصح په دې قيد سره يې د هغه حضراتو قول رد کړی کوم چي د اختر لمانځه ته سنت مؤكده وايي. بشرائطها يعني کوم چي د جمعې د لمانځه شرطونه دي. برابره ده هغه د صحت او اداء شرطونه دي او که د وجوب. هاغه ټوله شرطونه د اختر د لمانځه هم دي. ﴿الاساءة﴾ د افعال له بابه اسم مصدر دی: بد والی. بد کول. خرابول. په مجردو کي د نصر له بابه راځي: سَآءَ يَسُوْءُ سُوًّا: بد کېدل. خرابېدل. او د اساءة درجه له مکروه تحريمي څه لاندي او له مکروه تنزيهي څخه لوړه ده. ګواکي هغه مکروه تحريمي ته نژدې دی.

**تشريح**: د اختر لمونځ واجب دی د اصح قول مطابق. او بل قول دا دی چي سنت مؤكده دی. د اختر لمونځ پر هغه چا واجب دی پر چا چي د جمعې لمونځ فرض دی. او د جمعې د لمانځه د صحيح کېدلو او فرض کېدلو لپاره چي کوم شرطونه بيان سوي دي. هاغه ټوله د اختر د لمانځه لپاره هم دي. ما سوا له خطبې څخه چي د جمعې په لمانځه کي خو خطبه شرط ده چي له هغې څخه بغير د جمعې لمونځ نه صحيح کيږي. لېکن د اختر په لمانځه کي سنت ده. لهذا که له خطبې څخه بغير د اختر لمونځ اداء کړي. نو لمونځ يې کيږي لېکن داسي کول مکروه تحريمي دي. لکه څرنګه چي څوک د اختر تر لمانځه مخکي خطبه ووايي. نو خطبه يې کيږي لېکن داسي کول مکروه تحريمي دي؛ ځکه دا عمل د سنت متوارثه خلاف دی.



## په اختر کي د خطبې د وروسته کېدلو او په جمعه کي د مخکي کېدلو وجه

د اختر په لمانځه کي د اصل مطابق عمل کول کيږي (او اصل دا دی چي اول لمونځ وکړل سي او بيا خطبه وويل سي. ځکه خلک عموماً په جماعت سره د لمونځ اداء کولو لپاره ځي) او د اختر د لمانځه نوبت په ټوله کال کي صرف دوه واره راځي او په هغه کي د خلکو ښه ذوق او شوق وي او هغو له مخکي څخه تياري کړې وي وختي راځي. نو ځکه د اختر په لمانځه کي د اصل مطابق عمل کول کيږي چي اول دوه رکعته لمونځ اداء کول کيږي. او جمعه په هره اوونۍ کي راځي، په هغه کي که څه هم ذوق او

شوق وي خو د اختر په ښهر نه وي، بلکي بعضي خلګ سستي کوي او نا وخته راځي. نو که په جمعه کي خطبه مخکي نه وويل سي بلکي وروسته کړل سي، نو له دوی ښخه به پوره لمونځ يا رکعت تېر سي، نو ځکه د جمعې په لمانځه کي خطبه مخکي کړل سوه چي نا وخته راتلونکي کسان هم د لمانځه ښخه محروم پاته نه سي. (تحفة الالمعي ج: ۲، ص: ۴۰۵ بتصرف)

## د کوچني اختر يو مستحب عمل

﴿۸۵۳﴾ وَنُدِبَ فِي الْفِطْرِ ثَلَاثَةَ عَشَرَ شَيْئًا او مستحب دي په کوچني اختر کي ديارلس شيان أَنْ يَأْكُلَ ① دا چي (سهار) خوراک وکړي وَأَنْ يَكُونَ الْمَأْكُولُ تَمْرًا وَوِتْرًا ② او د چي خوړل کېدونکي شی خرما وي ③ او طاق شمېر وي.

**لغات:** ﴿المأكول﴾ د نصر له بابه اسم مفعول دی: خوړل کېدونکی شی. ﴿تمر﴾ واحد يې تَمْرَةٌ دی: خرما، کجوره (په اصل کي وچي خرما اچواره ا ته ويل کيږي. او خيشته خرما ته رَطْبٌ ويل کيږي).

**تشريح:** په کوچني اختر کي عيدګاه ته له تګ ښخه مخکي طاق شمېر خرماوي خوړل مستحب دي او که خرما نه وي، نو هسي يو خوږ شی خوړل کافي دي، پر دې موقع يوه ځانګړې شېرني ثابته نه ده. (البحر الرائق ج: ۲، ص: ۱۷۱)

او په کوچني اختر کي دا ديو شی خوړل ځکه مستحب دي چي افطار ثابت سي يعني په عملي توګه دا خبره ښکاره سي چي نن روژه نه ده او د روژې مياشته ختمه سوه. (تحفة الالمعي ج: ۲، ص: ۴۰۴)

## د اختر لپاره ځان پاکول او ښه جامې اغوستل

﴿۸۵۴﴾ وَيَغْتَسِلَ وَيَسْتَاكَ ④ او (مستحب دي دا) چي غسل وکړي ⑤ او مسواک ووهي وَيَتَطَيَّبَ وَيَلْبَسَ أَحْسَنَ ثِيَابِهِ ⑥ او خوشبويي ولګوي ⑦ او په خپلو جامو کي ښه جامې واغوندي.

**لغات:** ﴿يتطيّب﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: خوشبوداره کېدل، خوشبويي لګول (خوشبويي مږل).

**تشريح:** د اختر په ورځ غسل کول، مسواک وهل، خپلې ښه جامې اغوستل او عطر وغيره لګول مستحب دي.

## صدقۀ فطر (سر سایه) اداء کول

﴿۸۵۵﴾ وَیُؤَدِّیْ صَدَقَةَ الْفِطْرِ إِنْ وَجَبَتْ عَلَیْهِ ⑧ او (مستحب دي دا) چي صدقۀ فطر اداء کړي که چیري پر هغه واجب وي.

**لغات:** ﴿صدقة الفطر﴾ سر سایه.

**تشریح:** د روژې له میاشتي (رمضان) څخه مخکي صدقۀ فطر اداء کول جائز دي، لېکن خلاف احتیاط دي او د روژې په میاشته کي اداء کول جائز او صحیح دي او د کوچني اختر په سهار اداء کول زیات افضل او مستحب دي او د اختر له ورځي څخه ځنډول ګناه ده، لېکن کله چي یې اداء کړي، نو ګنهکار نه پاتیږي.

﴿۸۵۶﴾ وَیُظْهِرَ الْفَرَحَ وَالْبَشَاشَةَ ⑨ او (مستحب دي دا) چي ښکاره کړي خوشالي او د مخ ورین والی (په ورین تندي او په ښه توګه ملاقات کول).

**لغات:** ﴿الفرح﴾ د سمع له بابه اسم مصدر دی: خوشحالي، خوشي، ﴿البشاشة﴾ د فتح له بابه اسم مصدر دی: د مخ خلاصوالی او ورین والی، په ورین تندي د یو چا سره یو ځای کېدل (ملاوېدل).

**تشریح:** په دې عبارت کي دوه لفظه ذکر سوي دي: ① "فرح" په معنیٰ د خوشحالی او خوشی سره دي یعني د الله تعالیٰ پر نعمتونو دي شکریه اداء کړي او د خوشحالی اظهار دي په داسي انداز وکړي چي له ظاهر او باطن څخه یې خوشحالي او خوشي ښکاره سي او د زړه له کومي یې د سُرور خوشبویي را پورته سي او په خپل عمل سره دي دا ښکاره کړي چي هغه واقعي د خپل رب اطاعت کونکی دی، او داسي بنده ته په حقیقت کي د خوشحالي جوړولو حق سته. ② "بشاشة"، د دې مطلب دا دی چي د کوم مسلمان ورور سره یو ځای (ملاو) سي، نو په ورین تندي او په خوشحالی دي ورسره یو ځای سي (چي پر مخ یې خوشحالي او پر خوله یې مسکا ځرګنده وي). (انوار الایضاح)



## د اختر په ورځ مبارکي ورکول

**مسئله (۱):** د اختر په ورځ یو بل ته مبارکي ورکول جائز دي "التهنئة بقوله تقبل الله منه ومنکم لا تنکر، بل مستحبة لورود الأثر بها". (طحطاوي ص ۲۸۹، کتاب المسائل ص ۴۴۲)

## د اختر ترلمانځه وروسته روغبړ او ترغاړې کېدنه

**مسئله(۲)**: د اختر تر لمانځه وروسته روغبړ او تر غاړې کېدنه (مصافحه او معانقه) سنت نه دي . هـا! کـه د چا سره په همدې وخت کې ملاقات راسي، یا د لمانځه څخه تر لږ فصل وروسته محض د ملاقات په نیت سره روغبړ او معانقه وسي، نو څه حرج نسته. (مجالس الابرار ص:۲۹۸، کتاب المسائل ص: ۴۴۳)

## د اختر په ورځ صدقه و خیرات کول

﴿۸۵۷﴾ وَكَثْرَةُ الصَّدَقَةِ حَسْبَ طَاقَتِهِ ⑩ او خیرات زیات کـول د خپـل طاقت (وس) مطابق.

**تشریح**: یعني د اختر په ورځ زیاته صدقه او خیراتونه کول پکار دي. خو د دې خبرې خیـال دي ساتي چې له خپل وس او طاقت څخه دي تېرى نه کوي. همدارنګه د دې یو مطلب دا هم کېدلای سي چې کومه سرسایه (صدقۀ فطر) پر هغه واجب ده، تر هغه دي لږ زیات مقدار ورکوي او دا زیاتوب به د هغه لپاره د صدقۀ نافله په درجه وګرځي. (انوار الایضاح)

## د اختر په ورځ سهار وختي را پورته کېدل

﴿۸۵۸﴾ وَالتَّبْكِيْرُ وَهُوَ سُرْعَةُ الْإِنْتِبَاهِ ⑪ او تبکیر او هغه ژر (وختي) وېښېدل دي (یعني وختي را پورته کېدل) وَالْإِبْتِكَارُ وَهُوَ الْمُسَارَعَةُ إِلَى الْمُصَلَّى ⑫ او ابتکار او هغه عیدګاه ته ژر تلل دي وَصَلٰوةُ الصُّبْحِ فِي مَسْجِدِ حَيِّهِ ⑬ او د سهار لمونځ د خپـل کلي په مسجد کې اداء کول.

**لغات**: ﴿تبکیر﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: سهار وختي را وېښېدل (را پورته کېدل)، د سهار په وخت کې راتګ، ﴿ابتکار﴾ د وختي تللو یا ژر تللو کوښښ کول.

**تشریح**: فرمایي چې سهار وختي را پورته کېدل او عیدګاه ته وختي تلل او د سهار لمونځ د خپـل محلې په مسجد کې اداء کول، دا ټول د اخترونو له مستحباتو څخه دي.

## عیدګاه ته پیاده تلل

﴿۸۵۹﴾ ثُمَّ يَتَوَجَّهُ إِلَى الْمُصَلَّى مَاشِيًا مُكَبِّرًا سِرًّا بیا دي روان سي د عیدګاه و طرف ته په پښو (پیاده) په تکبیر ویلو سره په کراره (په ټیټ آواز سره).

**لغات**: ﴿یتوجّهُ﴾ د تفعّل له بابه مضارع معلومه ده: متوجّه کېدل، روانېدل. علامه ابن نجیم مصري رَحِمَهُ الله لیکلي دي چې "یتوجّه" ملته په رفع سره یعني "یتوجّهُ" دی، ځکه د اختر لمانځه ته

تګ کول واجب دي، مندوب (مستحب) نه دي، په همدې وجه مصنف رَحِمَهُ الله طرز بدل کړی او په ثُمّ سره يې داعبارت شروع کړی دی چې داختر لمانځه ته روانېدل به له مذکوره مستحبو افعالو څخه وروسته په آخر کې کېږي، او بيا وروسته ليکي چې داسې هم کېدلای سي چې پر "أن يأكُلَ" عطف سي او منصوب "يتوجّهَ" وويل سي، په دې صورت کې به تأويل داسې کېږي چې محض عيدګاه ته تلل مستحب دي که څه هم داختر لمونځ واجب دی، نو که څوک داختر لمونځ په مسجد کې وکړي او عيدګاه ته ولاړ نه سي، نو هغه سنت پرېښوولی. (البحرا الرائق ج:۱، ص:۱۷۱)

**تشريح**: داختر لمونځ په عيدګاه کې اداء کول سنت دي او دښار په مسجدونو کې يې هم داداء کولو اجازه سته، او عيدګاه ته پياده (په پښو) تلل سنت دي، بېله ضرورته دې پر سپارلۍ نه ځي؛ ځکه په پياده تللو کې عاجزي ده اود سپارلۍ په تګ کې دخپل شان اظهار دی کوم چې دعبادت دشان سره لايق نه دي، او له عيدګاه څخه دواپسۍ پر مهال دسپارلۍ په ذريعه راتلل څه حرج او پروا نه لري. او په کوچنۍ اختر کې په کرار آواز سره او په لوی اختر کې په لوړ آواز سره تکبيرونه ويل مستحب دي.



**عيدګاه کوم ځای ته ويل کېږي؟**

په شرعي توګه عيدګاه يعني داختر دلمونځ اداء کولو ځای هغه ته ويل کېږي کوم چې له آبادۍ څخه بالکل بهر وي او که له آبادي څخه بهر جلا عيدګاه نه وي جوړه سوې، نو په خلاص ميدان کې دي داختر لمونځ اداء کړل سي، داسې ميدان ته هم په وقتي توګه عيدګاه ويل کېږي او دسنت ثواب حاصلېږي او دښار په مسجد کې هم داختر لمونځ بلا کراهته صحيح دی، خو افضل او غوره دا ده چې په عيدګاه کې داختر لمونځ اداء کړل سي. (ايضاح المسائل ص:۳۴)

## تکبيرونه به کله ختموي؟

> ﴿۸۶۰﴾ وَيَقْطَعُهُ إِذَا انْتَهٰى إِلَى الْمُصَلّٰى فِيْ رِوَايَةٍ او ختم دي يې کړي (يعني تکبير ويل دي پرېږدي) کله چې ورسېږي عيدګاه ته، ديوه روايت مطابق وَفِيْ رِوَايَةٍ: إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ او په بل روايت کې دي: چې کله لمونځ شروع کړي (نو بيا دي يې پرېږدي).

**لغات**: ﴿انتهٰى﴾ دافتعال دباب ماضي ده، کله چې ددې باب په صله کې "إلیٰ" راسي نو معنیٰ يې ده: رسېدل، ﴿مُصلّٰى﴾ دلمونځ اداء کولو ځای، "مُصلّی العيد" عيدګاه (هغه ځای چې داختر لمونځ پکښې کېږي)، ﴿افتتح﴾ دافتعال دباب ماضي ده: پېل کول، شروع کول.

**تشریح:** په اختر کې چې کوم تکبیرونه (تکبیر تشریق) ویل کیږي، هغه به کمه پرېږدي او ختموي؟، مصنف رَحِمَهُ الله دلته دوه روایتونه ذکر کړي دي: ① یو دا چې کله چې عیدګاه ته ورسیږي، نو هغه وخت به تکبیرونه پرېږدي، ② دویم روایت دا دی چې کله لمونځ شروع سي یعني جماعت ودریږي، نو تکبیرونه به پرېږدي، "کذا فی الکافی وعلیه عمل الناس. قال أبو جعفر: وبه نأخذ". (مراقی الفلاح علی نور الایضاح)

﴿۸۶۱﴾ وَيَرْجِعَ مِنْ طَرِيقٍ آخَرَ او واپس دې سي (راودې ګرځي) له بلې لارې څخه.

**تشریح:** عیدګاه ته د تګ او راتګ لاره بدلول سنت دي؛ ځکه د نبي کریم ﷺ دا معمول وو چې عیدګاه ته به په کومه لاره ولاړی، نو له هغې خوا څخه به په بله لاره راتلی.

او د لارې بدلولو مختلفه حکمتونه بیان سوي دي چې د هغوی شمېر شلو (۲۰) ته رسیږي. له هغوی څخه اصح دا دی چې په دې عمل کې د اسلام د شعار او د مسلمانانو د اجتماعیت او شوکت اظهار دی. (درس ترمذي)

## د اختر د لمانځه څخه مخکې یا وروسته نفل کول

﴿۸۶۲﴾ وَيُكْرَهُ التَّنَفُّلُ قَبْلَ صَلٰوةِ الْعِيدِ فِي الْمُصَلّٰى وَالْبَيْتِ او مکروه دي نفل کول د اختر تر لمانځه مخکې په عیدګاه او په کور کې وَبَعْدَهَا فِي الْمُصَلّٰى فَقَطْ او د اختر تر لمانځه وروسته صرف په عیدګاه کې عَلَى اخْتِيَارِ الْجُمْهُوْرِ د جمهورو پر اختیار (یعني د جمهورو د اختیار کړل سوي فتوی مطابق).

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې د اختر تر لمانځه مخکې نفلي لمونځ کول مکروه دي، برابره ده په کور کې وي او که په عیدګاه کې وي. او د اختر تر لمانځه وروسته په عیدګاه کې نفل کول مکروه دي، لیکن له عیدګاه څخه راتلل او په کور کې نفل کول بلا کراهته جائز دي او همدا د جمهورو مسلک دی. د "علی اختیار الجمهور" په قید سره د قاضي خان، صاحب التحفه او داسې نورو قول خارج کړی سو؛ ځکه دوی د دې خبرې قائل دي چې د اختر تر لمانځه وروسته په عیدګاه کې څلور رکعته نفل کول جائز او صحیح دي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح بحوالهٔ طحطاوي)

## د اختر د لمانځه وخت کله شروع کيږي؟

﴿۸۶۳﴾ وَ وَقْتُ صِحَّةِ صَلٰوةِ الْعِيْدِ مِنْ اِرْتِفَاعِ الشَّمْسِ قَدْرَ رُمْحٍ أَوْ رُمْحَيْنِ اِلٰى زَوَالِهَا او د اختر د لمانځه د صحيح کېدو وخت دی د لمر له راپورته کېدو څخه په اندازه د يوې نيزې يا دوو نېزو (يعني چې لمر يوه يا دوې نېزه راوخيږي. بيا) د لمر تر زواله پورې.

**لغات**: ﴿ارتفاع﴾ د افتعال د باب مصدر دی: پورته کېدل، لوړېدل، ﴿رمح﴾ نېزه (د دوولسو لوېشتو مقدار) او په عبارت کې له دې څخه مراد د لمر دومره لوړېدل دي چې کله د نفلو اداء کول جائز سي (طحطاوي ص: ۲۹۰)، مثلاً د لمر راختلو څخه تقريباً پنځلس يا شل دقيقې وروسته.

**تشريح**: په دې عبارت کې د اختر د لمانځه د وخت ابتداء او انتهاء بيان سوې ده. د اختر د لمانځه وخت هلته شروع کيږي کله چې لمر د يوې نېزې يا دوو نېزو په اندازه راپورته سي، د نېزې مقدار دوولس لوېشتي ښوول سوی دی (او د ساعت په اعتبار سره دا وخت پنځلس دقيقې ښوول سوی دی چې د لمر راپورته کېدلو څخه تقريباً يو پاؤ وروسته د اختر د لمانځه وخت کيږي)، لېکن د لمانځه لپاره دې داسې وخت وټاکل سي چې په هغه وخت کې خلک په آساني سره عيدګاه ته حاضرېدلای سي، او د اختر د لمانځه آخري وخت د لمر د زوال تر وخته پوري دی، لهذا که څوک د لمر د يوې نيزې له پورته کېدلو څخه مخکې يا تر زوال وروسته د اختر لمونځ وکړي، نو نه صحيح کيږي، همدارنګه که د اختر د لمانځه په دوران کې لمر زوال سي، نو لمونځ فاسديږي، د فاسدېدلو مطلب دا دی چې د اختر لمونځ به نه کيږي، بلکې دوی ته د نفلي لمانځه ثواب حاصليږي. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

## د اختر د لمانځه طريقه

﴿۸۶۴﴾ وَ كَيْفِيَّةُ صَلٰوتِهِمَا او د دواړو اخترونو د لمانځه کيفيت (او طريقه) دا ده أَنْ يَّنْوِيَ صَلٰوةَ الْعِيْدِ چې نيت وکړي د اختر د لمانځه ثُمَّ يُكَبِّرُ لِلتَّحْرِيْمَةِ بيا دې تکبير تحريمه ووايي ثُمَّ يَقْرَأُ الثَّنَاءَ بيا دې ثناء ووايي ثُمَّ يُكَبِّرُ تَكْبِيْرَاتِ الزَّوَائِدِ ثَلَاثًا بيا دې تکبيرات زوائد ووايي درې واره يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِيْ كُلٍّ مِنْهَا پورته کوي دې خپل دواړه لاسونه له دوی څخه په هر يوه کې ثُمَّ يَتَعَوَّذُ ثُمَّ يُسَمِّيْ سِرًّا بيا دې اعوذ بالله او بيا بسم الله ووايي په کراره (په پټه) ثُمَّ يَقْرَأُ الْفَاتِحَةَ ثُمَّ سُوْرَةً بيا دې سورة الفاتحه او بيا سورت ووايي وَ نُدِبَ أَنْ تَكُوْنَ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلٰى او مستحب دي دا چې وي (هغه سورت) سبح اسم ربك الاعلٰى ثُمَّ

يَرْكَعُ بيا دي ركوع وكړي فَإِذَا قَامَ لِلثَّانِيَةِ بيا چي كله دويم ركعت ته ولاړ سي اِبْتَدَأَ بِالْبَسْمَلَةِ ثُمَّ بِالْفَاتِحَةِ ثُمَّ بِالسُّوْرَةِ نو شروع دي وكړي په بسم الله بيا په سورة الفاتحه سره بيا په سورت سره وَنُدِبَ أَنْ تَكُوْنَ سُوْرَةُ الْغَاشِيَةِ او مستحب دي دا چي وي (هغه سورت) سورة الغاشية ثُمَّ يُكَبِّرُ تَكْبِيْرَاتِ الزَّوَائِدِ ثَلَاثًا بيا دي تكبيرات زوائد ووايي درې واره وَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِيْهَا كَمَا فِي الْأُوْلٰى او پورته كوي دي خپل لاسونه په دې كي لكه څرنګه چي (يې پورته كوله) په اول ركعت كي.

**لغات**: ﴿ينوي﴾ د ضرب د باب مضارع ده: نيت كول، داختر د لمانځه پوره نيت داسي دی چي "نيت مي كړی د دوو ركعتو داختر د لمانځه، سره د شپږو تكبيرونو، په دې حاضر امام پسي، مخ پر لوري د كعبي شريفي، (يا په بله ويناني نيت كوم زړه دا خلاصه، لمونځ كوم د كوچني اختر دوه ركعته سره د شپږو تكبيرونو خاص خدايه تالره، په دې حاضر امام پسي، مخ پر لوري د كعبې شريفي، الله اكبر...) ﴿ندب﴾ د كرُم د باب ماضي ده: مستحب كېدل.

**تشريح**: داختر د لمانځه طريقه دا ده چي تر ټولو مخكي به داختر د لمانځه نيت وكړي، او نيت د ارادې نوم دی، په ژبه سره نيت كول ضروري نه دي او كه په ژبه سره هم د نيت الفاظ ووايي، نو ښه ده، او په نيت كي صرف دومره الفاظ په ژبه سره ويل هم كافي دي چي زه د كوچني اختر لمونځ يا د لوی اختر لمونځ په دې امام پسي كوم. (ايضاح الاصباح)

تر نيت كولو وروسته به د نورو لمنځونو په څېر لاسونه تر نامه لاندي وتړي او ثناء (سُبحانك اللّٰهم) به ووايي، بيا به درې واره الله اكبر ووايي، امام به يې په لوړ آواز او مقتديان به يې په كراره ووايي، او په هر تكبير كي به لاسونه غوږو ته پورته كوي او ايله كوي او د هر دوو تكبيرونو په مينځ كي به دومره سكوت كوي چي درې واره سبحان الله پكښې ويل كېدای سي، او له دريم تكبير څخه وروسته به لاسونه نه ايله كوي بلكي تر نامه لاندي به يې وتړي، بيا به امام أعوذ بالله او بسم الله په كراره او الحمد شريف او سورت په زوره (جهراً) ووايي، مستحب دا ده چي په اول ركعت كي "سورة الاعلیٰ" ووايي، او مقتديان به چپ ولاړ وي او په توجّه سره به يې د امام قرائت ته غوږ نيولی وي، بيا به ركوع او سجده وكړي، نو اول ركعت پوره سو.

**فإذا قام للثانية إلخ:** کله چې د دویم رکعت لپاره ولاړ سي، نو اول به امام الحمد شریف او سورت په جهر سره ووايي. مستحب دا ده چې په دویم رکعت کې "سورة الغاشیه" ووايي. په دویم رکعت کې د قرائت تر ختمېدلو وروسته او رکوع ته له تللو څخه مخکې به درې زائد تکبیرونه د اول رکعت په څېر ووايي او دلته به پر درېیم تکبیر هم لاسونه ایله کړي. بیا به بغیر د لاس پورته کولو څخه څلورم تکبیر ووايي او رکوع ته به ولاړ سي او د مخکې په څېر به پاته لمونځ پوره کړي.

**یادونه:** کله چې به د نبي کریم ﷺ اراده په اختر کې د اوږده قرائت کولو وه، نو "سورة قٓ" او "سورة القمر" به یې ویلو او کله چې به یې سپک قرائت کول مقصود وو، نو "سورة الاعلیٰ" او "سورة الغاشية" به یې ویلو. په اولو دوو سورتونو کې په اختصار سره د قرآن کریم ټوله مقاصد بیان سوي دي او د لوی جماعت (اجتماع) پر موقع همدې ته ضرورت وي چې په اختصار او جامعیت سره د دین خلاصه د خلکو مخ ته بیان سي، او په آخرو دوو سورتونو کې د آخرت منظر بیاني او د اُخروي ژوند جوړولو ترغیب دي، دا هم ضروري او اهم مضامین دي او د اجتماع لپاره مناسب دي. په همدې خاطر مصنف رَحِمَهُ الله وفرمایل چې مستحب دا ده چې سورة الاعلیٰ او سورة الغاشية ووايي. (انوار الایضاح)

> ﴿۸۶۵﴾ وَهٰذَا أَوْلٰى مِنْ تَقْدِيمِ تَكْبِيرَاتِ الزَّوَائِدِ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ عَلَى الْقِرَاءَةِ او دا زیات غوره (افضل) دي د تکبیرات زوائدو له مخکې کولو څخه په دویم رکعت کې پر قرائت فَإِنْ قَدَّمَ التَّكْبِيرَاتِ عَلَى الْقِرَاءَةِ فِيهَا بیا که مخکې کړي تکبیرات پر قرائت په دویم رکعت کې جَازَ نو (هم) جائز دي.

**لغات:** ﴿أولی﴾ داسم تفضیل صیغه ده: زیات بنه (غوره، بهتره)، زیات لائق، افضل.

**تشریح:** یعني په دویم رکعت کې هغه درې زائد تکبیرونه له قرائت څخه وروسته او له رکوع څخه مخکې ویل افضل او اولیٰ دي، یعني خاص په دې ځای کې یې ویل واجب نه دي، بلکې افضل دي، لهذا که څوک د اول رکعت په څېر د دویم رکعت په شروع کې له قرائت څخه مخکې دا تکبیرونه ووايي، نو هم جائز دي.

## د اختر تر لمانځه وروسته خطبه ویل

﴿۸٦٦﴾ ثُمَّ يَخْطُبُ الْإِمَامُ بَعْدَ الصَّلٰوةِ خُطْبَتَيْنِ بیا دي دوې خطبې ووايي امام تر لمانځه وروسته يُعَلِّمُ فِيهِمَا أَحْكَامَ صَدَقَةِ الْفِطْرِ چي په هغه دواړو کي دي وښيي د صدقة فطر (سرسایې) احکام.

**تشریح**: د اختر خطبه ویل سنت دي. چي هغه به د اختر تر لمانځه وروسته ویل کیږي. او امام به په خطبه کي د صدقهٔ فطر (سرسایې) د پنځو احکامو ښوونه کوي یعني خلکو ته به دا ورښیي ① چي صدقهٔ فطر پر کوم چا واجب ده؟ ② د چا لپاره واجب ده؟ ③ کله واجب ده؟ ④ څومره واجب ده؟ ⑤ او له کوم شي څخه واجب ده؟. د دې مسائلو تفصیل به ان شاء الله د صدقهٔ فطر په بحث کي راسي.

## د اختر د لمانځه قضاء

﴿۸٦٧﴾ وَمَنْ فَاتَتْهُ الصَّلٰوةُ مَعَ الْإِمَامِ او له چا څخه چي فوت (قضا) سي د اختر لمونځ د امام سره (یعني د امام سره شرکت نه وکړی سي) لَا يَقْضِيهَا نو د هغه قضاء به نه راوړي.

**لغات**: ﴿فاتت﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي معلوم صیغه ده. مصدر: فَوْتًا و فَوَاتًا: فوت کېدل. پاته کېدل (تېرېدل).

**تشریح**: د عبارت مطلب دا دی چي کوم کس د امام سره د اختر لمونځ نه ونیسي یعني امام د اختر لمونځ پوره کړي او فارغ سي او یو کس پاته وي چي هغه د اختر لمونځ نه وي اداء کړی. نو هغه کس ته د قضاء راوړلو اجازه نسته. او که له امام او مقتدیانو دواړو څخه لمونځ فوت سي. نو بیا یې قضاء لازم ده. همدا مطلب علامه شامي رَحِمَهُ الله بیان کړی دی. (شامي ج:۱، ص:۷۸۳)

**یادونه**: له کوم چا څخه چي د اختر لمونځ د هغه په خپل فاسدولو سره فوت سي (یا په بله ورنا خپله یې فاسد کړي)، نو هم هغه د قضاء نسته. مثلاً یو څوک د امام سره د اختر په لمانځه کي شریک سي او بیا له امام څخه مخکي فارغ سي، او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي د فاسدولو په صورت کي قضاء لازم ده. خو اول قول اصح دی. (پورتنی حواله)

﴿۸٦۸﴾ وَتُؤَخَّرُ بِعُذْرٍ إِلَى الْغَدِ فَقَطْ او ځنډول کېدلای سي د کوچني اختر لمونځ دیو عذر په وجه صرف تر سبا ورځي پوري.

**لغات**: ﴿تؤخر﴾ د تفعیل له بابه مضارع مجهوله ده. مصدر: تأخیرًا: وروسته کول. ځنډول. ﴿غد﴾ د سبا ورځ.

**تشریح:** که د یو عذر په وجه د کوچني اختر لمونځ د اختر په ورځ اداء نه سي. مثلاً د سخت باران او داسې نورو په وجه. یا مثلاً د وریځې په وجه میاشته نه وي لیدل سوي او بیا تر زوال وروسته د هغه ځای خلک یا د بهر خلک د میاشتې لیدلو ګواهي ورکړي، نو په دې صورت کې به د اختر لمونځ په را روانه (دویمه) ورځ کول کیږي، او که په یو وجه په دویمه ورځ هم د اختر لمونځ اداء نه سي، نو دریمه ورځ نه سي کېدلای.

## دلوی اختر او کوچني اختر په احکامو کې فرق

﴿۸۶۹﴾ وَأَحۡكَامُ الۡأَضۡحٰى كَالۡفِطۡرِ او دلوی اختر احکام د کوچني ختر (د احکامو) په شېر دي لٰكِنَّهٗ فِي الۡأَضۡحٰى يُؤَخِّرُ الۡأَكۡلَ عَنِ الصَّلٰوةِ لېکن په لوی اختر کې دې ځنډوي (وروسته کوي) خوراک له لمانځه څخه.

**لغات:** ﴿الأضحٰى﴾ په اصل کې هغه پسه وغیره ته ویل کیږي کوم چې په لوی اختر کې قربانول کیږي. یوم الأضحٰی: د قربانۍ ورځ، د لوی اختر ورځ.

**تشریح:** د کوچني اختر چې کوم احکام یعني مستحبات وغیره بیان سول. هاغه ټوله احکام د لوی اختر هم دي، خو په یو څو شیانو کې یې فرق دی: یو دا چې په لوی اختر کې د اختر تر لمانځه مخکې د یو شي نه خوړل مستحب دي بلکې د اختر تر لمانځه وروسته دې شي وخوري او دا هم مستحب ده چې تر ټولو مخکې د خپلې قربانۍ غوښې وخوري، او که د څاروي په ذبح کولو، تیارولو او پخولو کې ډېر وخت کېنوځي، نو بیا دې یو بل شی مثلاً وریجې یا چای وغیره وخوري. (انوار الایضاح تتغیر)

او بل فرق به په را روان عبارت کې ذکر سي.

﴿۸۷۰﴾ وَيُكَبِّرُ فِي الطَّرِيۡقِ جَهۡرًا او تکبیر دې وایي په لاره کې په زوره (په لوړ آواز سره) وَيُعَلِّمُ الۡأُضۡحِيَّةَ وَتَكۡبِيۡرَ التَّشۡرِيۡقِ فِي الۡخُطۡبَةِ او امام دې وښیي په خطبه کې قرباني او تکبیر تشریق وَتُؤَخَّرُ بِعُذۡرٍ إِلٰى ثَلٰثَةِ أَيَّامٍ او ځنډول کېدلای سي د لوی اختر لمونځ د عذر په وجه تر دریو ورځو پوري

**لغات:** ﴿ألاضحية﴾ د قربانۍ څاروی، هغه څاروي کوم چې قربانول کیږي، ذبیحه.

**تشریح:** د کوچني اختر او لوی اختر تر مینځ بل فرق دا دی چې په لوی اختر کې عیدګاه ته د تګ پر مهال به په لوړ آواز سره تکبیر تشریق وایي او په کوچني اختر کې به یې په پټه وایي (لکه مخکې چې هم مونږ ذکر کړه)، او د لوی اختر په خطبه کې به امام خلکو ته د قربانۍ او د تکبیر تشریق احکام ور

بنیي، ① یعني قرباني پر چا واجب ده؟ ② د کومو څارویو قرباني صحیح ده؟ ③ د هغوی عمر به څومره وي؟ ④ او د قربانۍ وخت کله شروع کیږي ⑤ څوک به یې ذبح کوي ⑥ او غوښه به یې څه په کوي، دا ټوله دي ور وښیي. ⑦ او تکبیر تشریق به له کوم وخت څخه تر کومه وخته پوري ویل کیږي، دا دي هم ور وښیي.

او بل دا چي دلوی اختر لمونځ دیو عذر په وجه تر دریو ورځو پوري ځنډولای. یعني که نا څاپه یو عذر پېښ سي مثلاً سخت باران او بادونه وي یا داسي بل مانع عذر. نو دلوی اختر په دویمه او درېیمه ورځ هم اداء کېدلای سي.

**فایده:** د تشریق لغوي معنیٰ ده: غوښه لمر ته وچول. یعني غوښه ټوټه، ټوټه کول او بیا لمر ته ځړول یا اېښوول چي د لمر په تونښ او ګرمۍ سره وچه سي، او څرنګه چي عربو به په همدې دریو ورځو (یعني په ۱۱، ۱۲ او ۱۳ د ذی الحجې به یې) د قربانۍ غوښې وچولې، نو ځکه دا ورځې د تشریق په ورځو (أیام التشریق) سره ونومول سوې، بیا د تکبیر اضافت د هغه وطرف ته وکړی سو چي "تکبیر التشریق". (شفاء الارواح)

## د عرفات د خلکو سره مشابهت اختیارول

﴿۸۴۱﴾ وَالتَّعْرِيفُ لَيْسَ بِشَيْءٍ او (مصنوعي) عرفات جوړول هیڅ شی نه دی (هیڅ اصلیت نه لري).

**تشریح:** دلته د تعریف مطلب په عرفات کي د درېدونکو حاجیانو سره مشابهت اختیارول دي. یعني چي د عرفات په ورځ خلک په یو بل میدان کي سره را جمع سي او د حاجیانو په څېر دعاء او تضرع وکړي، مصنف رَحِمَهُ الله فرمایي چي دا یو داسي شی نه دي چي ثواب ولري. بلکي داسي کول مکروه تحریمي دي؛ ځکه چي وقوف عرفه (یعني په عرفات کي درېدل) یو ځانګړي او مخصوص عبادت دی کوم چي دیو ځانګړي میدان یعني د عرفات د میدان سره خاص دی. لهذا د عرفات له میدان څخه ماسوا په یو بل میدان او بل ځای کي وقوف کول او درېدل عبادت نه سي کېدلای. لکه د حج نور مناسک چي په نورو ځایو کي نه سي اداء کېدلای.

## د تکبیر تشریق حکم، وخت او تفصیل

﴿۸۴۲﴾ وَيَجِبُ تَكْبِيرُ التَّشْرِيقِ مِنْ بَعْدِ فَجْرِ عَرَفَةَ إِلَى عَصْرِ الْعِيدِ او واجب دي تکبیر تشریق د عرفات تر سهار وروسته د اختر تر مازیګره پوري مَرَّةً فَوْرَ كُلِّ فَرْضٍ أُدِّيَ بِجَمَاعَةٍ

مُسْتَحَبَّةٍ (واجب دی) یو وار وېل تر هر داسي فرض لمونځ وروسته فوراً (سمدستي) کوم چي په مستحب جماعت سره اداء سوی وي عَلٰى إِمَامٍ مُقِيْمٍ بِمِصْرٍ (واجب دی) پر داسي امام کوم چي په ښار کي مقیم (استوګن) وي وَعَلٰى مَنِ اقْتَدٰى بِهٖ او پر هغه کس کوم چي په دې امام پسې اقتداء کړې وي وَلَوْكَانَ مُسَافِرًا أَوْ رَقِيْقًا أَوْ أُنْثٰى که څه هم هغه (مقتدی) مسافر وي یا غلام وي یا ښځه وي عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز (یعني دا مذکوره حکم دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز دی) وَقَالَا: يَجِبُ فَوْرَ كُلِّ فَرْضٍ عَلٰى مَنْ صَلَّاهُ وَلَوْ مُنْفَرِدًا أَوْ مُسَافِرًا أَوْ قَرَوِيًّا او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي تکبیر تشریق واجب دی تر هر فرض لمونځ وروسته فوراً پر هر هغه کس کوم چي دا فرض لمونځ کړی وي که څه هم هغه منفرد (یوازي لمونځ کونکی) وي یا مسافر وي یا کلي والا (صحرا والا) وي إِلٰى عَصْرِ الْخَامِسِ مِنْ يَوْمِ عَرَفَةَ (واجب دی) د عرفات له ورځي (۹ د ذی الحجې) څخه د پنځمي ورځي (۱۳ د ذی الحجې) تر مازیګره پوري وَبِهٖ يُعْمَلُ وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى او پر همدې عمل کول کیږي او پر همدې فتوىٰ ده وَلَا بَأْسَ بِالتَّكْبِيْرِ عَقْبَ صَلٰوةِ الْعِيْدَيْنِ او څه پروا نسته د تکبیر تشریق په ویلو کي دا خترونو تر لمانځه وروسته.

**لغات:** ﴿مستحبة﴾ احترازي قید دی، په دې سره د ښځو جماعت او د لڅو خلکو جماعت ووتی.

﴿رقیق﴾ غلام، د واحد او جمع دواړو لپاره وېل کیږي او ځیني وخت د دې جمع أَرِقَّاءُ راځي، د مؤنث لپاره رقیقٌ یا رقیقةٌ وېل کیږي، ﴿أنثی﴾ ماده، ښځینه، جمع: إناث، ﴿قروی﴾ کلیوال (باندې چي)، د صحرا د کلي او علاقې اوسېدونکی، صحرایي، ﴿فور﴾ د هر شي ابتدائي حصه، فوراً (سمدستي)، په هغه ګړي.

**تشریح:** د تکبیر تشریق حکم دا دی چي هغه واجب دی او د تکبیر تشریق وخت دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د ذی الحجې د نهمي ورځي د سهار د لمانځه څخه بیا د ذی الحجې د لسمي ورځي د مازیګر تر لمانځه پوري دی (یا په بله وینا د عرفات د ورځي له سهار څخه د لوی اختر د ورځي تر مازیګره

پوري)، دا ټوله اته لمونځونه کیږي (د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله مسلک به په آخر کي ذکر سي)، او دا تکبیر تشریق یو وار په لوړ آواز سره ویل واجب دي او د ذکر په نیت سره دوه یا دری واره ویل افضل دي.

فور کلٌ: یعني دا تکبیر تر داسي فرضي لمانځه وروسته فوراً (سمدستي) ویل واجب دي کوم چي پر مستحبه طریقه په جماعت سره اداء سوی وي او هغه امام په ښار کي مقیم وي او پر هغه چا هم واجب دی کوم چي د دې امام اقتداء وکړي د لاندیني شرائطو سره (چي تفصیل یې داسي دی):

①... هغه لمونځ به فرضي لمونځ وي، لهذا له وترو، نفلو او د جنازې د لمانځه څخه وروسته تکبیر واجب نه دی.

②... له فرضي لمانځه څخه وروسته به فوراً (سمدستي) وي، لهذا که تر فرضي لمانځه وروسته یو بل عمل موجود سي، یا په خبرو مشغول سي، نو دا تکبیر ساقطیږي.

③... هغه فرضي لمونځ به په مستحب جماعت سره سوی وی، لهذا پر منفرد هم واجب نه دي. د مستحب قید یې لګولی دی، لهذا که یوازي ښځي جماعت وکړي، یا لڅ خلک جماعت وکړي، نو پر هغو تکبیر واجب نه دی.

④... مقیم به وي، پر مسافر واجب نه دی.

⑤... په ښار کي به دننه وي، لهذا د صحرا پر خلګو واجب نه دی (چي هلته د جمعې لمونځ نه کیږي).

وعلی من اقتدی: یعني که مسافر یا د صحرا اوسېدونکی یا ښځه یا غلام په یو داسي کس پسي اقتداء وکړي چي پر هغه تکبیر واجب وي، نو پر دوی هم تکبیر واجبیږي.

وقالا: او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چي پر هر فرضي لمونځ کونکي واجب دی، برابره ده هغه په جماعت کي وي او که یوازي وي، مسافر وي او که مقیم وي، ښار وي او که صحراء وي، پر هر یوه تر فرض لمانځه وروسته فوراً ویل واجب دي، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز د هغه وخت د ذی الحجی د نهمي یعني د عرفات د ورځي د سهار د لمانځه څخه بیا د ذی الحجې د دیارلسمي یعني د لوی اختر د دریمي ورځي د مازیګر تر لمانځه پوره دی، دا ټوله درویشت (۲۳) لمونځونه کیږي چي تر هغوی وروسته تکبیر واجب دی او د اختر د لمانځه سره څلورویشت (۲۴) لمنځونه کیږي. نن سبا عمل پر همدې قول دی او پر همدې فتویٰ ده. (انوار الایضاح، شفاء الارواح بتغیر)

## تکبیرِ تشریق او د هغه ابتداء

﴿۸۷۳﴾ وَ التَّکْبِیْرُ أَنْ یَّقُوْلَ او تکبیر دا دی چي ووایي اَللّٰهُ أَکْبَرُ اَللّٰهُ أَکْبَرُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَ اللّٰهُ أَکْبَرُ اَللّٰهُ أَکْبَرُ وَ لِلّٰهِ الْحَمْدُ الله أكبر، الله أكبر لا إله إلخ (چي د هغه ترجمه ده: الله ډېر لوی دی، الله ډېر لوی دی، له الله څخه بغیر بل هیڅ معبود (دعبادت لائق) نسته او الله ډېر لوی دی، الله ډېر لوی دی او ټول تعریفونه دالله لپاره دي).

**تشریح**: د تکبیرِ تشریق الفاظ په عبارت کي ذکر سوه، دغه تکبیر په ایامُ التشریق کي تر فرضي لمانځه وروسته یو وار ویل واجب دي، په تکبیرِ تشریق کي د دریو مقرّبو بندګانو الفاظ موجود دي: ① کله چي سیّدنا حضرت ابراهیم عليه السلام خپل ګران ځوی حضرت اسماعیل عليه السلام د ذبح لپاره پر ځمکي پرې ایستی او حضرت جبرئیل عليه السلام د رب تعالیٰ له طرفه پسه راوړی، نو حضرت جبرئیل عليه السلام ولیدل چي حضرت ابراهیم عليه السلام دالهي حکم په تعمیل کي څومره ډېر عجلت کونکی دی، نو بې اختیاره یې وفرمایل "اَللّٰهُ أَکْبَرُ اَللّٰهُ أَکْبَرُ"، ② کله چي حضرت ابراهیم عليه السلام آسماني قرباني ولیدله، نو ویې فرمایل "لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَکْبَرُ"، ③ او کله چي حضرت اساعیل عليه السلام په دې خبر سو، نو ویې وفرمایل "اَللّٰهُ أَکْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ". (شامي ج:۱، ص:۷۸۵)



# بَابُ صَلٰوةِ الْكُسُوْفِ وَالْخُسُوْفِ وَالْأَفْزَاعِ

(دا) باب دلمر او سپوږمۍ د ترنځي نیولو دلمانځه او د بېرو [خطرو] د لمانځه (په بیان) کې دی

**تشریح:** "کُسُوف" د ضرب د باب مصدر دی، لغوي معنیٰ یې ده: تغیّر (یو شی بدلېدل)، تاریک کېدل، بیا عرفاً دا لفظ "د لمر د ترنځي" سره خاص سو او "خُسُوْف" هم د ضرب د باب مصدر دی او "د سپوږمۍ ترنځي" ته ویل کیږي، صاحب د انوار الایضاح رَحِمَهُ الله فرمایي: کسوف او خسوف دواړه عام لفظونه دي (یعني) د لمر او سپوږمۍ دواړو په ترنځه نیولو باندې د هر یوه اطلاق کیږي، خو عامة د لمر د ترنځي لپاره کسوف او د سپوږمۍ د ترنځي لپاره خسوف استعمالیږي؛ د نبي کریم ﷺ فرمان دی چي "بېشکه لمر او سپوږمۍ د الله ﷻ له نښو څخه دوې نښې دي، دوی نه د یو چا د مرګ په وجه ترنځه نیسي او نه د یو چا د پیدایښت په وجه، کله چي تاسو دوی په ترنځه کې ووینئ، نو له الله ﷻ څخه دعاء وغواړئ!، تکبیر وواياست او لمونځ وکړئ او خیرات وکړئ!". (شفاء الارواح)

أفزاع: جمع د فَزَعٌ ده: بېره، خوف، لکه د زلزلې، یا د سخت باد، یا د سختې تیارې په وجه چي بېره خپره سي.

## د لمر د ترنځي نیولو لمونځ (صلاة الکسوف)

﴿۸۲۳﴾ سُنَّ رَكْعَتَانِ كَهَيْئَةِ النَّفْلِ لِلْكُسُوْفِ سنت دي (سنت کړ شول سوي دي) دوه رکعته د نفلو په څېر د لمر د ترنځي نیولو لپاره (یعني څرنګه چي د نفلو لپاره اذان، اقامت نه کیږي او څرنګه چي نفل په مکروه وختونو کې نه کیږي او په نفلو کې اوږد قرائت کیږي. همداسي به د ترنځي په لمانځه کې هم کول کیږي چي د هغه لپاره به اذان، اقامت نه کیږي او داسي نور...) بِإِمَامِ الْجُمُعَةِ أَوْ مَأْمُوْرِ السُّلْطَانِ د جمعې په امام دیا د باچا په مامور پسې (یعني چا ته چي سلطان امر کړی وي).

**لغات:** ﴿هیئة﴾ شکل او صورت، طریقه، جمع: هیئات.

**تشریح:** کله چي لمر ترنځه ونیسي، نو په دې وخت کي دوه رکعته لمونځ په جماعت سره اداء کول سنت دي، له دوو څخه زیات رکعتونه هم کولای سي، او که د جماعت موقع نه وي، نو یوازې یې هم کولای سي، وروسته فرمایي چي کوم شرطونه د جمعې دلمانځه د صحیح کېدو لپاره دي، هاغه شرطونه دلمر د ترنځي نیولو دلمانځه لپاره هم دي، ماسوا له خطبې څخه چي په دې لمانځه کې

خطبه نسته. د صلاة الکسوف لپاره درې شیان مستحب دي: ① امام. ② وخت. یعني مکروه وخت به نه وي چې په هغه کې نفل کول مکروه وي، که مکروه وخت وي مثلاً د مازیگر تر لمانځه وروسته لمر ترنځه ونیسي. نو په دې وخت کې به صلاة الکسوف نه کول کیږي. بلکې خلکو ته به د دعاء او استغفار کولو حکم کیږي. ③ ځای. لکه عیدگاه یا جامع مسجد. (درمختار مع شامي ج: ۱. ص: ۷۸۸. ۷۸۹ بحوالۀ انوار الایضاح)

## په صلاة الکسوف کې اذان او اقامت نسته

| ﴿۸۷۵﴾ بِلَا أَذَانٍ وَلَا إِقَامَةٍ (سنت دی د کسوف لمونځ) بغیر له اذان او اقامت څخه. |
|---|

**تشریح:** یعني څرنگه چې په نفلي لمانځه کې اذان او اقامت نسته. همداسې د صلاة الکسوف لپاره به هم علیحده اذان او اقامت نه کول کیږي. خو د خلکو د جمع کولو لپاره به اعلان کول کیږي.

## په صلاة الکسوف کې به قرائت سراً کیږي

| ﴿۸۷۶﴾ وَلَا جَهْرٍ او بغیر له جهر څخه. |
|---|

**تشریح:** د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله رایه دا ده چې د کسوف په لمانځه کې به په کراره قرائت کوي: ځکه هغه د ورځې لمونځ دی (په شپه کې نه کیږي). او د ورځې لمنځونه په کراره اداء کول کیږي. لیکن امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د جهري قرائت قائل دی. لهذا که د مقتدیانو د ترغیب او د لمونځ نه غمیدلو په غرض سره د کسوف په لمانځه کې جهراً قرائت وکړل سي، نو په دې کې څه حرج نسته. وعن محمد روایتان. (شامي ج: ۲. ص: ۶۳)

**فایده:** په صلاة الخسوف یعني د سپوږمۍ د ترنځې نیولو په لمانځه کې که په جماعت سره لمونځ کوي، نو بالاتفاق قرائت به جهراً کوي؛ ځکه چې هغه د شپې لمونځ دی.

## په صلاة الکسوف کې خطبه سته، که نه؟

| ﴿۸۷۷﴾ وَلَا خُطْبَةٍ او بغیر له خطبې څخه. |
|---|

**تشریح:** د لمر د ترنځې نیولو پر موقع نبي کریم ﷺ صرف د الله ﷻ د لویې بیانولو. لمونځ کولو او د صدقه کولو حکم کړی دی او د خطبې حکم یې نه دی کړی او تر لمانځه وروسته چې نبي کریم ﷺ کومه خطبه ویلې وه، هغه یوه خاصه تنبیه وه کوم چې د هغه وخت مناسب وه؛ ځکه د عربو خیال دا وو چې کله یوه حادثه او نوې خبره پېښه سي، نو کائنات غمجن کیږي. څرنگه چې په دې ورځ د نبي کریم ﷺ زوی حضرت ابراهیم رضي الله عنه وفات سوی وو. نو په خلکو کې دا آوازه گډه سوه چې نن د

هغه په غم کې لمر ترنځې نیولی دی. نو ځکه پیغمبر ﷺ یو مختصر بیان وکړی او دا خبره یې څرګنده کړه چې لمر او سپوږمۍ دیو چا د مرګ یا ژوند په خاطر ترنځه نه نیسي، بلکې دا د الله ﷻ د قدرت نښې دي کوم چې یې وخپل مخلوق ته ښیې. (شامي ج:۱، ص:۷۸۹)

﴿۸۲۸﴾ بَلْ يُنَادىٰ: "اَلصَّلوٰةُ جَامِعَةٌ" بلکې آواز (اعلان) به کول کیږي (داسې): چې "لمونځ په جماعت سره کېدونکی دی" (راسئ!) (یا په بله وینا: لمونځ درېدونکی دی. نو هلئ! حاضر سئ!).

**لغات:** ﴿يُنَادىٰ﴾ د مفاعلې له بابه مضارع مجهوله ده. مصدر: مُنَادَاةٌ: بلل (رابلنه)، آواز ورته کول. ﴿الصلاة جامعة﴾ لمونځ په جماعت سره کېدونکی دی، (جماعت کېدونکی دی. یا په بله وینا جماعت درېدونکی دی)، دغه عبارت څلور ډوله ویل کېدلای سي: ① دواړه منصوب ویل یعنې "الصلاةَ جامعةً"، تقدیر د عبارت به داسي وي: "اِحْضَرُوا الصَّلاةَ في حال كونها جامعةً". ② دواړه مرفوع ویل د مبتداء او خبر کېدلو په وجه. ③ اول لفظ یعنې "الصلاة" منصوب ویل د محذوف فعل د مفعول کېدلو په وجه او دویم لفظ "جامعة" مرفوع ویل د محذوفي مبتداء د خبر کېدلو په وجه. اصل عبارت به داسې وي "اِحْضَرُوا الصَّلاةَ هي جامعةٌ". ④ اول لفظ مرفوع ویل د فاعل کېدلو په وجه او دویم لفظ منصوب ویل د حال کېدلو په وجه. اصل عبارت به داسې وي "حَضَرَتِ الصَّلاةُ حال كونها جامعةً".

**تشریح:** مخکې ذکر سوه چې د صلاة الکسوف لپاره به اذان او اقامت نه کول کیږي. نو د خلګو د جمع کولو لپاره به صرف په داسې الفاظو سره هغو ته آواز کول کیږي "الصلاة جامعة" (جماعت درېدونکی دی)، یا په خپله مقامي ژبه به دا اعلان کول کیږي چې لمونځ درېدونکی دی (یا جماعت درېږي او داسې نور).

## په صلاة الکسوف کې د قرائت مقدار

﴿۸۲۹﴾ وَسُنَّ تَطْوِيْلُهُمَا او سنت دي د دې دواړو رکعتونو اوږدول وَتَطْوِيْلُ رُكُوْعِهِمَا وَسُجُوْدِهِمَا او (سنت دي) د دوی رکوع او سجدې اوږدول.

**تشریح:** په صلاة الکسوف کې سنت دا ده چې اوږد قرائت وکړي مثلاً سورة البقرة او سورة آل عمران پکښې ووایي (که چیري ورته یاد وي)، په همدې مناسبت سره رکوع او سجده وغیره دي هم

اوږده وکړي، لکه څرنګه چې له حدیثو څخه د نبي کریم ﷺ داعمل ثابت دی. (در مختار مع الشامي ج: ۳، ص: ۶۳، ط: بیروت)

## د ترنځي د ختمېدو تر وخته پورې دعاء کول

﴿۸۸۰﴾ ثُمَّ يَدْعُو الْإِمَامُ جَالِسًا مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ إِنْ شَاءَ بیا دې دعاء وکړي امام په ناستې مخ پر قبله که یې خوښه وي أَوْ قَائِمًا مُسْتَقْبِلَ النَّاسِ یا (دې دعاء وکړي) په ولاړې مخ پر خلکو (که وغواړي) وَهُوَ أَحْسَنُ او دا (مخ پر خلکو دربدل) زیات ښه دي وَيُؤَمِّنُونَ عَلَى دُعَائِهِ او لمونځ ګزاران دې آمین وایي د امام پر دعاء حَتَّى يَكْمُلَ انْجِلَاءُ الشَّمْسِ تر دې چې پوره سي د لمر روښانه کېدل (یعني لمر په پوره توګه روښانه سي).

**لغات:** ﴿یؤمّنون﴾ د تفعیل له بابه د جمع مذکر غائب مضارع صیغه ده، مصدر: تأمین: آمین ویل. او "آمین" اسم فعل دی معنیٰ یې ده: (اې الله!) قبوله یې کړه!، ﴿انجلاء﴾ د انفعال د باب مصدر دی: ښکاره کېدل، روښانه کېدل (ترنځه او تیاره لیرې کېدل).

**تشریح:** فرمایي تر لمانځه وروسته دې امام د لمر د روښانه کېدو تر وخته پورې دعاء کوي، په لمانځه کې طول کول او په دعاء کې تخفیف کول یا په دعاء کې طول کول او په لمانځه کې تخفیف کول دواړه ښوله جائز دي، د دې لپاره چې د ترنځي وخت په لمانځه او دعاء سره پوره کړل سي. بیا په دغه دعاء کې امام ته اختیار دی چې د دعاء کولو په وخت کې مخ پر قبله کښېني، یا په ولاړې د قوم وطرف ته مخ کوي او خلک به د هغه پر دعاء آمین وایي، همدا دویم صورت غوره دی. (شفاء الارواح)

﴿۸۸۱﴾ وَإِنْ لَّمْ يَحْضُرِ الْإِمَامُ او که امام حاضر (موجود) نه وي صَلَّوْا فُرَادَى نو لمونځ دې وکړي خلک تنها، تنها (یوازي، یوازي) كَالْخُسُوفِ لکه د سپوږمۍ په ترنځه نیولو کې وَالظُّلْمَةِ الْهَائِلَةِ نَهَارًا او (لکه) د ورځې په خوفناکه تیاره (تور تم) کې وَالرِّيحِ الشَّدِيدَةِ وَالْفَزَعِ او په سخت (تېز) باد کې او په بېره (بې قرارۍ) کې.

**لغات:** ﴿ظلمة﴾ تیاره، تاریکه، ﴿هائلة﴾ د نصر له بابه اسم فاعل دی: په بېره کې اچونکی، بېرونکی، خوفناک، هَالَ يَهُوْلُ هَوْلًا: په بېره کې اچول، ﴿الفزع﴾ د دې لفظ څو معناوې نقل سوې دي چې له هغوی څخه یو معنی ده: بېره (خوف)، جمع: أفزاع. (معجم الوسیط)

**تشريح:** ټوله امامان پر دې متفق دي چې صلاة الکسوف (يعني دلمر د ترنځي نيولو لمونځ) په جماعت سره کول سنت دي، او که امام نه وي، نو يوازي لمونځ کول جائز دي، لکه څرنګه چې صلاة الخسوف(يعني د سپوږمۍ د ترنځي نيولو لمونځ) يوازي کول سنت دي او په جماعت سره کول جائز دي. همدارنګه که تېز باد وچليږي، يا د ورځې سخته تياره وغوړيږي، يا د شپې ناڅاپه زياته رڼا ښکاره سي، يا د زلزلې او داسي بل شي په وجه وحشت او بېره خپره سي، يا وبائي مرض وغوړيږي (لکه په اوس وخت کي د کرونا وبا چي که حقيقتاً خپره سي)، نو په داسي حالاتو کي بغير له جماعته يوازي نفلي لمنځونه کول غوره دي. (درمختار مع الشامي بيروت ج: ۳، ص: ۶۴، کتاب المسائل ص: ۴۶۸)



## که د لمر د ترنځي په وخت کي پر آسمان وريځ وغوړيږي؟

**مسئله (۱):** که د لمر د ترنځي نيولو په دوران کي پر آسمان وريځ وغوړيږي، يا ګرز او دوړي سي چي د هغه په وجه د لمر ترنځه نه معلوميږي، نو بيا به هم صلاة الکسوف کول کيږي. (شامي ج: ۳، ص: ۶۲، کتاب المسائل ص: ۴۶۷)

## ښځي به صلاة الکسوف يوازي کوي

**مسئله (۲):** د لمر د ترنځي نيولو په وخت کي ښځو ته پکار دي چي په خپلو کورو کي په لمانځه، دعاء او عبادت مشغولي سي، په جماعت کي دي شرکت نه کوي. (شامي ج: ۳، ص: ۶۴ ط: بيروت، کتاب المسائل ص: ۴۶۸)



# بَابُ الْاِسْتِسْقَاءِ

(دا) د باب د باران د طلب کولو (په بیان کې) دی

**تشریح:**

**د استسقاء لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** د استسقاء لغوي معنیٰ ده: د باران طلب کول، او به غوښتل، او د شریعت په اصطلاح کې د استسقاء معنیٰ ده: د وچکالۍ (قحط سالی) په وخت کې له الله تعالیٰ څخه د باران د طلب کولو لپاره په مخصوص کیفیت سره استغفار او دعاء کول، یا لمونځ کول. اول ځل استسقاء په ۶ هجري کال د رمضان په میاشت کې وسوه، استسقاء په داسي ځای کې مشروع ده چې هلته تالابونه، نهرونه (ویالې) او داسي ځاګان نه وي چې له هغوی څخه خلک او به چیښي او خپلو څاروبو، کښتونو ته له هغوی څخه اوبه ورکوي، یا خو دا شیان (تالابونه، نهرونه او داسي نور) موجود وي، لیکن د دوی د ضرورت لپاره کافي نه وي، او که دا شیان موجود وي او کافي وي، نو خلک به د استسقاء لپاره نه وځي؛ ځکه استسقاء صرف د سخت ضرورت په وخت کې کیږي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

## د باران د طلب کولو د صورتونو بیان

﴿ ۸۸۲ ﴾ لَهُ صَلٰوةٌ مِنْ غَيْرِ جَمَاعَةٍ داستسقاء لپاره لمونځ سته بغیر له جماعت څخه وَلَهُ اسْتِغْفَارٌ او د استسقاء لپاره (صرف) استغفار (هم) سته.

**تشریح:** د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نیز په استسقاء کې په جماعت سره لمونځ کول سنت نه دي، خو جائز بلکي مستحب دي، همدا صحیح ده؛ ځکه له احادیثو او آثارو څخه دا ثابتیږي چې بعضې وخت هغه په جماعت سره سوی دی او بعضي وخت له جماعت څخه بغیر صرف دعاء او استغفار ویل سوي دي، نو له نبي کریم ﷺ څخه چې د استسقاء کومې طریقې روایت سوي دي. له هغوی څخه چې هره طریقه اختیار کړل سي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز په هغه سره سنت اداء کیږي. او هغه روایت سوي طریقې په جماعت سره لمونځ کول، یا تنها، تنها لمونځ کول یا صرف دعاء او استغفار کول دي.

بعضي متعصبينو چي دامام صاحب رحمه الله و طرف ته دا خبره منسوب کړې ده چي په استسقاء کي په جماعت سره لمونځ کول بدعت دي، دا بالکل غلطه ده؛ ځکه دامام صاحب رحمه الله د دې قول(چي په استسقاء کي هيڅ لمونځ مسنون نه دی) مطلب دا دی چي داستسقاء سنت صرف د لمانځه سره خاص نه دی بلکي محض په دعاء او استغفار سره هم دا سنت اداء کيږي. او د دې مطلب دا نه دی چي صلاة الاستسقاء سنت نه دی. او پاته سو د صاحبينو رحمهما الله په نيز دا لمونځ په جماعت سره سنت دی، چي امام به داختر د لمانځه په څېر له اذان او اقامت څخه بغير دوه رکعته د استسقاء لمونځ ورکوي، په دواړو رکعتونو کي به جهر کوي. او د تکبيرات زائده په ويلو کي اختلاف دی، لېکن مشهوره روايت دا دی چي نه به يې وايي. (شفاء الارواح بحوالهٔ عمدة الفقه و درس ترمذی)



## که د استسقاء د لمانځه څخه مخکي باران شروع سي؟

**مسئله:** که د استسقاء د لمانځه اعلان وسي، لېکن تر اوسه لا خلک سره جمع سوي نه وي چي باران شروع سي، نو هم مستحب دا ده چي دالله جل جلاله د شکر اداء کولو لپاره خلک سره جمع سي او د لمونځ او دعاء اهتمام وکړي. (در مختار مع الشامي ج:۳، ص:۷۳)

## د استسقاء د لمانځه مستحبات

﴿۸۸۳﴾ وَيَسْتَحِبُّ الْخُرُوْجُ لَهُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ او مستحب دي داستسقاء لپاره وتل درې ورځي مُشَاةً فِيْ ثِيَابٍ خَلَقَةٍ غَسِيْلَةٍ أَوْ مُرَقَّعَةٍ پياده (وتل) په زړو جامو کي کوم چي پرېولل سوي يا پينه کړل سوي وي (يا په بله وينا داسي جامه چي پينه پکښي لګېدلې وي) مُتَذَلِّلِيْنَ مُتَوَاضِعِيْنَ په داسي حال کي چي عاجزي اختيارونکي، تواضع کونکي وي خَاشِعِيْنَ لِلّٰهِ تَعَالٰى (او) خشوع کونکي (بېرېدونکي او ځان ټيټ ښکاره کونکي) وي الله تعالیٰ لره نَاكِسِيْنَ رُؤُوْسَهُمْ (او په داسي حال کي چي) د خپلو سرونو ټيټ ساتونکي (کښته کونکي) وي مُقَدِّمِيْنَ الصَّدَقَةَ كُلَّ يَوْمٍ قَبْلَ خُرُوْجِهِمْ (او په داسي حال کي چي) مخکي ورکونکي وي د صدقې هره ورځ له خپل وتلو څخه مخکي وَيَسْتَحِبُّ إِخْرَاجُ الدَّوَابِّ وَالشُّيُوْخِ الْكِبَارِ وَالْأَطْفَالِ او مستحب دی ايستل (بهول) د څارويو، سپين ږيرو (بوډاګانو) او کوچنيانو (هم).

**لغات**: ﴿مشاة﴾ جمع د مَاشٍ ده، د ضرب له بابه فاعل دی: پیاده، په پښو تلونکی، ﴿خلقة﴾ مؤنث د خَلَقٌ دی: ځوړ، پخوانی، ﴿غسیلة﴾ مؤنث د غَسِیْلٌ ده: پریولل سوې، جمع: غَسَالی، ﴿مرقعة﴾ د تفعیل له بابه اسم مفعول دی: پینه داره جامه، داسې جامه چې پینه پکښې لګول سوې وي، رَقَّعَ يُرَقِّعُ تَرْقِيْعًا: (په جامه کې) پینه لګول، پیوند لګول، ﴿متذللین﴾ د تفعیل له بابه جمع مذکر اسم فاعل دی، تَذَلَّلَ يَتَذَلَّلُ تَذَلُّلًا: عاجزي اختیارول، ذلیل جوړېدل، ﴿متواضعین﴾ د تفاعل له بابه مخکنی صیغه ده، تَوَاضَعَ يَتَوَاضَعُ تَوَاضُعًا: ذلیل او عاجزه کېدل، ﴿خاشعین﴾ د فتح له بابه مخکنی صیغه ده: د دې باب څو معناوي دي: خَشَعَ يَخْشَعُ خُشُوْعًا: ځان ټیټ ښکاره کول (ځان ټیټول)، د عاجزۍ اظهار کول، ببرېدل او داسې نور، ﴿ناکسین﴾ د نصر له بابه مخکنی صیغه ده، نَكَسَ يَنْكُسُ نَكْسًا: له ذلت او شرمندګۍ څخه سر ټیټول، ﴿دواب﴾ جمع د دَابَّةٌ ده: چارپای، څاروی، ﴿شیوخ﴾ جمع د شَيْخٌ ده: ډېر عمر والا، سپین ږیری، بوډا، ﴿الکبار﴾ جمع د کَبِیْرٌ ده: لوی، لویې مرتبې والا، ﴿أطفال﴾ جمع د طِفْلٌ ده: بچی.

**تشریح**: داستسقاء په لمانځه کي لاندیني شیان مستحب او غوره دي: ① کله چي د باران په موسم کي بالکل باران نه کیږي او د خدای مخلوق بې قراره او پرېشانه وي، نو امام دي داستسقاء د لمانځه څخه مخکي خلکو ته درې ورځي د روژه نیولو او د توبه او استغفار کولو حکم وکړي، بیا دي له خلورمي ورځي څخه داستسقاء لمونځ شروع کړي او درې ورځي پرلپسې دي داستسقاء لمونځ وکړي، ② داستسقاء د لمانځه لپاره دي خلک په پښو ولاړ سي، ③ په هغه ورځو کي د نوو جامو (کالیو) پر ځای خپلي ځړي (زړې) جامې یا پینه سوي جامې واغوندي، ④ د الله لپاره دي تواضع، خشوع او خضوع ښکاره کړي او له شرمندګۍ څخه دي سرونه ټیټ ساتي، فضول خبرې او مذاق وغیره دي نه کوي، ⑤ هر لمانځه ته له وتلو څخه مخکي دي څه صدقه او خیرات وکړي، ⑥ هر کس دي په ریښتوني زړه سره توبه وکړي او پر کوم چا چي د بل چا حق وي، نو هغه دي اداء کړي، ⑦ د ټولو مسلمانانو لپاره دي د بخښني او د عفو او کرم دعاء وکړي، ⑧ خپل کمزوري خلک، سپین ږیري او کوچنیان دي مخکي کړي او په هغوی سره دي دعاء وکړي او د هغوی په وسیله سره دي دعاء وغواړي، ⑨ کوچني بچیان دي له خپلو منډو څخه جلا کړي، د دې لپاره چي د هغو په ژړا او ناکراري سره چاپیریال رقت آمیز او زړه نرمونکی سي، ⑩ دا هم مستحب ده چي خپل څارویان هم

د خپل ځان سره بوځي، د دې لپاره چي هغوی د رحمت الهي د متوجه کېدلو سبب وګرځي. لنډه دا چي د خدای تعالیٰ د رحمت متوجه کېدلو ټول اسباب دي اختیار کړي.

او که په مسجد کي د استسقاء لمونځ کیږي، نو څارویان دي بهر وتړي. (انوار الایضاح)

## په مکه معظمه، مدینه منوّره او بیت المقدس کي به استسقاء چیري کیږي؟

﴿۸۸۴﴾ وَفِيْ مَكَّةَ وَبَيْتِ الْمَقْدِسِ فَفِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَالْمَسْجِدِ الْأَقْصٰى يَجْتَمِعُوْنَ او په مکه او بیت المقدس کي به په مسجد حرم او مسجد اقصیٰ کي خلک جمع کیږي وَيَنْبَغِيْ ذٰلِكَ أَيْضًا لِأَهْلِ مَدِيْنَةِ النَّبِيِّ ﷺ او پکار دي همدا د نبي کریم ﷺ د ښار (مدیني شریفي) خلکو لره (چي په مسجد نبوي کي جمع سي).

**لغات:** ﴿مکة﴾ مبارک ښار چي هلته مسجد حرام او کعبه شریفه ده، او هلته د ګران پیغمبر ﷺ ولادت سوی دی، تعظیماً ورته مکّه معظمه او مکّه مکرّمه ویل کیږي، دا لفظ (مکّة) غیر منصرف دی؛ ځکه په دې کي علمیت او تأنیث لفظي دی، ﴿بیت المقدس﴾ سپېڅلی کور، مبارک ځای، کوم چي د فلسطین مشهوره تاریخي ښار دی، ﴿مسجد الأقصٰی﴾ په بیت المقدس کي مشهوره مسجد چي د هغه بنیاد حضرت داؤد علیه السلام ایښی دی او تکمیل یې حضرت سلیمان علیه السلام کړی دی، ﴿مدینة﴾ د نبي کریم ﷺ مبارک ښار چي هلته نبي ﷺ له مکې څخه هجرت وکړی، او "مدینة" په اصل کي هغه ښار ته ویل کیږي کوم چي ټولو تهذیبي او تمدّني ضروریاتو و لوازماتو لره جامع وي، جمع: مَدَائِن و مُدُن.

**تشریح:** د مکې معظمې خلک دي د استسقاء لپاره په مسجد حرام کي جمع کیږي، د بیت المقدس خلک دي په مسجد اقصیٰ او د مدینې منورې خلک دي په مسجد نبوي کي جمع کیږي، د نورو ځایو خلک دي له آبادۍ څخه بهر یو خالي میدان ته وځي، په مکه او مدینه کي د ضرورت پر موقع داسي کول کیږي. (شفاء الارواح)

## د استسقاء په دعاء کي به امام څنګه دریږي او لاسونه به څنګه پورته کوي؟

﴿۸۸۵﴾ وَيَقُوْمُ الْإِمَامُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ رَافِعًا يَدَيْهِ او امام دي (د استسقاء په دعاء کي) مخ پر قبله دریږي په داسي حال کي چي خپل لاسونه یې پورته کړي وي وَالنَّاسُ قُعُوْدٌ مُسْتَقْبِلِيْنَ

الْقِبْلَةَ يُؤَمِّنُوْنَ عَلٰى دُعَائِهٖ او خلک دي مخ پر قبله ناست وي آمين دي وي د امام پر دعاء.

**تشريح**: په استسقاء کي د دعاء پر مهال دي امام مخ پر قبله ودرېږي: ځکه په دعاء کي د قبلې وطرف ته مخ کول افضل او أقرب إلى الإجابة دي، او په دعاء کي دي لاسونه پورته کړي او ښه دي يې پورته کړي؛ ځکه د کوم مطلب لپاره چي دعاء کول کيږي هغه چي څومره دروند او لوی وي، په هغه کي د لاسونو پورته کول هغومره لوړ بدل پکار دي (عمدة الفقه)، او خلک به مخ پر قبله ناست وي او د امام پر دعاء به آمين وايي، امام به لاندېنۍ مذکوره دعاء وايي (کوم چي په راروان عبارت کي ذکر سوې ده).

**يادونه**: په صحيح حديث سره ثابت دي چي نبي ﷺ د استسقاء د دعاء په وخت کي د عامو دعاګانو په خلاف طريقه اختيار کړې ده چي د مبارکو ورغوو حصه يې د ځمکي وطرف ته او د لاسو پاسنۍ حصه يې د آسمان وطرف ته يا په بله وينا په چپه اړول سوو سره يې دعاء کړې ده، په همدې وجه فقهاؤ هم د استسقاء په دعاء کي دغه کيفيت غوره ګڼلی دی. (طحطاوي على مراقي الفلاح ص: ۳۰۱، کتاب المسائل ص: ۴۷۲)

## د استسقاء دعاء

۸۸۶ يَقُوْلُ امام دي (دا دعاء) ووايي اَللّٰهُمَّ اسْقِنَا غَيْثًا مُغِيْثًا اې الله! موږ او به کړه! په داسي باران سره کوم چي د سختۍ (وچکالۍ) ختمونکی وي هَنِيْئًا مَرِيْئًا مبارک وي. خوندور (په زړه پوری) وي (او بعضو د دې ترجمه کړې ده: اداسي باران! چي په ظاهري او باطني اعتبار سره فايده مند وي) مُرِيْعًا (او داسي باران چي) شين ګياه راوستونکی (د ځمکي زرغونونکی) وي غَدَقًا زيات اوربدونکی وي مُجَلِّلًا (د ټولي ځمکي) پټونکی وي (يعني داسي باران چي په وينو سره ځمکه پټه کړي، يا پټونکی وي د آسمان، په وريځو سره) سَحًّا پرلپسې (مسلسل) اوربدونکی وي طَبَقًا عام (يا متواتر) باران وي (چي د ټولي ځمکي نيونکی وي) دَائِمًا دوامداره وي وَمَا أَشْبَهَهٗ او (يا) کومه دعاء، چي د دې سره مشابه وي (يعني چي په الفاظو او د مقصود په اعتبار کي د دې دعاء په شان وي) سِرًّا أَوْ جَهْرًا په کراره (دې يې وايي) يا په لوړ آواز سره.

**لغات**: ﴿اِسْقِ﴾ د ضرب له بابه د واحد مذکر امر حاضر صيغه ده، مصدر: سَقْيًا: او بول، او به ورکول، ﴿غيث﴾ باران، جمع: غُيُوْثٌ، أَغْيَاثٌ، ﴿مُغِيث﴾ د ميم په ضمه سره: اعانت او مدد کونکی، له

سختی ځخه خلاصونکی. ﴿هنیئـا﴾ د کَـرُمَ لـه بابـه دی: بغیـر لـه مشقت او سـتړیا ځخـه حاصلېدونکی شی، لکه څرنګه چي وېل کیـږي: "أکلتُه هنیئًا مریئًا" ما هغه شی بغیر له څه مشقته ډېر په خوند سره وخوړی، په زړه پوری، مبارک، ﴿مریئـا﴾ خونـدور (مزه دار)، ښه، په زړه پوری. بعضو ویلي دي چي د الهنیئ او المریئ ترمینځ فرق دا دی چي هنیئ ظاهري نفع ته او مریئ باطني نفع ته وایي، نو په دې اعتبار سره د هنیئًا مریئًا معنیٰ داسي هم کېدلای سي (داسي باران) کوم چي په ظاهري او باطني توګه نفع مند وي، ﴿مُریـع﴾ د میم په ضـمه سره: غیث مریـع: شـین ګیاه او خوشحالي راوستونکی باران، همدارنګه هر زیاتوب راوستونکي شي ته هم مُرِیع وایي، ﴿غدقًا﴾ د سمع د باب مصدر دی، غَدِقَ یَغْدَقُ غَدَقًا: باران زیات کېدل، او به زیاتېدل، ﴿مجلّلًا﴾ د تفعیل له بابه اسم فاعل دی، عام، پټونکی، جَلَّلَ یُجَلِّلُ تَجْلِیْلًا: عام کېدل، پټول، یعني په وښو سره د ټوله ځمکي پټونکی یا په وریځي سره د ټوله آسمان پټونکی، ﴿سَحًّا﴾ د سین په فتحه او د حاء په تشدید سره. سَحَّ الْمَاءُ سَحًّا و سُحُوْحًا: او به پرلپسې او زیاتي بهېدل، او رېدل (معجم الوسیط)، ﴿طبقًا﴾ مَطَرٌ طَبَقٌ: عام، متواتر باران.

**تشریح**: د استسقاء پر موقع له نبي کریم ﷺ ځخه څو کلمات ثابت دي، چي له هغوی ځخه یو په متن کي ذکر سوی کلمات دي کوم چي د یادولو قابل دي، یا د دې په مثل الفاظو سره دي بله دعاء وکړي، مثلاً "اللّٰهم اسق عبادك وبهیمتك وانشر رحمتك وأحیِ بلدك المیت". (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

## د خطبي په دوران کي څادر وغیره چپه اړول

﴿۸۸۷﴾ وَلَیْسَ فِیْهِ قَلْبُ رِدَاءٍ او نسته په استسقاء کي د څادر اړول.

**لغات**: ﴿قلب﴾ د ضرب د باب مصدر دی: اړول، یعني چپه اړول، صاحب د معجم د دې لفظ تعریف داسي کړی دی "قَلَبَ الشَّیْءَ قَلْبًا (أی) جَعَلَ أَعْلَاهُ أَسْفَلَه أَوْ یَمِیْنه شِمَاله أَو بَاطِنه ظَاهِرَه..." (معجم الوسیط)، ﴿رداء﴾ څادر (پټو)، جمع: أَرْدِیَةٌ.

**تشریح**: د عبارت له حل ځخه مخکي پوهېدل پکار دي چي په عبارت کي ذکر سوی قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی او یو روایت د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله هم دغه دی، خو دا غیر اصح دی.

اصح قول دا دی چي د استسقاء د خطبې په دوران کي د امام لپاره خپل څادر اړول په سنت (حدیث) سره ثابت دي او دا څادر اړول د نیک فالۍ (تفاؤل) په توګه دي په دې معنیٰ چي اوس کوم د وچکالۍ حالت ته راغلي یو، هغه حالت ته به واپس نه سو هغه حالت به واوړي، دا د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز دي او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه هم یو روایت دغسي دی او پر همدې فتویٰ ده.

**د څادر اړولو طریقه**: دا ده چي د څادر پاسنۍ حصه لاندي کړي او لاندینۍ حصه یې لوړه کړي، یا د څادر راسته طرف وچپه طرف ته او چپه طرف یې وراسته طرف ته واوړي، یادننۍ حصه یې نباندي او دباندینۍ حصه یې دننه کړي، لنډه دا چي په څه طریقه سره یې قلب کولای سي، هغسي دي وکړي، حتیٰ که کوټ (یا مثلاً سدری) وغیره یې اغوستي وي، نو د هغه پاسنۍ حصه دي لاندي کړي او لاندینۍ (داستر) حصه دي یې بنکاره (دباندي) کړي، "قال الشامي بحثًا: واختار القدوري قول محمد رَحِمَهُ الله، لأنه ﷺ فعل ذٰلك، نهر، وعليه الفتویٰ"، "قال الطحطاوي: وعن أبي يوسف روايتان، وفي رواية أخرىٰ أنه مع محمد، وهو الأصح". (انوار الایضاح)

په شفاء الارواح کي یې د څادر اړولو طریقه داليکلې ده چي (کله څادر پر اوږدو وي نو) دواړه لاسونه دي خپل شاته یووسي، په راسته لاس سره دي د څادر د لاندینۍ طرف چپه کونج ونیسي او په چپه لاس سره دي د لاندي طرف راسته کونج ونیسي او بیا دي لاسونه خپل شا ته داسي سره واړوي چي د راسته لاس والا کونج (یعني په راسته لاس کي چي یې د څادر لاندینۍ چپه کونج نیولی دی هغه) په راسته اوږه باندي راسي او د چپه لاس والا کونج په چپه اوږده باندي راسي (په دې طریقه سره ډېر آسانه اوړي)، نو په دې توګه به د څادر پاسنۍ طرف لاندي سي او لاندینۍ طرف به یې لوړ سي، راسته کونج به یې چپه طرف ته او چپه به یې راسته طرف ته واوړي. (بحوالهٔ عمدة الفقه)

| ﴿۸۸۸﴾ وَلَا يَحْضُرُهُ ذِمِّيٌّ او نه دي حاضریږي استسقاء ته ذمي کافر (نو غیر ذمي کافر خو به بیخي نه پربښوول کیږي). |
|---|

**لغات**: ﴿ذمي﴾ هغه کافر چي په اسلامي هیواد کي اوسیږي او اسلامي حکومت له هغه څخه جزیه (ټیکس) اخلي.

**تشریح**: فرمایي چي استسقاء ته به ذمي کفار نه حاضریږي او هغوی به دلته نه پربښوول کیږي؛ ځکه دلته مسلمانان د رحمت نازلېدلو (رحمت اورېدلو) د دعاء لپاره راوتلي دي، حال دا چي پر کفارو لعنت اوریږي. (شفاء الارواح بحوالهٔ حاشیه)



# بَابُ صَلَاةِ الْخَوْفِ

(دا) فصل د بیرې د لمانځه (په بیان کې) دی

**تشریح:** ټوله اُمت پر دې متفق دی چې صلاة الخوف نن هم مشروع دی (د نبي ﷺ د زمانې سره خاص نه دی. بلکې د شروعیت یې باقي دی)، صرف امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله اختلاف کوي. هغه فرمایي چې د نبي ﷺ له زمانې څخه وروسته صلاة الخوف نسته. بلکې اوس به د خوف په حالت کې دوه امامان جوړول کیږي او خلک به دوې ډلې کیږي او هر امام به جلا خپلې ډلې ته پوره لمونځ ورکوي. او دا د نبي کریم ﷺ خصوصیت وو چې هر سړي به خپل آخري لمونځ په نبي ﷺ پسې کول غوښتل. نو ځکه نبي کریم ﷺ به هرې ډلې ته یو، یو رکعت لمونځ ورکوی. لهذا چې امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله له نبوي دور څخه وروسته د صلاة الخوف مشروعیت نه تسلیموي. لیکن دا صحیح نه ده. ځکه د سنن بیهقي په یو اثر کې راغلي دي چې ابو موسیٰ اشعري ﷺ په خپله زمانه کې صلاة الخوف وکړی. همدارنګه له سعد بن ابی وقاص، ابو عبیده بن الجراح څخه هم صلاة الخوف ثابت دی.

او صلاة الخوف څه جلا لمونځ نه دی. بلکې د جهاد او جنګ کولو په دوران کې چې کله د فرضي لمانځه وخت راسي او دا خطره او بېره وي چې که ټوله خلګ په جماعت مشغوله سي. نو دښمن به حمله وکړي، حال دا چې ټوله خلګ صرف په یوه امام پسې لمونځ کول غواړي. نو دوی به دوې ډلې سي چې یوه به د دښمن د مقابلې لپاره ودریږي او بله به په امام پسې ودریږي. طریقه به یې څه وروسته ذکر سي.

## د صلاة الخواف د جواز شرط

﴿۸۸۹﴾ وَهِيَ جَائِزَةٌ او هغه (صلاة الخوف) جائز دی بِحُضُوْرِ عَدُوٍّ د دښمن د حاضر والي (موجود والي) په وخت کې وَبِخَوْفِ غَرْقٍ أَوْ حَرْقٍ او د غرقېدلو یا سوځل کېدلو د بیرې په وخت کې.

**لغات:** ﴿عدو﴾ دښمن. د مذکر او مؤنث، واحد او جمع ټولو لپاره وریل کیږي. ځینې وخت د دې تثنیه او مؤنث هم جلا استعمالیږي. جمع: أَعْدَاء، عِدًى، جمع الجمع: أَعَادٍ.

**تشریح**: د صلاة الخوف د جائز کېدو لپاره شرط دا دی چې دښمن به حاضر وي یعني داسي نژدې وي چې په نظر راځي او په یقین سره دا بېره او خطره وي چې که ټوله خلګ په جماعت مشغوله سي، نو دښمن به حمله وکړي. لهذا که دښمن ډېر لیري وي، نو صلاة الخوف جائز نه دی.

دلته له دښمن څخه مراد دا دی چې یا انساني دښمن وي لکه کفار او داسي نور، یا درنده او ځیرونکي حیوان، یا اپي مار (اژدها) او داسي نور وي.

وبخوف غرق ﺍﻟﺦ: همدارنګه که سخت سېلاب او ماتده راغلی وي او دا بېره وي چې که ټوله په جماعت مشغوله سي او ځیني دا وبو مخنیوی نه وکړي، نو موږ به غرق (ډوب) سو، یا مثلاً څو خلګ په کښتۍ کي وي او طوفاني حالت وي او دا بېره وي چې که د کښتۍ ټوله ملګري په جماعت مشغوله سي، نو غرق به سي. یا یو ځای سخت اُور لګېدلی وي او مخ ته را روان وي او که ټوله حاضرین په جماعت مشغوله سي، نو د سوځېدلو بېره وي، نو په دې ټولو صورتونو کي صلاة الخوف جائز دی.

## د صلاة الخوف طریقه

﴿۸۹۰﴾ وَإِذَا تَنَازَعَ الْقَوْمُ فِي الصَّلٰوةِ خَلْفَ إِمَامٍ وَّاحِدٍ او کله چې اختلاف (او ټینګار) وکړي خلګ په لمونځ کولو کي په یوه امام پسي (مثلاً ټوله مجاهدین غواړي چې صرف په دې یوه امام پسي لمونځ وکړي (کوم چې دوی ته مقبول او خوښ وي)) فَيَجْعَلُهُمْ طَائِفَتَيْنِ نو امام دي هغوی دوه ډلي کړي (پر دوو ډلو دي یې تقسیم کړي) وَاحِدَةً بِإِزَاءِ الْعَدُوِّ یوه دي د دښمن په مقابله کي کړي (یعني یوه ډله دي د دښمن مخ ته واستوي) وَيُصَلِّيْ بِالْأُخْرٰى رَكْعَةً مِنَ الثُّنَائِيَّةِ وَ رَكْعَتَيْنِ مِنَ الرُّبَاعِيَّةِ أَوِ الْمَغْرِبِ او لمونځ دي ور کړي بلې (دویمي) ډلې ته یو رکعت له دوه رکعتیز لمانځه څخه او دوه رکعته (دي ور کړي) له څلور رکعتیز لمانځه یا د ماښام له لمانځه څخه وَتَمْضِيْ هٰذِهٖ إِلَى الْعَدُوِّ مُشَاةً او بیا دي دا (دویمه) ډله ولاړه سي د دښمن وطرف ته پیاده (په پښو) وَجَاءَتْ تِلْكَ او را دي سي هغه (ډله کوم چې د دښمن په مقابله کي وه) فَصَلّٰى بِهِمْ مَا بَقِيَ وَ سَلَّمَ وَحْدَهٗ نو هغو ته دي پاته لمونځ ور کړي او سلام دي وګرځوي امام یوازي (ځکه چې د امام لمونځ پوره سو) فَذَهَبُوْا إِلَى الْعَدُوِّ ثُمَّ جَاءَتِ الْأُوْلٰى بیا دي هغوی ولاړ سي د دښمن وطرف ته (او) بیا دي

هغه اوله ډله راسي ﴿وَأَتَمُّوْا بِلَا قِرَاءَةٍ﴾ او پوره دي کړي دوی (اولي ډلي والا. خپل پاته لمونځ) بغیر له قرائت څخه (ځکه دوی لاحقین دي او پر لاحق قرائت نسته) ﴿وَسَلَّمُوْا وَمَضَوْا﴾ او سلام دي وګرځوي او ولاړ دي سي (د دښمن وطرف ته) ﴿ثُمَّ جَاءَتِ الْأُخْرَىٰ إِنْ شَاءُوْا﴾ بیا دي هغه بله ډله راسي که یې خوښه وه (کنې پر خپل ځای دي هلته پاته سي) ﴿وَصَلُّوْا مَا بَقِيَ بِقِرَاءَةٍ﴾ او پاته لمونځ دي په قرائت سره وکړي (پوره کړي).

**لغات:** ﴿تنازع﴾ د تفاعل له بابه د واحد مذکر غائب ماضي صیغه ده: په خپل مینځ کي اختلاف کول، جنجال کول. ﴿طائفتین﴾ تثنیه د طَائِفَةٌ ده: د خلکو جماعت، ډله، جمع: طَائِفَات و طَوَائِفُ. ﴿إزاء﴾ مقابله، بِإِزاء: په مقابله کي، مخامخ. آزَىٰ يُوَازِيْ مُوَازَةً الرَّجُلَ: یو د بل مقابل او نژدې کېدل. ﴿ثنائیة﴾ مراد: دوه رکعتیز.

**تشریح:** ښکاره دي وي چي صلاةُ الخوف په مختلفو طریقو سره نقل سوی دی، امام ابو داؤد رَحِمَهُ الله اته (۸) طریقې، ابن حزم رَحِمَهُ الله څوارلس (۱۴) طریقې او ابو الفضل عراقي رَحِمَهُ الله اوولس (۱۷) طریقې ذکر کړي دي، خو د احنافو په نېز افضله او غوره طریقه مذکوره طریقه ده (کوم چي په عبارت کي ذکر سوې ده).

حاصل د عبارت دا دی چي کله ټوله حاضر خلک (مثلاً ټوله مجاهدین) پر دې ټینګار وکړي چي موږ صرف په دې یوه امام پسي لمونځ کوو، مثلاً په دوی کي یو شوک بزرګ شخصیت وي چي ټوله په هغه پسي لمونځ کول غواړي، نو طریقه یې دا ده چي امام دي خلک دوې ډلي (دوه جماعته) کړي، د مثال په توګه یوه د "غزنوي صاحب" ډله او بله د "فاروقي صاحب" ډله، نو له دوی څخه دي یوه ډله مثلاً د "فاروقي صاحب" ډله پر محاذ (سنګر) باندي د دښمن د مقابلې لپاره ودرېږي او د "غزنوي صاحب" ډلي ته دي امام یو رکعت لمونځ ورکړي که چیري لمونځ دوه رکعتیز وي مثلاً د سهار لمونځ وي یا سفرانه لمونځ کوي (یعني په څلور رکعتیز لمانځه کي قصر کوي او دوه رکعته کوي)، او که د ماښام لمونځ وي یا څلور رکعتیز لمونځ وي، نو بیا به هغو (د غزنوي ډلي) ته دوه رکعته لمونځ ورکړي، کله چي دا یو رکعت یا دوه رکعته پوره کړي یعني کله چي د اول رکعت له دویمي سجدې څخه سر را پورته کړي یا (په ماښام او څلور رکعتیز لمانځه کي) د دویم رکعت له دویمې سجدې څخه سر را پورته کړي، نو دا ډله (یعني د غزنوي صاحب ډله) دي په پښو ولاړه سي او د شمن مقابلې ته دي ودرېږي، او دویمه د فاروقي صاحب ډله دي راسي (او تر څو چي دا دویمه ډله را رسېږي. تر هغه وخته دي امام کښېني.

انتظار دي وکړي او چي هغوی راسي. نو) امام دي هغو ته یو رکعت یا دوه رکعته لمونځ ور کړي (یعني که دوه رکعتیز لمونځ وي. یو رکعت دي ور کړي. کوم چي د امام آخري رکعت سو او که څلور رکعتیز لمونځ وي. نو دوه رکعته دي ور کړي. کوم چي د امام آخري دوه رکعته سوه)، څرنګه چي دا د امام آخري یو رکعت یا آخري دوه رکعته سوه، نو ځکه اوس دي امام په آخر کي کښېني، تشهد دي ووایي او سلام دي و ګرځوي. او د دغه دویمي ډلي یعني د فاروقي صاحب د ډلي صرف یو رکعت یا دوه رکعته پوره سو، نو هغوی دي د امام سره سلام نه ګرځوي. بلکي بیرته دي د دښمن مخ ته ولاړه سي، او د غزنوي ډله دي بیرته راسي. او خپل پاته لمونځ یعني دویم رکعت یا دریم او څلورم رکعت دي پوره کړي او سلام دي و ګرځوي. او دا بیرته راتګ ضروري نه دی، بلکي که د دوی خوښه وي، نو پر خپلو ځایو هم دا پاته لمونځ پوره کولای سي (شفاء الارواح)، او دا اوله ډله یعني د غزنوي صاحب ډله دي په دې خپل پاته لمانځه کي قرائت نه کوي، ځکه دوی په خپل پاته لمانځه یعني په دویم رکعت یا په دریم او څلورم رکعت کي لاحقین دي، ځکه چي اول یو رکعت یا اول دوه رکعته یې د امام سره نیولی وه، نو ځکه آخري پاته لمونځ به بغیر له قرائت څخه وکړي، ځکه پر لاحق قرائت نسته، تر سلام ګرځولو وروسته دي د غزنوي ډله د دښمن مخ ته ولاړه سي، او د فاروقي ډله دي بیرته راسي او خپل پاته لمونځ یعني یو رکعت یا دوه رکعته دي پوره کړي او سلام دي و ګرځوي، او د دوی لپاره هم بیرته راتګ ضروري نه دی. او دوی یعني د فاروقي صاحب ډله (کوم چي دویمه ډله ده) په خپل دویم رکعت کي مسبوقین دي، ځکه چي دوی د امام سره دویم رکعت یا آخري دوه رکعته نیولی وه، اول یو رکعت یا دوه رکعته څني تېر سوی وه. او څوک چي مسبوق وي، هغه به د قرائت سره خپل پاته لمونځ پوره کوي، نو ځکه د فاروقي صاحب ډله به خپل پاته لمونځ د قرائت سره پوره کړي. (مأخوذ از انوار الایضاح و شفاء الارواح بتغیر)

## پر سپارلي صلاة الخوف کول

﴿٨٩١﴾ وَإِنِ اشْتَدَّ الْخَوْفُ او که (د دښمن) ېېره سخته سي (زیاته سي) صَلُّوا رُكْبَانًا فُرَادىٰ بِالْإِيمَاءِ إِلَى أَيِّ جِهَةٍ قَدَرُوْا نو لمونځ دي وکړي د سپرتیا په حالت کي تنها، تنها په اشاره کولو سره و کوم طرف ته چي د دوی قدرت وي.

**لغات**: ﴿فرادیٰ﴾ دا خلاف القیاس د فَرْدٌ جمع ده او دلته په ترکیب کي حال دی لکه څرنګه چي رُكْبَانًا حال دی. ﴿ایماء﴾ دا افعال د باب مصدر دی: اشاره کول.

**تشریح**: مسئله دا ده چي که د دښمن ېېره ډېره سخته سي په دې توګه چي مسلمانانو ته له سپارلیو څخه د شوه کېدلو موقع لا هم نه ورکوي، نو په داسي صورت کي پر سپارلیو په نلستي د رکوع او سجدې په اشاره سره تنها، تنها لمونځ کول جائز دي، او د قبلې و طرف ته که مخ نه سي اوړلای، نو

وکوم طرف ته چي ممکنه وي، لمونځ دي وکړي، دلته يې د "فُرادیٰ" قيد ځکه لګولی دی چي د سپرتيا په حالت کي په جماعت سره لمونځ کول جائز نه دي، لېکن که پر يوه سپارلي دوه يا زيات کسان سپاره وي، نو د اتحاد مکان په وجه اقتداء صحيح کيږي. (شفاء الارواح)

﴿۸۹۲﴾ وَلَمْ تَجُزْ بِلَا حُضُوْرِ عَدُوٍّ او صلاة الخوف نه جائز کيږي بېله حاضر والي (موجودوالي) د دښمن.

**تشريح**: يعني صلاة الخوف همغه وخت جائز دی کله چي دښمن مخامخ حاضر وي، او که دښمن ليري وي (په دې توګه چي د حملې خطره يې نه وي)، نو صلاف الخوف جائز نه دی (لکه مخکي چي هم ذکر سوه چي د صلاة الخوف د جائز کېدلو شرط د دښمن حاضرېدل او موجودېدل دي).

﴿۸۹۳﴾ وَيُسْتَحَبُّ حَمْلُ السِّلَاحِ فِي الصَّلٰوةِ عِنْدَ الْخَوْفِ او مستحب دي وسله اخيستل (د ځان سره) په لمانځه کي د بيري په وخت کي.

**تشريح**: د صلاة الخوف په حالت کي وسله د ځان سره اخيستل د احنافو په نېز مستحب او افضل دي، واجب نه دي.

﴿۸۹۴﴾ وَإِنْ لَّمْ يَتَنَازَعُوْا فِي الصَّلٰوةِ خَلْفَ إِمَامٍ وَّاحِدٍ او که دوی اختلاف نه وکړي په لمونځ کولو کي په يوه امام پسي فَالْأَفْضَلُ صَلٰوةُ كُلِّ طَائِفَةٍ بِإِمَامٍ نو افضل دي د هري ډلي لمونځ کول په جلا په امام پسي مِثْلَ حَالَةِ الْأَمْنِ د امن د حالت په څېر.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي که د خوف په حالت کي حاضر خلک (مثلاً مجاهدين) په يوه امام پسي په لمونځ کولو باندي ټينګار او اختلاف نه کوي، نو بيا غوره او افضل دا ده چي د خلکو يوه ډله دي د دښمن د مقابلې لپاره ودرېږي او بلې ډلي ته دي امام پوره لمونځ ورکړي او کله چي لمونځ ختم سي نو دا ډله دي د دښمن مقابلې ولېږي او هغه بله ډله کوم چي مخکي د دښمن پر مقابله وه، په هغوی کي دي يو کس ته حکم وکړي چي هغو ته پوره لمونځ ورکړي، ګواکي د امن د حالت په څېر دي دواړه ډلي په دوو جلا امامانو پسي جماعت وکړي.



# بَابُ أَحْكَامِ الْجَنَائِزِ

(دا) باب د جنازې د احکامو (په بيان کې) دی

**تشريح**: کله چې مصنف رَحِمَهُ الله د هغه احکامو له بيان څخه فارغه سو چې د هغوی تعلق د انسان د ژوند سره دی، نو اوس مناسبه معلومه سوه چې هغه احکام بيان کړي کوم چې د انسان د مرګ او تر هغه وروسته حالت سره تعلق لري.

**جنائز** جمع د "جنازة" ده، د جيم په فتحه سره "جَنازة" مړي ته ويل کيږي، او د جيم په کسره سره "جِنازة" تابوت او هغه تختې ته ويل کيږي چې پر هغې مړی پرې ايستل کيږي، بعضو د دې برعکس ويلي دي. (شفاء الارواح)

## د مرګ د حالت احکام

﴿۸۹۵﴾ يُسَنُّ تَوْجِيهُ الْمُحْتَضَرِ لِلْقِبْلَةِ عَلَى يَمِينِهِ سنت دي مخ ګرځول د قريبُ الموت کس (کوم چې د نزع په حالت کې وي) د قبلې وطرف ته وَجَازَ الْإِسْتِلْقَاءُ او جائز دي ستوني ستخ پرې باسل (څملول) وَيُرْفَعُ رَأْسُهُ قَلِيلًا او د هغه سر دې لږ پورته کړی سي.

**لغات**: ﴿توجيه﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مخامخ کول، (ديو چا) مخ اړول، ﴿استلقاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: ستوني ستخ پرې ايستل (پرې باسل).

**تشريح**: مړکېدونکي کس ته الْمُحْتَضَر ويل سوي دي، دا ځکه چې هغه ته مرګ حاضرېدونکی دی، يا د مرګ فرښتې هغه ته حاضرېږي، د مرګ نښې او علامې دا دي چې (۱) د انسان پښې سستې (مړې) سي، ولاړېدلای نه سي، (۲) ساه يې سره تړوله سي او تېزې پکښې راسي، (۳) پزه يې کږه سي، (۴) د خصيتينو (خوټو) پوست يې اوږد سي (او وهرسيږي)؛ لنډه دا چې کله پر انسان د مرګ علامې ښکاره سي، نو سنت دا ده چې دغه قريبُ الموت کس دي په راسته اړخ باندي مخ پر قبله پرې باسي، ځکه چې په قبر کي د مړي د ايښوولو سنت طريقه همدغه ده، نو پر هغه په قياسولو سره به قريبُ الموت کس هم په دې طريقه سره پرې ايستل کيږي، ځکه دا کس قبر ته نژدې دی، او ستوني ستخ پرې باسل يې هم جائز دي او دغه کيفيت (يعني ستوني ستخ...) مختاره او غوره کيفيت شمېرل

سوی دی، ځکه په دې کیفیت کې روح ډېر په آساني سره وځي، په دې صوت کې به د قریب الموت کس پښې د قبلې وطرف ته وي او سر به یې د مشرق و طرف ته وي، خو په دې صورت کې دې د هغه تر سر لاندې بالښت یا بل یو جګ شی هم کېښول شي، د دې لپاره چې مخ یې د قبلې پر طرف شي او د آسمان و طرف ته نه شي، لېکن د دې کیفیت په باره کې هیڅ نص نه دی ذکر سوی، نو ځکه مصنف رَحِمَهُ الله اول کیفیت ته سنت ویلي دي، یعني پر اړخ پرې باسل.

## د تلقین حکم

﴿۸۹۶﴾ وَيُلَقَّنُ بِذِكْرِ الشَّهَادَتَيْنِ عِنْدَهُ مِنْ غَيْرِ إِلْحَاحٍ او تلقین به کول کیږي د شهادت د دواړو کلمو د ذکر کولو د مړي سره (نژدې) بغیر له ټینګار کولو څخه (یا په بله ورنا چې د مړي سره نژدې د کلمهٔ شهادت ویلو تلقین به کول کیږي) وَلَا يُؤْمَرُ بِهَا او حکم به نه کول کیږي هغه ته د دې (کلمهٔ شهادت ویلو).

**لغات:** ﴿یلقن﴾ د تفعیل له باب څخه مضارع مجهوله ده: لارښوونه، پوهول، په ټینګه ورته ویل، د چا مخته په لوړ آواز سره څه ویل چې هغه یې ووایي، ﴿الحاح﴾ د افعال د باب مصدر دی: ټینګار کول، اصرار کول.

**تشریح:** فرمایي چې قریبُ الموت کس ته دې د شهادتېنو تلقین ورکول سي، دا مستحب عمل دی، د تلقین طریقه دا ده چې کله پر انسان د مرګ آثار او علامې ښکاره سي، نو یو څوک دې د هغه سره کېښېني او په لوړ آواز سره دې شهادتېن (کلمهٔ شهادت) یعني "أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللهِ" ووایي، او هغه ته دې حکم نه کوي چې ته دا کلمه ووایه!، ځکه پر هغه دا وخت ډېر د سختۍ وخت وي، داسې نه (نعوذ بالله) چې انکار وکړي، نو خاتمه به یې پر کفر سي، او کله چې دا قریبُ الموت کس یو وار کلمه ووایي، نو تلقین ورکونکی دې چپ سي او دا کوښښ دې نه کوي چې هغه یې بار، بار ووایي؛ ځکه مقصد دا دی چې آخري کلام د هغه له خولې څخه کلمه مبارکه ووځي، نو کله چې هغه کلمه وویله، مقصود حاصل سو، نو ځکه اعاده ته یې ضرورت نسته.

﴿۸۹۷﴾ وَتَلْقِيْنُهُ فِي الْقَبْرِ مَشْرُوْعٌ او هغه ته تلقین کول په قبر کې مشروع (په شریعت کې روا) دي وَقِيْلَ: لَا يُلَقَّنُ او ویل سوي دي (یعني بل قول دا دی): چې تلقین دې نه کول کیږي وَقِيْلَ: لَا يُؤْمَرُ بِهِ وَلَا يُنْهٰى عَنْهُ او ویل سوي دي: چې نه دې د تلقین حکم ورته کول کیږي او نه دې له هغه څخه منع کول کیږي.

**لغات:** ﴿تلقـین﴾ د تفعیـل د بـاب مصـدر دی: د تېـر عبـارت پـه لغـاتو کـې یـې وضـاحت سـو.

﴿مشروع﴾ د فتح له بابه اسم مفعول دی: په شریعت کې روا کړی سوی. په شریعت کې وارداو نافذ.
همدارنګه هغه کار چې په شریعت کې د هغه کول مطلوب وي.

**تشریح:** تر مرګ (مړیني) وروسته په قبر کې مړي ته د تلقین ورکولو په باره کې مصنف رحمه الله
درې قولونه بیان کړي دي (طریقه به یې په آخر کې ذکر سي): ① یو قول دا دی چې په قبر کې تلقین
مشروع دی. ② دویم قول دا دی چې په قبر کې تلقین غیر مشروع دی، لهذا له هغه څخه به منع کول
کیږي. ③ درېیم قول دا دی چې کوم خلک تلقین کوي، هغوی دې نه منع کول کیږي: ځکه په دې
کې څه ضرر نسته، او کوم خلک چې یې نه کوي، هغو ته به د تلقین هدایت نه کول کیږي، ځکه که
چیري مؤمن مړ سوی وي، نو هغه ته خو د تلقین ضرورت نسته او که کافر مړ سوی وي. نو هغه ته
تلقین هیڅ فایده نه کوي. لنډه دا چې عمل پر دواړو دی یعني د مرګ (زکندن) او دفن (ښخولو) دواړو
په وخت کې تلقین کیږي. (عمدة الفقه)

او په قبر کې د تلقین طریقه او صورت دا دی چې کله مړی دفن (ښخ) کړل سي او خلک ولاړ
سي، نو یو څو خاص کسان دې درې واره دا ووایي چې اې فلان بن فلان! ووایه "لَا إِلٰهَ إِلَّا الله". بیا دې
درې واره ورته ووایي چې اې فلانکیه! ووایه چې زما رب الله دی، زما دین اسلام او زموږ نبي (پېغمبر)
حضرت محمد ﷺ دی (په لنډه ویلو دا چې مړي ته دې د نکیر منکر د سوال او جواب یادونه وکړي او همدارنګه هغه
ته دې د ثابت قدمی دعاء وکړي. لکه څرنګه چې په حدیث کې وارد دي: "قال: كان النبي ﷺ إذا فرغ من دفن الميت
وقف عليه، فقال: استغفروا لأخيكم واسألوا له بالتثبيت، فإنه الآن يُسأل" (ابو داؤد شریف، حدیث رقم: ۳۲۲۱). (شفاء
الارواح بحوالة ایضاح الاصباح، ثمرة النجاح)

## قریبُ الموت کس ته د قریبانو او همسایه ګانو د راتللو حکم

﴿۸۹۸﴾ وَيُسْتَحَبُّ لِأَقْرِبَاءِ الْمُحْتَضَرِ وَجِيرَانِهِ الدُّخُولُ عَلَيْهِ او مستحب دي د قریبُ الموت کس د
قریبانو او همسایه ګانو لپاره هغه ته ورتلل.

**لغات:** ﴿جیران﴾ جمع د جَارٌ ده: همسایه ګان (ګاونډیان).

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چې کله یو انسان مرګ ته نژدې سي (زکندن یې سي)، نو په دې وخت
کې دې قریبان، همسایه ګان او ملګري (دوستان) وهغه ته راسي، یا په بله وینا پر هغه دې پوښتنه
وکړي: ځکه دا د هغه آخري وخت دی، نو په دې آخري وخت کې دې د هغه سره ملګرتیا وکړي او د
هغه خدمت دې وکړي. د مریض پر عیادت ډېر زیات ثواب وارد سوی دی.

او صاحب د "انوار الایضاح" د "مراقی الفلاح" په حواله سره لیکلي دي چې په آخري وخت کې د مړ کېدونکي کس تنده ډېره زياته وي، نو ځکه شيطان يخې اوبه د ځان سره راوړي او وايي چې ووايه! زما څخه بغير بل هيڅ معبود (خدای) نشته، زه به تا ته اوبه درکړم (نعوذ بالله من ذلك). حاضر خلک دې مړ کېدونکي کس ته اعتماد او ډاډ ورکړي چې الله تعالیٰ به ستا سره ښه معامله وکړي. ته د الله سره ښه ګومان وساته!. په حديث کې دي "أَنَا عِنْدَ ظَنِّ عَبْدِي بِي" يعني زه بنده ته د هغه د ګومان مطابق بدله (جزاء) ورکوم، که چيري هغه ښه ګومان ساتي، نو ښه بدله، کنې بده بدله ورکوم. (مراقی الفلاح ص:۳۰۸)

## د "سورت يس" لوستلو حکم

| |
|---|
| ﴿۸۹۹﴾ وَيَتْلُوْنَ عِنْدَهٗ سُوْرَةَ يٰسٓ او دوی (حاضرين) دې د مړي سره سورة يٰسٓ تلاوت کړي وَ اسْتُحْسِنَ سُوْرَةُ الرَّعْدِ او سورة الرعد ويل (هم) ښه ګڼل سوي دي. |

**لغات:** ﴿يتلون﴾ د نصر له بابه جمع مذکر غائب مضارع معلومه ده: تلاوت کول، لوستل. ﴿استحسن﴾ د استفعال له بابه ماضي مجهوله ده: ښه ګڼل، خوښول.

**تشريح:** د مړ کېدونکي کس (قريب الموت) سره ﴿سورة يٰس﴾ ويل مستحب دي، په دې سره د مرګ په سختي کې کمي راځي، او د ﴿سورة الرّعد﴾ ويل هم ښه ګڼل سوي دي، په دې سره په روح وتلو کې آساني راځي.

## د ناپاکه کسانو د ايستلو حکم

| |
|---|
| ﴿۹۰۰﴾ وَاخْتَلَفُوْا فِيْ إِخْرَاجِ الْحَائِضِ وَالنُّفَسَاءِ مِنْ عِنْدِهٖ او اختلاف سوی دی په ايستلو (ليري کولو) کې د حيض او نفاس والا ښځې د مړي له نژدې څخه. |

**تشريح:** په دې باره کې اختلاف دی چې حيض او نفاس والا ښځه همدارنګه جنب کس به له مړي څخه ليري کول کيږي او ايستل کيږي، که نه؟ او دا اختلاف صرف په اولیٰ کېدلو (اوليت) کې دی، په وجوب کې نه دی، نو بعضي حضرات فرمايي چې د مړي له ځايه دوی ليري کول يا خپله د دوی ليري کېدل اولیٰ (غوره) دي؛ ځکه د دوی په موجوديت سره د رحمت ملائکې نه راځي. او د بعضو په نېز حيض او نفاس والا ښځه مړي ته راتللای سي؛ ځکه د شفقت او ضرورت په وجه دوی له هغه ځايه ايستل ممکن نه دي. (شفاء الارواح بحوالهٔ عمدة الفقه و حاشيه)

﴿۹۰۱﴾ فَإِذَا مَاتَ بیا چې کله هغه (قریب الموت کس) مړ سي شُدَّ لَحْيَاهُ نو د هغه زامې دې ور وتړل سي وَغُمِّضَ عَيْنَاهُ او سترګې دې یې ورپټې کړل سي وَيَقُولُ مُغَمِّضُهُ او سترګې ور پټونکي کس دې ووایي بِسْمِ اللهِ وَعَلَى مِلَّةِ رَسُولِ اللهِ ﷺ اَللّٰهُمَّ يَسِّرْ عَلَيْهِ أَمْرَهُ وَ سَهِّلْ عَلَيْهِ مَا بَعْدَهُ وَأَسْعِدْهُ بِلِقَائِكَ وَاجْعَلْ مَا خَرَجَ إِلَيْهِ خَيْرًا مِّمَّا خَرَجَ عَنْهُ "بسم الله وعلى ملة رسول الله ﷺ اللهم يسر الخ" (چې د هغه ترجمه ده: د الله تعالیٰ په نامه سره او د رسول الله ﷺ پر دین (د اعمل کوم) اې الله! آسانه کړه! پر دې مړي د ده کار (موجوده حالت) او آسانه کړه! پر ده تر دې وروسته حالات او نېکبخته یې کړه! په خپل ملاقات (دیدار) سره او وګرځوه! هغه ځای چې ورغلی دی (یعني قبر و آخرت) بهتره له هغه ځای څخه چې ځني تلی دی (یعني دنیا)).

**لغات:** ﴿شُدَّ﴾ د نصر له بابه ماضي مجهوله ده، شَدَّ يَشُدُّ شَدًّا: تړل، کشول. ﴿لحياه﴾ د لام په فتحه سره تثنیه د لَحْيٌ ده، د اضافت په وجه نون د تثنیه حذف سو، زامه (ژامه)، هغه هډوکي چې ژیره باندې راشنه کیږي (چې راسته او چپه دواړو طرفونه ته دي)، همدارنګه هغه هډوکي چې غاښونه پکښې (راشنه سوي) دي. ﴿غمّض﴾ د تفعیل د باب ماضي مجهوله ده: بندول، ور پټول. ﴿مِلّة﴾ مذهب، جمع: مِلَل. ﴿يَسِّرْ﴾ د تفعیل له بابه د واحد مذکر امر حاضر صیغه ده: آسانه کول. ﴿سَهِّلْ﴾ مخکینۍ صیغه ده: آسان جوړول، سهولت ورکول. ﴿أَسْعِدْهُ﴾ د افعال له بابه د واحد مذکر امر حاضر صیغه ده: نېکبخته جوړول، خوشاله جوړول.

**تشریح:** کله چې انسان مړ سي او روح یې له تنه ووځي، نو د هغه زامې دې په کپړه وغیره سره وتړل سي او د هغه طریقه دا ده چې د کپړې یوه پراخه رېښکۍ دې د هغه له زني څخه لاندې را وسټل سي او پر سر دې غوټه کړل سي چې خوله یې سره ونیول سي او خلاصه پاته نه سي، او دواړې سترګې دې یې ور پټې کړل سي د دې لپاره چې بنه معلوم سي؛ ځکه که خوله او سترګې یې خلاصه پاته سي. نو صورت یې نامناسبه او خوفناکه معلومیږي، او د دې لپاره چې د غسل په وخت کې یې خولې ته اوبه داخله نه سي. او د سترګو دور پټولو په وخت کې دې مذکوره پورتنۍ دعاء ووایي.

﴿۹۰۲﴾ وَيُوضَعُ عَلَى بَطْنِهِ حَدِيدَةٌ او د مړي پر خېټه (نس) دي کېښېنول سي او سپنه لِئَلَّا يَنْتَفِخَ د دې لپاره چي نه وپړسيږي.

**لغات:** ﴿ينتفخ﴾ د افتعال د باب مضارع ده: پړسېدل (پاړسوب کول)، راپورته کېدل. د مقدر أَنْ ناصبه په وجه منصوب دی.

**تشريح:** فرمايي چي تر مرګ وروسته دي د مړي پر نس يو درونده شی مثلاً د أوسپني ټوټه يا درنه غچي يا داسي بل شی کښېښول سي، د دې لپاره چي نس يې نه وپړسيږي؛ ځکه د اوسپني دا خاصيت دی چي نس پاړسوب ته نه پرېږدي. (شفاء الارواح)

﴿۹۰۳﴾ وَتُوضَعُ يَدَاهُ بِجَنْبَيْهِ او د هغه دواړه لاسونه دي کښېښول سي د هغه دواړو بغلونو (ځنګو) ته وَلَا يَجُوزُ وَضْعُهُمَا عَلَى صَدْرِهِ او جائز نه دي پر سينه د هغوی ايښوول.

**لغات:** ﴿جَنب﴾ بغل، ځنګ، ﴿صدر﴾ سينه، جمع: سينه، ﴿لا يجوز﴾ د حُرمت فايده ور کوي.

**تشريح:** فرمايي چي تر مرګ وروسته دي د مړي لاسونه د هغه بغلونو ته کښېښول سي، او پر سينه يې ايښوول جائز نه دي؛ ځکه دا د اهل کتابو عادت دی او موږ ته د هغوی د مخالفت حکم سوی دی. (مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص: ۳۰۸)

## د مړي سره د قرآن د تلاوت کولو حکم

﴿۹۰۴﴾ وَتُكْرَهُ قِرَاءَةُ الْقُرْآنِ عِنْدَهُ حَتَّى يُغَسَّلَ او مکروه دي د مړي سره قرآن ويل تر دې چي هغه ته غسل ورکول سي.

**تشريح:** تر مرګ وروسته چي تر څو پوري مړي ته غسل نه وي ورکول سوی (يعني تر غسل ورکولو مخکي) د هغه سره تلاوت کول مکروه دي، مصنف رَحِمَهُ الله دې ته مطلقاً مکروه ويلي دي، لېکن په عمدة الفقه کي تفصيل دی چي تر غسل ورکولو مخکي په لوړ آواز سره تلاوت کول مکروه دي، همدا قول اکثره فقهاؤ اختيار کړی دی، او که په کرار آواز سره قرآن شريف ويل سي، نو د ټولو په نيز کراهت نسته، او له روح وتلو څخه مخکي د مړي سره تلاوت کول بالاتفاق بېله کراهته جائز دي. (شفاء الارواح)

# د مرګ اعلان کول (خلک په خبرول)

﴿٥٠٥﴾ وَلَا بَأْسَ بِإِعْلَامِ النَّاسِ بِمَوْتِهِ او څه پروانسته په خبرولو کي د خلکو د هغه په مرګ سره (چي د مرګ په باره کي يې اعلان وسي او خلک په خبر کړل سي) وَيُعَجَّلُ بِتَجْهِيزِهِ او تلوار (تېزي) دي کول کيږي د هغه په کفن، دفن کي.

﴿٥٠٦﴾ فَيُوْضَعُ كَمَا مَاتَ عَلَىٰ سَرِيْرٍ مُجَمَّرٍ وِتْرًا څرنګه چي دا مړ سي، نو (سمدستي) دي کښېښنول سي پر داسي کټ (تخته) کوم چي (په يو خوشبويي سره) لوګی کړل سوی وي په طاق شمېر سره (يعني چي د هغه د تختي سره يو خوشبويي په طاق شمېر سره دودول سوي وي).

**لغات**: ﴿إعلام﴾ د افعال د باب مصدر دی: خبر ورکول، اطلاع ورکول. ﴿يعجّل﴾ د افعال له بابه مضارع مجهوله ده: تېزي کول، تلوار کول. ﴿تجهيز﴾ د تفعيل د باب مصدر دی، تيارول، چمتو کول. کله چي د دې باب په صله کي ميّت ذکر سي نو معنیٰ يې ده: د دفن (ښخولو) لپاره تيارول په غسل ورکولو او کفن وکولو سره، همدارنګه په تجهيز کي هغه ټوله امور داخل دي چي له مرګ څخه وروسته تر ښخولو پوري ورته ضرورت پرېوځي، ﴿فيوضع﴾ فاء په مخکيني عبارت کي د "ويُعجّل" د تفسير لپاره ده، يا فاء د مفاجاة لپاره ده، مطلب يې دا دی چي کله د هغه مرګ يقيني سي نو تر هغه وروسته دي تأخير نه کول کيږي، بلکي په تجهيز و تکيفن کي دي تېزي وکړل سي. ﴿سَرِيْر﴾ کټ، چارپايي، د غسل ورکولو تخته، جمع: سُرُرٌ و أسِرَّةٌ. ﴿مُجَمَّر﴾ د تفعيل له بابه اسم مفعول دی، د افعال له بابه هم راځي، جَمَّرَ يُجَمِّرُ تَجْمِيْرًا: ښه بوی لرونکی شی دودول (لوګی کول)، يعني عُود يا داسي بل ښه بوی والا شی پر اُور (سکروټو) اېښوول او سوځول او کله چي يې دودان پور ته سي نو پر چارپايي (تختې) شا و خوا درې يا پنځه واره ګرځول. ﴿وِتْر﴾ طاق.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي په دې کي څه حرج او پروا نسته چي په بازار او داسي نورو کي د انسان د مرګ د خبر لپاره په لوړ آواز سره اعلان وکړل سي (او د هغه ملګري أدوستان أ قريبان او متعلقين، شاګردان او مريدان او داسي نور خلک د هغه په مرګ خبر کړل سي)، د دې لپاره چي د هغه د جنازې په لمانځه کي زيات خلک شرکت وکړي او د هغه لپاره د خير دعاء وکړي، خصوصاً کله چي مړی يو عالم، زاهد او مبارک شخصت وي، نو بعضي متأخرينو د هغه د جنازې د لمانځه لپاره په بازارو کي آواز او اعلان کول مستحسن ګڼلي دي او همدا اصح ده (حاشيه و عمدة الفقه).

خو د هغه په کفن او دفن کي به تلوار کول کيږي او بلا وجه به تأخير نه پکښي کول کيږي.

**فیوضع كما مات إلخ:** عبارت حاصل دا دی چي کله د چا روح وتل او مرګ یقیني سي، نو سمدستي دي هغه پر داسي تخته کېښول سي چي پر هغه غسل ورکول کېږي او د مړي له اېښوولو څخه مخکي دي هغه تختې ته عُود لرګی یا بل خوشبویه بنه وږم لرونکی شی ودودل سي لکه صندل. لوبان او داسي نور (یعني بنه بوی والا بوټی یا داسي بل شی دي سکرو ته کړل سي او پر تخته دي شاوخوا وګرځول سي چي دود یې پر تخته ولګیږي)، او دا کار دي په طاق شمېر یعني ۱وار یا ۳ یا ۵ واره وسي، ځکه په دې کي د مړي تعظیم دی، او طاق شمېر ځکه بنه دی، چي رسول الله ﷺ فرمایلي دي: إِنَّ اللهَ وِتْرٌ وَيُحِبُّ الْوِتْرَ(الله طاق دی طاق خوښوي).

## مړی به د غسل لپاره څنګه اېښوول کېږي؟

| ﴿۹۰۷﴾ وَيُوضَعُ كَيْفَ اتَّفَقَ او هغه دي کېښول سي څرنګه چي اتفاق سي (یعني څرنګه چي سره برابره سي، هغسي دي کېښول سي. یا په بله وینا څرنګه چي موقع وي. هغسي دي کېښول سي) عَلَى الْأَصَحِّ د صحیح ترین قول مطابق (یو خاص طرف متعیّن نه دی). |
|---|

**تشریح:** د غسل ورکولو پر مهال پر تخته د مړي د اېښوولو په کیفیت کي اختلاف دی، بعضي حضراتو ویلي دي چي تخته دي قبلې ته په اوږدول کېښول سي یعني چي پښې یې د قبلې (شرق) وطرف ته راسي او سر یې د مغرب وطرف ته وي، لکه څرنګه چي انسان د سخت مرض په حالت کي د لمانځه لپاره همداسي پرېوځي او په اشاره سره لمونځ کوي یعني پښې یې د قبلې و طرف ته وي او سر یې د مغرب و طرف ته وي (او تر سر لاندي یې بالښت وغیره وي چي مخ یې د قبلې وطرف ته واقع سي. لکه مخکي چي دا کیفیت تفصیلاً ذکر سو)، او بعضو ویلي دي چي تخته دي قبلې ته عرضاً یعني په پلنوالي سره کېښول سي چي د مړي مخ د قبلې وطرف ته راسي، لکه څرنګه چي مړی په قبر کي اېښوول کېږي، او زیات صحیح (اصح) قول دا دی چي څرنګه آسانه وي، هغسي دي کېښول سوي، ځکه چي پر تخته باندي د مړي د اېښوولو په باره کي هیڅ کیفیت روایت سوی نه دی، خو عُرف دا دی چي مړی دي پر تخته ستوني ستخ پرېښول سي.

## د غسل ورکولو طریقه

| ﴿۹۰۸﴾ وَيُسْتَرُ عَوْرَتُهُ او د هغه عورت دي پټ کړل سي ثُمَّ جُرِّدَ عَنْ ثِيَابِهِ بیا دي لغ کړل سي له خپلو جامو څخه (یعني جامې دي ځني وکښل سي) وَوُضِّئَ او اودس دي ورکول سي إِلَّا أَنْ |
|---|

يَّكُوْنَ صَغِيْرًا لَا يَعْقِلُ الصَّلٰوةَ مګر دا چي هغه داسي کوچنی وي چي په لمانځه نه پوهيږي بِلَا مَضْمَضَةٍ وَّاسْتِنْشَاقٍ (اودس دي ورکول سي) بغير له خولې پرېوللو او پزي پرېوللو څخه (يعني په پزه او خوله کي دي اوبه نه ور اچوي او نه وردپرېولي) إِلَّا أَنْ يَّكُوْنَ جُنُبًا مګر دا چي هغه جنب وي وَصُبَّ عَلَيْهِ مَاءٌ مُغْلًى بِسِدْرٍ أَوْ حُرُضٍ او ودي بهول سي پر هغه داسي اوبه چي جوش ورکول سوی وي د بيري په پاڼو يا په بروڅه بوټي کي وَإِلَّا فَالْقُرَاحُ وَهُوَ الْمَاءُ الْخَالِصُ کنې بيا خالص اوبه وَيُغْسَلُ رَأْسُهٗ وَلِحْيَتُهٗ بِالْخِطْمِيِّ او د هغه سر او ږيره دي پرېولل سي په خطمي (خيرو ګل اګل خيرو اسره) ثُمَّ يُضْجَعُ عَلٰى يَسَارِهٖ بيا دي پرې ايستل پر چپه اړخ فَيُغْسَلُ حَتّٰى يَصِلَ الْمَاءُ إِلٰى مَا يَلِيَ التَّخْتَ مِنْهُ او پرېولل دي سي (اوبه دي پرې واچول سي) تر دې چي اوبه ورسيږي هغه حصې ته کوم چي د تختې سره متصله ده ثُمَّ عَلٰى يَمِيْنِهٖ كَذٰلِكَ بيا پر راسته اړخ (دي پرې ايستل سي او پرېولل سي) همداسي ثُمَّ أُجْلِسَ مُسْنَدًا إِلَيْهِ بيا دي کښېنول سي په تکيه کولو سره و خپل ځان ته (يعني بيا دي غسل ورکونکی مړی کښېنوي او پر ځان دي يې تکيه کړي چي غوځار نه سي) وَمَسَحَ بَطْنَهٗ رَقِيْقًا او لاس دي تېر کړي د ده پر نس په نرمۍ سره وَمَا خَرَجَ مِنْهُ او کوم څه (نجاست) چي يې له نس څخه راووځي غَسَلَهٗ هغه دي پرېولي وَلَمْ يُعِدْ غُسْلَهٗ او د ده غسل دي (له سره) نه راګرځول کيږي ثُمَّ يُنَشَّفُ بِثَوْبٍ بيا دي مړی په يو کپړه سره وچ کړل سي وَيُجْعَلُ الْحَنُوْطُ عَلٰى لِحْيَتِهٖ وَرَأْسِهٖ او حنوط خوشبويي دي ولګول سي د ده په ږيره او سر باندي وَالْكَافُوْرُ عَلٰى مَسَاجِدِهٖ او کافور دي ولګول سي د ده د سجدې په اندامونو باندي (چي هغه تندی، پزه، دواړه لاسونه، ګنګونه او دواړي پښې دي).

**لغات:** ﴿عورة﴾ جمع: عورات، هغه ځايونه چي په شريعت کي يې پټول (ستر) واجب وي.

﴿جُرِّد﴾ د تفعيل له بابه ماضي مجهوله ده، مصدر: تَجْرِيْد: له يو چا څخه کپړې کښل، لڅول.

﴿مضمضة﴾ د فعللې د باب مصدر دی: په خوله کي اوبه اچول او ګرځول چي په بله وينا خوله پرېولل

ورته وايي، ﴿استنشاق﴾ د استفعال د باب مصدر دی: په پزه اوبه کشول (په پزه کي اوبه اچول). پزه پرېولل، ﴿صُبّ﴾ د نصر د باب ماضي مجهوله ده، مصدر صَبًّا: اوبه اچول، بهول، ﴿مُغْلًى﴾ د افعال له بابه مفعول دی، په اصل کي مُغْلَيٌ وو، یاء متحرک وه، د ماقبل د مفتوح کېدلو په وجه یاء یې په الف سره بدله کړه، بیا د وه ساکنه سره جمع سوه، الف یې وغورځوی او په رسمُ الخط کي یاء باقي پرېښوول سوه، ﴿سِدْر﴾ د بېري درخته، دلته څني مراد د بېري پاڼي دي، ﴿حُرْض﴾ یو ډول بوټی دی چي د صابون کار کوي، چي پخوا به د کپړو او د لاسو د پرېوللو لپاره استعمالېدی، دې ته أشنان هم ویل کېږي، او په پښتو کي یې د دې معنیٰ په بروځه "بروزه" سره کړې ده، او ځینو په زمی سره کړې ده. ﴿قَرَاح﴾ (بفتح القاف) خالص اوبه (چي بل څه په کډ نه وي)، ﴿خِطْمِيّ﴾ (د خاء په فتحه سره هم ویل کېدای سي. خو کسره یې اکثره ده): خیرو ګل، توته ګل، یو ډول نفع مند بوټی دی چي سُور او سپین ګل لري چي د دواء په توګه همدارنګه د صابون په توګه استعمالېږي او د صابون په ډول ځګ کوي (خطمي اصلاً په عراق کي دېر دی او دیوناني طبیباتو سره پیدا کېږي، او دې ګل ته په ګرمسېر کي بیاتدی ګلی ویل کېږي، ځکه بلګونه یې د بیاتدی د بلګونو سره مشابه دي، او ګلان یې نور رنګه هم سته)، ﴿يُنَشِّفُ﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: په ټوکر یا داسي بل شي سره وچول، ﴿حَنُوْط﴾ یو ډول عطر دي چي له بېلابېلو عطرونو څخه جوړېږي، د څو خوشبوګانو یو مرکب کوم چي تر غسل وروسته پر مړي مږي، ﴿كَافُوْر﴾ یو ډول خوشبویه (ترخه غوندي) سپینه ماده ده کوم چي د کافور له وني څخه تر لاسه کېږي او د دواء او داسي نورو لپاره استعمالېږي.

**تشريح**: کله چي مړی پر تخته کېښېښول سي، نو د هغه عورت دي له نامه څخه تر زنګنو پوري په یو کپړه سره پټ کړل سي، همدا صحیح ده او د ظاهر روایت مطابق عورت غلیظه یعني د قُبل او دُبر پټول کافي دي او صاحب د هدایې او داسي نورو د همدې تصحیح کړې ده، لیکن اول قول له حدیث څخه اخیستل سوی دی، نو پر هغه عمل پکار دی. (عمدة الفقه)

ثم جرّد: د مړي پر عورت د کپړې له اچولو څخه وروسته دي په نرمي سره د هغه ټوله جامې وکښل سي.

د وضوء: بیا دي مړي ته اودس ورکول سي د لمانځه د اودس په څېر، لیکن خوله او پزه دي نه ور پرېولل کېږي؛ ځکه بیا به له خولې څخه اوبه را ایستل مشکل وي، بلکي بعضي فقهاؤ ویلي دي چي غسل ورکونکي دي پر خپله ګوته لنده کپړه یا پمبه وپېچي او د مړي په خوله کي دي یې د ننه وکړي او د هغه پر غابښونو، اوريو، تالو او شونډانو دي یې ومږي او د پزي په سوریو کي دي یې هم وګرځوي، نو دا جائز دي او په دې زمانه کي پر همدې عمل دی. (حاشیه، عمدة الفقه)

إلّا صغيرًا إلخ: که مړی داسې بچی وي چې په لمانځه او روژه نه پوهیږي یعني ذی شعوره نه وي. نو هغه ته به اودس نه ور کول کیږي، لېکن صحیح دا ده چې هغه ته دي هم اودس ور کول سي. (عمدة الفقه)

إلّا جنبًا إلخ: او که مړی جنب وي یا حیض او نفاس والا ښځه وي، نو بیا د هغه خولې او پزې ته اوبه رسول ضروري دي، لېکن صحیح دا ده چې ضروري نه دي. (عمدة الفقه)

وصُبّ عليه ماء إلخ: او مړي ته دي په داسې اوبو سره غسل ور کول سي چې په هغه اوبو کې د بېرې پاڼو ته یا د بروځي (یا د زمی) بوټي ته جوش ور کول سوی وي (یعني دا شیان دي پکښې را ایشول سوي وي)، ځکه په دې تو ګه مړی ښه پاکیږي، او که له دوی څخه یو شی نه وي، نو ساده اوبه کافي دي.

ويغسل رأسه إلخ: فرمایي چې د مړي سر او ږیره دي په خطمي ګل سره پرېولل سي؛ ځکه خطمي ګل هم هغه کار کوي کوم چې یې صابون کوي، او که خطمي نه وي نو په یو داسې شي سره دي یې پرېولي چې په هغه باندې سر او ږیره ښه صفا سي مثلاً صابون او داسې نور، که دا شیان نه وي، نو خالص اوبه کافي دي.

ثم يضجع إلخ: تر دې ټولو کارونو وروسته دي مړی پر چپه اړخ پرې ایستل سي او له سر څخه تر پښو پورې دي درې واره د هغه پر بدن اوبه واچول سي او دومره دي واچول سي چې اوبه د بدن لاندې د تختې سره لګېدلې حصې ته ورسیږي، یا په بله وینا چې چپه اړخ او د چپه اړخ سره لګېدلې تختې ته ورسیږي، او بیا دي مړی پر راسته اړخ پرې ایستل سي او هغسې دي درې واره اوبه پرې واچوي تر دې چې اوبه لاندې د تختې سره لګېدلې حصې ته ورسیږي، اول به مړی ځکه پر چپه اړخ پرې ایستل کیږي چې په راسته طرف شروع کول سنت دي او په دې طریقه کې غسل له راسته طرف څخه شروع کیږي.

ثم أجلس مسندًا إلخ: بیا دي غسل ور کونکی دا مړی کښېنوي او خپل ځان ته دي یې تکیه کړي (یعني خپلو زنګنو یا سینې ته دي یې تکیه کړل سوی کښېنوي) او د هغه نس دي په نرمۍ سره ومُږي (او په کراره دي یې ور کښېکاږي): ځکه که د مړي په نس کې یو څه وي، هغه به را ووځي چې وروسته کفن ککړ نه کړي، او که د مړي له نس څخه یو څه راووځي. نو صرف هغه دي پرېولي او د غسل راګرځولو ضرورت نسته. او نه د اودس راګرځولو ضرورت سته.

ثم ينشف بثوب إلخ: تر غسل ور کولو وروسته دي د مړي بدن په یوه پاک ټوکر سره وچ او صفا کړل ... لوند نه سي او د مړي پر سر او ږیره دي حنوط ولګول سي، حنوط له څو ډوله عطرونو

څخه جوړیږي ډول خوشبویي ده چې هغه ته تاسو د دې زمانې په اعتبار سره عطر مجموعه (یا ګلچین عطر) هم ویلای سی، او د مړي د سجدې پر اندامونو یعني پر تندي، پزه، پښو، لاسونو او زنګنو باندې دې کافور ومږل سي؛ ځکه چې حنوط او کافور دواړه خوشبوداره او ښه بوی لري. (صاحب د انوارُ الایضاح د تحفة الألمعي په حواله سره ذکر کړي دي چې د غسل په آخر وار کې پر مړي داسي اوبه اچول پکار دي چې کافور په ګډ سوي دي: ځکه په دې سره بدن ژر نه خرابیږي. په کافورو کې خاصیت دا دی چې په کوم ځه کې هغه استعمال سي، په هغه کې ژر تغیر نه راځي، دویمه فایده یې دا ده چې د کافور لګېدلو په وجه مضره خزندې او داسي نور نه ور نژدې کیږي. په همدې وجه خلګ په کتابو او کپړو کې د کافورو ګولۍ اږدي. دریمه فایده یې دا ده چې کافور تېزه خوشبویي ده، نو که تر غسل ورکولو وروسته بیا هم په بدن کې څه بلبویي پاته وي، نو هغه به د کافورو په خوشبویي کې ورکه سي).

**فایده (۱)**: غسل ورکونکی دې د خپل غسل ورکولو په دوران کې دا دعاء وایي "غُفْرَانَكَ يَا رَحْمٰنُ" (ای الله په خپل خاص بخښني سره ده ته بخښه وکړه!). (اشرف الایضاح)

**فایده (۲)**: مړي ته د غسل ورکولو حکمت دا دی چې کوم (مسلمان) بنده له دنیا څخه کوچ وکړي او د آخرت وطرف ته روانیږي، نو شریعت حکم کړی دی چې هغه په تعظیم او اکرام سره رخصت کړل سي او د مړي د تعظیم لپاره تر دې بله ښه طریقه نسته چې هغه په ښه پاک حالت کې ولمبول سي او ښه پاکه کپړه ور واغوستل سي، رخصت کړل سي. (تحفة الألمعي ج:۳. ص:۳۹۱)

﴿۹۰۹﴾ وَلَيْسَ فِي الْغُسْلِ اسْتِعْمَالُ الْقُطْنِ او نسته په غسل (ورکولو) کې د پمبې استعمالول فِي الرِّوَايَاتِ الظَّاهِرَةِ په ظاهرو روایاتو کې.

**تشریح**: د غسل ورکولو په وخت کې د پمبې (پنبې) استعمالول ضروري نه دي، او که څوک یې استعمال کړي، نو څه حرج نسته، مثلاً د مړي د مخ او شا (قُبل او دُبر) په مقام او په دواړو غوږو، دواړو سږمو او خوله کې پمبه واچوي او تر غسل وروسته یې لیري کړي، نو پروا نه لري. لیکن په ظاهر روایت کې د پمبې استعمال د غسل په احکامو کې داخل نه دي، نو ځکه د هغه ترک (پرېښوول) اولیٰ دي. (شفاء الارواح)

﴿۹۱۰﴾ وَلَا يُقَصُّ ظُفُرُهُ وَشَعْرُهُ او نه دي پرېکول کیږي د هغه نوکان او د هغه ورېښتان وَلَا يُسَرَّحُ شَعْرُهُ وَلِحْيَتُهُ او نه دي ږمنځول کیږي د هغه ورېښتان او ږیره.

**لغات**: ﴿يقصّ﴾ د نصر له بابه مضارع مجهوله ده، قصّ يقصّ قصًّا: نوکان وغيره پرېکول (کاټول)، ﴿يسرّح﴾ د تفعيل له بابه مضارع مجهوله ده، د دې باب په صله کې چې "شَعر" (وربښتان) ذکر سي، نو معنیٰ یې ده: ږمنځول.

**تشريح**: فرمايي چې د مړي نوکان دې نه پرېکول کيږي او نه دې یې د يو ځاى وربښتان پرېکول کيږي، بلکې څرنګه چې وي، پر هغه حالت دې پرېښوول سي، همدارنګه وزېښتان او ږيره دې ږمنځول کيږي هم نه؛ ځکه دا ټوله ښيان د زينت او ښکلا لپاره دي او مړى له زينت څخه مستغني دي، لهذا داسې کول ناجائز او مکروه تحريمي دي. (انوار، شفاء الارواح)

## تر مرګ وروسته د خاوند او ښځې حکم

﴿۹۱۱﴾ وَالْمَرْأَةُ تَغْسِلُ زَوْجَهَا او ښځه خپل خاوند ته غسل ورکولاى سي بِخِلَافِهِ په خلاف د خاوند (چې هغه خپلې ښځې ته غسل نه سي ورکولاى) كَأُمِّ الْوَلَدِ لَا تَغْسِلُ سَيِّدَهَا لکه اُمِ ولد مينځه کې چې خپل مالک (بادار) ته غسل نه سي ورکولاى.

**لغات**: ﴿اُم ولد﴾ هغه مينځې ته وايي چې خپل مالک (بادار) وطي ورسره کړې وي او د هغه په نتيجه کې بچى پيدا سوى وي، داسې مينځه د خپل مالک تر مرګ وروسته سمدستي آزاديږي.

**تشريح**: مسئله دا ده چې ښځه خپل خاوند ته غسل ورکولاى سي؛ ځکه د عدې (عدت) پوره کېدلو تر وخته پورې هغه د دې خاوند په نکاح کې پاته ده، لېکن خاوند خپلې ښځې ته غسل نه سي ورکولاى؛ ځکه د ښځې تر مرګ وروسته د دوى تر مينځ د نکاح او زوجيت تعلق ختم سو، اوس خاوند د هغې په حق کې اجنبي (پردى) سو، لکه څرنګه چې اُم ولد خپل مالک ته غسل نه سي ورکولاى؛ ځکه د مالک تر مرګ وروسته هغه آزاده سوه او د مالک له ملکيت څخه ووتله.

او کوم چې په بعضې عوامو کې دا خبره مشهوره ده چې خاوند نه د خپلې ښځې جنازه پورته کولاى سي، نه یې قبر ته شوه کولاى سي او نه یې مخ ته کتلاى سي، دا محض غلطه خبره ده، صرف غسل ورکول او بغير له حائله د هغې بدن مسه کول ممنوع دي. (شفاء الارواح بحوالۀ عمدة الفقه)

## که ښځينه يا نارينه مړي ته د غسل ورکولو لپاره هيڅ ښځه يا سړى نه وي؟

﴿۹۱۲﴾ وَلَوْ مَاتَتِ امْرَأَةٌ مَعَ الرِّجَالِ او که مړه سي يو ښځه (کوم چې) د سړيو سره (وي. يعني دړ سره حاضر کسان ټوله سړي انارينه وي) يَمَّمُوْهَا كَعَكْسِهِ بِخِرْقَةٍ نو دا خلک دې هغې ته تيمم ورکړي په يو ټوټه کپړه سره لکه د دې په پر عکس صورت کې (يعني که يو سړى انارينه امړ سي او ور سره حاضر

کسان ټوله ښځې وي، نو ښځې دې هغه ته په یو کپړه سره تیمم ورکړي ) وَإِنْ وُجِدَ ذُوْ رَحْمٍ مَحْرَمٍ او که پیدا سي ذو رحم محرم قریب يَمَّمَ بِلَا خِرْقَةٍ نو تیمم دې ورکړي بغیر له ټوکر څخه.

**لغات:** ﴿ییمموا﴾ د تفعیل له بابه د جمع مذکر غائب ماضي معلوم صیغه ده: (بل چا ته) تیمم ور کول. تیمم ور وهل، ﴿خرقة﴾ د کپړې (ټوکر) ټوټه (دزړې کپړې ټوټه). ګودړ. ړینبکی. ﴿ذو رحم محرم﴾ هغه قریب چې نکاح ور سره حرامه وي، لکه خاله، ماما، خور او ورور. مور. پلار او داسي نور. او که نکاح ور سره جائز وي، نو هغه ته غیرِ محرم وایي، لکه دا کا لور، دا کا زوی، دامه لور. د خاله لور... او داسي نور.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې که ښځه (مثلاً) د سفر په دوران کي د پردیو خلکو په مینځ کي مړه سي (یعني حاضرین ټوله پردي نارینه وي) او په هغو کي هیڅ ښځه نه وي. نو یو سړی دې پر خپلو لاسو کپړه وپیچي او هغې ته دې تیمم ور وکړي، لکه څرنګه چې که معامله برعکس وي یعني سړی (نارینه) د پردیو ښځو په مینځ کي مړ سي او په هغوی کي بل سړی نه وي، نو یو اجنبیه ښځه دې پر لاسو کپړه وپیچي او هغه ته دې تیمم ور وکړي.

وإن وجد ذو رحم: او که په پورتني دوو صورتونو کي د مړي یو نژدې قریب (ذی رحم محرم) موجود وي، نو هغه دې مړي ته په خپلو لاسو تیمم ورکړي، د هغه لپاره د تیمم اندامونه مسه کول (لاس ور وړل) جائز دي. پر لاس د کپړې پیچولو ته ضرورت نسته.

## د خنثیٰ مشکل حکم

﴿۹۱۳﴾ وَكَذَا الْخُنْثَى الْمُشْكِلُ يُيَمَّمَ او همداسي خنثیٰ مشکل (نر ښځې) ته به هم تیمم ورکول کیږي فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ د ظاهر روایت مطابق.

**لغات:** ﴿الخنثی المشکل﴾ هغه کس چې په هغه کي د نارینه او ښځینه دواړو علامې وي یا دواړي نه وي یعني ذَکَر او فرج دواړه یې وي (یعني نر ښځی) یا یو هم نه وي، یا په بله وینا چې نارینه او ښځینه توب یې نه معلومیږي چې دا اوس څه بلا دی؟ داسي کس ته خنثیٰ مشکل وایي، ﴿یُیَمَّمَ﴾ د تفعیل له بابه د واحد مذکر غائب ماضي مجهولي صیغه ده: تیمم ور کول، تیمم ور وهل.

**تشریح:** مسئله دا ده چې خنثیٰ مشکل ته به نه سړی غسل ورکوي او نه ښځه. بلکي که د ده یو نژدې قریب (ذی رحم محرم) وي هغه که ښځه وي او که سړی وي، هغه دې ده ته تیمم ورکړي بغیر له کپړې پیچلو څخه پر لاسو. او که اجنبي وي، نو هغه دې پر لاس کپړه وپیچي او تیمم دې ورکړي. همدا

ظاهر روایت دی، او د بعضو قول دا دی چې خنثیٰ مشکل ته دې په داسې (باریکه) جامه کې غسل ورکول سي کوم چې له اوبو څخه مانع نه وي.

او که خنثیٰ مشکل کوچنی بچی وي چې د شهوت عمر ته نه وي رسېدلی (یعني بالغ یا قریب البلوغ نه وي)، نو هغه ته سړی هم غسل ورکولای سي او ښځه هم. (شفاء الارواح)

## د کوچني بچي حکم

﴿۹۱۴﴾ وَيَجُوْزُ لِلرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ تَغْسِيْلُ صَبِيٍّ وَصَبِيَّةٍ لَمْ يَشْتَهِيَا او جائز دي د سړي او ښځي لپاره داسي هلک او انجلۍ ته غسل ورکول کوم چي د شهوت حدّ ته نه وي رسېدلي.

**لغات**: ﴿تغسیل﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: غسل ورکول، لمبول. ﴿لم یشتهیا﴾ د افتعال له بابه د تثنیه مذکر غائب نفي جحد بلم صیغه ده، اشتهٰی یشتهي اشتهاءً: اشتها کېدل، شهوت راتلل، قابل د شهوت کېدل، مراد ځني د شهوت حدّ (عمر) ته رسېدل دي، یعني دومره کېدل چې د هغه سره جماع کولو ته دانسان اشتها او شوق کیږي، یا په بله وینا چې هغه ته په کتلو سره یې شهوت راپورته کیږي، او دا عادتاً له نهو کالو څخه په کم عمر کې نه کیږي.

**تشریح**: مسئله دا ده چې که داسې کوچنی بچی مړ سي چې هغه ته په کتلو سره شهوت نه راځي، نو هغه ته ښځه غسل ورکولای سي، همدارنګه که داسې کوچنۍ انجلۍ مړه سي چې د شهوت حدّ ته نه وي رسېدلې، نو سړی غسل ورکولای سي، او کوم هلک یا انجلۍ چې د شهوت حدّ ته رسېدلي وي، هغوی د بالغانو په حکم کې دي، نو داسې هلک ته صرف سړی (نارینه) او داسې انجلۍ ته صرف ښځه غسل ورکولای سي.

## د مړي مچولو حکم

﴿۹۱۵﴾ وَلَا بَأْسَ بِتَقْبِيْلِ الْمَيِّتِ او څه پروا نسته د مړي په مچولو کې.

**تشریح**: د مړي سره د مینې او محبت په وجه یا له هغه څخه د تبرّک حاصلولو په غرض که هغه مچ کړل سي، نو څه پروا نسته، لېکن که په شهوت سره وي، نو حرام دي. (شفاء الارواح)

## د ښځي کفن او دفن د خاوند پر ذمه دي، که نه؟

﴿۹۱۶﴾ وَعَلَى الرَّجُلِ تَجْهِيْزُ اِمْرَأَتِهٖ وَلَوْ مُعْسِرًا او پر سړي (خاوند) واجب دي د خپلې ښځي کفن، دفن، که څه هم تنګلاسی وي فِي الْأَصَحِّ د صحیح ترین قول مطابق.

**لغات**: ﴿معسر﴾ د افعال له بابه اسم فاعل دی: تنګلاسی، غریب، مفلس.

**تشريح**: د ښځي کفن او دفن (يعني د کفن ورکولو او ښخولو [ښخولو] خرچ) پر خاوند واجب دی، که نه؟ په دې کي اختلاف دی، د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز پر خاوند واجب نه دی: ځکه د مرګ په وجه د خاوند او ښځي تر مينځ د زوجيّت تعلق ختم سو، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د ښځي کفن او دفن مطلقاً پر خاوند واجب دي، برابره ده ښځي مال پرې ايښی وي او که نه وي او برابره ده خاوند مالدار وي او که مفلس وي؛ همدا اصح قول دی؛ ځکه د کفن او دفن خرچ د نفقې په ځېر دی او ښکاره ده چي د ښځي نفقه مطلقاً پر خاوند واجب ده.

**يادونه**: له تجهيز څخه شرعي تکفين و تدفين مراد دی، چي سنت کفن يا کفايي کفن او د غسل او د جنازې وړلو او ښخولو خرچ (أجرت) د شرعي مقدار مطابق واجبيږي، او کوم بدعتونه چي زموږ په زمانه کي رواج دي، د هغوی خرچ پر خاوند يا نورو وارثانو باندي واجب نه دی، مثلاً د قرآن شريف د ختم خرچ يا د دريو ورځو د خوراک راوړلو او داسي نورو خرچ پر خاوند واجب نه دی، بلکي د داسي کړني ګناه به جلا وي. (شفاء الارواح بحوالۀ عمدة الفقه)

## د مفلس کس کفن د چا پر ذمه دي؟

﴿۹۱۷﴾ وَمَنْ لَا مَالَ لَهُ او چا لره چي مال نه وي (هيڅ مال نه لري چي د ده لپاره کفن په رانيول سي) فَكَفَنُهُ عَلَى مَنْ تَلْزَمُهُ نَفَقَتُهُ نو د ده کفن پر هغه چا دی پر چا چي د ده نفقه لازمه وي.

﴿۹۱۸﴾ وَإِنْ لَمْ يُوجَدْ مَنْ تَجِبُ عَلَيْهِ نَفَقَتُهُ او که داسي څوک پيدا نه سي چي پر هغه د ده نفقه واجب وي فَفِي بَيْتِ الْمَالِ نو بيا (د ده کفن) په بيت المال کي (لازم) دی.

﴿۹۱۹﴾ فَإِنْ لَمْ يُعْطِ عَجْزًا أَوْ ظُلْمًا بيا که يې بيت المال (هم) نه ورکړي د عاجزۍ (تنګلاسۍ) يا ظلم په وجه فَعَلَى النَّاسِ نو بيا پر خلکو (لازم) دی.

**لغات**: ﴿عَجْزًا﴾ د ضرب د باب مصدر دی: عاجزه کېدل، له اداء کېدو څخه بې وسه کېدل.

**تشريح**: مسئله دا ده چي کوم مړي لره هيڅ مال نه وي، نو د ده کفن پر هغه کس واجب دی پر چا چي د ده نفقه لازم ده، لهذا څوک چي په نسبي اعتبار سره د مړي ذوی رحم محرم دي، پر هغو واجب دی، او که هلته هيڅ داسي کس پيدا نه سي چي پر هغه د مړي نفقه واجب وي، نو د هغه کفن به له بيت المال څخه ورکول کيږي، او که بيت المال هم خالي وي، يا مال پکښې وي، خو ظالمان يې نه ورکړي. نو د هغه کفن ورکول پر مسلمانانو واجب دي يعني کوم چي د مړي په حال خبر سي، پر هغو دې

مړي کفن فرض کفايي دی، لهذا که دا خلک ټوله لا پروايي وکړي او هغه پرېږدي، نو ټوله ګنهګاره کيږي.

او که مړي لره مال وي، نو ښکاره خبره ده چې کفن به د هغه له مال څخه ورکول کيږي او دا کفن ورکول به د هغه له قرض، وصيت او ميراث تقسيمولو څخه مخکې کول کيږي (يعني د مړي له مال څخه به تر ټولو مخکې د هغه کفن ورکول کيږي، بيا به د هغه قرض، وصيت اداء کول کيږي...).

﴿۹۲۰﴾ وَيَسْأَلُ لَهُ التَّجْهِيزَ مَنْ لَا يَقْدِرُ عَلَيْهِ او سوال (خواست) کولای سي د مړي لپاره د کفن او دفن هغه کس کوم چې پر دې (کفن، دفن) قدرت نه لري غَيْرَهُ له بل چا څخه (سوال کولای سي).

**لغات:** ﴿التجهيز﴾ د تفعيل د باب مصدر دی، تيارول، مخکې يې وضاحت وسو چې کله د دې باب په صله کې ميّت ذکر سي نو معنیٰ يې ده: د دفن (ښخولو) لپاره تيارول په غسل ورکولو او کفن وکولو سره، همدارنګه په تجهيز کې هغه ټوله اُمور داخل دي چې له مړ کېدو څخه وروسته تر ښخولو لپاره ورته ضرورت پرېوځي.

**تشريح:** صورت د مسئلې دا دی چې کوم څوک د مفلسۍ او تنګلاسۍ په وجه د خپل مړي له کفن او دفن څخه عاجزه وي، نو د هغه لپاره جائز دي چې د ضرورت او کفايت په اندازه له نورو خلکو څخه د کفن و دفن لپاره سوال او خواست وکړي، او که پر کفنِ ضرورت قادر وي، خو پر کفنِ مسنون قادر نه وي، نو د هغه لپاره سوال کول جائز نه دي. (عمدة الفقه)

## د سړي د کفن بيان

﴿۹۲۱﴾ وَكَفَنُ الرَّجُلِ سُنَّةً قَمِيصٌ وَإِزَارٌ وَلِفَافَةٌ او د سړي کفن د سنت په اعتبار سره (يعني د سړي لپاره سنت کفن) قميص دی، ازار (لنګ) دی او لفافه (اُوږد څادر) دی مِمَّا يَلْبَسُهُ فِي حَيَاتِهِ له هغه قسم جامو څخه کوم چې به ده په خپل ژوند کې (عموماً) اغوستله (يعني د کفن کپړه به په هغه حيثيت سره وي کوم چې به مړي په خپل ژوند کې يعني داخترونو، لمنځونو او داسې نورو پر موقع اغوستله. چې عموماً هغه به درې کپړې اغوستلې، نو څکه کفن به هم په دريو کپړو کې ورکول کيږي. چې بدن يې په پوره توګه پټ سي).

**لغات:** ﴿إِزَار﴾ لنګ، جمع: أُزُر، و آزِرَة. ﴿لِفَافَة﴾ هغه څه چې مړی پکښې ونغښتل سي، مراد څنې هغه څادر دی چې ټوله بدن پکښې پټ سي، جمع: لَفَائِف.

**تشریح**: کفن درې قسمه دی: ① کفن سنت (کفن مسنون)، ② کفن کفایه، ③ کفن ضرورت. په دې عبارت کې کفن سنت بیان سوی دی، کفن سنت د سړي (نارینه) په حق کې درې (۳) کپړې دي: ① قمیص، دا به له غاړې څخه تر پښو پوري وي (بغیر دلستونو څخه)، ② إزار (یعنې لنګ)، دا له سر څخه تر پښو پوري کېدل پکار دي، ③ لفافه، دا به د مړي تر قد څه اوږد وي یعنې له سر او پښو څخه به دومره تېر وي چې دواړه طرفونه یې وتړل سي (تقریباً یو لاس به اوږد وي).

او سړي ته په داسې کپړو کې کفن ورکول پکار دي څه قسم کپړه چې به هغه د جمعې او اخترونو پر موقع اغوستله، او ښځې ته داسې کپړه ورکول پکار دي څنګه کپړه چې هغې د پلار کور ته د تګ (یا د واده وغیره) پر موقع اغوستله، یعنې د داسې کپړې د قیمت اندازه لګول پکار دي. (شفاء الارواح بحوالۂ عمدة الفقه)

## د سړي لپاره کفن کفایه

﴿۹۲۲﴾ وَ كِفَايَةً إِزَارٌ وَلِفَافَةٌ او (د سړي کفن) د کفایت په اعتبار سره (یعنې کفایي کفن) ازار دی او لفافه ده.

**لغات**: ﴿كِفَايَة﴾ دومره مقدار چې محض کافي سي.

**تشریح**: د سړي لپاره کفن کفایه دوې کپړې دي: ① یو ازار، ② او بل لفافه، لهذا که د سړي په کفن کې صرف دا دوې کپړې وي، نو دا هم بېله کراهته صحیح دي.

## د کفن رنګ به څرنګه وي؟

﴿۹۲۳﴾ وَفُضِّلَ الْبَيَاضُ مِنَ الْقُطْنِ او افضل ګرځول سوې ده سپینه د پمبې کپړه.

**لغات**: ﴿القطن﴾ مالوچ، پمبه (پنبه)، کوم چې اوس په کاټن کپړه سره مشهوره ده.

**تشریح**: د کفن لپاره سپینه کپړه تر ټولو غوره او افضله ده؛ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي "البسوا من البیاض؛ فإنه من خیر ثیابکم وکفّنوا فیها موتاکم" (رواه ابو داؤد)، یعنې تاسې سپینې جامې اغوندئ؛ ځکه دا بهتره کپړې دي او په هغوی کې خپلو مړو ته کفن ورکوئ!.

او په دې کې نوې او زړه (پرېولل سوې) کپړه سره برابر ده (یعنې برابره ده، هغه سپینه کپړه نوې وي او که زړه وي).

او په دې باره کې قاعده دا ده چې کومه کپړه په ژوند کې اغوستل جائز دي، په هغه کې کفن ورکول هم جائز دي او د کومې کپړې اغوستل چې مکروه یا حرام دي، په هغه کې کفن ورکول هم مکروه یا حرام دي، لکه څرنګه ښځې ته په وریښمې کپړه کې کفن ورکول جائز دي او سړي لره حرام دي.

## د ازار، لفافه او قمیص تفصیل

﴿۹۲۴﴾ وَكُلٌّ مِّنَ الْإِزَارِ وَاللِّفَافَةِ مِنَ الْقَرْنِ إِلَى الْقَدَمِ او له ازار او لفافه څخه هر یو به (د مړي) له رک سر څخه تر پښې پورې وي وَلَا يُجْعَلُ لِقَمِيْصِهِ كُمٌّ وَلَا دِخْرِيْصٌ وَلَا جَيْبٌ او نه دي ور کول کیږي (جوړول کیږي) د مړي قمیص لره لستوڼي او نه بارچاک او نه جېب وَلَا تُكَفُّ أَطْرَافُهٗ او نه دي ګنډل کیږي د مړي د قمیص طرفونه (کنارې).

**لغات:** ﴿قَرْن﴾ بکسر، مراد: سر. ﴿كُمّ﴾ لستوڼی، جمع: أَكْمَامٌ و كِمَمَةٌ. ﴿دخریص﴾ او دخرصة: ترخز (ترخیزي)، صاحب د معجم د دې لفظ معنیٰ داسې ذکر کړې ده: "الشق فی أسفل الثوب لیساعد لابسه علی المشي" نو په دې اعتبار سره د "دخریص" معنیٰ ده: بارچاک، د کمیس درز.

**تشریح:** مخکې ذکر سوه چې د سړي لپاره سنت کفن درې کپړې دي: ازار، لفافه او قمیص، او س دلته د هغه اندازه بیانوي لکه مخکې چې هم موږ بیان کړه، تفصیل یې دا دی چې ازار به له سر څخه تر پښو پورې وي، چې په هغه کې مړی پېچل کېدلای سي، لفافه کوم ته چې څادر هم وایي، هغه به له سر څخه څه پورته او له پښو څخه څه لاندې وي (یعني له سر او پښو څخه به دومره تېر وي چې دواړو طرفونو ته تړل کېدلای سي)، او قمیص به له غاړي (یا اوږو) څخه تر پښو پورې وي، بغیر له جېب، لستوڼو او ترخزو څخه او اطراف به یې ګنډل سوي نه وي، د دې قمیص یوه حصه پر مړي د پاسه راځي او بله تر هغه لاندې راځي او پر اوږو هغه ګنډل کیږي او په پاسنۍ حصه کې د ګرېوان غوندې چاک ور کول کیږي، د دې لپاره چې په غاړه واغوستل سي، او یاد ساتئ! چې کوم څادر تر ټولو د پاسه پر کټ (چپر کټ) اچول کیږي، هغه په کفن کې شامل نه دی.

﴿۹۲۵﴾ وَتُكْرَهُ الْعِمَامَةُ فِي الْأَصَحِّ او مکروه ده لنګوټه (ور په غاړه کول)، د صحیح ترین قول مطابق.

**تشریح:** د سړي پر سر لنګوټه تړل مکروه دي، که څه هم بعضې حضراتو داسې مړي ته لنګوټه ور تړل ښه ګڼلي دي کوم چې عالم یا زاهد وي، خو علامه شامي رَحِمَهُ الله فرمایي "والأصح أن تکره العمامة بکل حال، کما فی الزاهدي". (شامی ج: ۳، ص: ۹۰، ط: بیروت)

## سړي ته د کفن ورکولو طريقه

﴿۹۲۶﴾ وَلُفَّ مِنْ يَسَارِهٖ او مړی دي وپېچل سي (ونغښتل سي. په کفن کي اول) له چپه طرف څخه ثُمَّ يَمِيْنِهٖ بيا له راسته چپه طرف څخه وَعُقِدَ إِنْ خِيْفَ اِنْتِشَارُهٗ او کفن دي غوټه کړل سي (وتړل سي) که چيري د هغه د خلاصېدلو بېره وي.

**لغات**: ﴿لُفَّ﴾ د نصر له بابه ماضي مجهوله ده. مصدر: لَفًّا: پېچل. د "يسارهٖ" او "يمينهٖ" دواړه ضميرونه د "إزار" وطرف ته راجع دي کوم چي په مخکيني عبارت کي دی، او په دې عبارت کي ودې طرف ته هم اشاره ده چي إزار او لفافه دي هر يو جلا، جلا وپېچي. ﴿عُقِدَ﴾ د ضرب له بابه ماضي مجهوله ده. مصدر: عَقْدًا: غوټه ورکول، تړل. ﴿انتشار﴾ د افتعال د باب مصدر دی: غوړېدل (خلاصېدل).

**تشريح**: په دې عبارت کي پر مړي د کفن پېچلو طريقه بيان سوې ده. تفصيل دا دی چي اول دي لفافه هواره کړي (يا په بله وينا په دريو څادرونو کي چي کوم اوږد څادر دی. اول دي هغه پر چپرکټ هوار کړي)، او پر لفافه د پاسه دي إزار هوار کړي (وغوړوي)، او پاته سوه درېيمه کپړه يعني قميص هغه دي په مړي واغوندي او مړی دي پورته کړي او پر هوار سوي کفن (يعني پر إزار او لفافه) دي يې پرې باسي. (بيا دي د هغه پر سر، رېره او ټوله بدن خوشبويي ولګول سي او د هغه د سجدې پر اندامونو دي کافور ولګول سي. لکه مخکي چي ذکر سوه)، بيا دي اول د إزار چپه طرف پر مړي را واړوي (وپېچي)، بيا راسته طرف. د دې لپاره چي راسته طرف د پاسه راسي، بيا دي په همدې توګه لفافه باندي وپېچل سي. بيا دي په يو رېبنکي وغيره سره د سر او پښو په طرف کي کفن وتړل سي، د دې لپاره چي په لاره کي خلاص نه سي. (شفاء الارواح، مراقی الفلاح)

## د ښځي د کفن بيان

﴿۹۲۷﴾ وَتُزَادُ الْمَرْأَةُ فِي السُّنَّةِ خِمَارًا لِوَجْهِهَا او زياتوب به کول کيږي د ښځي په سنت کفن کي يو پوړنی (سربند) د هغې د مخ لپاره وَخِرْقَةً لِرَبْطِ ثَدْيَيْهَا او يوه ټوټه کپړه (سينه بند) د هغې د تيو د تړلو لپاره.

﴿۹۲۸﴾ وَفِي الْكِفَايَةِ خِمَارًا او (زياتوب به کول کيږي د ښځي) په کفايي کفن کي (صرف) يو پوړنی.

**لغات**: ﴿خمار﴾ (بکسر الخاء): پوړنی، سربند. دلته څني مراد دړې لاسه (درې ذراعه) اوږد څادر دی. ﴿خرقة﴾ د کپړې ټوټه رېبنکی. دلته سينه بند مراد دی کوم چي به له سينې (تيو) څخه تر ورنو پوري وي. ﴿ثدي﴾ تی، سينه. جمع: أَثْدٍ و ثُدِيٌّ.

**تشریح**: د ښځي لپاره سنت کفن (کفنِ مسنون) پنځه کپړې دي، درې هغه کپړې دي کوم چې د سړي کفن دی او بل خمار (پوړنی اسرېندا) دی او بل سینه بند دی، یعني ① قمیص، ② إزار، ③لفافه، ④ خمار (پوړنی) چې هغه درې لاسه کېدل پکار دي، ⑤ او سینه بند (د تیو د تړلو لپاره)، چې په هغه کې افضل دا ده چې له سینې څخه تر زنګنو یا ورنو پورې وي، او که تر نامه (ناف) پورې وي، نو هم صحیح ده او دومره به اوږد وي چې تړل کېږي.

او د ښځي لپاره کفنِ کفایه درې کپړې دي: ① إزار، ② لفافه، ④ او خمار، کفنِ کفایه په اختیاري حالت کې دی او په دې مقدار کې هېڅ کراهت نسته، او له دې مقدار څخه کپړې کمول یعني د سړي لپاره صرف یوه کپړه او د ښځي لپاره دوې کپړې استعمالول که بلا ضرورته وي، نو مکروه دي او د ضرورت په وخت کې بلا کراهته جائز دي. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

## ښځي ته د کفن ورکولو طریقه

﴿٩٢٩﴾ وَيُجْعَلُ شَعْرُهَا ضَفِيرَتَيْنِ عَلٰى صَدْرِهَا فَوْقَ الْقَمِيصِ او د ښځي ورېښتان دي دوه چوټیان (دوې پښتۍ) کړل سي په سینه باندې (دي کېښول سي) پر قمیص د پاسه ثُمَّ الْخِمَارُ فَوْقَهُ تَحْتَ اللِّفَافَةِ بیا پوړنی دقمیص د پاسه تر لفافه (اوږد څادر) لاندې ثُمَّ الْخِرْقَةُ فَوْقَهَا بیا ټوټه کپړه (سینه بند) پر لفافه د پاسه.

**لغات**: ﴿ضفيرتين﴾ تثنيه د ضَفِيرَةٌ ده: کوڅۍ، چوټۍ، على صدرها دا د فعل محذوف متعلق دی أي توضعان على صدرها.

**تشریح**: ښځي ته د کفن ورکولو طریقه دا ده چې د کفن له کپړو څخه دې اول وار ښځي ته قمیص ور واغوندي، تر دې وروسته دې لفافه (اوږد څادر) هوار کړي، بیا دې پر هغه د پاسه سینه بند هوار کړي او پر هغه د پاسه دې إزار هوار کړي، بیا دې ښځه پر دغه هوار سوي کفن کېښېږدي او د هغې ورېښتان دې دوې حصې کړي او پر قمیص د پاسه دې یې پر سینه واچوي، یعني د ورېښتیانو یوه حصه دې پر سینه راسته طرف ته کېښېږدي او بله چپه طرف ته، تر دې وروسته دې یې خمار (پوړنی) په سر او ورېښتانو باندې ور واچوي (په دې توګه چې د شا لخوا دي یې باندې را تاو کړي او پر سینه دې یې واچوي د نقاب په څېر) او هغه دې نه تړي او نه دې یې پېچي (او دا کوم بعضي ښځي چې دژوند په څېر پوړنی ور پر سر کوي او پېچي، دا محض بې اصل او خلافِ سنت دي)، بیا دې إزار باندې را واړوي (وېچي) اول چپه طرف، بیا راسته طرف، تر هغه وروسته دې په همدې توګه سینه بند باندې را وپېچي (کوم چې به تر ورنو یا زنګنو پورې وي او د سینه بند سرونه دې وتړي اغوته یې ود کړي)، بیا دې لفافه په هغسې توګه باندې را وپېچي کوم

چې د سرې لپاره بيان سو (او که سينه بند تر لفافه وروسته په آخر کې باندې راوپېچې. نو دا هم جائز دي.
همدارنګه که سينه بند تر خمار وروسته اود إزار تر پېچولو مخکې وتړي. نو هم جائز دي)، بيا دې په يو رېښکې
باندې د سر او پښو په طرف کې کفن وتړي او د ملا په طرف کې دې يې هم وتړي. چې په لاره کې يو
ځاى خلاص نه سي.

## كفن خوشبوداره كول

﴿۹۳۰﴾ وَتُجَمَّرُ الْأَكْفَانُ وِتْرًا قَبْلَ أَنْ يُدْرَجَ فِيْهَا او کفنونه دې (په خوشبويي سره) لوګى
کړل سي مخکې تر دې چې مړى په هغوى کې ونغښتل سي (داخل کړل سي).

**لغات**: ﴿تُجمَّر﴾ د تفعيل له بابه د واحد مؤنث غائب مضارع مجهوله ده، څه مخکې يې وضاحت وسو: ښه
بوى لرونکى شى دودول(لوګى کول)، يعني عُود يا بل داسې بل ښه بوى والا شى پر سکروټو ايښوول او
سوځول او چې کله يې دودان پورته سي، نو پر کفن په طاق شمېر سره ګرځول را ګرځول چې په بوى سره يې
خوشبوداره سي، "أكفان" يې ځکه د جمع په صيغه سره ذکر کړى دى چې په کفن کې څو کپړې وي (يعني
تميص، إزار، لفافه او داسې نور)، وترًا دا صفت دى د مصدر محذوف يعني تجميرًا وترًا. ﴿يدرج﴾ د افعال له بابه
مضارع مجهوله ده: يو شى په بل کې داخلول (پکښې نغښتل)، دننه کول.

**تشريح**: په دې عبارت کې کفن ته د يو خوشبوداره شي د دودولو حکم سوى دى چې په طاق شمېر
يعني درې، يا پنځه واره دې کفن ته عُود يا لوبان وغيره ودودول سي، تر هغه وروسته دې پر مړي
وپېچل سي، له پنځو وارو څخه زيات دې نه ورته دودول کېږي. (مراقى الفلاح)

**فايده**: له دودولو څخه (اصلًا) خوشبوداره کول مراد دي، يعني کفن دې هسې په يو ډول سره
خوشبوداره کړل سي چې ښه بوى ځنې پورته سي، هغه که ذيو شي په دودولو سره وي او که په عطرو
سره وي، يا په يو بل خوشبوداره شي سره وي، او دا کار په طاق شمېر سره کول سنت دي. (فتح الهدايه)

## كفن ضرورت

﴿۹۳۱﴾ وَكَفَنُ الضَّرُوْرَةِ مَا يُوْجَدُ او کفنِ ضرورت هغه دى کوم څه چې پيدا سي (يعني څومره
کپړه چې ترلاسه سي، د ضرورت په وخت کې هغه کافي ده).

**تشريح**: د کفن درېيم قسم کفنِ ضرورت دى، کفنِ ضرورت د سړي او ښځې لپاره دا دى چې
څومره کپړه هم ترلاسه سي چې کم از کم دومره وي چې ټوله بدن په پټ سي برابره ده نوې کپړه وي
او که زړه وي، او که دومره قدر هم نه وي، نو له خلکو څخه دې يې وغواړي او هغه دې ور پوره کړي،
او که دا هم نه سي کېدلاى، نو د سر پر طرف دې يې واچوي او د پښو طرف ته چې څومره اندازه
ښکاره (لڅه) پاته سي، هغه په وښو او داسې نورو سره پټول واجب دي. (شفاء الارواح)

## د قريب البلوغ د کفن حکم

**مسئله**: قريبُ البلوغ هلک او انجلۍ د کفن په حکم کي د لوی سړي او ښځي په څېر دی، يعني قريبُ البلوغ هلک ته دي د سړي په څېر په درېو کپړو کي او قريبُ البلوغ انجلۍ ته دي د ښځي په څېر په پنځو کپړو کي کفن ورکول سي (يعني سنت کفن)، همدارنګه ډېر کوچني هلک او انجلۍ ته(مناسب دا ده چي) هم دغسي دي کفن ورکول کېږي، خو کوچني هلک ته په يوه کپړه کي او کوچنۍ انجلۍ ته په دوو کپړو کي کفن ورکول هم جائز دي.



# فَصْلٌ فِيْ صَلَاةِ الْجَنَازَةِ

(دا) فصل په (بيان د) لمانځه د جنازې کي دی

**تشريح**: څرنګه چي تر کفن وروسته د جنازې د لمانځه پړاؤ راځي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله تر تکفين وروسته د جنازې د لمانځه فصل بيانوي، يا په بله وينا دا چي غسل او کفن شرط دي او د جنازې لمونځ يې مشروط دی، او قاعده دا ده چي الشرط يتقدم على المشروط.

**د جنازې په لمانځه کي شرکت کونکي لره زېرى**: د جنازې په لمانځه سره نه صرف دا چي مړي ته فايده رسيږي، بلکي خپله دا لمونځ کونکی هم له سعادت څخه نه محروميږي او د ده لپاره هم د بخښني وعده ده، لکه څرنګه چي په يوه روايت کي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: انسان ته د هغه تر مرګ وروسته تر ټولو مخکي بدله دا ورکول کيږي چي د هغه د جنازې سره تلونکي ټولو کسانو ته بخښنه کيږي (همداسي د جنازې د لمونځ کونکي په باره کي هم داسي نقل سوی دی). (الترغيب والترهيب مکمل: ۵۲۷۳)

**د افسوس ځای!**: نن سبا عموماً د جنازې پر موقع ځيني خلک د جنازې د لمانځه څخه ليري ولاړ ليدل کيږي او کله چي له هغو څخه پوښتنه وسي چي په جنازه کي شرکت ولي نه کوئ!، نو بعضي د بې اودسيا عذر پېشوي او بعضي وايي چي د جنازې دعاء مو ياده نه ده، حال دا چي دا ټوله کمزوري اعذار دي: ځکه پاکي حاصلول څه مشکل نه دي او پاته سوه د دعاء خبره، نو هغه خو د جنازې د لمانځه په فرائضو کي داخله نه ده بلکي د هغه فرائض صرف دوه دي: ① قيام (ولاړه)، ② څلو واره تکبير ويل، دو مره آسانه عبادت د غفلت په وجه پرېښوول ډېره د محرومۍ خبره ده. (کتاب المسائل ص: ۵۶۹)

## د جنازې لمونځ فرض کفایه دی

﴿۹۳۲﴾ اَلصَّلٰوةُ عَلَيْهِ فَرْضُ كِفَايَةٍ پر مړي لمونځ کول (د جنازې لمونځ) فرضِ کفايي دی.

**تشریح:** فرمايي چې د جنازې لمونځ فرضِ کفایه (فرض کفايي) دی، که هيڅوک هم د جنازې لمونځ نه وکړي او مسلمان مړی د لمانځه څخه بغير ښخ کړل سي، نو کومو خلکو ته چې معلومه ده، هغوی ټوله ګنهګاره کيږي، او که صرف يو کس يې هم اداء کړي، نو د ټولو له ذمې څخه دا فرض ساقطيږي؛ ځکه د جنازې د لمانځه لپاره جماعت شرط نه دی. (طحطاوي)

## د جنازې د لمانځه فرائض

﴿۹۳۳﴾ وَأَرْكَانُهَا التَّكْبِيرَاتُ وَالْقِيَامُ او د دې لمانځه ارکان تکبيرونه او ولاړه ده.

**تشریح:** د جنازې په لمانځه کي دوه شيان فرض دي: ① څلور واره الله اکبر ويل، ② قيام، يعني په ولاړه دا لمونځ اداء کول، که څوک بلا عذره د جنازې لمونځ وکړي، نو نه صحيح کيږي، لېکن که عذر وي، نو جائز دي.

## د جنازې د لمانځه د صحت شرطونه

﴿۹۳۴﴾ وَشَرَائِطُهَا سِتَّةٌ او د جنازې د لمانځه شرطونه شپږ دي إِسْلَامُ الْمَيِّتِ ① د مړي مسلمان والی (چي هغه به مسلمان وي) وَطَهَارَتُهُ ② او د مړي پاکوالی وَتَقَدُّمُهُ ③ او د مړي مخکي والي (چي هغه به تر امام مخکي ايښوول سوی وي) وَحُضُورُهُ أَوْ حُضُورُ أَكْثَرِ بَدَنِهِ أَوْ نِصْفِهِ مَعَ رَأْسِهِ ④ او د مړي موجود والی يا د هغه د بدن اکثره حصه يا نيمه حصه د سر سره موجود بېدل وَكَوْنُ الْمُصَلِّيْ عَلَيْهَا غَيْرَ رَاكِبٍ بِلَا عُذْرٍ ⑤ او په جنازه (مړي) پسي لمونځ کونکی بېله عذره نه سپر بېدل (چي څوک په جنازه باندي لمونځ کوي، هغه به پر يو سپارلي سپور نه وي) وَكَوْنُ الْمَيِّتِ عَلَى الْأَرْضِ ⑥ او مړی پر ځمکه کېدل فَإِنْ كَانَ عَلَى دَابَّةٍ أَوْ عَلَى أَيْدِي النَّاسِ بيا که مړی پر سپارلي وي يا د خلکو پر لاسو وي لَمْ تَجُزِ الصَّلٰوةُ عَلَى الْمُخْتَارِ إِلَّا مِنْ عُذْرٍ نو لمونځ نه جائز کيږي د مختار (اختيار سوي) قول مطابق، مګر د يو عذر په وجه.

**تشریح:** د جنازې د صحيح کېدلو شپږ شرطونه دي؛

①... مړی (میَت) به مسلمان وي، که څه هم فاسق یا بدعتي وي، د هغه د جنازې لمونځ صحیح دی، د کافر او مرتد د جنازې لمونځ صحیح نه دی.

②... طهارت، یعني د مړي بدن، کفن او ځای له نجاست حقیقیه څخه پاکېدل او د مړي بدن له نجاست حکمیه څخه پاکېدل، د بدن د پاکېدو مطلب دا دی چې هغه ته به غسل ورکول سوی وی، او که تر غسل وروسته او تر کفن ورکولو مخکې د هغه له بدن څخه نجاست ووځي، نو هغه دې صرف پرېولل سي، د غسل راګرځولو ضرورت نسته، او که تر کفن ورکولو وروسته نجاست راووځي، نو هغه معاف دی او لمونځ صحیح دی، او د کفن د پاکېدو مطلب دا دی چې پاک کفن به ورکول سي او که وروسته د مړي د نجاست د وتلو په وجه کفن ناپاکه سي، نو معاف دی او لمونځ صحیح دی. د ځای د پاکېدو مطلب دا دی چې مړی به پر پاک کټ یا تخته اېښوول سوی وی، او پاته سو پر کوم ځای چې د مړي کټ یا تخته اېښوول سوې وي، د هغه ځای پاکوالی شرط نه دی، په هر حال کي بالاتفاق لمونځ صحیح دی. (عمدة الفقه)

③... مړی (میَت) د امام مخ ته د قبلې و طرفته کېدل، که مړی د امام شاته وي، نو لمونځ نه صحیح کیږي.

④... د مړي ټوله بدن موجودېدل، یا د بدن زیاتره حصه د سر سره یا بغیر له سره، یا د بدن نیمه حصه د سر سره موجودېدل، که دومره اندازه مړی هلته موجود نه وي، مثلاً فقط سر یې موجود وي، یا نیم بدن بغیر له سره موجود وي، نو پر هغه د جنازې لمونځ صحیح نه دی، همدارنګه د غائب کس د جنازې لمونځ صحیح نه دی.

⑤... څوک چې پر مړي د جنازې لمونځ کوي، هغه به پر پښو سپارلي سپور نه وي، لهذا که څوک د سپرتیا په حالت کي د جنازې لمونځ اداء کړي، نو نه صحیح کیږي، لېکن که عذر وي چې د هغه په وجه نه سي زا شوه کېدلای مثلاً ټوله ځمکه ختې وي، نو بیا پر سپارلي هم جائز دی.

⑥... مړی یا پر کوم شي (کټ او تخته) چې مړی پروت وي، هغه به پر ځمکه اېښوول سوی وي، لهذا که مړی پر سپارلي وي (مثلاً په موټر کي وي یا مثلاً پر آس اېښوول سوی وي)، یا د خلکو پر لاسو وي، نو د جنازې لمونځ یې نه صحیح کیږي، لېکن که عذر وي مثلاً ځمکه ختې وي، نو جائز او صحیح دي. (شفاء الارواح)

## د جنازې د لمانځه سنتونه

| ﴿۴۳۵﴾ وَ سُنَنُهَا أَرْبَعٌ او د جنازې د لمانځه سنتونه څلور دي قِيَامُ الْإِمَامِ بِحِذَاءِ صَدْرِ الْمَيِّتِ ① د امام درېدل د مړي د سینې پر برابر (یا بله وینا، د مړي سینې ته مخامخ) ذَكَرًا كَانَ أَوْ |
| --- |

أُنْثٰى (برابره ده مړی) نارینه وي او که ښځینه وي وَالثَّنَاءُ بَعْدَ التَّکْبِیْرَةِ الْأُوْلٰی ② او ثناء (سبحانك اللهم...) ویل تر اول تکبیر وروسته وَالصَّلٰوةُ عَلَی النَّبِيِّ ﷺ بَعْدَ الثَّانِیَةِ ③ او درود ویل پر نبي کریم ﷺ تر دویم تکبیر وروسته (او ښه دا ده چې درود ابراهیمي ووایي) وَالدُّعَاءُ لِلْمَیِّتِ بَعْدَ الثَّالِثَةِ ④ او دعاء کول د مړي لپاره تر درېیم تکبیر وروسته.

**تشریح**: د جنازې په لمانځه کې درې شیان سنت دي: ① امام د مړي (جنازې) د سینې په مقابل کې درېدل، هغه که سړی وي او که ښځه. ② د الله تعالی حمد او ثناء بیانول تر اول تکبیر ووسته. ③ پر نبي کریم ﷺ دورد ویل تر دویم تکبیر وروسته. ④ د مړي لپاره دعاء کول تر درېیم تکبیر وروسته. خو علامه شامي او صاحب د البحر الرائق او علامه طحطاوي رَحِمَهُمُ الله صرف آخر درې شیان سنت شمېرلي دي او اول ته یې د مستحب درجه ورکړې ده. وهٰذا ظاهر الروایة وهو بیان الاستحباب. (او تر څلورم تکبیر وروسته سلام ګرځول کیږي چې د هغه بیان به څه وروسته راسي).

## تر درېیم تکبیر وروسته کومه دعاء ویل پکار دي؟

﴿۹۳۶﴾ وَلَا یَتَعَیَّنُ لَهٗ شَیْءٌ او د دې دعاء لپاره څه خاص دعاء متعینه نه ده وَإِنْ دَعَا بِالْمَأْثُوْرِ فَهُوَ أَحْسَنُ وَأَبْلَغُ او که مأثوره (منقوله) دعاء ووایي نو زیاته ښه او زیات رسونکې ده (تر مقصوده پورې) وَمِنْهُ مَا حَفِظَ "عَوْفٌ" مِنْ دُعَاءِ النَّبِيِّ ﷺ او له مأثوره (منقوله) دعاګانو څخه (یوه) هغه ده کوم چې حضرت عوف ؓ له نبي کریم ﷺ څخه یاده کړې ده (او هغه دا ده) اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَهٗ وَارْحَمْهُ اې الله! هغه ته بخښنه وکړه! او پر هغه رحم وکړه! وَعَافِهٖ وَاعْفُ عَنْهُ او عافیت (سلامتیا) ورکړه (له عذاب څخه)! او هغه ته معافي وکړه! وَأَکْرِمْ نُزُلَهٗ او معزّزه کړه! د هغه مېلمستیا (ښه مېلمستیا ورکړه!. یعني په قبر کې یې په خپلو نعمتونو سره ونازوه!. یا زیات ثوابونه ورکړه!) وَوَسِّعْ مَدْخَلَهٗ او پراخه کړه! د هغه د داخلېدلو ځای (قبر) وَاغْسِلْهُ بِالْمَاءِ وَالثَّلْجِ وَالْبَرَدِ او پرېوله! هغه په اوبو، واوره او ږلیو سره (یعني له ګناهونو څخه یې پاک کړه!) وَنَقِّهٖ مِنَ الْخَطَایَا کَمَا یُنَقَّی الثَّوْبُ الْأَبْیَضُ مِنَ الدَّنَسِ او پاک (صفا) کړه! هغه له خطاګانو

څخه (داسي) لکه څرنګه چي پاکول کيږي سپينه جامه له خيرو څخه وَأَبْدِلْهُ دَارًا خَيْرًا مِنْ دَارِهٖ او هغه ته په بدله کي داسي کور ورکړه! کوم چي غوره (بهتره) وي د هغه (د دنيا) له کور څخه وَأَهْلًا خَيْرًا مِنْ أَهْلِهٖ او داسي کورنۍ (اهل وعيال) کوم چي غوره وي د هغه له (دنياوي) کورنۍ څخه وَزَوْجًا خَيْرًا مِنْ زَوْجِهٖ او داسي جوړه (په بدله کي ورکړه!) کوم چي غوره وي د هغه له (دنياوي) جوړي څخه وَأَدْخِلْهُ الْجَنَّةَ او داخل کړه! هغه و جنت ته وَأَعِذْهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَعَذَابِ النَّارِ او پناه ورکړه! هغه ته د قبر او دوږخ له عذاب څخه.

**لغات**: ﴿مأثور﴾ د نصراو ضرب له بابه اسم مفعول دی: نقل کړی سوی (منقول). ﴿أحسن﴾ د کرُم له بابه اسم تفضيل دی: ډېر ښه. ﴿أبلغ﴾ دا هم اسم تفضيل دی د نصر له بابه: مقصود ته زيات رسونکی. ﴿عافه﴾ د مفاعلې له بابه امرِ حاضر معروف دی، مصدر: معافاةً: عافيت او صحت ورکول، له مرض او آفت څخه خوندي ساتل. ﴿نُزُل﴾ په اصل کي هغه شيانو ته ويل کيږي کوم چي د ميلمه لپاره تيارول کيږي، دلته زيات ثواب يا د قبر نعمتونه مراد دي. ﴿مَدْخَل﴾ د داخليدلو (ننوتلو) ځای، د داخليدلو دوازه، دلته مراد قبر دی، جمع: مَدَاخِل. ﴿ثلج﴾ واوره. ﴿بَرَد﴾ ږلۍ. ﴿دَنَس﴾ خيره، ګندګي، جمع: أدناس. ﴿أهلًا خيرًا من أهله و زوجًا خيرًا من زوجه﴾ په دې عبارت کي که له اهل څخه مراد زوج وي نو بيا عطف تفسيري دی او که له اهل څخه مراد د رحمت فرښتې او هغه مسلمان همسايه وي کوم چي مړ سوی وي يا د جنت اوسېدونکي ځني مراد وي، نو بيا د يوې جملې عطف پر بلې د مغايرت لپاره دی (طحطاوي بحوالۂ انوار الايضاح). ﴿أعِذْ﴾ د افعال له بابه د واحد مذکر امرِ حاضر صيغه ده: په پناه کي ساتل، خوندي ساتل.

**تشريح**: د جنازې په لمانځه کي تر دريم تکبير وروسته هره دعاء ويلای سي، صرف د دې خبري خيال ساتل پکار دي چي په هغه کي د مړي لپاره د مغفرت (بخښني) دعاء کول پکار دي، يوه دعاء په عبارت کي مذکوره ده چي هغه ته مصنف رَحِمَهُ الله احسن او ابلغ ويلي دي، دا دعاء له حضرت عوف بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه منقوله ده، هغه فرمايي چي: نبي کريم ﷺ يو مړي ته د جنازې لمونځ ورکړی، په هغه کي نبي کريم ﷺ دا دعا ورېله "اللّٰهم اغْفِرْ لَهٗ..." بيا هغه فرمايي چي د دې دعاء په اورېدلو سره ما دا تمنّ وکړه چي کاشکي دا جنازه زما وای. (مراقي الفلاح، الدر المنضود)

**فایدهٔ مهمه**: "وَاغْسِلْهُ بِالْمَاءِ وَالثَّلْجِ وَالْبَرَدِ...إلى قوله: مِنَ الدَّنَسِ"، د دې عبارت په تشریح کي علامه طحطاوي رَحِمَهُ الله فرمایي چي په دې کي استعاره بالکنایه ده، د استعاره بالکنایه مطلب دا دی چي یو شي ته د بل شي سره په زړه کي تشبیه ورکول سي او له مشبه څخه بغیر د تشبیه ټوله ارکان (مشبّه به، وجهٔ شبه، أدات تشبیه) پرېښوول سي، نو دلته هم مړي ته د داسي کپړې سره تشبیه ورکول سوې ده کومه چي پرېوللې کیږي او له مشبه څخه بغیر د تشبیه نور ټوله ارکان پرېښوول سوي دي او د غسل ذکر یعني "واغسله" استعارهٔ تخییلیه ده، د استعارهٔ تخییلیه مطلب دا دی چي د متروک مشبه به یو لازم د مذکوره مشبه لپاره ثابت کړی سي، نو دلته هم د مشبه به یعني د کپړې سره لازم شی "غسل" د مشبه یعني د "میت" لپاره ثابت سوی دی، او "الماء، البرد او الثلج" استعاره ترشیحیه ده، د دې مطلب دا دی چي د متروک مشبه به سره مناسب شی د مذکوره مشبه لپاره ثابت کړی سي. (انوار الایضاح)

## تر څلورم تکبیـــر وروسته سمدستي سلام ګرځول

﴿۹۳۷﴾ وَيُسَلِّمُ بَعْدَ الرَّابِعَةِ مِنْ غَيْرِ دُعَاءٍ او سلام دي وګرځوي تر څلورم تکبیـر وروسته بغیر له دعاء څخه فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ په ظاهر روایت کي.

**تشریح**: فرمایي چي تر څلوم تکبیر وروسته دي سمدستي سلام وګرځوي، څه دعاء دي نه کوي، صحیح خبره همدا ده، که څه هم بعضي مشائخو ویلي چي تر څلورم تکبیر وروسته دي " ربّنا آتنا في الدّنیا إلخ" یا " ربّنا لا تُزِغْ قُلُوْبَنَا إلخ" ووایي او سلام دي وګرځوي، خو ظاهر روایت همدا دی چي له دعاء کولو څخه بغیر (دواړو طرفونو ته) دي سلام وګرځوي.

## له اول تکبیـــر څخه بغیر په نورو تکبیرونو کي به لاسونه نه پورته کوي

﴿۹۳۸﴾ وَلَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِيْ غَيْرِ التَّكْبِيْرَةِ الْأُوْلٰى او نه دي پورته کوي خپل لاسونه له اول تکبیر څخه بغیر په نورو کي.

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چي د جنازې په لمانځه کي دي د اول تکبیـر ویلو سره دواړه لاسونه د غوږو تر نرمیو پوري پورته کړي او تر نامه لاندي دي یې وتړي او په پاته دریو تکبیرونو کي دي لاسونه نه پورته کوي، بلکي بغیر له لاس پورته کولو څخه دي تکبیر وایي.

## که امام د جنازې په لمانځه کې پنځم تکبیر ووایي؟

﴿۹۲۹﴾ وَلَوْ كَبَّرَ الْإِمَامُ خَمْسًا او که امام پنځم تکبیر ووایي لَمْ يُتَّبَعْ نو تابعداري به نه کول کیږي د هغه (یعني مقتدیان به پنځم تکبیر نه ور سره وایي) وَلٰكِنْ يُنْتَظَرُ سَلَامَهٗ لېکن انتظار به کول کیږي د هغه د سلام فِي الْمُخْتَارِ د مختار (اختیار سوي) قول مطابق.

**لغات**: ﴿لم يتبع﴾ د افتعال له بابه د جحد نفي بلم صیغه ده، مصدر: اِتِّبَاعًا: په یو چا پسي تلل، تابعداري کول، پیروي کول.

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چې که امام د جنازې په لمانځه کې پنځم تکبیر ووایي، نو مقتدیان دې د امام سره دا پنځم تکبیر نه وایي، اوس به دوی څه کوي؟، په دې باره کې له امام ابو حنیفه رحمه الله څخه دوه روایتونه دي: ① یو دا چې مقتدیان دې سمدستي سلام وګرځوي، د دې لپاره چې په پنځم تکبیر کې د امام مخالفت ثابت سي، ② او بل روایت دا دی چې مقتدیان دې چوپ ودرېږي او د امام د سلام ګرځولو انتظار دې وکړي، د دې لپاره لپاره چې په سلام کې متابعت راسي، مصنف رحمه الله فرمایي چې مختار روایت همدا دی او پر همدې فتویٰ ده. (انوار الایضاح. شفاء الارواح)

## د کوچني او لېوني لپاره به کومه دعاء ویل کیږي؟

﴿۹۳۰﴾ وَلَا يُسْتَغْفَرُ لِمَجْنُوْنٍ وَصَبِيٍّ او مغفرت به نه غوښتل کیږي (استغفار به نه ویل کیږي) دلېوني او بچي لپاره وَيَقُوْلُ او وایي به (یعني دا دعاء به وایي) اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا فَرَطًا اې الله! وګرځوه! هغه زموږ لپاره مخکینی اجر (چې زموږ له مرګ څخه مخکې هغه زموږ لپاره د اجر سبب وګرځي. یا د دې معنیٰ ده: اې الله وګرځوه هغه زموږ لپاره محکینی انتظام کونکی ا دداسې شیانو چې زموږ لپاره په آخرت کې غوره وي.) وَاجْعَلْهُ لَنَا أَجْرًا وَذُخْرًا او وګرځوه! هغه زموږ لپاره ثواب او ذخیره وَجْعَلْهُ لَنَا شَافِعًا وَمُشَفَّعًا او وګرځوه! هغه زموږ لپاره شفاعت کونکی او شفاعت قبول کړی سوی (چې ستا په دربار کې یې شفاعت او سفارش قبول کړی سي).

**لغات**: ﴿فَرَطًا﴾ (د راء په فتحه سره): د دې لفظ څو معناوي دي چې له هغوی څخه یوه دا ده: هغه اجر او عمل کوم چې انسان مخکې کړی وي (له ځان څخه یې مخکې استولی وي). صاحب د مصباح رحمه الله د دې وضاحت داسې کړی دی "اللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ فَرَطًا أَيْ أَجْرًا مُتَقَدِّمًا"، صاحب د انوار الایضاح حفظه الله

د دې معنیٰ داسې بیان کړې ده: مخته د داسې شیانو انتظام کونکی کوم چې په جنت کې زموږ لپاره غوره وي. ﴿ذُخْرًا﴾ (د ذال په ضمه سره): ذخیره. ذَخَرَ یَذْخُرُ ذَخْرًا و ذُخْرًا (فتح): ذخیره کول. جمع کول. یو شی د ضرورت په وخت کې محفوظ ساتل.

**تشریح**: د کوچني بچي او مجنون لپاره دې هغه دعاء نه وایي کوم چې مخکې د لویانو لپاره ذکر سوه. بلکې د هغه پر ځای پورتنۍ مذکوره دعاء وایي؛ ځکه چې دوی مکلف نه دي. لهذا د دوی لپاره د ګناهونو مغفرت غوښتل بې فایدې دي.

او دلته له مجنون څخه مراد هغه مجنون دی کوم چې تر بلوغ مخکې لېونی سوی وي؛ ځکه چې هغه بالکل مکلف سوی نه دی او که جنون تر بلوغ وروسته واقع سوی وي. نو د هغه لپاره دې د مغفرت دعاء کول کیږي؛ ځکه تر جنون مخکې هغه مکلف وو. او تر جنون مخکې د بلوغت د زمانې ګناهونه په جنون سره نه ساقطیږي. (شفاء الارواح)



## د جنازې د لمانځه پوره طریقه

د جنازې د لمانځه طریقه دا ده چې مړی دې مخ ته کښېږدي او امام دې د هغه د سینې پر مقابل ودرېږي او ټوله خلک دې په زړه یا په ژبه سره هم دا نیت وکړي چې "زه د الله تعالی د رضاء او د مړي په حق کې د دعاء کولو لپاره د جنازې لمونځ کوم". تر دې وروسته دې الله اکبر ووایي او دواړه لاسونه دې د غوږو تر نرمیو پورې پورته کړي او تر نامه لاندې دې یې وتړي. تر اول تکبیر وروسته دې ثناء یعني " سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ " ووایي. بیا دې دویم تکبیر ووایي او تر هغه وروسته دې درود شریف ووایي کوم درود چې په لمانځه کې ویل کیږي (یعني درود ابراهیمي). یا بعضي علماؤ کرامو دا درود هم لیکلی دی " اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ وَسَلَّمْتَ وَبَارَكْتَ وَرَحِمْتَ وَتَرَحَّمْتَ عَلٰى إِبْرَاهِيمَ وَعَلٰى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ ". دا هم ویلای سي. بیا دې دریم تکبیر ووایي او تر هغه (دریم تکبیر) وروسته دې د مړي لپاره دعاء وکړي. مړی که بالغ وي. نو دا دعاء دې ووایي "اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا وَمَيِّتِنَا وَشَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا وَصَغِيْرِنَا وَكَبِيْرِنَا وَذَكَرِنَا وَأُنْثَانَا، اللّٰهُمَّ مَنْ أَحْيَيْتَهُ مِنَّا فَأَحْيِهِ عَلَى الْإِسْلَامِ وَمَنْ تَوَفَّيْتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ عَلَى الْإِيْمَانِ". او که خوښه یې وي نو هغه دعاء دې ووایي کوم چې له حضرت عوف بن مالک ﷺ څخه منقوله ده کوم چې څه مخکې په ﴿۹۳۶﴾ نمبر مسئله کې تېره سوه. او که جنازه د بالغه ښځې وي. نو په دعاء کې دې د مذکر د ضمیرونو پر ځای د مؤنث ضمیرونه استعمال کړي. او که مړی نا بالغ هلک وي. نو هم دې دغه پورتنۍ دعاء ووایي (کوم چې اوس په ﴿۹۴۰﴾ نمبر مسئله کې ذکر سوه) او

که نابالغه انجلۍ وي، نو د "اجعله" پر ځای دي "اجعلها" او د "شافعًا" پر ځای "شافعةً" او د "مشفعًا" پر ځای دي "مشفعةً" ووايي. تر دې وروسته دي څلورم تکبير ووايي او سلام دي وګرځوي.

او د کوم چا چې د جنازې دعاء ياده نه وي، هغه دي صرف "اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَنَا وَلِوَالِدَيْنَا وَلَهٗ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ" ووايي، او که دا يې هم نه يادېږي، نو صرف په هغه څلور واره تکبيرو يلو سره يې لمونځ کيږي، لهذا بېله عذره دي لمونځ نه پرېږدي (چې زما دعاء زده نه ده...). (در مختار مع شامي ج:۱، ص:۸۱۶، طحطاوي ص:۳۲۱)






## د جنازې په لمانځه کي د امامت مستحق

﴿۹۳۱﴾ اَلسُّلْطَانُ أَحَقُّ بِصَلٰوتِهٖ باچا (بادشاه) زيات حقدار دی د مړي (جنازې) د لمانځه ثُمَّ نَائِبُهٗ ثُمَّ الْقَاضِيْ بيا د باچا نائب بيا قاضي ثُمَّ إِمَامُ الْحَيِّ ثُمَّ الْوَلِيُّ بيا کلي (محلې) والا امام بيا ولي (د مړي سرپرست).

**لغات**: ﴿السلطان﴾ باچا (بادشاه)، جمع: سَلَاطِيْن. ﴿الحيّ﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چې له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: محله، کلی، د څو کورونو مجموعه، جمع: أَحْيَاء. ﴿الولیّ﴾ د دې لفظ څو معناوي نقل سوي دي چې ځيني يې دا دي: ذمه وار، ميراث خور، مشر او داسي نور، مراد ځني د مړي په قريبانو (ميراث خوارو) کي تر ټولو نژدې قريب دی (يا په بله وينا مشر ميراث خور چې د کورنۍ او د مړي مشري يې په غاړه وي).

**تشريح**: د جنازې د لمونځ کولو اول حقدار سلطان يعني د مسلمانانو باچا (اميرُ المؤمنين) دی، که هغه حاضر نه وي، نو بيا د باچا نائب اولیٰ دی، که هغه هم نه وي، نو بيا قاضي اولیٰ دی. لېکن دا حکم هلته دی چيري چې اسلامي او شرعي حکومت قائم وي، کوم چې نن سبا عموماً معدوم دی. او

د دوی په نا موجودیت کي بیا د محلې امام که د مړي له ولي څخه غوره وي، نو هغه اولیٰ دی، او که د مړي ولي غوره وي (یعني د امام په نسبت په علم او تقویٰ کي افضله وي)، نو هغه اولیٰ دی، د ولي مذکر کېدل او عاقل و بالغ کېدل شرط دي.

## آیا ولي وغیره بل څوک مخکي کولای سي؟

| |
|---|
| ﴿۹۳۲﴾ وَلِمَنْ لَهُ حَقُّ التَّقَدُّمِ أَنْ يَأْذَنَ لِغَيْرِهِ او جائز دي هغه کس لره کوم ته چي د مخکي کېدلو (د جنازې د لمونځ ورکولو) حق حاصل دی دا چي اجازه ورکړي (د مخکي کېدلو) و بل چا ته. |

**لغات**: ﴿یأذن﴾ د سمع له بابه مضاع معلومه ده: اجازه (اجازت) ورکول.

**تشریح**: مستحق کس یعني کوم چا ته چي د جنازې د لمونځ ورکولو حق رسېدلی وي، که هغه خپله د جنازې لمونځ نه ورکړي، بلکي بل چا ته اجازه ورکړي یعني بل څوک مخکي کړي، نو داسي کول جائز دي، مثلاً د مړي ولي زیات حقدار وي، خو هغه خپله د محلې امام ته اجازه ورکړي، یا مثلاً باچا خپل نائب ته اجازه ورکړي، نو دا صحیح دي. (انوار الایضاح)

## د جنازې لمونځ دوباره کول

| |
|---|
| ﴿۹۳۳﴾ فَإِنْ صَلَّى غَيْرُهُ بیا که لمونځ ورکړي له هغه (ولي) څخه بغیر بل څوک أَعَادَهَا إِنْ شَاءَ نو هغه دي راوګرځوي که یې خوښه وي وَلَا يُعِيدُ مَعَهُ مَنْ صَلَّى مَعَ غَيْرِهِ او نه به یې راګرځوي د ده سره هغه کس کوم چي د بل چا سره لمونځ کړی وي. |

**لغات**: ﴿شاء﴾ د فتح له بابه ماضي معلومه ده، مصدر: شَيْئًا: غوښتل، خوښول، اراده کول، غیره: أي غير الولي ممن ليس له حق التقدم، إن شاء: فالإعادة ليست بواجبة، معه: أي مع من له حق التقدم.

**تشریح**: که غیر مستحق کس (یعني داسي کس چي هغه ته پر ولي د مقدم کېدلو حق نه وي) د ولي له اجازې څخه بغیر لمونځ ورکړي او ولي موجود نه وي چي د هغه په اقتداء کي لمونځ وکړي، نو په دې صورت کي که د ولي خوښه وي، نو دویم وار د جنازې لمونځ کولای سي، او کوم کسان چي په اول لمانځه کي شریکان وه، هغوی به د ولي سره په دې دویم لمانځه اوس بیا کي شرکت نه کوي، او که هغه (غیر مستحق) د ولي په اجازه سره لمونځ ورکړی وي، یا ولي خو اجازه نه وي ورکړې، لېکن د هغه په اقتداء کي یې لمونځ کړی وي، نو بیا ولي دویم وار د جنازې لمونځ نه سي کولای. (شفاء الأرواح)

## که مړي د خپل جنازې د لمانځه لپاره د یو متعین سړي وصیت کړی وي؟

﴿۹۳۴﴾ وَ مَنْ لَهٗ وِلَایَةُ التَّقَدُّمِ فِیْهَا او کوم چا لره چې د مخکې کېدلو ولایت (حق) ستہ (د جنازې) په لمانځه کې أَحَقُّ مِمَّنْ أَوْصٰی لَهُ الْمَیِّتُ بِالصَّلٰوۃِ عَلَیْهِ هاغه زیات حقدار دی له هغه کس څخه د چا لپاره چې مړي پر خپل ځان (د جنازې) د لمونځ کولو وصیت کړی وي عَلَی الْمُفْتٰی بِهٖ دمفتیٰ بہ قول مطابق.

**لغات:** ﴿أوصٰی﴾ د افعال له بابه ماضي معلومه ده، مصدر: ایصاءً: د یو چا لپاره د یو شي وصیت کول.

**تشریح:** مسئله دا ده چې که مړي وصیت کړی وي چې پر ما به د جنازې لمونځ فلانکی کس کوي، نو دمفتیٰ به قول مطابق د دې وصیت پوره کول لازم نه دي، او په دې سره د مستحق کس حق نه ختمېږي، خو که د مړي د ولي خوښه وي چې هغه لمونځ ورکړي، نو په دې کې څه حرج نشته.

## که مړی بغیر د جنازې د لمانځه څخه ښخ کړل سي، نو څه حکم دی؟

﴿۹۳۵﴾ وَإِنْ دُفِنَ بِلَا صَلٰوۃٍ او که ښخ کړل سی مړی بېله لمانځه (چې پر هغه د جنازې لمونځ نه وي سوی) صُلِّیَ عَلٰی قَبْرِهٖ نو د هغه پر قبر دې لمونځ وسي وَإِنْ لَّمْ یُغْسَلْ که څه هم غسل نه وي ورکول سوی مَا لَمْ یَتَفَسَّخْ تر څو چې هغه مړی شورېدلی نه وي (یعني سالم پاته وي. شورېدلی او خراب سوی نه وي).

**لغات:** ﴿لم یتفسخ﴾ د تفعّل له بابه د جحد صیغه ده. تَفَسَّخَ یَتَفَسَّخُ تَفَسُّخًا: شورېدل. ټوټه. ټوټه کېدل (رېزه. رېزه کېدل).

**تشریح:** مړی که بغیر د لمانځه څخه ښخ کړل سي، نو بیا به د هغه پر قبر د جنازې لمونځ کول کیږي. که څه هم غسل نه وي ورکول سوی، او پر قبر د لمونځ کولو اجازه تر هغه وخته پورې ده تر څو چې غالب گومان دا وي چې د مړي بدن به تر اوسه شورېدلی او خراب سوی نه وي. او که د شورېدلو او خرابېدلو یې غالب گومان وي، نو بیا دا اجازه نشته. همدا صحیح قول دی. او د مړي د بدن خرابېدل د زمانې او د مړي د حالت په اختلاف سره مختلف وي. (شفاء الارواح)



**مسئله:** که پر مړي د جنازې لمونځ وسي، تر دې وروسته معلومه سي چې دا امام اودس نه وو، نو پر هغه به دوباره د جنازې لمونځ کول کیږي، او که تر ښخولو وروسته معلومه سي چې دا امام اودس نه

وو، نو بیا به د هغه پر قبر دوباره د جنازې لمونځ کول کیږي، کله چې د مړي د ډنه خرابېدلو غالب ګومان وي.

## که په یوه وخت کې څو جنازې سره جمع سي؟

﴿۹۳۶﴾ وَإِذَا اجْتَمَعَتِ الْجَنَائِزُ او کله چې څو جنازې جمع سي فَالْإِفْرَادُ بِالصَّلٰوةِ لِكُلٍ مِنْهَا أَوْلٰى نو له هغوی څخه د هري یوې لپاره جلا، جلا لمونځ کول غوره (افضل) دي وَيُقَدَّمُ الْأَفْضَلُ فَالْأَفْضَلُ او مخکې کول کیږي به (په هغوی کې) افضل کس بیا (تر هغه وروسته) افضل.

**تشریح**: که په یوه وخت کې څو جنازې راوړل سي، نو غوره دا ده چې د هر یوه د جنازې لمونځ جلا، جلا اداء کړل سي، او په دوی کې چې کوم یو تر ټولو افضل وي، اول دي د هغه لمونځ اداء کړل سي. بیا له هغه څخه وروسته افضل (کوم چې تر مخکینې په فضیلت کې کم وي)... علیٰ هٰذا القیاس.

﴿۹۳۷﴾ وَإِنِ اجْتَمَعْنَ او که څو جنازې جمع سي وَصُلِّيَ عَلَيْهَا مَرَّةً او لمونځ وسی پر هغوی په یوه وار (یعني پر هغوی ټولو دیوه لمونځ کولو اراده وي) جَعَلَهَا صَفًّا طَوِيْلًا مِمَّا يَلِي الْقِبْلَةَ نو هغوی دي کېښېږدي په اوږده صف سره و هغه طرف ته چې د قبلې سره متصل دی (یعني د امام مخ ته دي یې د قبلې پر خوا په اوږدول سره ایږدي په یل پسې اد صف په ډول کېښېږدي) بِحَيْثُ يَكُوْنُ صَدْرُ كُلٍّ قُدَّامَ الْإِمَامِ په دې توګه چې وي د هر یوه سینه د امام مخ ته (یعني چې د هر یوه سینه د امام و مخ ته واقع سي) وَرَاعَى التَّرْتِيْبَ او د ترتیب مراعات دي وکړي فَيَجْعَلُ الرِّجَالَ مِمَّا يَلِي الْإِمَامَ ثُمَّ الصِّبْيَانَ بَعْدَهُمْ ثُمَّ الْخَنَاثٰى ثُمَّ النِّسَاءَ نو کېښې دي ږدي سړیان د امام سره متصل طرف ته (یعني د امام مخ ته دي اول د سړیو جنازې کېښېږدي) بیا کوچنیان بیا نربنځیان بیا ښځې.

﴿۹۳۸﴾ وَلَوْ دُفِنُوْا بِقَبْرٍ وَاحِدٍ او که دوی ټوله په یوه قبر کې ښخول کیږي وُضِعُوْا عَلٰى عَكْسِ هٰذَا نو د دې (پورتني ترتیب) برعکس دي کېښېښول سي.

**لغات**: ﴿یلی﴾ د ضرب له بابه مضاع معلومه ده، مصدر: وَلْیًا: متصل کېدل (جوختېدل)، نږدې کېدل، ﴿خنائی﴾ (بفتح الخاء) جمع د خُنْثٰی ده: نربنځی.

**تشریح**: او که پر ټولو جنازو صرف یو لمونځ کول کیږي (مثلاً څلور جنازې راوړل سوې: یوه د سړي جنازه وه، بله د ښځي او بله د کوچني (نابالغه) هلک او بله د نربنځي (خنثیٰ) جنازه، او ټولو ته په یوه واریو لمونځ ورکول کیږي)، نو بیا دي هغه جنازې د قبلې پر طرف (د امام مخ ته) په اوږدول سره د صف په ډول کېښېنول سي، په دې توګه چي د ټولو سینه د امام په مقابل کي راسي، او په ایښوولو کي به اول د امام مخ ته د سړي جنازه کېښېنول سي، تر هغه وروسته د کوچني (نابالغه) هلک، بیا د خنثیٰ او بیا د ښځي او بیا به د کوچنۍ انجلۍ جنازه کېښېنول سي، چي شکل به یې په لاندي توګه وي.




ولو دفنوا بقبرٍ واحدٍ إلخ: او که د یو عذر او ضرورت په وجه دا څلور سره قسمه جنازې په یوه قبر کي ښخول کیږي، نو بیا به ترتیب د دې برعکس وي، یعني د جنازې د لمونځ کولو پر مهال خو تر ټولو په آخر کي د قبلې پر طرف اول د ښځي جنازه ایښوول سوې وه او له قبلې څخه لیري یعني امام ته نږدې اول د سړي جنازه ایښوول سوې وه (لکه په پورتني شکل کي)، نو اوس به د ښخولو پر مهال د قبلې پر طرف اول د سړي جنازه ایښوول کیږي، بیا د نابالغه بچي، بیا د خنثیٰ او بیا د ښځي (نو دلته ښځه تر ټولو شاته سوه لکه په مخکیني صورت کي چي سړی تر ټولو شاته وو، او امام ته نږدې متصل وو، نو لکه څرنګه چي د امام سره متصل اول د افضل یعني د سړي جنازه وه، همداسي به په قبر کي د قبلې و خوا ته متصل اول د سړي جنازه وي). (انوار الایضاح)

**یادونه**: د ټولو جنازو لپاره دا دعاء "اللّٰهم اغفر لحیّنا ومیّتنا إلخ" کافي ده، او د نابالغ د جنازې لپاره که د دې دعاء سره د نابالغ دعاء هم یو ځای کړي، نو بهتره ده. (در مختار مع الشامي، مراقي الفلاح مع الطحطاوي)

## د جنازې په لمانځه کي د مسبوق حکم

﴿۹۲۹﴾ وَلَا يَقْتَدِيْ بِالْإِمَامِ مَنْ وَجَدَهٗ بَيْنَ تَكْبِيْرَتَيْنِ او اقتداء دي نه کوي په امام پسي (د جنازې په لمانځه کي) هغه کس کوم چي ومومندي (ونیسي) امام د دوو تکبیرونو په مینځ کي بَلْ

يَنْتَظِرُ تَكْبِيْرَ الْإِمَامِ بلکې انتظار دې وکړي د امام د تکبیر فَيَدْخُلُ مَعَهُ وَيُوَافِقُهُ فِيْ دُعَائِهِ بیا دې داخل سي د امام سره او موافقت دې وکړي د امام سره په دعاء کې ثُمَّ يَقْضِيْ مَا فَاتَهُ قَبْلَ رَفْعِ الْجَنَازَةِ بیا دې قضاء راوړي د هغه حصې کوم چې له ده څخه فوت سوه (تېر سوه) د جنازې له پورته کېدو څخه مخکې.

**تشریح**: که څوک د جنازې لمانځه ته په داسې وخت کې ورسیږي چې امام اول تکبیر ویلی وي، نو حکم دا دی چې اوس دې دغه کس د امام سره نه شریک کیږي بلکې انتظار دې و کړي او کله چې امام دویم تکبیر ووایي، نو بیا دې په تکبیر ویلو سره په لمانځه کې ور سره شریک سي او تر تکبیر وروسته چې امام کوم کلمات وایي، دئ دې هم هغه ووایي او کله چې امام له سلام څخه فارغ سي، نو دا کس دې د جنازې له پورته کېدو څخه مخکې خپل تېر سوی تکبیر را وګرځوي.

همدارنګه که په داسې وخت کې راسي چې امام دوه یا درې تکبیرونه ویلي وي، نو هم دې انتظار وکړي او کله چې امام تکبیر ووایي، نو په تکبیر ویلو سره دې ور سره شریک سي او تېر سوي تکبیرونه دې د امام تر سلام وروسته اداء کړي. (شفاء الارواح)

## د غفلت په وجه په تکبیرِ تحریمه کې تأخیر کول

﴿۹۵۰﴾ وَلَا يَنْتَظِرُ تَكْبِيْرَ الْإِمَامِ مَنْ حَضَرَ تَحْرِيْمَتَهُ او انتظار دې نه کوي د امام د تکبیر هغه کس کوم چې د امام د تکبیر تحریمه په وخت کې حاضر (موجود) وي.

**تشریح**: که یو څوک د امام د تکبیر ویلو په وخت کې هلته موجود وي، خو د غفلت او سُستي وغیره په وجه د تکبیرِ تحریمه په وخت کې د امام سره الله اکبر نه ووایي، نو هغه دې د دویم تکبیر انتظار نه کوي، بلکې سمدستي یعني تر دویم تکبیر مخکې دې تکبیر ووایي او په لمانځه کې دې ور سره شریک سي او د هغه دا تکبیر شمېرل کیږي (لهذا وروسته دې یې قضاء نه راوړي). (شفاء الارواح)

## تر څلورم تکبیر وروسته د راتلونکي کس حکم

﴿۹۵۱﴾ وَمَنْ حَضَرَ بَعْدَ التَّكْبِيْرَةِ الرَّابِعَةِ قَبْلَ السَّلَامِ او څوک چې حاضر سي تر څلورم تکبیر وروسته له سلام څخه مخکې فَاتَتْهُ الصَّلٰوةُ فِي الصَّحِيْحِ نو له هغه څخه (د جنازې) لمونځ فوت سو، د صحیح قول مطابق.

**تشریح**: که یو څوک په داسې وخت کې راسي چې امام څلور سره تکبیرونه ویلي وي. فقط سلام پاته وي. نو له امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دا دی چې هغه دې د امام سره نه شریک کیږي، له

هغه څخه د جنازې لمونځ فوت او تېر سو، او همدا د امام محمد رَحِمَهُ الله مسلک دی او مصنف رَحِمَهُ الله همدې ته صحیح ویلې دي، لیکن زیات صحیح (اصح) دا ده چې هغه دې یو تکبیر ووایي او د امام سره دې په لمانځه کې شریک سي او د امام تر سلام ګرځولو وروسته له جنازې پورته کېدو څخه مخکې دې درې واره الله اکبر ووایي او سلام دې وګرځوي، او پر همدې فتویٰ ده. (شفاء الارواح)

## په مسجد کې د جنازې لمونځ کول

﴿۹۵۲﴾ وَتُكْرَهُ الصَّلٰوةُ عَلَيْهِ فِيْ مَسْجِدِ الْجَمَاعَةِ وَهُوَ فِيْهِ او مکروه دی لمونځ کول پر مړي (یعنې د جنازې لمونځ) د جماعت په مسجد کې په داسې حال کې چې مړی په مسجد کې وي أَوْ خَارِجَهٗ وَبَعْضُ النَّاسِ فِي الْمَسْجِدِ یا مړی له مسجد څخه بهر وي او څه خلک په مسجد کې دننه وي عَلَى الْمُخْتَارِ د مختار قول مطابق.

**تشریح**: په کوم مسجد کې چې جماعت کېږي، لکه د کلي او ښار عام مسجدونه، په هغه کې د جنازې لمونځ کول مکروه تحریمي دي، برابره ده جنازه په مسجد کې وي او که له مسجد څخه بهر وي او ټوله یا بعضې خلک په مسجد کې دننه وي، همدا مختار قول دی او بعضې فرمایي چې که صرف جنازه له مسجد څخه بهر وي او لمونځ کونکي ټوله یا بعضې په مسجد کې دننه وي، نو مکروه نه دي. (شفاء الارواح)

**یادونه**: دلته د متن په عبارت کې د "مسجد الجماعة" قید لګول سوی دی، له دې څخه معلومېږي چې په کوم مسجد کې لمونځ نه کېږي، په هغه کې د جنازې لمونځ مکروه نه دی، همدارنګه په عیدګاه او مدرسه کې د جنازې لمونځ کول بلا کراهت صحیح دی. (طحطاوي)

## که بچی تر پیدایښت وروسته مړ سي، یا مړ بچی پیدا سي، نو څه حکم دی؟

﴿۹۵۳﴾ وَمَنِ اسْتَهَلَّ او کوم بچی چې چیغه (آواز) وکړي سُمِّيَ وَغُسِلَ نو نوم دې پرې کېښېنول سي او غسل دې ورکول سي وَصُلِّيَ عَلَيْهِ او پر هغه دې لمونځ وکړل سي وَإِنْ لَّمْ يَسْتَهِلَّ او که هغه چیغه نه وکړي غُسِلَ فِي الْمُخْتَارِ نو غسل دې ورکول سي. د مختار قول مطابق وَأُدْرِجَ فِيْ خِرْقَةٍ وَدُفِنَ او ودې پېچل سي په یوه ټوټه (کپړه) کې او ښخ دې کړل سي وَلَمْ يُصَلَّ عَلَيْهِ او پر هغه دې لمونځ نه کول کېږي.

﴿۹۵۳﴾ كَصَبِيٍّ سُبِيَ مَعَ أَحَدِ أَبَوَيْهِ لکه هغه بچی کوم چې قید کړی سوی (په غنیمت راوستل سوی) وي د خپل پلار یا مور سره (نو پر هغه د جنازې لمونځ نه کول کیږي) إِلَّا أَنْ يُسْلِمَ أَحَدُهُمَا أَوْ هُوَ مګر دا چې اسلام راوړي یو د دوی (یعني پلار یا مور) یا هغه بچی (خپله اسلام راوړي) أَوْ لَمْ يُسْبَ أَحَدُهُمَا مَعَهُ یا نه وي قید کړی سوی یو د دوی (پلار یا مور) د هغه سره.

**لغات**: ﴿استهل﴾ د استفعال د باب ماضي ده، مصدر: استهلال: د دې څو معناوي دي چې له هغوی څخه یوه معنیٰ ده: د پیدایښت په وخت کې د بچي چیغه وهل. د زیږېدلو پر مهال د کوچني ژړل او آواز کول، آواز پورته کول. خو چیغه وهل او آواز پورته کول شرط نه دي بلکي شرعي معنیٰ مراد ده یعني چې په پیدا کېدونکي بچي کې د ژوند آثار ښکاره سي برابره ده په حرکت سره وي او که په آواز سره وي کله چې (د مور له ګېډې څخه) د هغه اکثره حصه او سینه را وتلې وي او که چپه وي یعني د پښو له طرفه وي نو چې هغه تر نوم (ناف) پوري را وتلی وي، او په نس کې د هغه حرکت وغیره لره اعتبار نسته (حاشیة نور الایضاح)، ﴿أُدرِج﴾ د افعال له بابه ماضي مجهوله ده، مصدر: إدراج: یو شی په بل شي کي داخلول، دننه کول، پېچل (نغښتل).

**تشریح**: که د بچي د پیدایښت په وخت کي د هغه د ژوندي والي یو علامت ولیدل سي مثلاً آواز وکړي، یا ساه واخلي، یا د هغه یو اندام یا سترګه وغورځېږي بیا مړ سي، نو پر داسي بچي دي نوم هم کېښول سي او هغه ته دي غسل او کفن هم ورکول سي او پر هغه دي د جنازې لمونځ هم وکړل سي. خو کوم بچي چې د پیدایښت په وخت کي د ژړا آواز نه وکړي او د ژوند یو بل علامت هم نه پکښې ولیدل سي، نو د مختار قول دا دی چې هغه ته دي هم غسل ورکول سي او په یوه کپړه کي دي ونغښتل سي او ښخ کړل سي او پر هغه دي جنازې لمونځ نه کول کیږي.

كصبيّ إلخ: د مخکینۍ مسئلې لپاره مثال دی (په "کصبي" کي کاف د تشبیه دی. ګواکي د ماقبل مسئلې ته د دې سره تشبیه ورکول سوې ده)، فرمایي لکه د کافرانو یو بچی چې د خپل پلار یا مور سره قید (بندي) کړل سي او مړ سي، نو پر هغه د جنازې لمونځ نه کول کیږي؛ ځکه بچی د مور او پلار په متابعت کي کافر دی، ها! که د بچي له مور او پلار څخه یو مسلمان سي، نو بیا به پر دغه بچي د جنازې لمونځ کول کیږي، همدارنګه که هغه بچی عقلمند او پوهېدونکی وي او هغه خپله د اسلام اقرار وکړي. نو هم به پر هغه د جنازې لمونځ کول کیږي، همدارنګه کله چې بچی یوازې قید کړل سي او د هغه له مور او پلار څخه یو ورسره قید نه سي، بیا هغه بچی مړ سي، نو هم به پر هغه د جنازې

لمونځ کول کیږي؛ ځکه په دارُ الاسلام کې د موجودیت په وجه به د هغه د اسلام حکم کول کیږي. (شفاء الارواح)

## که د مسلمان یو کافر قریب مړ سي، نو څه حکم دی؟

﴿۹۵۵﴾ وَإِنْ كَانَ لِكَافِرٍ قَرِيبٌ مُسْلِمٌ او که (مړي سوي) کافر لره مسلمان قریب وي غَسَلَهُ كَغَسْلِ خِرْقَةٍ نَجِسَةٍ نو هغه دي و دغه کافر ته غسل ورکړي، د ناپاکه ټوټې (کپړې) د پرېوللو په څېر وَكَفَّنَهُ فِي خِرْقَةٍ وَأَلْقَاهُ فِي حُفْرَةٍ او کفن دي ورکړي په یوه ټوټه (کپړه) کي او (بیا) دي یې وغورځوي په یو کنده کي أَوْ دَفَعَهُ إِلَى أَهْلِ مِلَّتِهِ یا ور دي یې کړي د هغه د خپل دین والا وو (کفارو) ته.

**لغات:** ﴿حُفرة﴾ کنده، کلې، ﴿مِلّة﴾ ملت، دین، مذهب.

**تشریح:** مسئله دا ده چي که یو کافر مړ سي، نو د هغه غسل او کفن پر مسلمانانو فرض نه دی؛ ځکه غسل د مړي د تعظیم او احترام لپاره واجب دی او کافر د دې اهل نه دی، لېکن که ضرورت وي مثلاً یو مسلمان کس د هغه قریب وي او دا مسلمان د قرابت په وجه غسل او کفن ورکړي او ښخ یې کړي، نو جائز دي، خو غسل، کفن او دفن دي په سنت طریقه سره نه ورکوي، یعني نه دي هغه ته اودس ورکوي، نه دي سر او ورېښتان په خطمي او صابون وغیره سره ور صفا کوي، نه دي یې له راسته طرفه شروع کوي او نه دي کافور او خوشبویي د هغه پر بدن مړل کیږي او داسي نور، بلکي د ناپاکه کپړې په څېر دي یې پرېولي (یعني پر هغه دي اوبه وبهوي) او په یو کپړه کي دي یې ونغاړي او په یو کنده (کلي) کي دي یې واچوي، یا د هغه خپل مذهبیانو ته دي یې حواله کړي (هغوی چي څه هر په کوي، د دوی کار دی).

## په باغي او ډاکو باندي د جنازې د لمونځ کولو حکم

﴿۹۵٦﴾ وَلَا يُصَلَّى عَلَى بَاغٍ وَقَاطِعِ طَرِيقٍ او لمونځ به نه کول کیږي پر باغي کس (کوم چي له اسلامي حکومت څخه بغاوت کړی وي) او پر لاره شکونکي کس (ډاکو) قُتِلَ فِي حَالَةِ الْمُحَارَبَةِ چي هغه (باغي یا ډاکو) وژل سوی وي د جنګ په حالت کي.

**لغات:** ﴿باغٍ﴾ د ضرب له بابه فاعل دی: سرکښه، فرمان نه منونکی، له حق څخه لیري کېدونکی، ﴿قاطع طریق﴾ ډاکو، ډاکه مار، لاره شکونکی، ﴿محاربة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: جنګ کول.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چي که څوک د حق امام (واکمن) له اطاعت څخه ناحقه ووځي او بغاوت (سرکښي) شروع کړي او د پوهولو باوجود اطاعت ته آماده نه سي او په جنګ لاس پوري کړي چي بالآخره ووژل سي، نو هغه ته به نه غسل ورکول کیږي او نه به د هغه د جنازې لمونځ کول کیږي.

همدارنګه که یو ډاکو (ډاکه مار) د ډاکه مارۍ په وخت کي ووژل سي، نو د عبرت لپاره به پر هغه هم د جنازې لمونځ نه کول کیږي او نه به هغه ته غسل ورکول کیږي. (انوار الایضاح بحوالهٔ در مختار)

## د قاتل کس د جنازې د لمانځه حکم

﴿۹۵۷﴾ وَقَاتِلٍ بِالْخَنْقِ غِيلَةً او (نه به لمونځ کول کیږي) پر قتل کونکي په خپه سره، په دوکه (یعني چي په دوکه او خُفیه توګه خلک په خپه او غاړه پېچولو سره وژني).

**لغات:** ﴿خنق﴾ د نصر د باب مصدر دی: غاړه خپه کول، تر ستوني نیول، ساه ور بندول.

﴿غِیلة﴾ (اغتیال) په دوکه سره وژل، په ناخبري کي وژل (یعني په داسي حال کي وژل چي مقتول ته خبر نه وي)، مراد یې أعم دی.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چي که یو سړی په دوکه سره (په پټه توګه) خلک وژني، مثلاً یو چا ته دوکه ورکړي او یو ځای ته یې بوځي او هلته یې قتل کړي، یا مثلاً د یو چا کور ته ناڅاپه ور سي او په خپه (او غاړه پېچولو) سره یې قتل کړي، کله چي هغه ونیول سي او ووژل سي، نو هغه ته به هم نه غسل ورکول کیږي او نه به پر هغه د جنازې لمونځ کول کیږي.

## د هغه کس حکم چي د شپې وسله ګرځوي، ډاکه په ګوي

﴿۹۵۸﴾ وَمُكَابِرٍ فِي الْمِصْرِ لَيْلًا بِالسِّلَاحِ او (نه به لمونځ کول کیږي) پر غلبه اچونکي (ډاکه اچونکي) د شپې په ښار کي په وسله سره.

**لغات:** ﴿مکابر﴾ د مفاعلې د باب فاعل دی، كَابَرَ يُكَابِرُ مُكَابَرَةً: عناد او مخالفت کول، غالب کېدل، د حق انکار کول (خودسري کول)، دلته مراد هغه کس دی کوم چي په ښار کي د بې ګناه کسانو د قتل لپاره ولاړ وي (انوار الایضاح)، ﴿سلاح﴾ وسله (اسلحه).

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چي کوم کس د شپې د وسلې سره ګرځي، خلک قتل کوي او مال یې اخلي، نو پر هغه به هم لمونځ نه کول کیږي، صحیح دا ده چي د شپې په وخت کي وسله که ور سره وي او که نه وي یعني صرف په ډانګ، ډبري وغیره سره قتل کوي، د دواړو حکم برابر دی (نو د بسلاح قید اتفاقي دی)، او که په ورځ کي په وسله سره داسي وکړي، نو هم دغه حکم دی، پر همدې فتویٰ ده چي داسي کس د ډاکو (رهزن) په حکم کي دی، همدارنګه کوم څوک چي په ښار کي یو

ځای ودربږي او څوک چي د ده طرف ته ځي، مال په زوره ځني اخلي، هغه مکابر دی. (شفاء الارواح بحوالۀ عمدة الفقه)

**یادونه**: که دغه کس په داسي حال کي ونیول سي چي تر اوسه یې له چا څخه مال نه وي اخیستی او نه یې څوک قتل کړی وي، نو په دې صورت کي به حاکم هغه دومره وخت په قید کي ساتي چي توبه وکړي او د هغه له حرکاتو و سکناتو څخه محسوس سي چي هغه له جرم څخه توبه وکړه، او که داسي کس تر مال اخیستلو وروسته ونیول سي (یعني له یو چا څخه یې مال اخیستی وي)، نو راسته لاس او چپه پښه به ور پرېکول کیږي، او که یو څوک یې بې ګناه قتل کړی وي او مال یې نه وي اخیستی، نو حاکم به هغه د حدّ په توګه قتل کوي، نه قصاصاً. نو په دې اعتبار سره د هغه سزا قتل ده. پر هغه به لمونځ نه کول کیږي. (شامي، البحر الرائق)

## په عصبیت (ناحقه طرفداری) کي د مړ کېدونکي کس د جنازې د لمانځه حکم

| ﴿۹۵۹﴾ وَ مَقْتُوْلِ عَصَبِيَّةٍ او (نه به لمونځ کول کیږي) پر هغه کس کوم چي وژل سوی وي په عصبیت (ناحقه طرفداری) کي وَإِنْ غُسِلُوْا که څه هم دوی (مخکیني مذکوره ټولو کسانو) ته به غسل ورکول کیږي. |
|---|

**لغات**: ﴿عصبيّة﴾ دلته نسخې مختلفه دي، د نور الایضاح په نسخه کي عَصَبِيَّةٌ دی او د تنویر الابصار په نسخه کي عُصْبَةٌ دی چي د هغه معنیٰ ده: ټولی، ډله، جماعت، او د عَصَبِيَّةٌ معنیٰ ده: نسلي تعصّب، ډل بازي، طرفداري، صاحب د معجم یې داسي معنیٰ کړې ده "مُناصرة من يهمّك أمره في حقٍّ أو باطلٍ" (یعني د کوم چاغم چي تا غمجن کوي (یا په بله په کوم چا چي ستا خوا بدیږي) د هغه مدد او طرفداري کول په حق یا باطل کي، دې عصبیت وایي). او له همدې څخه د نبي ﷺ دا فرمان دی "ليس منّا من دعا إلى عصبيّة". صاحب د انوار الایضاح لیکلي دي چي دلته مراد هغه کس دی کوم چي پر ظلم او تعدی د خپل قوم مدد کوي او د خپل قوم په خلاف هیڅ خبره اورېدل نه غواړي او که څوک څه پکښي وایي، نو ناراضه کیږي. (انوار الایضاح بحوالۀ شامي ج:۱، ص:۸۱۴)

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چي کوم کسان پر ظلم د خپل قوم طرفداري او کومک کوي او په دې ناحقه طرفداري او کومک کي ووژل سي، نو پر داسي خلکو به هم لمونځ نه کول کیږي (دوی د باغیانو په حکم کي دي). پاته سوه دا خبره چي دوی ته او مخکي چي کوم کسان ذکر سول. هغو ته به غسل به ورکول کیږي. که نه. دا مسئله مختلف فیه ده. بعضي حضرات فرمایي چي غسل به هم نه

ورکول کیږي (لکه څرنګه په عمدة الفقه کي ورېل سوي دي)، خو مصنف رَحِمَهُ الله او داسي نور فرمایي چي غسل به ورکول کیږي، علامه شامي رَحِمَهُ الله فرمایي "حكم أهل عصبية و مكابر و خناق حكم البغاة في أنهم لا يغسلون ولا يصلّى عليهم، وأما في الدرر من قوله وإن غسلوا أي البغاة و القطاع و المكابر، فإنه مبني على الرواية الأخرىٰ، و قدّمنا ترجيحها". (شامي ج:١، ص:٨١٥)

## د ځان وژونکي د جنازې دلمانځه حکم

| ﴿٩٦٠﴾ وَقَاتِلُ نَفْسِهِ يُغَسَّلُ او د خپل ځان وژونکي (خود کشي کونکي) ته به غسل ورکول کیږي وَيُصَلّٰى عَلَيْهِ او پر هغه به لمونځ (هم) کول کیږي. |
|---|

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چي کوم څوک خود کشي (ځان وژنه) وکړي، مثلاً ځان پانسي کړي یا په کومه وسله یا زهر خوړولو سره یا په بله توګه خپل ځان قصداً ووژني، نو هغه ته به هم غسل ورکول کیږي او هم به پر هغه د جنازې لمونځ کول کیږي، که څه هم خودکشي فی نفسه ډېره لويه ګناه ده. (انوار الايضاح)

## د پلار يا مور د قاتل د جنازې د لمانځه حکم

| ﴿٩٦١﴾ لَا عَلٰى قَاتِلِ أَحَدِ أَبَوَيْهِ عَمَدًا نه پر وژونکي دیوه له مور او پلار څخه قصداً. |
|---|

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چي کوم څوک خپل پلار یا مور قصداً ووژني (معاذالله) او امام (حاکم) هغه په قصاص کي قتل کړي، نو پر هغه به هم د جنازې لمونځ نه کول کیږي. لیکن اصح دا ده چي پر هغه دي لمونځ وسي، او که هغه په خپل مرګ مړ سي، نو په هر صورت کي به پر هغه لمونځ کول کیږي. (شفاء الارواح بحوالة عمدة الفقه)

**یادونه:** دقاتل احدالأبوين مذکوره حکم هلته دی، چي زوی ظلمًا احدالأبوين مړ کړی وي، او که یې پلار حربي یا باغي وي، او زوی هغه مړ کړي، نو دغه زوی چي کله مړ سي، غسل او دجنازې لمونځ به ورکول کیږي بالاتفاق. (منهاج الايضاح)



# فَصْلٌ فِيْ حَمْلِهَا وَ دَفْنِهَا

(دا) فصل په (بیان د) پورته کولو د جنازې او
ښخولو د هغه کې دی

**تشریح**: د اسلام یوه اهمه لارښوونه دا هم ده چې د جنازې سره دې پیاده هدیرې ته تګ وسي، د حضرت ابو هریره رضي الله عنه مشهوره روایت دی چې نبي کرم ﷺ وفرمایل: کوم څوک چې په جنازه کي حاضر سي، تر دې چې د هغه جنازې لمونځ وسي، نو هغه ته یو قیراط اجر حاصلیږي او کوم څوک چې تر ښخولو پوري ور سره شریک وي، نو د هغه لپاره دوه قیراطه اجر مقرر دی، له نبي کریم ﷺ څخه وپوښتل سوه چې دوه قیراطه څومره لوی دي؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل: چې د دوو غرونو په اندازه. (بخاري شریف، بحوالهٔ انوار الایضاح)

## د جنازې پورته کولو طریقه

﴿۹۶۲﴾ يُسَنُّ لِحَمْلِهَا أَرْبَعَةُ رِجَالٍ سنت دي د جنازې پورته کولو لپاره څلور سړي.

**لغات**: ﴿يُسن﴾ د نصر له بابه مضارع مجهوله ده، د دې باب له معناوو څخه یوه معنیٰ ده: سنت کېدل، لحَمْـلها "حَمْـل" د "يُسنّ" نائب فاعل دی، او مطلب یې دا دی چې د جنازې په پورته کولو کي سنت دا دي چې څلور سړي یې پورته کړي او د "رِجَال" په قید سره د ښځو ایستل مقصود دي؛ ځکه د جنازې سره د ښځو تلل مکروه تحریمي دي.

**تشریح**: مسئله دا ده چې جنازه پورته کول او وړل پر مسلمانانو فرضِ کفایه دي او دا عبادت دی، هر کس ته پکار دي چې د جنازې په پورته کولو کي سبقت (وړاندیتوب) وکړي او سنت دا دي چې څلور کسان اوږه ور کړي او پورته یې کړي په دې توګه چې هر یو د کټ (چپر کټ) یوه پښه پر اوږه کښېږدي او روان سي، بېله عذره دي جنازه پر سپارلي نه وړي؛ ځکه دا مکروه دي، ها! که یو عذر وي مثلاً هدیره لیري وي، یا جنازه پورته کونکی کس صرف یو وي، نو بیا پر سپارلي وړولو کي څه پروا نسته. (شفاء الا[illegible])

## د جنازې وړولو سنت طریقه

﴿۹۶۳﴾ وَيَنْبَغِيْ حَمْلُهَا أَرْبَعِيْنَ خُطْوَةً او پکار (مناسب) دي د جنازې پورته کول تر څلوېښتو قدمونو (ګامونو) پورې يَبْدَأُ بِمُقَدَّمِهَا الْأَيْمَنِ عَلٰى يَمِيْنِهٖ شروع دې وکړي د جنازې په مخکینۍ حصه راسته طرف سره (یعني د سر په خوا کې له راسته پښې څخه) په خپل راسته (اوږه) باندې وَيَمِيْنُهَا مَا كَانَ جِهَةَ يَسَارِ الْحَامِلِ او د جنازې راسته طرف هغه دی کوم چې د پورته کونکي چپه طرف دی ثُمَّ مُؤَخَّرِهَا الْأَيْمَنِ عَلَيْهِ بیا (دې شروع وکړي) د جنازې په شاتنۍ حصې راسته طرف (پښې) سره په هغه (راسته اوږه) باندې ثُمَّ مُقَدَّمِهَا الْأَيْسَرِ عَلٰى يَسَارِهٖ بیا په مخکنۍ حصې چپه طرف سره په خپل چپه (اوږه) باندې ثُمَّ يَخْتِمُ الْأَيْسَرَ عَلَيْهِ بیا دې (دا پورته کول) ختم کړي د جنازې (د شاتنۍ حصې) چپه طرف په هغه (چپه اوږه) باندې.

**لغات**: ﴿مُقَدَّم﴾ د تفعیل له بابه اسم مفعول دی: مخکینۍ حصه. ﴿مؤخّر﴾ دا هم د تفعیل له بابه اسم مفعول دی: شاتنۍ حصه.

**تشریح**: مسئله دا ده چې که د جنازې د پورته کولو لپاره زیات خلک وي، نو په وار او نوبت سره پورته کول پکار دي، او په نوبت سره په پورته کولو کې دوه شیان دي: یو اصل سنت دی او بل کمال سنت دی، اصل سنت دا دی چې هر کس دې د جنازې څلور سره پښې (پایې) په نوبت، نوبت سره پر اوږه کېښږدي او په هر نوبت کې دې لس ګامه (لس قدمه) ولاړ سي، برابره ده له هر طرف څخه شروع کوي، او کمال سنت دا دی چې اول دې د جنازې د مخکینۍ حصې یعني د سر د حصې راسته پښه ونیسي او پر راسته اوږه دې یې کېښږدي او لس ګامه دې ولاړ سي او بیا دې د شاتنۍ حصې راسته پښه پر راسته اوږه کېښږدي، لس ګامه دې ولاړ سي، بیا دې د جنازې د مخکینۍ حصې چې کومه پښه چپه اړخ ته وي، هغه دې پر چپه اوږه کېښږدي، لس ګامه دې ولاړ سي او بیا دې د شاتنۍ حصې چپه پښه پر چپه اوږه کېښږدي او لس ګامه دې ولاړ سي (او د جنازې راسته طرف هغه دی کوم چې پورته کونکي کس چپه طرف وي [یعني] کله چې پورته کونکی هم د دې مړي په څېر پرېوځي [او اړاوقف مستدبر أنتجدۂ] څکه د سر لخوا د پورته کولو په دوران کې راسته اوږه خپله د راسته پښې په خوا کې او چپه د چپه پښې په خوا کې راځي. لتفکر). نو په دې ټوکه ټوله څلوېښت ګامه سوه؛ په حدیث شریف کې دي چې کوم کس څلوېښت قدمه (ګامه) جنازه پورته کړي، د هغه څلوېښت کبیره ګناهونه به محو کړل سي.

همدارنګه په حدیث شریف کې دي چې کوم څوک د جنازې څلور سره پښو ته اوږه ورکړي، الله تعالی به هغه ته حتمي مغفرت وکړي. (شفاء الارواح)

**یادونه:** دا پورتنی حکم د هغو خلکو لپاره دی کوم چې د جنازې څلور سره پښې پورته کول غواړي (یعني دا غواړي چې د جنازې څلور سره طرفونو ته اوږه ورکړي: چې په دې کې ثواب ډېر دی او نورو خلکو ته نوبت هم ورکوي). نو د هغو لپاره دا پورتنی حکم دی چې په راسته طرف سره شروع وسي. او که د جنازې پورته کونکي فقط څلور خلک وي، نو په یوه حالت او کیفیت کې به جنازه قبر ته رسوي، خو که بیا هم حالت بدلول غواړي، نو جنازه دې پر ځمکه اږدي. صورت او کیفیت دې بدلوي. ځکه چې د تګ په حالت کې صورت او کیفیت بدلول ناممکن دي. (فتح الهدایه)

## جنازه په تېزي سره وړل

﴿۶۶۳﴾ وَيُسْتَحَبُّ الْإِسْرَاعُ بِهَا بِلَا خَبَبٍ او مستحب دي جنازه په تېزي سره وړل بېله ځغلستي وَهُوَ مَا يُؤَدِّي إِلَى اضْطِرَابِ الْمَيِّتِ او دا خبب (یعني له خبب څخه مراد) هغه تګ دی کوم چې رسول کوي د مړي و بنور بدلو ته (یعني کوم چې د مړي د بنور بدلو او د جتکې خوړولو سبب ګرځي).

**لغات:** ﴿إسراع﴾ د افعال د باب مصدر دی: تېزي کول، تېز تلل. ﴿خبب﴾ (بفتح الخاء والباء): داسي تګ کوم چې ځغاستي ته نژدې وي یا په بله وینا په کراره ځغستل. او صاحب د معجم د "خَبَب" تعریف داسي کړی دی "ضَرْبٌ مِنَ الْعَدْوِ يَمِيلُ فِيهِ العَادِي عَلَى يَمِينِهِ مَرَّةً وَعَلَى يَسَارِهِ مَرَّةً" یعني د ځغاستي یو قسم دی چې په هغه کې ځغستونکی یو وار راسته طرف ته میلان وکړي او یو وار چپه طرف ته (یا په بله وینا داسي تېز تګ چې د هغه په وجه جنازه جتکې وخوري) (معجم لغة الفقهاء). ﴿اضطراب﴾ د افتعال د باب مصدر دی: په نامنظمه توګه بنور بدل، لړزېدل، ګرېږ.

**تشریح:** جنازه په تېزي سره وړل مستحب دي، خو نه دومره تېز چې مړی په حرکت کې راسي (یا په بله وینا جنازه جتکې وخوري) په دې سره د جنازې بې احترامي کېږي؛ د شریعت حکم دا دی چې جنازه دې د هلېرې (قبرستان) و طرف ژر (په تېزي سره) وړل کېږي، نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چې تاسي جنازه په تېزي سره وړئ!؛ ځکه که هغه نېک وي، نو تاسي به هغه ښه ځای ته (ژر) ورسوی او که هغه نېک نه وي، نو تاسي به له خپلو غاړي څخه بدي (ژر) لیري کړی (له بد کس څخه به ژر خلاص سی). (بخاري شریف، حدیث رقم: ۱۳۱۵ بحوالهٔ انوار الایضاح)

(نو د جنازې شاته خلکو ته پکار دي چې په تېزي سره په جنازې پسي روان سي او کله چې خلک تېز روان سي، نو جنازه به هم تېزه سي [تحفة الألمعي])

**فایده:** د تګ اوله درجه مشيٌ (تلل) دي، بیا هَرْوَلَةٌ (تېز تلل) دي، بیا إسراعٌ (نور تېز تلل) دي، بیا خَبَبٌ (کرار ځغستل) دي، بیا عَدْوٌ (تېز ځغستل، [illegible] وهل) دي.

## د جنازې شاته تلل

﴿۹۶۵﴾ وَالْمَشْيُ خَلْفَهَا أَفْضَلُ مِنَ الْمَشْيِ أَمَامَهَا او د جنازې شا ته تلل افضل دي له مخ ته تګ څخه د جنازې كَفَضْلِ صَلوٰةِ الْفَرْضِ عَلَى النَّفْلِ لكه د فرضي لمانځه فضيلت پر نفلو.

**تشریح:** کوم خلک چي د مړي سره یو ځای ځي. د هغو لپاره افضل دا ده چي د جنازې شاته (په جنازه پسې) روان سي؛ پر یو موقع حضرت علي ﷜ قسم واخیستی او ویې فرمایل چي په جنازه پسي شاته د تلونکو فضیلت پر مخکي تلونکو داسي دی لکه د فرضي لمانځه فضیلت پر نفلي لمانځه، او که یو څو خلک له جنازې څخه مخکي روان سي او له جنازې څخه لیري نه سي، نو څه حرج نسته، لېکن که دا څو خلک له جنازې څخه ډېر لیري سي، یا ټول خلک مخکي روان سي او جنازه شاته کړي، نو دا مکروه دي. (انوار الایضاح بحوالهٔ درمختار، البحر الرائق، مراقی الفلاح)



## د جنازې سره په پښو (پیاده) تلل

**مسئله:** بهتر دا ده چي په جنازه پسي شاته تلل بېله ضرورته پر سپارلي باندي نه وي، بلکي په پښو وي؛ ځکه چي فرښتې د مؤمن کس د جنازې لپاره په پښو ځي، حضرت ثوبان ﷜ فرمایي: چي موږ په یو جنازه کي د نبي کریم ﷺ سره ملګري سو، نبي کریم ﷺ ځیني خلک ولیدل چي پر سپارلي باندي وه، نو ویې فرمایل: ولي تاسي ته شرم نه راځي! چي دالله ﷻ فرښتې په پښو ځي او تاسي پر سپارلیو باندي ځی. (ترمذي، جلد۱ ص۱۹۶)

له دې حدیث څخه معلومه سوه چي بېله ضرورته د جنازې سره پر سپارلي باندي تلل خوښ سوي نه دي. خو بیا هم که ضرورت وي، مثلاً هدیره ډېره لیري وي، یا څوک ډېر بوډا او کمزوری وي، نو پر سپارلي باندي تللو کي څه حرج نسته، خو سپارلي د خلکو شا ته تلل پکار دي چي د خلکو په تګ کي خنډ را نه سي، او ﷺ سو له هدیري څخه د واپسی په وخت کي په سپرېلو کي هیڅ حرج نسته. (تحفة الألمعي، جلد۳، ص۴۱۸، کتاب المسائل، ص۵۶۳، انوار الایضاح، ص۵۴۷)

## په جنازې پسي د تللو په وخت کي ذکر کول

﴿۹۶۶﴾ وَيُكْرَهُ رَفْعُ الصَّوْتِ بِالذِّكْرِ او مکروه دي آواز لوړول په ذکر کي (یعني په لوړ آواز سره ذکر کول).

**تشریح:** په جنازه پسي په پټه خوله (خاموش) تلل پکار دي او د خپل مرګ او د قبر د سوال و جواب سوچ او فکر کول پکار دي چي یو ورځ خو موږ هم مرو او د خپلو اعمالو حساب به را سره کیږي. او

که کوم ذکر کول غواړي، نو هغه دې په کرار آواز سره کوي، په لوړ آواز سره قرآن کریم ویل یا یو بل ذکر کول مکروه تحریمي دي. (طحطاوي)

## تر جنازې اېښوولو مخکې کښېنستل

﴿۹۶۷﴾ وَ الْجُلُوْسُ قَبْلَ وَضْعِهَا او (مکروه دي) کښېنستل د جنازې تر اېښوول کېدو مخکې.

**تشریح**: د "وضع" دوه مطلبه دي: یو دا چې جنازه له اوږو څخه شوه کول او پر ځمکه اېښوول، دویم دا چې جنازه په قبر کې اېښوول، په دې دویم صورت کې یعنې په قبر کې د جنازې له اېښوولو څخه مخکې کښېنستل جائز دي، خو د جنازې له رسېدلو څخه مخکې بېله ضرورته کښېنستل مکروه دي، همدارنګه تر څو چې جنازه له اوږو څخه لاندې پر ځمکه اېښوول سوې نه وي. تر هغه مخکې هم د خلکو لپاره کښېنستل مکروه دي، لېکن د معذور کس لپاره څه پروا نه لري. (انوار الایضاح. شفاء الارواح)

## قبر به څومره کیندل کېږي؟

﴿۹۶۸﴾ وَيُحْفَرُ الْقَبْرُ نِصْفَ قَامَةٍ أَوْإِلَى الصَّدْرِ او کیندل کېږي به قبر د نیم قد (قامت) په اندازه یا تر سینې پورې وَإِنْ زِيْدَ او که تر دې زیات (وکیندل) سي كَانَ حَسَنًا نو ښه به وي.

**لغات**: ﴿زِيْدَ﴾ د ضرب له بابه ماضي مجهوله ده، زَادَ يَزِيْدُ زِيَادَةً وَزَيْدًا: زیاتېدل، زیاتول.

**تشریح**: د قبر اوږد والی خو د مړي د قدر په اندازه کېدل پکار دي او پر خوالی (بر) دې یې د نیم قد برابر وي، همدارنګه ژور والی (غوچوالی) دې یې د نیم قد په اندازه وي، یا تر سینې پورې، دا مینځوې درجه ده او که ژور والی یې د پوره قد په اندازه وي، نو غوره ده او دا اعلیٰ درجه ده.

## د قبر قسمونه (لحد [بغلي قبر] او شقّ [صندوقي قبر])

﴿۹۶۹﴾ وَيُلْحَدُ او لوړی (بغلي قبر) دې جوړ کړل سي وَلَا يُشَقُّ او شق (د قبر په مینځ کې کنده اچول) دې نه جوړول کېږي إِلَّا فِيْ أَرْضٍ رِخْوَةٍ مګر په نرمه (پسته) ځمکه کې.

**لغات**: ﴿يُلْحَدُ﴾ د افعال له بابه مضارع مجهوله ده (د فتح له بابه هم کېدلای سي): د دې باب څو معناوې دي چې له هغوی څخه ځیني دا دي: لحد جوړول، لوړی جوړول، (بغلی قبر جوړول)، ﴿لا يُشَقُّ﴾ د نصر له بابه د نفي مجهول صیغه ده، مراد: د قبر په مینځ کې بله کنده (د مړي د قد په اندازه) جوړول، یا په بله وینا مینځوی قبر جوړول، صندوقي قبر جوړول، ﴿رخوة﴾ نرم (پوست).

**تشريح:** اصل سنت بغلي قبر جوړول دي چې هغه ته "ړوری" او "لحد" ويل کيږي، لهذا د کوم ځای ځمکه او خاوره چې سخته (کلکه) وي، هلته بغلي قبر (ړوری) جوړول پکار دي او د هغه طريقه داده چې د قبر تر کيندلو وروسته دي د قبلې په طرف کې دومره بغلي کنده (ړوری) وکنبل سي چې په هغه کې مړی په آساني سره اينبوول کېدلای سي.

او صندوقي قبر ته په عربي کې "شق" ويل کيږي، د کوم ځای ځمکه چې ډېره نرمه (پسته) وي چې په هغه کې بغلي قبر (ړوری) جوړول ممکن نه وي او د قبر کښېنستلو خطره وي، نو هلته به شق جوړول کيږي، او شق دا دی چې د قبر تر پوره کيندلو وروسته د قبر په مينځ کې يوه بله دومره کنده (د ويالې په څېر) وکيندل سي چې مړی پکښې اينبوول کېدلای سي يعنې چې د هغه اوږدوالی او پراخوالی د مړي د قد په اندازه وي او پر هغه د پاسه دي تختې وغيره کښېښوول سي (يعنې په تختو يا داسې بل شي باندې دي سر وربټ کړل سي). (انوار الايضاح)

## په قبر کې د مړي د شوه کولو، اينبوولو او د قبر پټولو طريقه

﴿۹۷۰﴾ وَيُدْخَلُ الْمَيِّتُ مِنْ جِهَةِ الْقِبْلَةِ او داخل دي کړل سي مړی د قبلې له طرفه.

﴿۹۷۱﴾ وَيَقُوْلُ وَاضِعُهُ او د مړي اينبونکی دي ووايي بِسْمِ اللّٰهِ وَعَلٰى مِلَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ

دالله په نامه سره او د رسول الله ﷺ پر دين (هغه خاورو ته سپارم، يا معنیٰ دا چې: دالله په نامه سره په قبر کې يې ايږدم او د رسول الله ﷺ د دين پيروي کوم).

﴿۹۷۲﴾ وَيُوَجَّهُ إِلَى الْقِبْلَةِ عَلٰى جَنْبِهِ الْأَيْمَنِ او مخامخ دي کړل سي مړی و قبلې ته په خپل راسته بغل (اړخ) باندې.

﴿۹۷۳﴾ وَتُحَلُّ الْعُقَدُ او خلاصي دي کړل سي (د کفن) غوټې.

﴿۹۷۴﴾ وَيُسَوَّى اللَّبِنُ عَلَيْهِ وَالْقَصَبُ او کچه خښتې دي پر هغه برابري (تينگې) کړل سي او (ممللي) نلان.

﴿۹۷۵﴾ وَكُرِهَ الْآجُرُّ وَالْخَشَبُ او مکروه دي پخې خښتې او لرگي (پکښې لگول).

**لغات:** ﴿مِلَّة﴾ ملت، دين، مذهب. جمع: مِلَل، ﴿جَنْب﴾ اړخ، بغل، څنګ، جمع: جُنُوْبٌ و أَجْنَابٌ، ﴿عُقَد﴾ جمع د عُقْدَةٌ ده: غوټه، تړون، ﴿يُسَوّٰى﴾ د تفعيل له بابه مضارع مجهوله ده. مصدر: تَسوِيَةٌ: برابرول، ﴿لَبِن﴾ (بفتح اللام وكسر الباء) او لِبْن (بكسر اللام وسكون الباء) دواړه لغات يې

منقول دي: کچه خښته (طحطاوي). ﴿القصب﴾ د بانس نلان، همدارنګه د هر هغه واښه او بوټي نلان چي مینځ یې خالي وي د پیپ غوندي. "ساق النبات الذي یکون جوفه فارغا کالانبوب" (معجم لغة الفقهاء). ﴿الخشب﴾ لرګیان. خشبة: د لرګي تخته.

**تشریح**: مړی و قبر ته د قبلې له طرفه ور شوه کول مستحب دي، د هغه صورت دا دی چي جنازه د قبر سره د قبلې پر طرف کښېښنول سي او قبر ته شوه کېدونکي کسان مخ پر قبله ودرېږي (مثلا درې قوي کسان دي ور شوه سي. یو دي د قبر د سر په طرف کي مخ پر قبله ودرېږي او بل دي د مینځ او بل دي د قبر د پښو په طرف کي مخ پر قبله ودرېږي)، او لوړ خلک دي مړی په احترام سره راپورته کړي او په کراره دي یې لاندي کسانو ته ورکړي او هغوی دي یې په کراره په قبر کي کښېږدي او په قبر کي د مړي ایښوولو په وخت کي دي دا لفاظ وایي "بسم الله وعلی ملة رسول الله ﷺ" یا "بسم الله وبالله وعلی ملة رسول الله ﷺ" (او په یوه روایت کي دي "وعلی سنة رسول الله ﷺ").

ویوجّه إلخ: او مړی په قبر کي په راسته بغل (راسته اړخ) باندي مخ پر قبله پرې باسل سنت دي، لهذا د مړي و شا ته دي خته یا لوټي وغیره ولګول سي د دې لپاره چي مړی په راسته بغل باندي قائم پاته سي (او که په راسته بغل باندي پرې باسل ممکن نه وي، نو ستوني ستخ دي یې پرې باسي او مخ دي یې د قبلې وطرف ته واړوي، خو صاحب د شفاء الارواح لیکلي دي چي دا طریقه د سنت خلاف ده).

وتحلّ العقد: په قبر کي د مړي تر ایښوولو وروسته دي د هغه د کفن غوټي خلاصي کړل سي؛ ځکه اوس د کفن د خلاصېدلو خطره نسته.

ویسوّی اللبن إلخ: همدارنګه په قبر کي د مړي تر ایښوولو وروست دي دننه خلک بهر راووځي او لحد دي په کچه خښتو او د بانس په لرګیو سره بند کړل سي او په مینځ کي چي کوم درزونه پاته سي، هغه دي هم په ختې یا لوټو سره بند کړل سي، د دې لپاره چي خاوره پر مړي نه ولګیږي او هغه له خاوري څخه محفوظ سي، په پخو خښتو او د لرګي په تختو سره بندول مکروه تحریمي دي، لېکن که ځمکه نرمه او کمزورې وي، نو مکروه نه دي. (شفاء الارواح بحوالهٔ عمدة الفقه)

## د ښځي پر قبر د پرده کولو حکم

﴿۹۸۶﴾ وَ أَنْ يُسَجَّى قَبْرُهَا لَا قَبْرُهُ او (مستحب دي) دا چي پرده وکړل سي د ښځي پر قبر، نه د سړي پر قبر.

**لغات**: ﴿يُسَجّٰى﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده. تَسْجِيَةً: پرده کول. په پرده پټول. او په مجردو کې د نصر له بابه راځي سَجَا يَسْجُوْ اسَجوًا: مړی (په پرده سره) پټول.

**تشريح**: مسئله دا ده چې که جنازه د ښځې وي. نو په قبر کې د هغې د ايښوولو پر مهال د لحد بندولو تر وخته پورې په يوه کپړه يا څادر سره پرده کول پکار دي. لېکن که جنازه د سړي وي. نو بيا د دې څه ضرورت نشته؛ ځکه د ښځو د حالت مدار پر ستر او پردې دی. لهذا په قبر کې به هم د ښځې لپاره پرده کول کيږي. لېکن کله چې پر لحد خښتې او نور کېښوول سي او بند کړل سي. نو بيا د پردې په لېرې کولو کې څه پروا نشته.

## پر قبر خاورې اچول

| |
|---|
| ﴿۹۷۷﴾ وَيُهَالُ التُّرَابُ او خاوره دې پرې واچول سي. |
| ﴿۹۷۸﴾ وَيُسَنَّمُ الْقَبْرُوَلَا يُرَبَّعُ او قبر دې د بوک په څېر (ماهي پشته) جوړ کړل سي او څلور کونجه (چوتره) دې نه جوړول کيږي. |

**لغات**: ﴿يُهَالُ﴾ د ضرب له بابه مضارع مجهوله صيغه ده. هَالَ يَهِيْلُ هَيْلًا عليه التراب: خاوره باندې اچول. ﴿يُسَنَّمُ﴾ د تفعيل له بابه مضارع مجهوله ده: د اوښ د بوک په څېر جوړول. او بوک د اوښ د شا پورتنۍ حصې (پورتنې هډوکي) ته وايي. ﴿لا يُرَبَّعُ﴾ د تفعيل له بابه د نفي مجهول صيغه ده: څلور کونجه جوړول.

**تشريح**: د لحد تر بندولو وروسته دې پر هغه خاوره واچول سي. يعنې کومه خاوره چې د قبر په کيندلو سره را کښل سوې ده. هاغه خاوره دې دوباره په قبر کې واچول سي. له بل ځايه دې زائده خاوره نه باندې اچوي، دا مکروه دي، او مستحب دا ده چې ټوله حاضرين خاوره ور واچوي. او خاوره اچونکي دې د مړي د سر له طرفه په دواړو لاسونو درې واره (درې لپې) خاوره ور واچوي او داول وار (اولي لپي) د اچولو په وخت کې دې "مِنْهَا خَلَقْنَاكُمْ". په دويم وار "وَفِيْهَا نُعِيْدُكُمْ" او په دريم وار دې "وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً اُخْرٰى" ووايي (يعنې هر يو چې خاوره ور اچوي هغه به اول درې لپې خاوره په پورتنۍ طريقه سره ور اچوي)، بيا دې پاته خاوره په بېلچو وغيره سره باندې واچوي او قبر دې ډک وکړي.

ويُسنّم القبرالخ: او قبر دي داوښ دبوک په شکل جوړ کړل سي او له ځمکي څخه دي يوه لوېشت يا لږ زيات جګ جوړ کړل سي، هوار يعني څلور کونجه دي نه جوړول کېږي، داسي کول مکروه دي، (په کچه خښتو سره د قبر بوک جوړول جائز دي. بلکي مستحسن ګڼل سوي دي). (انوار الايضاح، شفاء الارواح)

## پر قبر ګومبته يا داسي بل ځای جوړول جائز نه دي

﴿۹۷۹﴾ وَيَحْرُمُ الْبِنَاءُ عَلَيْهِ لِلزِّيْـنَـةِ او حرام دي ځای جوړول پر قبر د ښکلا لپاره.

**لغات**: ﴿بناء﴾ د ضرب د باب مصدر دی: ځای جوړول، وداني جوړول.

**تشريح**: پر قبر يو ځای او وداني جوړول، ګومبته جوړول که د زينت (ښکلا) لپاره وي، نو حرام وي. او که د قبر او دفن د مضبوطتيا (ټينګښت) لپاره وي، نو مکروه دي، د بعضي علماؤ په نېز د مشائخو، علماؤ او سيدانو پر قبرونو ګومبته يا بل ځای جوړول بېله کراهته جائز دي، لېکن صحيح دا ده چي په احاديثو کي پر قبرو مطلقاً د ځای جوړولو ممانعت وارد سوی دی او په بعضي فقهي عباراتو کي چي په دې باره کي څه نرمي سوې ده، هغه د احاديث صحيحه صريحه په مقابله کي حجت نه دي، نو ځکه له دې څخه بچ کېدل ضروري دي.

## قبر مضبوطه جوړول، پر قبر کـتبه ليکل

﴿۹۸۰﴾ وَيُكْرَهُ لِلْإِحْكَامِ بَعْدَ الدَّفْنِ او مکروه دي (بناء) د مضبوطي لپاره تر ښخولو وروسته.

﴿۹۸۱﴾ وَلَا بَأْسَ بِالْكِتَابَةِ عَلَيْهِ او څه پروا نسته په ليکنه کولو کي پر قبر لِئَلَّا يَذْهَبَ الْأَثَرُ وَلَا يُمْتَهَنُ د دې لپاره چي د قبر نښان ختم (ورک) نه سي او سپکاوی يې نه وسي (تر پښو لاندي اپايمال) نه کړل سي).

**لغات**: ﴿أثر﴾ د دې لفظ له معناو څخه يوه معنیٰ ده: نښه، تر ډېره پاتېدونکی نښان، جمع: أثار. ﴿لا يمتهن﴾ د افتعال له بابه د نفي معلوم صيغه ده، مصدر: امتهان، د دې باب څو معناوي نقل سوي دي: حقير کول (حقير او سپک ګڼل)، په خدمت کي کارول، (پايمال کول)، په خدمت کي مشغولېدل، خوړ کړ ځول. (مصباح اللغات)

**تشريح**: مسئله دا ده چي د مړي تر ښخولو وروسته پر قبر عمارت او ځای جوړول د قبر د ټينګولو لپاره مکروه تحريمي دي: ځکه د يو شي مظبوطول د هغه د شي د باقي ساتلو لپاره وي، حال دا چي قبر د ختمېدلو لپاره دی او د خرابېدلو ځای دی.

**ولا بأس إلخ:** فرمايي په دې غرض سره چې د قبر درک او نشان ورک نه سي او تر پښو لاندي نه کړل سي او د هغه سپکاوی نه وسي، پر يو ډبره يا داسي بل شي باندي نوم وغيره ليکل او د قبر سره لګول څه پروا نه لري (خصوصاً د مشهوره شخصيت پر قبر چې د ليري ځايونو څخه خلک ورته راځي. د دې لپاره چې د اجنبي خلکو لپاره د قبر په پېژندنه کي آساني وي).

**يادونه:** صاحب د انوار الايضاح حَفِظَهُ الله ليکلي دي چې د نوم وغيره (کتبه) لګولو په هکله که څه هم مصنف رَحِمَهُ الله او صاحب د درمختار د "لا بأس" خبره کړې ده، خو د تحفة الألمعي په درېيم جلد کي مفتي سعيد احمد مدظلته العالي په دې هکله ډېر تفصيلي بحث ليکلی دی. هغه فرمايي چې د نوم وغيره (کتبه) لګولو د ممانعت په باره کي د اعلیٰ درجې صحيح حديث موجود دی. نو ځکه پر قبرو هغه لګول ممنوع دي، او پاته سوه دا خبره چې په اُمت کي د دې تعامل جاري دی. نو جواب يې دا دی چې تعامل هغه وخت حجت وي کله چې هغه د نص خلاف نه وي. (تحفة الألمعي ج: ۳، ص: ۳۶۴)

## په کور کي مړی ښخول

﴿۹۸۲﴾ وَيُكْرَهُ الدَّفْنُ فِي الْبُيُوْتِ او مکروه دي ښخول په کورونو (او خونو) کي لِاخْتِصَاصِهِ بِالْأَنْبِيَاءِ عَلَيْهِمُ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ له وجهي د خاص کېدلو د دې د انبياؤ عليهم السلام سره (يعني دا د انبياؤ سره خاص دي).

**تشريح:** انسان چې په کوم کور کي مړ سوی وي، په هغه کي دي نه ښخول کېږي، بلکي د علمو مسلمانانو په قبر کي دي ښخول کېږي، برابره ده نېک کس وي او که يو عالم وي، ځکه دا د انبياؤ عليهم الصلاة والسلام سره خاص دي چې هغوی په کوم ځای کي وفات سوي وي، هلته ښخول کېږي، دا صرف د دوی خصوصيت دی، لکه څرنګه چې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په حجره کي پر کوم ځای د رسول الله ﷺ روح قبض سوی وو، خاص پر هغه ځای قبر مبارک تيار کړل سو او هلته رسول الله ﷺ ښخ کړل سو، دا هم د رسول الله ﷺ خصوصيت دی.

## په بنده خونه (بنده کوټه) کي ښخول

﴿۹۸۳﴾ وَيُكْرَهُ الدَّفْنُ فِي الْفَسَاقِيِّ او مکروه دي ښخول په فساقی (گومبتداره بنده خونه. یالویه خونه کي).

**لغات**: ﴿الفساقي﴾ صاحب د شفاء الارواح د دې معنیٰ کړې ده: گومبتي والا بنده خونه (حجره). یا په بله وینا وړنا: گومبته لرونکي بنده کوټه چي ډېر مړي پکښې اېښوول کیږي. او په تشریح کي چي کومه معنیٰ مورږ ذکر کړې ده هغه صاحب د انوار الایضاح د البحر الرائق په حواله سره لیکلې ده.

همدارنګه "الفساقي" جمع د "الفسقية" هم ده. خو هغه معنیٰ دلته مراد نه ده. د "الفسقية" معنی ده: هغه ګول (ګردی) حوض کوم چي له سنګ مرمر څخه جوړ وي او په هغه کي د اوبو فواره نصب وي چي هغه په لویو محلاتو (بنګلو) او باغچو کي جوړول کیږي. (معجم الوسیط)

**تشریح**: اولاً دا وپېژنئ! چي په پخواني وخت کي به په ځمکه کي یوه (نویه) کنده وکښل سوه او د هغه څلور سره طرفونه به د خوني (کمرې) په څېر جوړ کړل سوه (د ډېر خانې غوندي) او په هغه کي به مړي (مردګان) ښخول کېدل او پر سر به یې پوخ ځای جوړ کړل سو (لکه ګومبته وغیره). د دې رواج په مصر او داسي نورو کي وو. نو آیا داسي کول صحیح دي. مصنف رَحِمَهُ اللہ فرمایي چي په دې توګه مړي ښخول مکروه دي: او دا په څلورو وجهو سره مکروه دي (څلور خرابیاني پکښې دي): ① یوه دا چي دغه ځای د قبر په څېر نه کیندل کیږي او لحد وغیره نه لري. ② بېله ضرورته په یوه ځای کي ډېر خلګ ښخول کیږي. ③ بغیر له حائل څخه د سړیو او ښځو اختلاط رائحي (چي د نارینه او ښځینه مړي تر مینځ څه شی حائل نه وي). ④ او پر دغه ځای د پاسه پوخ ځای جوړول کیږي (او چونه هم پکښې کارول کیږي) (زمورږ په علاقو کي د دې هیڅ رواج نسته). (انوار الایضاح بحوالۂ البحر الرائق ج: ۲. ص: ۲۰۹. و حاشیه شرح النقایه لشیخ الأدب مولانا اعزاز علي رحمه الله)

## په یوه قبر کي څو مړي ښخول

﴿۹۸۴﴾ وَلَا بَأْسَ بِدَفْنِ أَكْثَرَ مِنْ وَاحِدٍ فِيْ قَبْرٍ او څه پروا نسته په ښخولو کي تر یوه د زیاتو کسانو په یوه قبر کي لِلضَّرُوْرَةِ د ضرورت په وجه وَيُحْجَزُ بَيْنَ كُلِّ اثْنَيْنِ بِالتُّرَابِ او بېلتون (جدایي) به را وستل کیږي د هرو دوو په مینځ کي په خاوري سره.

**لغات**: ﴿يُحجز﴾ د نصر له بابه مضارع مجهوله ده: د دوو شیانو تر مینځ جلا والی (فصل) راوستل.

**تشریح**: د ضرورت په وخت کي څو مړي په یوه قبر کي ښخول جائز دي. ضرورت مثلاً (ښخول) ډېر وي او ښخونکي (دفن کونکي) کسان لږ وي، یا ښخونکي کسان کمزوري وي چي د هر

مړي لپاره جلا قبر کیندل مشکل وي، یا کمزوري خو نه وي، لیکن دوی تر دې په زیات اهم کار مشغوله وي، نو په داسي صورت کي له یوه څخه زیات مړي په یوه قبر کي ښخول جائز دي، او په داسي صورت کي د دوو مړو تر مینځ فصل (بېلتون) راوستل پکار دي، برابره ده فصل د کپړې (ټوکر) په ذریعه وکړل سي یا د وښو، پاڼو یا د کاغذ یا خاورو او داسي نورو په ذریعه وکړل سي، او په دې اوړده کنده کي به په هاغه ترتیب سره مړي (مردګان) ایښوول کیږي کوم چي مخکي تېر سو یعني اول به سړی مخ پر قبله کښېږدي، د هغه شاته بیا نابالغه هلک، بیا ښځه او داسي نور، او که ټوله مړي د یوه جنس وي مثلاً ټوله سړي (نارینه) وي یا ټوله ښځي وي، نو اول به هغه کس مخ پر قبله ایږدي کوم چي په دوی کي افضل وي او بیا له هغه څخه کم فضیلت والا علیٰ هٰذا القیاس.

په کوم قبر کي چي څو مړي ښخول کیږي، د هغه د کیندلو دوې طریقې دي: یوه دا چي شمالاً او جنوباً اوږد قبر وکیندل سي، د هغه پټول آسانه دي، او دویمه طریقه دا ده چي شرقاً و غرباً پراخه قبر وکیندل سي، په غزوۀ أحد کي پراخه قبرونه کیندل سوي وه. (انوار الایضاح بحوالۀ تحفۀ الألمعي، البحر الرائق)

## په کښتۍ کي مړ کېدل

﴿۹۸۵﴾ وَمَنْ مَّاتَ فِيْ سَفِيْنَةٍ او څوک چي مړ سي په کښتۍ کي وَكَانَ الْـبَـرُّ بَعِيْدًا او وچه (ځمکه) لیري وي أَوْ خِيْفَ الضَّرَرُ یا (مړي ته) د ضرر رسېدلو (خرابېدلو) بېره وي غُسِلَ وَكُفِنَ نو غسل او کفن دي ورکول سي وَصُلِّيَ عَلَيْهِ وَأُلْقِيَ فِـي الْبَحْـرِ او لمونځ (د جنازې) دي پر هغه وکړل سي او په دریاب کي دي وغورځول سي.

**لغات:** ﴿سفينة﴾ کښتۍ، جمع: سُفُن، ﴿بَرّ﴾ وچه، د بحر ضد دی، یعني له سمندرونو او نورو اوبو څخه بغیر نوري وچي ځمکي ته "بَرّ" وایي، ﴿ضرر﴾ نقصان، تاوان، جمع: أَضْرَارٌ، ﴿بحر﴾ سمندر، دریاب، جمع: بِحَارٌ.

**تشریح:** که د سمندري سفر په دوران کي یو کس په کښتۍ کي مړ سي او وچه ځمکه لیري وي او دا بېره وي چي مړی به بوی وکړي، نو هغه ته دي په کښتۍ کي غسل او کفن ورکول سي او پر هغه دي لمونځ وکړل سي او تر دې وروسته دي یو وزني شی د هغه سره وتړل سي او سمندر ته دي واچول سي، او که دا بېره نه وي چي هغه به بوی وکړي، نو برابره ده وچه لیري وي او که نژدې وي، هغه دي په سمندر کي نه اچوي، بلکي په وچه کي دي یې ښخ کړي. (شفاء الارواح بحوالۀ حاشیه)

## جنازه بل ځای ته وړل

﴿۹۸۶﴾ وَيُسْتَحَبُّ الدَّفْنُ فِيْ مَحَلٍّ مَاتَ بِهٖ أَوْ قُتِلَ او مستحب دي ښخول په هغه ځای کي چي پکښي مړ سوی یا وژل سوی وي فَإِنْ نُقِلَ قَبْلَ الدَّفْنِ قَدْرَ مِيْلٍ أَوْ مِيْلَيْنِ بیا که هغه نقل کړل سي (یووړل سي) تر ښخولو مخکي دیوه میل یا دوو میلو په اندازه لَا بَأْسَ بِهٖ نو څه پروا پکښي نسته وَكُرِهَ نَقْلُهٗ لِأَكْثَرَ مِنْهُ او مکروه دي له دې څخه زیاته مسافه دمړي نقل کول (وړل).

**تشریح:** کوم څوک چي په ښار یا د صحرا په علاقه وغیره کي مړ سوی یا وژل سوی وي، نو دا کس د هغه ځای په هدیره کي ښخول مستحب دي، او تر ښخولو مخکي له یوه ځایه بل ځای ته وړل مکروه دي، مګر دا چي هغه بل ځای دیوه میل یا دوو میلو پر فاصله وي، نو بیا څه پروانه لري؛ ځکه د ښار او آبادۍ هدیره عموماً دغومره فاصله لیري واقع وي. (شفاء الارواح)

## له ښخولو څخه وروسته مړي بل ځای ته وړل

﴿۹۸۷﴾ وَلَا يَجُوْزُ نَقْلُهٗ بَعْدَ دَفْنِهٖ بِالْإِجْمَاعِ او جائز نه دي دمړي نقل کول (وړل) تر ښخولو وروسته په اجماع سره (بالاتفاق) إِلَّا أَنْ تَكُوْنَ الْأَرْضُ مَغْصُوْبَةً أَوْ أُخِذَتْ بِالشُّفْعَةِ مګر دا چي هغه ځمکه غصب کړل سوې وي، یا په شفعه سره اخیستل سوې وي.

**لغات:** ﴿مغصوبة﴾ د ضرب له بابه د مفعول صیغه ده: غصب کړل سوې، په زوره (جبرا) لاندي کړل سوې. ﴿الشفعة﴾ شُفعه له "شَفْعٌ" څخه مشتق ده او "شَفْعٌ" د فتح د باب مصدر دی "شَفَعُ الشَّيْءِ بِالشَّيْءِ" چي د هغه معنیٰ ده: یو شی د بل شي سره یو ځای کول. او د شُفعي اصطلاحي معنیٰ ده: "تَمَلُّكُ الْبُقْعَةِ (أَوِ الْعَقَارِ) بِمَا قَامَ عَلَى الْمُشْتَرِيْ بِالشِّرْكَةِ أَوِ الْجِوَارِ" یعني د شرکت یا همسایه توب پر بنیاد د (خرڅ کړل سوي) جایداد مالک کېدل د دومره قیمت په عوض کي په څومره قیمت چي مشتري ته ولاړ وي. (په آسانه وینا دا چي که یو څوک خپله ځمکه یا غیر منقوله جایداد [لکه کور وغیره] خرڅ کړي او د هغه شریک یا همسایه ودرېږي چي دا زه رانیسم [په هغومره قیمت څومره چي د هغه ځمکي او جایداد قیمت تاکل سوی وي] او بل چا ته یې نه پرېږدم. نو دې ته "شفعه" او "د شفعي حق" وایي).

**تشریح:** مسئله دا ده چي تر ښخولو (دفن) وروسته مړی را ایستل او بل ځای ته وړل بالاجماع ناجائز دي. لېکن دیو انسان د حق لپاره جائز دي، مثلاً په کومه ځمکه کي چي مړی ښخ وي، هغه د

بل چا مثلاً د زيد ځمکه وي او د زيد له اجازې پرته مړی پکښې ښخ کړی سوی وي. نو مالک (زيد) ته اختيار دی چې که خوښه يې وي، نو د مړي دايستلو او ورلو حکم دي وکړي او که خوښه يې وي. نو ځمکه دي هواره کړي او په خپل کار کې دي يې استعمال کړي.

او أخذت بالشفعة: ددې صورت دا دی چې مثلاً زيد يوه ځمکه رانيوله او په هغه کې يې يو مړی ښخ کړی. بيا د هغه ځمکي سره همسايه کس مثلاً خالد د شفعي دعوه وکړه چې په دې ځمکه کې زه د شفعي حق لرم (ځکه چې زما د ځمکي څنګ ته ده مثلاً) او بيا دا ځمکه د شفعي د حق په وجه خالد ته ورکول سوه او خالد يې مالک سو، نو اوس د خالد لپاره جائز دي چې (مشتري از يدا ته) د مړي دايستلو حکم وکړي او دا هم ورته جائز دي چې د قبر ځمکه هواره او استعمال کړي. (د شفعي تفصيلي احکام به په لويو کتابونو کې درته راسي).

## د بل چا په قبر کې د ښخ کړل سوي مړي حکم

﴿۹۸۸﴾ وَإِنْ دُفِنَ فِيْ قَبْرٍ حُفِرَ لِغَيْرِهٖ او که ښخ کړل سي په داسي قبر کې کوم چې د بل چا لپاره کيندل سوی (کينل سوی) وي ضَمِنَ قِيْمَةَ الْحَفْرِ نو ضامن کيږي د کيندلو (کينلو) د قيمت (يعني د هغه پر کينلو چې څومره قيمت لګيدلی وي، د هغه ضمان (تاوان) ادا کول لازميږي) وَلَا يُخْرَجُ مِنْهُ او نه به ايستل کيږي له هغه قبر څخه.

لغات: ﴿حُفِرَ﴾ د ضرب له بابه ماضي مجهوله ده: قبر يا داسي بل پټ کړل سوی شی خلاصول او ښکاره کول. ښخ کړل سوی را کينل (را ايستل).

تشريح: صورت د مسئلې دا دی چې که يو چا مثلاً خالد د ځان لپاره په خپل ژوند کې قبر کيندلی وي (لکه بعضي کسان چې همداسي کوي)، بيا يو بل څوک مثلاً زيد په هغه قبر کې خپل مړی ښخ کړي. نو د قبر مالک يعني خالد ته د هغه مړي درا ايستلو اجازه نسته، خو ده (خالد) چې ددې قبر په کيندلو باندي څومره مصرف کړی وي، ددې ضمان (تاوان) له هغه بل چا (زيد) څخه اخيستلای سي.

## د قبر خلاصول کله جائز دي؟

﴿۹۸۹﴾ وَيُنْبَشُ لِمَتَاعٍ سَقَطَ فِيْهِ او قبر لڅول کېدای سي د يو سامان لپاره کوم چې په قبر کې لوېدلی وي وَلِكَفَنٍ مَغْصُوْبٍ او (همداسي) د غصب کړل سوي کفن لپاره وَمَالٍ مَعَ الْمَيِّتِ او د يو مال لپاره کوم چې د مړي سره (ښخ سوی) وي.

**لغات**: ﴿ينبش﴾ د نصر له بابه مضارع مجهوله ده، نَبَشَ يَنْبُشُ نَبْشًا: پټ سوی شی رابښکاره کول(لځول)، ښخ کړی مړی راکښل، مراد: قبر لځول، ﴿متاع﴾ سامان، جمع: أمتعة، ﴿مغصوب﴾ د ضرب له بابه مفعول دی: غصب کړی سوی (په زوره اخیستل سوی) شی.

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چي که په قبر کي د يو چا قيمتي سامان لوېدلی وي، يا مړی د بل چا په غصب کړل سوي کفن کي ښخ کړل سوی وي، يا د مړي د ښخولو په وخت کي د هغه سره مال او دولت هم ښخ کړل سوی وي، نو د هغه درا ايستلو لپاره د قبر خلاصول (لځول) جائز دي، لکه څرنګه چي نبي کريم ﷺ د ابو رغال د قبر خلاصولو اجازه ورکړې وه د سرو زرو د يو شي په وجه کوم چي د مړي سره ايښوول سوی وو. (شفاء الارواح، مراقي الفلاح)

| ﴿۹۹۰﴾ وَلَا يُنْبَشُ بِوَضْعِهٖ لِغَيْرِ الْقِبْلَةِ او قبر نه سي لځول کېدلای له قبلې څخه و غير(بل) طرف ته د مړي د ايښوول کېدلو په وجه أَوْعَلٰى يَسَارِهٖ يا پر چپه اړخ (د هغه د ايښوول کېدلو په وجه) وَاللّٰهُ أَعْلَمُ او الله زيات خبر دی. |
|---|

**تشریح**: مخکي دا مسئله تېره سوه چي مړی دي په قبر کي په راسته اړخ باندي مخ پر قبله ايښوول کېږي او که دا ممکنه نه وي نو ستوني ستخ دي ايښوول کېږي او مخ دي يې د قبلې وطرف ته اړول کېږي. اوس دلته دا خبره بيانوي چي که مړی په قبر کي په چپه اړخ باندي ايښوول سوی وي، يا د هغه مخ له قبلې څخه بغير وبل طرف ته اړول سوی وي، بيا تر ښخولو وروسته په ياد ورسي، نو اوس د دې لپاره قبر لځول جائز نه دي چي مړی مخ پر قبله کړي، ها! که تر اوسه فقط خښتي وغيره ور ته ايښوول سوي وي او خاوره نه وي باندي اچول سوې، نو خښتي وغيره ليري کول او هغه مخ پر قبله کول پکار دي.



# فَصْلٌ فِیْ زِیَارَةِ الْقُبُوْرِ

(دا) فصل په (بیان د) زیارت د قبرونو کي دی

## د قبرونو د زیارت حکم

﴿۹۹۱﴾ نُدِبَ زِیَارَتُهَا مستحب دي د قبرونو زیارت لِلرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ عَلَی الْأَصَحِّ د سړیو او ښځو (دواړو) لپاره د صحیح ترین قول مطابق.

**تشریح:** د مؤمنانو د قبرونو زیارت او د هغو لپاره دعاء کول مستحب دي او د نبي کریم ﷺ له زمانې څخه تر نن ورځې پورې د اُمت پر دې عمل دی، د قبرونو په زیارت سره زړه نرمیږي، مرګ یادیږي او د دنیا فاني والی معلومیږي، په هره هفته کي یوه ورځ زیارت کول مستحب دي او د جمعې یا شنبې یا دوشنبې یا پنجشنبې په ورځ زیارت کول مستحب دی، تر ټولو افضل د جمعې ورځ او د سهار وخت دی، په روایت کي راځي چي مړي د پنجشنبې او جمعې په ورځ زیارت کونکی کسان پېژني، او د ښځو لپاره هم صحیح دا ده چي زیارتِ قبور جائز دی کله چي دوی غیر شرعي اُمور نه کوي.

لیکن زیاته صحیح دا ده چي ښځي برابره ده سپین سري وي او که ځواني وي او برابره ده د بزرګ قبر ته ځي او که عامو قبرونو ته ځي مطلقاً په هر حالت کي به دوی منع کول کیږي، خصوصاً زموږ په زمانه کي چي اوس د جهالت، شرک او بدعاتو ډېر زور دی او د ډېرو غیرِ اخلاقي او غیرِ شرعي اُمورو او مفاسدو ننداره کیږي، نو ځکه په سختي سره به منع کول کیږي، همدا وجه ده چي زموږ په زمانه کي د هغه د حرام والي فتویٰ صادره سوې ده (خو کله نا کله په پرده کي هدیرې ته د ښځي تلل ممنوع نه دي کله چي د غیرِ شرعي اُمورو او مفاسدو هیڅ خطره نه وي). (شفاء الارواح بحوالة عمدة الفقه)

## د قبرونو د زیارت طریقه

﴿۹۹۲﴾ وَیَسْتَحِبُّ قِرَاءَةُ یٰسٓ او مستحب دي د یٰسٓ شریف ویل لِمَا وَرَدَ أَنَّهُ مَنْ دَخَلَ الْمَقَابِرَ وَقَرَأَ یٰسٓ ځکه چي وارد سوي دي (په روایت کي راغلي دي) چي څوک هدیرې ته داخل سي او یٰسٓ شریف ووایي خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْهُمْ یَوْمَئِذٍ نو سپکوي الله تعالی (عذاب) له دوی ټولو څخه (کوم چي هلته ښخ دي) په هغه ورځ وَکَانَ لَهُ بِعَدَدِ مَا فِیْهَا حَسَنَاتٌ او دي دغه ویونکي

لره په هدیره کې د موجوده مړو په شمیر سره نېکیانې (یعني هلته دیس لوستونکي ته دومره نېکۍ حاصلیږي څومره چې په هدیره کې مړدګان موجود دي).

**لغات:** ﴿مقابر﴾ جمع د مقبرة ده: هدیره (قبرستان). ﴿خفف﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: سپکول، کمي کول. په بعد د مَا کښې "مَا" د "مَنْ" په معنیٰ سره دی. ﴿حسنات﴾ جمع د حَسَنَةٌ ده: نېکي، نېک عمل.

**تشریح:** د زیارت طریقه دا ده چې کله هدیرې ته داخل سي، نو دا دعاء دې ووایي:

"اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ يَا أَهْلَ الْقُبُوْرِ! يَغْفِرُ اللهُ لَنَا وَلَكُمْ أَنْتُمْ سَلَفُنَا وَنَحْنُ بِالْأَثَرِ"

یا داسې دې ووایي:

"اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ دَارَ قَوْمٍ مُؤْمِنِيْنَ وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللهُ بِكُمْ لَاحِقُوْنَ وَنَسْأَلُ اللهَ لَنَا وَلَكُمُ الْعَافِيَةَ"

بیا چې کله یو معلوم قبر ته راسي، نو مړي (قبر) ته دې مخامخ ودریږي یعني چې د ده شا د قبلې وطرف ته وي او مخ یې د مړي (قبر) وطرف ته وي، او د مذکوره پورتني سلام تر ویلو وروسته دې د خپل وس مطابق د قرآن مجید څه حصه یا څو سورتونه ووایي او د سورة یٰس فضیلت راغلی دی او د هغه ثواب دې دغه مړي او د هدیرې ټولو مړو ته ورسوي، او په دې عبارت کې د سورة یٰس فضیلت دا بیان سوی دی چې څوک هدیرې (مقبرې) ته داخل سي او دا سورت ووایي، نو په دې ورځ به الله تعالیٰ د هغو (مړدګانو) عذاب سپک کړي نو ده ته به د هغو د شمېر په اندازه نېکیانې ور کړي.

## د قبر سره کښېنستل او د قرآن کریم تلاوت کول

﴿۹۳﴾ وَلَا يُكْرَهُ الْجُلُوْسُ لِلْقِرَاءَةِ عَلَى الْقَبْرِ او مکروه نه دي د قرائت (قرآن لوستلو) لپاره کښېنستل د قبر سره فِي الْمُخْتَارِ د مختار (اختیار کړل سوي) قول مطابق.

**تشریح:** مسئله دا ده چې د قرآن لوستلو لپاره د قبر سره کښېنستل مکروه نه دي، چې څوک هدیرې ته ولاړ سي او هلته د قبر سره قرآن کریم په یاده یا په ناظره ووایي، دا څه پروا نه لري؛ دلته په عبارت کې "علیٰ" د "عند" په معنیٰ سره دی؛ ځکه پر قبر د پاسه کښېنستل برابره ده د تلاوت لپاره وي یا هسې وي، په هر صورت کې مکروه تحریمي دي.

﴿۹۴﴾ وَكُرِهَ الْقُعُوْدُ عَلَى الْقُبُوْرِ لِغَيْرِ قِرَاءَةٍ او مکروه دي د قبرونو سره کښېنستل بغیر له قرائت (قرآن لوستلو) څخه وَوَطْؤُهَا او قبرونه تر پښو لاندې کول (په قبرونو سرېېره ختل)

وَالنَّوْمُ وَقَضَاءُ الْحَاجَةِ عَلَيْهَا او خوب او حاجت کول پر قبرونو.

**لغات:** ﴿وطؤ﴾ د سمع د باب مصدر دی: تر پښو لاندي کول، پایماله کول.

**تشریح:** مسئله دا ده چي د قبرونو سپکاوی نه کول پکار دي او تر حد زیات تعظیم یې هم نه کول پکار دي، بلکي په دې باره کي اعتدال کول پکار دي، سپکاوی دا دی چي قبرونه تر پښو لاندي کړل سي، یا پر هغوی کښېني، یا پر هغوی قضاء حاجت وسي. او تعظیم دا دی چي قبرونه زیات جګ جوړ کړل سي، پر قبرونو ګومبتي جوړي کړل سي، پر هغوی ګلان واچول سي. یا پر هغوی څادران هوار کړل سي او یا پر هغوی څراغان وځړول سي، او اعتدال دا دی چي په زړه کي د قبرونو قدر او احترام وي او د هغوی سره داسي عمل او چلند وسي کوم چي په سنت سره ثابت دي، یعني د قبرونو د زیارت لپاره تلل او د قبرونو سره د ېدل، ایصال ثواب کول او د مغفرت دعاء ورته کول. فقط.

## د قبر د شاوخوا شنه وابنه کښل

﴿۹۹۵﴾ وَقَلْعُ الْحَشِيْشِ وَالشَّجَرِ مِنَ الْمَقْبَرَةِ او (همدارنګه مکروه دي) وابنه او درختي (ونې) کښل له هدیرې څخه وَلَا بَأْسَ بِقَلْعِ الْيَابِسِ مِنْهُمَا او څه پروانسته په کښلو کي د دوچو له دې دواړو څخه (یعني وچ وابنه یا وچي درختي کښل څه حرج او پروانه لري).

**لغات:** ﴿قلع﴾ د فتح د باب مصدر دی: کښل، له بېخه باسل، ﴿حشیش﴾ وابنه. منهما د تثنیه ضمیر د حشیش او شجر وطرف ته راجع دی.

**تشریح:** مستحب دا ده چي پر قبر شنه وابنه وغیره نه وکښل سي، په دې سره میت ته فایده رسیږي: ځکه شنه وابنه او شنه بوټي د الله ﷻ په ذکر مشغوله وي او د هغوی د ذکر کولو په وجه د الله ﷻ رحمت نازلیږي، ها! تر وچېدلو وروسته د هغوی په کښلو او پرېکولو کي څه حرج نسته. خو که د قبر د شاوخوا ولبنو او بوټو په وجه خلکو ته تکلیف وي، نو بیا د لاري د صفا کولو لپاره هغوی کښل کېدلای سي. (انوار الایضاح بحواله مراقی الفلاح ص: ۳۴۲، وفتاوی رحیمیة ج: ۵، ص: ۱۰۵)



# بَابُ أَحْكَامِ الشَّهِيْدِ

(دا) باب د شهید د احکامو (په بیان کي) دی

**تشريح:** څرنګه چي د شهید احکام د نورو مړو له احکامو څخه جلا او بېل دي، نو ځکه د شهید احکام په یوه جلا باب کي بیانوي. یا په دې وجه یې جلا بیانوي چي شهید پر نورو مړو ډېر فضیلت لري، تر دې چي له دې څخه منع سوې ده چي شهید ته مړ وویل سي، لکه څرنګه چي د الله تعالیٰ فرمان دی ﴿وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللهِ أَمْوَاتٌ بَلْ أَحْيَاءٌ وَلَٰكِنْ لَا تَشْعُرُونَ﴾. [البقرة:۱۵۴]

**شهید ته د شهید ویلو وجه:** صاحب د بنایې رَحِمَهُ الله لیکلي دي چي شهید ته په څو وجهو سره شهید ویل کیږي: ① یو په دې وجه چي فرښتې د تعظیم او عزت په خاطر د هغه د مرګ شهادت (ګواهي) ورکوي او فرښتې د هغه په جنازه کي شرکت کوي، نو دلته به شهید په معنیٰ سره د مشهود وي لکه فعیل چي په معنیٰ سره د مفعول راځي، ② دویمه وجه دا ده چي شهید ته تر مرګ وروسته د جنت زېری او شهادت ورکول کیږي، نو دلته به هم په معنیٰ سره د مشهود وي، ③ درېیمه وجه دا ده چي د شهید معنیٰ ده: حاضر. او شهید هم د الله ﷻ په نېز حاضر او ژوندی وي، لکه څرنګه چي مخکي آیت ذکر سو (بنایه ج:۳) دلته به په معنیٰ د شاهد سره وي.

د فقهاؤ په اصطلاح کي شهید هغه څوک دی چي مشرکینو او کافرانو قتل کړی وي او د هغه پر بدن د قتل او زخم اثر وي. یا هغه څوک دی چي مسلمانانو په ظلم قتل کړی وي، او د قتل په وجه یې دیت واجب سوی نه وي. (فتح الهدایه)

**د شهید قسمونه:** د انجام او احکامو په اعتبار سره د شهید درې قسمونه دي:

① ... دنیوي او أخروي شهید (کامل شهید): یعني هغه کس کوم چي په اخلاص سره د الله ﷻ د دین د لوړ والي لپاره په جهاد کولو کي ووژل سي. ده ته په آخرت کي د شهادت مرتبه نصیب کیږي او په دنیا کي هم پر هغه د شهید احکام جاري کیږي. چي غسل وغیره نه ورکول کیږي. همدارنګه هغه کس کوم چي ظلماً په تېرة (تېره) آله سره وژل سوی وي، هغه هم د دې شهید په حکم سره دی.

② ... أخروي شهید: دا هغه کس دی کوم چي په جهاد وغیره کي شهید نه سي. لېکن د خپل ځان او مال په دفاع کي ووژل سي. یا مثلاً د نس د ناروغۍ په وجه مړ سي، یا د طاعون وغیره د وبا په وجه مړ سي. په مختلفو روایاتو کي تقریباً شپېته (۶۰) بوله کسان ذکر سوي دي. دا ټول روایات په "أوجز المسالك" کي جمع سوي دي.

③... فقط دنیوي شهید: داسي منافق او بد غرض لرونکی کس کوم چي محض د ځان ښوونې لپاره په جهاد کي شریک سي او ووژل سي. یا د مال غنیمت حاصلولو یا د یو بل دنیوي غرض په وجه جنګ کونکی ووژل سي. ځرنګه چي د زړه په رازونو صرف الله تعالیٰ خبر دی. نو ځکه داسي کس په دنیوي احکامو کي شهید منل سوی دی چي د ده سره به د حقیقي شهید په څېر چلند کول کیږي چي غسل وغیره به نه ور کول کیږي. لېکن په آخرت کي داسي کسانو ته د شهادت مرتبه نه حاصلیږي. (کتاب المسائل و تحفة الألمعي ج: ۳)

﴿۹۹۶﴾ اَلشَّهِيْدُ الْمَقْتُوْلُ مَيِّتٌ بِأَجَلِهٖ مقتول (وژل سوی) شهید په خپل مرګ (یا په بله وینا: پر خپل تاکلي وخت) مړ سوی دی عِنْدَنَا أَهْلِ السُّنَّةِ زموږ (یعني) د اهل سنتو په نیز.

**لغات:** ﴿أجل﴾ د دې لفظ څو معناوي نقل سوي دي: مرګ، د انسان د وخت آخر (د مرګ وخت)، ټاکل سوې نېټه (موده)، مقرر وخت.

**تشریح:** د دې مسئلې تعلق د عقائدو او علمُ الکلام سره دی، حاصل د عبارت دا دی چي د مقتول (وژل سوي کس) په باره کي د اهلِ سنت والجماعت عقیده دا ده چي هغه میّت بأجله دی یعني هغه په خپل مرګ سره پر خپل ټاکلې نېټه مړ سوی دی یا په بله وینا د هغه مرګ پر خپل وخت راغلی دی له وخت څخه مخکي نه دی واقع سوی، پاتېه سوه دا خبره چي کله مقتول میّت بأجله دی، نو بیا پر قاتل قصاص یا دیت ولي واجبیږي؟، نو د دې جواب دا دی چي قاتل د قتل سبب اختیار کړی دی (یا په بله وینا د قتل سبب جوړ سوی دی) او په دې سره یې د عالَم نظام خراب کړی دی، نو ځکه د نظامِ عالَم د خوندي او باقي ساتلو په خاطر د قاتل لپاره دا سزا ټاکل سوې ده. او معتزله وایي چي مقتول پر خپل ټاکلې نیټه (پر خپل وخت) نه دی مړ سوی، بلکي همدا قاتل د هغه عمر ورختم کړی دی، که قاتل هغه قتل کړي نه وای، نو هغه به ژوندی وای. (شفاء الارواح بحوالهٔ حاشیه)

## د شهید تعریف او تفصیل

﴿۹۹۷﴾ وَالشَّهِيْدُ مَنْ قَتَلَهٗ أَهْلُ الْحَرْبِ او شهید هغه کس دی کوم چي قتل کړی (وژلی) وي حربي کافرانو أَوْ أَهْلُ الْبَغْيِ أَوْ قُطَّاعُ الطَّرِيْقِ یا باغیانو یا لاره شکونکو (داکوګانو) أَوِ اللُّصُوْصُ فِيْ مَنْزِلِهٖ لَيْلًا یا غلو په خپل کور کي د شپې وَلَوْ بِمُثَقَّلٍ که څه هم په یو درانه شي سره (یې وژلی) وي أَوْ وُجِدَ فِي الْمَعْرَكَةِ وَبِهٖ أَثَرٌ یا هغه (کس کوم چي). رنلل سوی وي د جنګ په میدان کي او پر هغه (د زخم) نښې وي.

﴿۹۹۸﴾ أَوْ قَتَلَهٗ مُسْلِمٌ ظُلْمًا عَمَدًا بِمُحَدَّدٍ یا یو مسلمان هغه قتل کړی وي په ظلم سره قصداً

په تېره شي سره.

﴿۹۹۹﴾ وَكَانَ مُسْلِمًا او هغه (قتل کړی سوی کس) مسلمان وي (نو د مقتول اسلام شرط دی د شهادت د ثبوت لپاره. لهذا د کافر کس لپاره هیڅ شهادت نه سي ثابتېدلای).

﴿۱۰۰۰﴾ بَالِغًا (او) بالغ وي.

﴿۱۰۰۱﴾ خَالِيًا عَنْ حَيْضٍ وَنِفَاسٍ وَجَنَابَةٍ خالي (پاک) وي له حیض او نفاس او جنابت څخه.

﴿۱۰۰۲﴾ وَلَمْ يُرْتَثَّ بَعْدَ انْقِضَاءِ الْحَرْبِ او هغه مقتول زوړ سوی (ژوند بائلدي تېر سوی) نه وي د جنګ تر ختمېدلو وروسته (یعني د جنګ تر ختمېدلو وروسته د زخمي والي په حالت کي ژوندی نه وي پاته سوی. یا په بله وینا داچي تر جنګ وروسته یې له دنیاوي ژوند څخه فایده نه وي اخیستې. نو داسي مقتول شهید دی. کنې شهید نه دی).

**لغات:** ﴿أهل الحرب﴾ له دې څخه مراد حربي کفار دي یعني د داسي ملک جنګي کفار چي هلته د کفارو حکومت وي، ﴿أهل البغي﴾ باغیان، هغه کسان چي په د امام (حاکم) له اطاعت څخه ووځي (په یو تأویل سره) بغاوت وکړي او جنګ ته آماده سي، صاحب د معجم یې داسي تعریف کړی دی: " أهل البغي: المسلمون الخارجون على الامام متأولين إذا كانت لهم شوكة "(معجم لغة الفقهاء)، ﴿لصوص﴾ جمع د لصٌّ دہ: غل (په پټه غلا کونکی)، لیلًا: دا قید اتفاقي دی، مطلب یې دا دی چي ډاکو کور ته ورسي برابره ده د ورځي وي او که د شپې وي، د دواړو حکم برابر دی (انوار الایضاح). ﴿مُثقَّل﴾ دروند (وزنداما) شی، ﴿معركة﴾ د جنګ میدان، ډګر، جمع: مَعَارِك، ﴿مُحدَّد﴾ تېره (تېره کړی سوی)، تېز، حَدَّدَ يُحَدِّدُ تَحْدِيدًا: تېره کول، ﴿وَلَمْ يُرْتَثَّ﴾ د افتعال له بابه د نفي جحد مجهول صیغه ده، د دې باب څو معناوي نقل سوي دي: زوړ کېدل (وخت پر تېرېدل)، له دنیاوي آسانتیاوو څخه فایده اخیستل، صاحب د معجم الوسیط یې داسي تعریف کړی دی " ارْتُثَّ فلانٌ: ضُرِبَ في الحَرْب فأُثخن وحُمل وبه رمقٌ ثمّ مَاتَ فَهُوَ مرتثٌّ". یعنی هغه کس کوم چي د جنګ په میدان کي سخت زخمي کړل سي او بیا هغه د جنګ له میدان څخه یووړل سي او په هغه کي ساه پاته وي (ژوندی وي) بیا تر څه ژوند وروسته مړ سي (په لنډه وینا داچي تر زخمي کېدو وروسته څه وخت ژوندی پاته سي. یا په بله وینا چي تر زخمي کېدو وروسته د دنیاوي ژوند نفع حاصله کړي). نو داسي کس ته مُرْتَثّ ویل کیږي، نور تفصیل او وضاحت به یې په تشریح کي ذکر سي.

**تشریح**: په دنیا کې چې پر کوم چا د شهید احکام جاري کیږي یعنې غسل وغیره نه ور کول کیږي، دلته د هغه تذکره کیږي، د دې شهید څو صورتونه دي:

①... کوم مسلمان چې حربیانو یا باغیانو یا ډاکه مارانو (ډاکوګانو) یا غلو د شپې په خپل کور کې وژلی وي، برابره ده په آلة جارحه سره وي لکه توره، ټوپک او داسې نور، یا په غیر جارحه آله سره وي لکه ډانګ (لکړه)، سوکان او لغتې او داسې نور، نو هغه شهید دی او پر هغه د شهید احکام جاري کیږي.

②... کوم مسلمان چې د جنګ پر میدان په داسې حال کې وموندل سي چې د هغه پر بدن د زخم نښې وي، نو پر هغه د شهید احکام جاري کیږي.

أو قتله مسلم ظلمًا إلخ: ③... کوم مسلمان چې مسلمانانو ظلماً او قصداً په تېره (تېز) شي سره وژلی وي، نو پر هغه هم د شهید احکام جاري کیږي، په دې درېیم صورت کې د "ظلمًا" په قید سره هغه کس خارج سو کوم چې دیو چا د حق په بدله کې وژل سوی وي مثلاً په حدّ یا قصاص کې، یا یې پر یو چا ظلم و زیاتوب کړی وي او هغه دئ وژلی وي، نو دئ شهید نه دی. همدارنګه د "عمدًا" (قصدًا) په قید سره هغه کس خارج سو کوم چې په یوه تېره شي سره خطاءً وژل سوی وي مثلاً یو چا پر یو حیوان وار کړی وي خو وار پر یو انسان لګېدلی وي، نو هغه شهید نه دی، همدارنګه د "محدّد" (تېره) قید لګول سوی دی، لهذا که په نا تېره شي مثلاً په ډانګ یا داسې بل شي سره وژل سوی وي، نو هم هغه شهید نه دی، او له تېره (تېز) شي څخه مراد هغه آله ده چې په هغه کې د پرېکولو (غوڅولو) قوت وي او اندامونه سره جلا کولای سي لکه توره، چاړه، چاقو، د ټوپک مرمی او داسې نور، او اوسپنه مطلقاً په آلة جارحه کې داخله ده که څه هم هغه تېره نه وي.

په دې درېو سره صورتونو کې د شهید احکام جاري کیږي. یعنې هغه ته به غسل نه ور کول کیږي او هغه به د خپلو وینو او خپلو جامو (کالیو) سره ښخول کیږي او پر هغه به د جنازې لمونځ کول کیږي، خو کله چې په هغه کې دا لاندیني شرطونه موجود سي (دا یاد ساتئ!):

①... هغه به مسلمان وي؛ ځکه د کافر لپاره هیڅ قسم شهادت نه سي ثابتېدلای.

②... بالغ به وي، یا په بله وینا شرعاً به مکلف وي، لهذا که نابالغه بچی ووژل سي، نو پر هغه په دنیا کې د شهادت احکام نه جاري کیږي، بلکې هغه ته به د عامو مړو په څېر غسل او کفن ور کول کیږي.

③... له حیض او نفاس او جنابت څخه به پاک وي، لهذا که یو سړی د جنابت په حالت کې یا ښځه د حیض او نفاس په حالت کې شهیده کړل سي، نو پر هغو هم د شهیدِ کامل احکام نه جاري کیږي، بلکې غسل او کفن نه ور کول کیږي.

④... مُرْتَثّ به نه وي، دا له "اِرْتِثَاث" (باب افتعال) څخه مأخوذ دی، د "ارتثاث" ماده "رَثّ" ده.

"رَثّ" په اصل کي زاړه (پخواني) شي ته وايي او د "ارتثاث" معنیٰ ده: زوړ کېدل (وخت بالدي تېرېدل)، او د شهادت په باب کي د ارتثاث معنیٰ دا ده چي سړی تر زخمي کېدلو وروسته څه وخت ژوندی پاته سي او له دنیاوي ژوند څخه نفع حاصله کړي، یا دومره وخت ژوندی پاته سي چي پر هغه یو دنیاوي حکم نافذېدلی سي، مثلاً د یوه لمانځه وخت پر هغه د ژوند په حالت کي تېر سي، یا دنیاوي نفع حاصله کړي مثلاً دواء وخوري، یا بل څه وخوري یا وڅیښي، یا بیده سي، یا د جنګ له ډګر څخه د راحت لپاره را نقل کړی سي، یا تر ډېر وخته پوري خبري وکړي او داسي نور، دې ټولو ته ارتثاث ویل کیږي او داسي کس ته د فقه په اصطلاح کي مرتثّ ویل کیږي (چي تر زخمي کېدلو وروسته په دنیا کي ژوند تېر کړی او دنیاوي منافع حاصل کړي)، داسي کس که څه هم د الله تعالیٰ په نیز (فیما بینه وبین الله) شهید دی او ډېره ممکنه ده چي په دې میدان کي تر ټولو افضل او اعلیٰ شهید هم دئ وي، خو په دنیاوي اعتبار سره پر ده د شهید احکام نه جاري کیږي یعني ده ته به غسل او کفن ورکول کیږي. (د مرتثّ نور تفصیل به څه وروسته په کتاب کي هم راسي)

دا حکم هلته دی کله چي دغه پورتني أمور (یعني د یوه لمانځه وخت تېرېدل. یا څه خوړل او څیښل او داسي نور) د جنګ تر ختمېدلو وروسته واقع سي، او که د جنګ تر ختمېدلو مخکي دا أمور واقع سي، نو هغه مرتثّ نه دی، بلکي شهید شمېرل کیږي.

## د شهید احکام (کوم چي په دنیا کي پر هغه جاري کیږي)

﴿۱۰۰۳﴾ فَيُكَفَّنُ بِدَمِهِ وَثِيَابِهِ نو (داسي مقتول الشهید ته) به کفن به ورکول کیږي په هاغه خپلو وینو او جامو کي وَيُصَلَّى عَلَيْهِ بِلَا غُسْلٍ او پر ده به لمونځ (د جنازې) کول کیږي بېله غسل ورکولو څخه وَيُنْزَعُ عَنْهُ مَا لَيْسَ صَالِحًا لِلْكَفَنِ او کښل کیږي به له ده څخه هغه څه (جامې او نور) کوم چي د کفن کېدلو صلاحیت نه لري (یا بله وینا" کوم چي د کفن لپاره مناسب نه وي) كَالْفَرْوِ لکه پوستین وَالْحَشْوِ د پنبه وو جامې (له پنبه وو څخه ډکي پنډي جامې لکه کوټ او داسي نور) وَالسِّلَاحِ وَالدِّرْعِ او وسله او زغره وَيُزَادُ وَيُنْقَصُ فِي ثِيَابِهِ او د هغه په جامو کي به (د سنت کفن مطابق) کمي او زیاتوب کول کیږي (یعني که جامې د کفن له کچې څخه کمي وي نو زیاتوب به پکښي کول کیږي ایعني بله کپړه به ور سره اضافه کول کیږي او که زیاتي وي. نو کمول کیږي به) وَكُرِهَ نَزْعُ جَمِيْعِهَا او مکروه

دي د هغه ټولو جامو کښل (يعني په کومو جامو کي چي شهيد سوی دی. د هغوی کښل مکروه دي: ځکه چي شهيد به په قيامت کي د همدې جامو سره حاضريږي او محاجه به کوي).

**لغات:** ﴿يُزادُ﴾ د ضرب له بابه مضارع مجهوله ده: زياتول، اضافه کول. ﴿الفَرْو﴾ د دې لفظ څو معناوي نقل سوي دي چي له هغوی څخه ځيني دا دي: له ورېښو څرمني څخه جوړه جامه (پوستين). د څرمني (چمړې) کوټ، د څرمني چپنه، جمع: فِرَاءٌ. ﴿الحَشْو﴾ د دې لفظ هم څو معناوي نقل سوي دي. اصل معنیٰ يې ده: هغه شی چي بل شی په ډکيږي لکه پمبه. همدارنګه له پمبه وو څخه ډکه جامه، لکه کوټ او داسي نورو پنډو جامو ته هم حَشْو ويل کيږي. ﴿دِرْع﴾ زغره (د اوسپني جالي داره کميس کوم چي په جنګ کي اغوستل کيږي)، جميعها: أي ثيابه اللتي قُتِلَ فيها.

**تشريح:** د شهيد احکام په لاندي توګه دي: ① شهيد ته به غسل نه ورکول کيږي او نه به د هغه پر بدن لګېدلې وينه له هغه څخه صفا کول کيږي، خو که د شهيد له وينې څخه بغير بل نجاست او ناپاکي باندي لګېدلې وي، نو هغه به پرېولل کيږي، ② شهيد چي د شهادت په وخت کي کومي جامې (کميس، پرتوګ او داسي نور) اغوستې وي، په هغه جامو کي به ښخول کيږي او له شهيد څخه به هغه نه کښل کيږي. ③ که هغه جامې له سنت شمېر (مسنون عدد) څخه کمي وي، نو د هغه په اندازه جامې به پکښي اضافه کول کيږي (مثلاً يوازي پرتوګ او کميس وي. نو دې يوه لفافه ورسره زياته کړي چي سنت کفن يې پوره سي). ④ او که د هغه د بدن جامې له سنت شمېر څخه زياتي (اضافه) وي، نو اضافي کپړې به ځني ليري کول کيږي، ⑤ همدارنګه که د هغه پر بدن اضافي (بالا بود) شيان وي کوم چي کفن نه سي جوړېدلای، مثلاً کوټ، سدری، بوټونه يا څپلي، خولي يا وسله، چاټه وغيره، نو هغوی به په هر صورت کي ليري کول کيږي، باقي نور ټول احکام کوم چي د نورو مسلمانانو لپاره دي مثلاً د جنازې لمونځ او دفن (ښخول) او داسي نور، هغه ټول د ده په حق کي هم جاري کيږي.

وکره نزع جميعها: په آخر کي مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي د شهيد ټولي جامې کښل يعني د هغه پر ځای په نورو کپړو کفن ورکول مکروه دي. (انوار الايضاح)

﴿۱۰۰۴﴾ وَيُغْسَلُ إِنْ قُتِلَ صَبِيًّا أَوْ مَجْنُونًا أَوْ حَائِضًا أَوْ نُفَسَاءَ أَوْ جُنُبًا او غسل به ورکول کيږي که چيري قتل کړی سوی وي بچی يا لېونی يا حيض والا يا نفاس والا ښځه يا جنب.

﴿۱۰۰۵﴾ أَوِ ارْتُثَّ بَعْدَ انْقِضَاءِ الْحَرْبِ يا زوړ سوی (ژوند بلندي تېر سوی) وي د جنګ تر ختمېدو وروسته (يا په بله وينا: چي د جنګ تر ختمېدو وروسته يې له دنياوي ژوند څخه نفع اخيستې وي)

بِأَنْ أَكَلَ أَوْ شَرِبَ أَوْ نَامَ أَوْ تَدَاوىٰ په دې توګه چې (د جنګ تر ختمېدو وروسته) خوراک یا چښاک وکړي یا بیده سي یا دواء (علاج) وکړي أَوْ مَضَىٰ وَقْتُ الصَّلوٰةِ وَهُوَيَعْقِلُ یا دیوه لمانځه وخت (باندي) تېر سي په داسي حال کي چي هغه پوهیږي (یعني هغه په هوښ کي وي چي په لمانځه وغیره پوهیږي) أَوْ نُقِلَ مِنَ الْمَعْرَكَةِ لَالِخَوْفِ وَطْئِ الْخَيْلِ یا نقل کړی سي (یوړل سي) د جنګ له میدان څخه، نه دآسونو د پایماله کولو له بیري څخه (چي آسونه به یې تر پښو لاندي کړي) أَوْ أَوْصىٰ أَوْبَاعَ أَوِ اشْتَرىٰ یا وصیت وکړي یا خرڅول یا رانیول وکړي أَوْ تَكَلَّمَ بِكَلَامٍ كَثِيْرٍ یا زیاتي خبري وکړي (نو په دې ټولو صورتونو کي هغه مُرتث ازرو سوی ایعني له دنیاوي ژوند څخه نفع اخیستونکی دی، لهذا د شهید په حکم کي نه دی، نو غسل به ورکول کیږي) وَإِنْ وُجِدَ مَا ذُكِرَ قَبْلَ انْقِضَاءِ الْحَرْبِ او که چیري موجود سي (واقع سي) دا شیان کوم چي ذکر سوه د جنګ تر ختمېدو مخکي لَايَكُوْنُ مُرْتَثًّا نو هغه مرتث نه دی (یعني په دې صورت کي هغه له دنیاوي ژوند څخه نفع اخیستونکی نه شمېرل کیږي، لهذا د کامل شهید په حکم کي دی).

**لغات**: ﴿ارتث﴾ د افتعال له بابه ماضي مجهوله ده: څه مخکي یې تعریف ذکر سو او په مذکوره عبارت کي چي مصنف رَحِمَهُ الله کوم تفصیل ذکر کړی دی دا هم د مرتث وضاحت دی. ﴿وطئ﴾ د سمع د باب مصدر دی: تر پښو لاندي کول، پایماله کول. ﴿خَيْل﴾ آس، مجازاً پر آس سپور.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي که په کوم شهید کي له مخکیني مذکوره شرطونو څخه یو شرط موجود نه وي، مثلا نا بالغه بچی وي، یا مجنون وي او داسي نور، نو هغه ته به غسل هم ورکول کیږي او د نورو خلکو په څېر به کفن هم ورکول کیږي.

أو ارتث بعد انقضاء إلخ: دا عبارت د ﴿۱۰۰۲﴾ نمبر مسئلې تفصیل دی (لکه مخکي چي هم مورږ د هغه څه تفصیل بیان کړی). حاصل یې دا دی چي د شهید لپاره دا هم شرط دي چي د جنګ تر ختمېدو وروسته به یې د زخمېدو په حالت کي له خپل ژوند څخه نفع نه وي اخیستې (کما مرّ). مثلاً خوراک، چښاک یا دواء او علاج ورکول سوي وي او یا د هوش او حواس په حالت کي پر هغه دیوه لمانځه وخت تېر سوی وي او یا د راحت وغیره لپاره د جنګ له میدان څخه بل ځای ته منتقل کړی سوی وي، خو که د جنګ تر ختمېدو مخکي هغه منتقل کړی سي او له ژوند څخه څه نفع واخلي، نو

هغه مُرتث نه دی، بلکې شهيد دی او د شهادت حکم باقي دی، لنډه دا چې که د جنګ تر ختمېدو وروسته له پورتني مذکوره شيانو څخه يو شی موجود سي، نو د شهادت حکم ساقطيږي او داسې کس مُرتث شمېرل کيږي.

وهويعقل: يعني چې د هغه هوښ او حواس صحيح وي (په هوښ کې وي)؛ لهذا که د بې هوښۍ په حالت کې ديوه لمانځه وخت باندي تېر سي، نو د شهادت حکم يې نه ساقطيږي او مُرتث نه بلکې شهيد شمېرل کيږي.

لالخوف: نو که د جنګ له ميدان څخه په دې وجه منتقل سوی وي چې آسونه او داسې نور يې تر پښو لاندي نه کړي، نو هم هغه مرتث نه دی، بلکې شهيد شمېرل کيږي.

﴿۱۰۰٦﴾ وَيُغَسَّلُ مَنْ قُتِلَ فِي الْمِصْرِ وَلَمْ يُعْلَمْ أَنَّهُ قُتِلَ بِمُحَدَّدٍ ظُلْمًا او غسل به ورکول کيږي هغه کس ته کوم چې په ښار کې وژل سوی وي او دا معلومه نه سي چې هغه په تېره آله سره په ظلم وژل سوی دی أَوْ قُتِلَ بِحَدٍّ أَوْ قَوَدٍ يا په يو حدّ (شرعي سزا) يا قصاص کې وژل سوی وي (نو داسې کس ته به غسل ورکول کيږي) وَيُصَلَّى عَلَيْهِ او پر هغه به (د جنازې) لمونځ کول کيږي.

**لغات:** ﴿مصر﴾ ښار، جمع: أَمْصَار. ﴿حَدّ﴾ شرعي سزا (کوم چې د شريعتِ اسلامي مطابق ورکول سي)، ﴿قود﴾ قصاص (د مقتول په بدله کې قاتل قتلول).

**تشريح:** که څوک په يو آبادي کې يا و آبادۍ ته نژدې يو ځای بغير د جنګ له ميدان څخه وژل سوی وموندل سي او دا معلومه نه سي چې په کومه وجه وژل سوی دی، نو پر هغه د شهيد احکام نه جاري کيږي. همدارنګه که څوک د زنا کولو په حدّ کې يا قصاصاً وژول سوی وي، نو پر هغه هم د شهيد احکام نه جاري کيږي.



# كِتَابُ الصَّوْمِ

## (دا) کتاب د "روژې" (په بیان کي) دی

**تشریح**: څرنګه چي لمونځ یو بدني عبادت دی او روژه هم بدني عبادت دی، نو ځکه د لمانځه له بیان څخه وروسته اوس د روژې احکام او تفصیلات بیانوي.

**د صوم لغوي او اصطلاحي معنی**: د صوم لغوي معنیٰ ده: إمساك، یعني مطلق منع کېدلو. بندېدلو او ځان نیولو ته صوم وایي، هغه که له خوراک، څښاک څخه وي او که له خبرو څخه وي او که له یو بل شي څخه منع کېدل وي، او د صوم اصطلاحي او شرعي معنیٰ ده: الإمساك عن المفطرات الثلاثة نهارا مع النية. (یعني په ورځ کي د روژې په نیت سره له دریو مفطراتو (خوراک، څښاک او جماع) څخه منع کېدلو او ځان نیولو ته د شریعت په اصطلاح کي صَوْم وایي).

**روژه کله فرض سوه؟**: د هجرت په دویم کال د بدر تر جګړا مخکي د رمضان روژه فرض سوه، یو قول دا دی چي د هجرت په دویم کال د شعبان په میاشت کي فرض سوه. او مخکي د عاشوراء او د ایامِ بیض یعني د هر قمري میاشتي د دیارلسم، څوارلسم او پنځلسم روژې فرض وې. (فتح الهدایه)

**د روژې عظمت**: د روژې میاشته (رمضان المبارک) ډېره د عظمت او برکت میاشته ده. په همدې مبارکه میاشته کي قرآن کریم نازل سوی دی او په دې مقدّسه میاشته کي رحمت الهي د مؤمنانو وطرف ته په خاصه توګه متوجه کیږي، د نفلي عبادت ثواب د فرضو او د فرضو ثواب د اویا (۷۰) فرضو په اندازه ورکول کیږي، د روژې د میاشتي د راختلو سره سمدستي د جنت دروازې خلاصول کیږي او د دوږخ دروازې بندول کیږي، شیاطین او سرکښه جنات قیدول کیږي، روژه انسان د الله ﷻ د نعمتونو په قدر او قیمت اګاه کوي، روژه مالدار ته د فقیرانو د لوږې او د محتاجانو د محتاجۍ او فقر احساس ورکوي چي د دې په نتیجه کي د مالدار زړه د فقراؤ لپاره نرمیږي او هغه د دوی په تعاون کي پوره کوښښ کوي. (انوار الایضاح)

﴿۱۰۰۷﴾ هُوَ الْإِمْسَاكُ نَهَارًا عَنْ إِدْخَالِ شَيْءٍ عَمَدًا أَوْ خَطَأً بَطْنًا روژه منع کېدل (ځان نیول) دي د ورځي د یو شي له داخلولو څخه په قصد یا په خطا سره و نس ته أَوْ مَا لَهُ حُكْمُ الْبَاطِنِ یا (د بدن) وهغه حصې ته (داخلول) چي هغه لره د نس حکم دی (یعني د نس په حکم کي ده. لکه دماغ)

وَعَنْ شَهْوَةِ الْفَرْجِ او (منع کېدل) د شرمګاه له شهوت څخه بِنِيَّةٍ مِنْ أَهْلِهِ (په دې شرط چې دامنع کېدل د روژې) په نیت سره وي له داسې کس څخه کوم چې د روژې اهل وي (یعنې دا نیت داسې کس کړی وي کوم چې د روژې د نیت او د روژې اهلیت لري).

**لغات:** ﴿إمساك﴾ د افعال د باب مصدر دی: نیول، منع کول، منع کېدل (بندېدل)، پرېز کول. ﴿نهار﴾ ورځ، نهار پر دوه قسمه دی: ① نهارِ عُرفي: دا د لمر راختلو له وخته څخه د لمر لوېدلو تر وخته پورې دي. ② نهارِ شرعي: دا له صبح صادق څخه د لمر لوېدلو تر وخته پورې دي. دلته همدا مراد دي. (انوار الایضاح)

**تشریح:** په دې عبارت کې د روژې اصطلاحي تعریف بیان سوی دی چې د شریعت په اصطلاح کې د روژې معنیٰ ده: له صبح صادق (رون ګهیځ) څخه تر لمر لوېدو پورې د الله تعالی د رضا او قرب په اراده له خوراک، څښاک او جماع څخه منع کېدل. روژه په هر عاقل، بالغ مسلمان نر او ښځې غیرِ معذور باندې فرض ده.

فوائدِ قیود: نهارًا په دې قید سره شپه خارج سوه؛ ځکه روژه د ورځې مشروع ده، نه د شپې. إدخال په دې قید سره هغه شیان ووتل کوم چې بېله اختیاره نس ته داخلېږي، لکه د یو شي دود یا ګرز کوم چې خپله داخل سي، په هغه سره روژه نه ماتېږي، عمدًا أو خطاءً په دې قید سره د هېرې (نسیان) صورت ووتی، یعنې که یو چا ته خپل روژه بالکل یاده نه وي او په هېره یو څه وخوري یا و چیښي یا د ښځې سره کور والی وکړي او وروسته ورته یاده سي، نو په روژه باندې هیڅ اثر نه لوېږي. ما له حکم الباطن لکه دماغ، عن شهوة الفرج جماع وي او که د ښځې سره لوبي کول (حملې وهل) وي چې په هغه سره سړی انزال سي، نو روژه فاسدېږي، بنية ١ په نیت کولو سره مقصود عبادات له عاداتو څخه جلا کول دي، لکه ځیني وخت وږی پاتېدل (خوراک وغیره نه کول) محض د طبعي خواهش پر بناء وي، او همد وږی پاتېدل چې کله د عبادت په نیت سره وي، نو هغه روژه ګرځي، أهل له دې څخه مراد عاقل، بالغ مسلمان دی، نو په ي قید سره حیض او نفاس والا ښځه، کافر او مجنون ټوله ووتل. (مراقي الفلاح)

## د روژې د واجبېدلو سبب

﴿١٠٠٨﴾ وَ سَبَبُ وُجُوْبِ رَمَضَانَ شُهُوْدُ جُزْءٍ مِّنْهُ او د رمضان د واجبېدلو (فرض کېدلو) سبب د رمضان د يوه جزء (حصې) موجودېدل (راتلل) دي (نو که څوک د رمضان مياشته ومونډي ايعني د رمضان مياشته بلدې راسي ا يا د هغه يو جزء احصه او مونډي، نو د رمضان روژه باندې فرض کيږي. مثلاً که څوک د رمضان په ينځلسمه ورځ بالغ سي يا مثلاً کافر مسلمان سي، نو له ينځلسم رمضان څخه وروسته روژې باندې فرض کيږي. نه مخکينۍ روژې، ځکه چي د هغوی وخت يې نه دی مونډلی) وَكُلُّ يَوْمٍ مِّنْهُ سَبَبٌ لِوُجُوْبِ أَدَائِهٖ او د رمضان هره ورځ د هغه ورځې د (روژې) اداء کولو د واجب کېدلو سبب ده.

**لغات**: ﴿وجوب﴾ د فرض په معنیٰ سره دی او دلته په عبارت کي مضاف محذوف دی، اصل عبارت داسي دی "و سبب فرض صوم رمضان"، رمضان له رَمْضٌ څخه مشتق دی چي د هغه معنیٰ ده: سوځېدل، او وجۀ تسميه دا ده چي په دې مبارکه مياشته کي ګناهونه سوځي او ختميږي، رمضان د علميت او الف و نون زائدتان په وجه غير منصرف دی، مِنْه دواړه ځايه د ضمير مرجع رمضان دی، ادائه أی لوجوب اداء ذلك اليوم، ﴿شهود﴾ د دې لفظ له معناوو څخه يو معنیٰ ده: حاضرېدل، موجودېدل.

**تشريح**: د مسئلې تر حلّ مخکي دا وپېژنئ چي "سببِ وجوب" او "سبب وجوبِ اداء" دا دواړه اصطلاحي الفاظ دي، سببِ وجوب (د واجبېدلو سبب) يعني هغه څه کوم چي د اصل شي د واجبېدلو سبب سي يا په بله وينا دا چي د هغه په وجه يو شی واجب سي، او سببِ وجوبِ اداء (د شي د اداء کولو د واجبېدلو سبب) يعني هغه څه چي د هغه په وجه د شي اداء کول واجب سي. د مثال په توګه قرض اخيستل سببِ وجوب دی چي د هغه په وجه د مقروض (قرض اخيستونکي) پر غاړه پيسې واجب سوې، او د قرضِ د مالک مطالبه (کله چي له مقروض څخه د خپلو پيسو مطالبه وکړي) سببِ وجوبِ اداء دی چي اوس پر مقروض د قرض اداء کول واجب سوه.

اوس مسئله دا ده چي د رمضان مياشته (سپوږمۍ) يا په بله وينا د رمضان وخت د روژې د واجبېدلو سبب دی (چي هر وخت د رمضان مياشته ښکاره سي او د رمضان وخت راسي نو پر مسلمانانو روژه واجب سوه)؛ ځکه روژه د رمضان و طرف ته مضاف کيږي (او داسي ويل کيږي صومُ رمضان ادروژې د مياشتي روژه)، او اضافت د سببيّت دليل دی، او د رمضان هره ورځ د هغه ورځي د روژې اداء کولو (نيولو) د واجبېدلو سبب ده (چي په رمضان کي هره ورځ شروع سي نو د هغه ورځي روژه اداء کول اروژه نيول ا واجبيږي)؛ ځکه د هري ورځي روژه مستقل عبادت دی، همدا وجه ده چي د يوې روژې په فاسدېدلو سره نوري

روژې نه فاسديږي، لهذا کله چې هره روژه مستقل عبادت ده، نو د هرې روژې سبب اداء به هم مستقل وي.

خلاصه دا چې وجوب پر دوه قسمه دی: ① نفس وجوب، ② وجوب اداء، نو د روژې مياشته سبب ده د نفس وجوب الصوم، او هره ورځ سبب ده د هغې ورځې د وجوب اداء الصوم.

## روژه پر چا فرض ده؟

﴿۱۰۰۹﴾ وَهُوَ فَرْضٌ أَدَاءً وَقَضَاءً عَلٰى مَنْ او (د رمضان) روژه فرض ده د اداء او قضاء (دواړو) په اعتبار سره (يعني که اداء نه کړل سي، نو قضاء يې هم فرض ده) پر هغه چا اِجْتَمَعَ فِيْهِ أَرْبَعَةُ أَشْيَاءَ چې په هغه کې څلور شيان جمع وي اَلْإِسْلَامُ وَالْعَقْلُ وَالْبُلُوْغُ ① اسلام ② او عقل ③ او بلوغ وَالْعِلْمُ بِالْوُجُوْبِ لِمَنْ أَسْلَمَ بِدَارِ الْحَرْبِ ④ او خبرېدل (د روژې) په وجوب د هغه کس لپاره کوم چې په دارُ الحرب کې مسلمان سوی وي (يعني کوم چا چې په دار الحرب کې اسلام راوړی وي. هغه ته به د روژې د فرضيت علم او خبر وي، دا شرط دی، او که نه وي، نو روژه نه پاندې فرض کيږي) أَوِ الْكَوْنُ بِدَارِ الْإِسْلَامِ يا په دارُ الاسلام کې کېدل (يعني څوک چې په دارُ الاسلام کې استوګن وي، نو برابره د روژې د فرضيت علم هغه ته وي او که نه وي، په هر صورت کې روژه پاندې فرض ده، او که يې اداء نه کړي، نو قضاء يې پاندې فرض ده؛ ځکه په دار الاسلام کې هر چيري ديني تعليم شائع وي او هر کس ته معلومه وي، نو ځکه هلته په فرضيت نه خبرېدل عذر نه دی).

**لغات:** ﴿دار الحرب﴾ هغه مملکت او هغه علاقه چې واک پکښې د کافرانو وي، او مسلمانان له ديني کارونو څخه پکښې منع کول کيږي، ﴿دار الاسلام﴾ هغه مملکت چې واک او حکومت پکښې د مسلمانانو وي او د نظام حکومت په چلولو کې ټوله طاقت د مسلمانانو په لاسو کې وي.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چې په کوم چا کې څلور شيان موجود سي، پر هغه د رمضانُ المبارک روژه نيول فرض دي: ① مسلمان کېدل، ② عاقل کېدل، ③ بالغ کېدل، ④ که څوک په دارُ الحرب کې مسلمان سوی وی او هلته د روژې (رمضان) په فرضيت خبر وي، نو روژه پاندې نيول لازم دي، او که د روژې له فرضيت څخه ناخبره وي، نو روژه نه پاندې فرض کيږي، او له خبرېدلو څخه وروسته د تېرو روژو قضاء هم نه پاندې لازميږي، او که څوک په دارُ الاسلام کې وي، نو بيا د روژو په فرضيت نه خبرېدل عذر نه شمېرل کيږي.

## د روژې نيولو د وجوب شرائط

﴿۱۰۱۰﴾ وَيُشْتَرَطُ لِوُجُوْبِ أَدَائِهٖ او شرط دي د روژې اداء کولو (نيولو) د واجبېدو لپاره اَلصِّحَّةُ مِنْ مَرَضٍ وَحَيْضٍ وَنِفَاسٍ صحيح (سالم) کېدل له مرض او حيض او نفاس څخه وَالْإِقَامَةُ او مقيم کېدل.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې د روژې نيول پر مکلف انسان هغه وخت واجبېږي کله چې درې شرطونه موجود سي: ① روغوالی، لهذا که څوک مريض وي او د مرض په وجه د روژې نيولو طاقت نه لري يا د روژې نيولو په وجه د مرض زياتېدلو خطره وي، نو روژه نه نيول جائز دي. ② له حيض او نفاس څخه پاکوالی، لهذا د حيض او نفاس والا ښځې لپاره روژه نيول جائز نه دي، لېکن وروسته يې قضاء لازم ده. ③ مقيم کېدل، لهذا که څوک شرعاً مسافر وي، نو د هغه لپاره روژه نه نيول جائز دي. (انوار الايضاح)

## د روژې نيولو د صحت شرائط

﴿۱۰۱۱﴾ وَيُشْتَرَطُ لِصِحَّةِ أَدَائِهٖ ثَلَاثَةٌ او شرط دي د روژې د اداء (نيولو) د صحيح کېدلو لپاره درې شيان اَلنِّيَّةُ ① نيت کول وَالْخُلُوُّ عَمَّا يُنَافِيْهِ مِنْ حَيْضٍ وَنِفَاسٍ ② او خالي کېدل (پاکېدل) له هغه شيانو څخه کوم چې د روژې منافي وي يعني حيض او نفاس وَعَمَّا يُفْسِدُهٗ ③ او (خالي کېدل) له هغه شيانو څخه کوم چې روژه فاسدوي (ماتوي).

**تشريح**: د عبارات حاصل دا دی چې روژه نيول هغه وخت صحيح کيږي کله چې درې شيان موجود سي: ① نيت. ② له داسي شيانو څخه خالي کېدل کوم چې د روژې منافي وي يعني حيض او نفاس (او دا د روژې نيولو د وجوب لپاره هم شرط دي). ③ او له داسي شيانو څخه خالي کېدل کوم چې روژه فاسدوي.

## جنابت د روژې منافي نه دی

﴿۱۰۱۲﴾ وَلَا يُشْتَرَطُ الْخُلُوُّ عَنِ الْجَنَابَةِ او له جنابت څخه خالي کېدل (پاکېدل) شرط نه دي.

**لغات**: ﴿خُلُوّ﴾ د نصر د باب مصدر دی. خَلَا يَخْلُوْ خُلُوًّا وَخَلَاءً: خالي کېدل.

**تشريح**: فرمايي چې له جنابت څخه پاکېدل د روژې لپاره شرط نه دي، لهذا که څوک د خوب په حالت کي جُنُب سي، نو په دې سره روژه نه فاسديږي، همدارنګه د جنابت په حالت کي په پېشمني

كولو (پېشلمي خوړلو) سره او بيا تر صبح صادق وروسته په غسل كولو سره روژه نه فاسديږي: ځكه جنابت د روژې منافي نه دی. (مراقي الفلاح)

## د روژې رکن

﴿۱۰۱۲﴾ وَرُكْنُهُ الْكَفُّ عَنْ قَضَاءِ شَهْوَتَيِ الْبَطْنِ وَالْفَرْجِ او د روژې رکن منع كېدل (ځان ساتل) دي د نس او فرج د شهوتونو له پوره كولو څخه وَمَا أُلْحِقَ بِهِمَا او (ځان ساتل) د هغه څه له شهوتونو څخه كوم چې د دې دواړو (نس او فرج) سره لاحق كړل سوي دي.

**لغات:** ﴿كف﴾ د نصر د باب مصدر دی: منع كېدل، را گرځېدل. ﴿أُلْحِقَ﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده: لاحق كول، متصل او يو ځای كول، په مجردو كي د سمع له بابه راځي: لاحق كېدل ورسره يو ځای كېدل.

**تشريح:** په دې عبارت كي د روژې د ركن بيان دی، حاصل يې دا دی چې د روژې ركن خپل ځان له خوراک، څښاک او جماع كولو څخه نيول (منع كول) دي.

وما الحق بهما: يعني خپل ځان له هغه شهوتونو څخه هم منع كول كوم چې د نس او شرمگاه سره لاحق شمېرل كيږي، د نس سره لاحق لكه دماغ ته دواء وغيره رسول، د شرمگاه سره لاحق لكه د ښځي سره لوبي او حملې وهل چې په هغه سره سري انزال سي. (شفاء الارواح)

## د روژې حكم

﴿۱۰۱۳﴾ وَحُكْمُهُ سُقُوطُ الْوَاجِبِ عَنِ الذِّمَّةِ وَالثَّوَابُ فِي الْآخِرَةِ او د روژې حكم ساقطېدل د واجب دي له ذمې (غاړي) څخه او ثواب دی په آخرت كي وَاللهُ أَعْلَمُ او الله زيات خبر (ستر علم والا) دی.

**لغات:** ﴿حكم﴾ الأثر المرتّب على الشيء: يعني هغه اثر كو چې پر يو شي مرتب كيږي. همدارنگه حُكم قضاء او فيصلې ته هم وايي.

**تشريح:** د روژې حكم يعني اثر دا دی چې په روژه نيولو سره د مُكلف له غاړي څخه فرض ساقطيږي او هغه له خپل ذمه واری څخه خلاصيږي او په آخرت كي ور ته ثواب حاصليږي. او كه روژه فرض نه وي، نو د هغه حكم فقط په آخرت كي ثواب حاصلېدل دي. (انوار الايضاح)



# فَصْلٌ (فِیْ صِفَةِ الصَّوْمِ وَتَقْسِیْمِهٖ)

(دا) فصل (د روژې د کیفیت او تقسیم په بیان کې) دی

## د روژې قسمونه

﴿۱۰۱۵﴾ یَنْقَسِمُ الصَّوْمُ إِلٰی سِتَّةِ أَقْسَامٍ روژه تقسیمیږي و شپږو قسمونو ته فَرْضٌ وَوَاجِبٌ وَمَسْنُوْنٌ وَمَنْدُوْبٌ وَنَفْلٌ وَمَکْرُوْهٌ ① فرض ② او واجب ③ او سنت ④ او مستحب ⑤ او نفل ⑥ او مکروه.

**اللغات**: له فَرْضٌ څخه تر مَکْرُوْهٌ پورې دا ټوله الفاظ له سِتَّةِ أَقْسَامٍ څخه د بدل کېدلو په وجه مجرور ویل کېدلای سي او د مبتداء محذوف د خبر کېدلو په وجه مرفوع هم ویل کېدلای سي یعنې أَحَدُهَا فَرْضٌ وَثَانِیْهَا وَاجِبٌ وَثَالِثُهَا مَسْنُوْنٌ...إلخ.

**تشریح**: فرمایي چې روژه پر شپږ قسمه ده: ① فرضي روژه، ② واجب روژه، ③ سنت روژه، ④ مستحب روژه، ⑤ نفلي روژه، ⑥ مکروه روژه.



**یادونه**: د فرض، واجب او داسې نورو شرعي احکامو تعریفونه په شروع (مقدمه) کې په لومړي ټوک کې بیان سوي، د معلومات لپاره هلته رجوع وکړئ!.

## د فرض روژې قسمونه

﴿۱۰۱۶﴾ أَمَّا الْفَرْضُ فَهُوَ صَوْمُ رَمَضَانَ أَدَاءً وَقَضَاءً کوم چې فرض (روژه) ده نو هغه د رمضان روژه ده، اداء وي او که قضاء وي (اداء او قضاء یې دواړه فرض ده) وَصَوْمُ الْکَفَّارَاتِ او د کفاراتو روژه ده وَالْمَنْذُوْرِ فِي الْأَظْهَرِ او نذر کړل سوې روژه ده د ظاهر روایت مطابق.

**لغات**: ﴿منذور﴾ د نصر او ضرب له بابه د مفعول صیغه ده: نَذَرَ یَنْذُرُ نَذْرًا وَنُذُوْرًا: یو شی پر خپل ځان لازمول، نذر منل، منت منل (دا چې که فلانکی کار وغیره وسو، نو مثلاً دومره مال به فقیرانو ته ورکوم).

**تشریح**: فرض روژې پر دوه قسمه دي: (۱) فرض معيّن، (۲) فرض غیر معيّن. فرض معيّن هغه روژې دي کوم چي په معيّن (ټاکلي) او معلوم وخت کي فرض وي، هغه په هر کال کي يوه مياشته د رمضان المبارک اداء روژې دي، او فرض غیر معيّن هغه روژې دي کوم چي په معيّن وخت کي فرض نه وي یا په بله وینا دا چي په یو خاص وخت کي د هغوی نیول معيّن (ټاکلي) نه وي او هغه یو د رمضان المبارک د قضاء روژې دي، برابره ده هغه دیو عذر په وجه قضاء سوي وي او که بېله عذره. همدارنګه د کفارا تو روژې دي یعني د کفارهٔ یمین، کفارهٔ ظهار، کفارهٔ قتل خطار روژې هم فرض دي، د کفارهٔ ظهار او قتلِ خطاء دوې میاشتي پرلپسې روژې دي او د کفارهٔ یمین درې روژې دي، لېکن دلته له فرض څخه مراد فرض عملي دی، اعتقادي نه دي، په همدې وجه د دوی منکر ته کافر نه سي ویل کېدلای، همدارنګه د نذر روژې هم د ظاهر روایت مطابق فرض (فرض عملي) دي او بعضو ورته واجب ویلي دي.

## واجب روژه

﴿۱۰۱۷﴾ وَ أَمَّا الْوَاجِبُ فَهُوَ قَضَاءُ مَا أَفْسَدَهُ مِنْ صَوْمِ نَفْلٍ او کوم چي واجب (روژه) ده نو دا د هغه نفلي روژې قضاء ده کوم چي یې فاسده کړې وي.

**شریح**: نفلي روژې تر شروع کولو (نیولو) وروسته لازم او واجب ګرځي، لهذا که له پوره کولو څخه مخکي یې فاسده (ماته) کړي، نو قضاء یې واجب ده، او همدا حکم د نفلي لمانځه هم دی.

## سنت روژه

﴿۱۰۱۸﴾ وَ أَمَّا الْمَسْنُوْنُ فَهُوَ صَوْمُ يَوْمِ عَاشُوْرَاءَ مَعَ التَّاسِعِ او کوم چي سنت (روژه) ده نو هغه د عاشورا د ورځي روژه ده د نهمي سره (یعني د محرم احسن حسین ادمیاشتي دلسم او نهم تاریخ روژه).

**لغات**: ﴿عاشوراء﴾ د محرّم الحرام د میاشتي لسمه ورځ، بالمد و بالقصر دواړه ډوله ویل کېدلای سي، څرنګه چي الف ممدوده او الف مقصوره د دوو سببونو قائم مقادی، نو ځکه دا لفظ به غیرِ منصرف ویل کیږي، او تاسع نهمه د محرّم الحرام ده.

**تشریح**: له سنت روژې څخه مراد هغه روژه ده چي د هغه په هکله نبي کریم ﷺ ترغیب ورکړی وي، یا نبي کریم ﷺ نیولې وي، که د هغه په باره کي ډېر روایات وارد سوي وي او پر هغه د نبي کریم ﷺ اکثره عل ثابت وي، نو هغه سنت روژه ده او پر کوم چي د نبي کریم ﷺ اکثره عمل نه وي. یا نبي ﷺ د یو روژې په هکله رغبت ورکړی وي، لېکن خپله یې نیولې نه وي، یا له نبي کریم ﷺ څخه د یو روژې په هکله رغبت ورکول خو ثابت نه وي، خو د هغې کراهت هم له نبي کریم ﷺ څخه ثابت نه وي، نو دا ټوله مستحب دي. د عاشوراء یعني د محرم دلسم تاریخ روژه سنت ده. لېکن د هغې سره

دي يوه ورځ مخکي يعني دنهم تاريخ يا يوه ورځ وروسته يعني ديوولسم تاريخ روژه هم ونيول سي، ددې لپاره چي داهلِ کتابو سره مشابهت رانه سي او مخالفت ثابت سي: ځکه چي يهودو به هم ددې ورځي تعظيم وي او روژه نيوله، نو ځکه دبعضي حضراتو په نېز يوازې دعاشوراء دورځي روژه نيول مکروه تنزيهي دي، لېکن دعامو فقهاوؤ په نېز په دې کي کراهت نسته. (شفاء الارواح)

## مستحب روژې (د أيام البيض روژې)

﴿۱۰۱۹﴾ وَأَمَّا الْمَنْدُوْبُ فَهُوَصَوْمُ ثَلَاثَةٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ او کوم چي مستحب (روژه) ده نو هغه له هري مياشتي څخه ددريو ورځو روژه ده وَيَنْدُبُ كَوْنُهَا الْأَيَّامَ الْبِيْضَ او مستحب دي هغه دري ورځي ايام بيض کېدل (يعني چي دا دري ورځي روژه په ايام بيض کي ونيول سي) وَهِيَ الثَّالِثَ عَشَرَ وَالرَّابِعَ عَشَرَ وَالْخَامِسَ عَشَرَ او هغه (ايام بيض دمياشتي) ديارلسمه او څوارلسمه او پنځلسمه ده.

**لغات:** ﴿مندوب﴾ دشريعت په اصطلاح کي مستحب ته وايي، ﴿الأَيَّام الْبِيْض﴾ بِيْض جمع د أَبْيَض ده: يعني سپيني او روښانه ورځي، څرنګه چي دمياشتي په ديارلسمه، څوارلسمه، پنځلسمه شپه باندي دسپوږمۍ د پوره والي په وجه زياته رڼا وي او دا دري سره شپې روښانه وي، نو ځکه ورته أيام البيض وايي.

**تشريح:** هره مياشته دري روژې نيول مستحب دي او دا دصومُ الدهر (همېشه روژه نيولو) يو صورت دی: ځکه د "الحسنة بعشرة أمثالها" مطابق دري روژې دېرش (۳۰) روژې سوې يعني ديوې ورځي روژه دلسو ورځو روژو سره برابره سوه. نو هره مياشته دري روژې نيونکی ګواکی صائمُ الدهر سو. او دا خبره ياد ساتئ! چي دا دري روژې په ټوله مياشته کي مستحب دي يعني په ټوله مياشته کي چي يې هر وخت خوښه وي، دري روژې دي ونيسي، برابره ده په شروع کي وي، په مينځ کي وي او که په آخر کي وي. لېکن دغه دري روژې په ايامُ البيض يعني په ديارلسم، څوارلسم او پنځلسم تاريخ کي نيول جلا مستحب عمل دی. لهذا که دمياشتي په هسي دريو ورځو کي دري روژې ونيسي، نو يو مستحب به ادا، سي او که خاص په ايامُ البيض کي يې ونيسي، نو دوه مستحبه به اداء سي.

## د دوشنبې او پنجشنبې د ورځي روژه

﴿۱۰۲۰﴾ وَ صَوْمُ يَوْمِ الْإِثْنَيْنِ وَالْخَمِيْسِ او د دوشنبې او پنجشنبې د ورځي روژه (هم مستحب) ده.

**تشریح**: له مستحبو روژو څخه د دوشنبې او پنجشنبې د ورځي روژه هم ده، خاص په دې ورځو کي د روژې نیولو حکمت په حدیث کي دا ذکر سوی دی چي نبي کریم ﷺ وفرمایل: د بندګانو اعمال د دوشنبې او پنجشنبې په ورځ (د باري تعالی په دربار کي) پېشول کیږي، نو زه خوښوم چي زما اعمال په داسي حال کي پېش کړل سي چي زما روژه وي. (ترمذی، مراقی الفلاح ص)

## د شوال (کوچني اختر د میاشتي) د شپږو روژو بیان

﴿۱۰۲۱﴾ وَ صَوْمُ سِتٍّ مِنْ شَوَّالٍ او د شوال شپږ روژې (هم مستحب) دي ثُمَّ قِيْلَ: الْأَفْضَلُ وَصْلُهَا بیا ویل سوي دي: چي افضل د دې روژو متصل نیول دي (یعني افضل دا ده چي د شوال دا شپږ روژې متصل اپرلپسې اونیول سي) وَقِيْلَ: تَفْرِيْقُهَا او ویل سوي دي (یعني بل قول دا دی): چي (افضل) د دې روژو جلا، جلا نیول دي.

**لغات**: ﴿وَصْل﴾ د ضرب د باب مصدر دی: وَصَلَ يَصِلُ وَصْلًا، د دې باب له معناو څخه یوه معنیٰ ده: وصل کول، سره یوځای کول (متصل کول)، ﴿تفریق﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: سره جلا کول، د وصلها، تفریقها دواړه ضمیرونه سِتٌّ ته اجع دي.

**تشریح**: له رمضان څخه وروسته د شوال د میاشتي شپږ روژې مستحب دي او دا د صومُ الدهر (همېشه روژه نیولو) تر ټولو ادنیٰ شکل دی، او دا صومُ الدهر په دې توګه دی چي د شوال شپږ روژې د رمضان د روژو سره ټوله شپږ دېرش (۳۶) روژې کیږي، د رمضان روژې که څه هم ځیني وخت نهه ویشت وي، خو حکماً دېرش شمېرل کیږي؛ ځکه په حدیث کي راغلي دي "شهرا عید لا ینقصان" (ترمذی)، یعني که رمضان نهه ویشت (۲۹) ورځي سي، نو هم ثواب د پوره دېرشو (۳۰) ورځو حاصلیږي. لنډه دا چي شپږ روژې د رمضان د روژو سره (۳۶) روژې کیږي . بیا د "الحسنة بعشرة أمثالها" (یعني یوه نېکي د لسو نېکیو سره برابره ده) په قاعده سره چي (۲۶) په لس کي ضرب کړل سي، نو درې سوه شپېته (۳۶۰) روژې کیږي، نو په دې توګه هر هغه م[illegible] صائمُ الدهر وګرځېدی کوم چي د رمضان له روژو څخه وروسته شپږ د شوال روژې ونیسي. په حدیث کي هم د

دې روژو دغه فضیلت مذکور دی، لکه څرنګه چې د ترمذي شریف په روایت کې دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل چې کوم څوک د رمضان روژې ونیسي او تر هغه وروسته د شوال شپږ روژې ونیسي، نو ګواکي هغه ټوله زمانه روژه ونیوله.

ثم قیل إلخ: اوس په دې کې اختلاف دی چې دغه شپږ روژې پرلپسې نیول افضل دي او که په متفرقه توګه (جلا. جلا) نیول افضل دي، نو امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله تفریق راجح ګڼلی دی، او بعضي احنافو پرلپسې نیول افضل ګڼلي دي (درس ترمذی)، خو ښه دا ده چې تر اختر وروسته سمدستي شروع کړل سي او پرلپسې ونیول سي. (تحفة الالمعي، مراقي الفلاح)

## د مستحبي روژې په هکله یو أصول (او صوم داؤدي)

﴿١٠٢٢﴾ وَكُلُّ صَوْمٍ ثَبَتَ طَلَبُهُ وَالْوَعْدُ عَلَيْهِ بِالسُّنَّةِ او (همدارنګه مستحب ده) هر هغه روژه چې (په شریعت کې) د هغې طلب او پر هغې (د ثواب) وعده په سنت (حدیث) سره ثابت سوي وي (یعني د کومې روژې چې شریعت طلب کړی وي او په حدیث سره د هغې د نیولو ثواب ثابت وي، نو هغه مندوب (مستحب) روژه ده)

كَصَوْمِ دَاوُدَ عليه السلام كَانَ يَصُوْمُ يَوْمًا وَيُفْطِرُ يَوْمًا لکه د داؤد عليه السلام روژه چې هغه به یوه ورځ روژه نیوله او یوه ورځ به یې خوړله (نه نیوله) وَهُوَ أَفْضَلُ الصِّيَامِ وَأَحَبُّهُ إِلَى اللهِ تَعَالَىٰ او دا په ټولو (نفلي) روژو کې افضله او الله تعالیٰ ته زیاته خوښه روژه ده.

**تشریح:** دلته د مستحبي روژې په باره کې یوه أصولي خبره بیانوي فرمایي چې هره هغه روژه چې د هغه په باره کې یو حدیث مروي وي او پر هغه د ثواب وعده ورکول سوې وي، نو هغه مستحبه روژه ده. لکه د داؤد عليه السلام روژه یعني یوه ورځ روژه نیول او یوه ورځ نه نیول، د دې فضیلت هم د ترمذي په روایت کې راغلی دی چې د هغه وطرف ته مصنف رَحِمَهُ الله اشاره کړې ده چې صوم داؤد عليه السلام د الله تعالی په نېز تر ټولو خوښه او افضله ده. (شفاء الارواح)

﴿١٠٢٣﴾ وَأَمَّا النَّفْلُ فَهُوَ مَا سِوَىٰ ذٰلِكَ مِمَّا لَمْ يَثْبُتْ كَرَاهِيَّتُهُ او کوم چې نفلي (روژه) ده نو هغه له دغو (پورتنی مذکوره) روژو څخه ما سوا هغه روژې دي چې د هغوی مکروه والی ثابت سوی نه وي.

**تشریح:** یعني هره هغه روژه چې د هغې په باره کې له نبي کریم ﷺ څخه هیڅ کراهت ثابت نه وي، نو هغه نفل (نفني) روژه ده. او په عمدة الفقه کې دي چې ټوله نفلي روژې چې د هغوی په باره کې هیڅ کراهت ثابت نه وي، هغه مستحب دي؛ ځکه چې نبي کریم ﷺ د مطلق روژې رغبت ورکړی دی، لهذا د هغه پر نیولو به روژتي ته ثواب حاصلیږي. (شفاء الارواح)

## د مکروهِ تنزيهي او مکروهِ تحريمي روژو بيان

﴿۱۰۲۴﴾ وَأَمَّا الْمَكْرُوْهُ فَهُوَ قِسْمَانِ او کوم چي مکروه (روژه) ده نو هغه دوه قسمه ده مَكْرُوْهٌ تَنْزِيْهًا وَ مَكْرُوْهٌ تَحْرِيْمًا ① مکروه تحريمي ② مکروه تنزيهي اَلْأَوَّلُ كَصَوْمِ عَاشُوْرَاءَ مُنْفَرِدًا عَنِ التَّاسِعِ اول (يعني مکروه تنزيهي) لکه يوازي د عاشوراء روژه له نهمي څخه بغير وَالثَّانِيْ صَوْمُ الْعِيْدَيْنِ وَ أَيَّامُ التَّشْرِيْقِ ۱۱ دويم (يعني مکروه تحريمي لکه) د کوچني اختر او لوی اختر او د ايام التشريق روژه.

**تشريح**: په دې عبارت کي د مکروه تنزيهي او مکروه تحريمي روژو بيان کوي. حاصل يې دا دی چي يوازي د لسم محرّم (عاشوراء) روژه نيول او بله روژه نه ورسره نيول مکروه تنزيهي دي (د بعضي حضراتو په نيز)؛ ځکه په دې کي د يهودو سره مشابهت راځي، تفصيل يې دا دی چي يهود هم د لسم محرّم روژه نيسي؛ ځکه په دې ورځ الله تعالیٰ بني اسرائيل د فرعون له ظلم څخه خلاص کړي وه. نو موسیٰ عليه السلام د شکر اداء کولو لپاره د لسم محرم روژه ونيوله او د هغه په اتّباع کي ټوله قوم د دې ورځي روژه نيسي. بيا نبي کريم ﷺ وفرمايل چي د موسیٰ عليه السلام د سنت پلي کولو موږ زيات حقدار يو او وې فرمايل چي که را روان کال ژوندی پاته سوم نو د لسم محرم سره به د نهم محر روژه هم ونيسم، د دې لپاره چي د يهودو له روژې څخه توپير راسي، نو په دې وجه يوازي د لسم محرّم روژه نيول د يهودو مشابهت په وجه به مکروه تنزيهي وي.

او مکروهِ تحريمي د دې پنځو ورځو روژه ده: ① د کوچني اختر (عيد الفطر) ورځ. ② د لوی اختر (عيد الاضحیٰ) ورځ، يعني د ذو الحجې لسمه. ③، ④، ⑤ د لوی اختر (عيد الاضحیٰ) وروسته درې ورځي يعني د ذو الحجې يوولسمه، دوولسمه او ديارلسمه (کوم ته چي ايامُ التشريق ويل کيږي)، په دې پنځو ورځو کي روژه نيول مکروه تحريمي دي، او مکروه تحريمي حرام ته نژدې وي.

**فايده**: لکه څرنګه چي په پنځو وختونو کي لمونځ کول ممنوع دي چي له هغوی څخه په درېو وختونو کي ممانعت سخت دی چي په هغه وخت کي قضائي لمونځ کول هم جائز نه دي او په پاته دوو وختونو يعني د مازيګر او سهار تر لمانځه وروسته د لمونځ کولو ممانعت سپک دی چي په دې وخت کي قضائي لمونځ کولای سي. نو همداسي د کوچني اختر او لوی اختر په ورځ د روژې نيولو ممانعت سخت دی او په دې دوو ورځو کي هيڅوک د روژې د جواز قائل نه دي او په ايامُ التشريق کي

چې کوم ممانعت دی، هغه سپک دی، لکه د بعضي حضراتو په نېز چې په ایامُ التشریق کې د متمتع او قارن لپاره روژه نیول جائز دي. (انوار الایضاح)

## یوازي د جمعې یا شنبې په ورځ او د نوروز او مهرجان په ورځ روژه نیول

﴿۱۰۲۵﴾ وَكُرِهَ إِفْرَادُ يَوْمِ الْجُمُعَةِ وَإِفْرَادُ يَوْمِ السَّبْتِ او مکروه دي یوازي د جمعې د ورځې او یوازي د شنبې د ورځې روژه نیول وَيَوْمِ النَّيْرُوْزِ أَوِ الْمِهْرَجَانِ او د نوروز او مهرجان د ورځې روژه نیول إِلَّا أَنْ يُّوَافِقَ عَادَتَهٗ مګر دا چې (دې ورځو روژه) د ده د عادت (د ورځې سره) موافق سي.

**لغات:** ﴿السبت﴾ د شنبې ورځ (کوم ته چې د هفتې ورځ هم وايي)، ﴿نیروز﴾ نو روز، د لمریز کال لومړۍ ورځ (د پسرلي د موسم آخري ورځ)، د مجوسیانو د خوشالۍ غټه ورځ (ملي ورځ)، نَيْرُوْز په اصل کې نَوْرُوْز وو، کله چې دا کلام د عربو پر اوزانو نه راتللی، نو په ده کي یې دا تعلیل وکړی چې واو یې په یاء سره بدل کړی نو نَيْرُوْز سو (انوار الایضاح)، ﴿مهرجان﴾ دا په اصل کې مهرګان دی (او په عربي کې ګاف په جیم سره بدلیږي): د مَني د موسم اوله (د مېلې) ورځ (او صاحب د انوار الایضاح لیکلي دي چې د مَني موسم آخره ورځ)، د یو خاص واقعې یا یو خاص خوشحالي جوړولو پروګرام.

**تشریح:** په دې عبارت کې څو مسئلې بیان سوي دي:

①... د جمعې په ورځ روژه نیول بالاتفاق مستحب دي، خو که د دې ورځې په تخصیص سره فضیلت وهم پیدا کیږي چې انسان به له جمعې څخه بغیر بله ورځ روژه نیول د ثواب مستحق نه ګڼي، نو بیا یوازي د جمعې په ورځ روژه نیول مکروه دي، لکه څرنګه چې په لمانځه کي منقول سورتونه ویل جائز دي، خو پر ځان د لازمولو (التزام) په صورت کي په دې توګه چې نور سورتونه پکښې ویل جائز نه ګڼي مکروه دي (څرنګه چې د اسلام په شروع کي دا خطره وه چې هسې نه د جمعې ورځ عبادت لپاره دا سې خاصه کړل سي لکه څرنګه چې یهودو د هفتې ورځ "یوم السبت" د عبادت لپاره خاصه کړې وه، په دې وجه له دې څخه منع وسوه، لیکن کله چې وروسته اسلامي عقائد او احکام راسخ سوه، نو دا حکم ختم کړی او د جمعې په ورځ هم د روژه نیولو اجازه ورکړل سوه (درس ترمذی))،

**وافراد یوم السبت:** ②... یوازي د شنبې (هفتې) په ورځ روژه نیول د یهودو سره د مشابهت په وجه مکروه دي، او د نوروز او مهرجان روژه د مجوسیانو سره د مشابهت په وجه مکروه دي (دا دواړه ورځې د ایرانیانو د خوشحالۍ ورځې دي، په دې کي به دوی تعظیماً روژه نیوله، ځکه چې په هملوی کي به موسم بدلېدی)، نو که دا روژې د دې ورځو د تعظیم او د دوی سره د مشابهت په اراده ونیول سي، نو مکروه تحریمي دي او که دا نیت او اراده نه وي، نو مکروه تنزیهي دی (او صاحب د "انوار الایضاح" لیکلي دي چې یوازي د شنبې په ورځ نیول

خو فی نفسه جائز ده او نبي ﷺ په دې ورځ روژه نیولې ده، خو ځرنګه چي یهود هم د شنبې په ورځ روژه نیسي، نو ځکه چیري چي یهود وي، هلته د شنبې په ورځ روژه نه نیول پکار دي؛ ځکه په دې کي د دوی سره مشابهت لازمیږي).

## صومِ وصال

﴿۱۰۲۶﴾ وَ كُرِهَ صَوْمُ الْوِصَالِ وَلَوْيَوْمَيْنِ او مکروه ده صوم وصال (متصل روژه نیول) که څه هم دوې ورځي وي وَهُوَأَنْ لَّا يُفْطِرَ بَعْدَ الْغُرُوْبِ أَصْلًا حَتّٰى يَتَّصِلَ صَوْمُ الْغَدِ بِالْأَمْسِ او هغه دا چي تر لمر لوېدلو وروسته روژه ماته نه کړي تر دې چي متصله سي د سبا (راروانې ورځي) روژه د پرون (تېرې ورځي) د روژې سره.

**تشریح:** صوم وصال (په روژه کي اتصال کول) یعني دوې ورځي یا تر دې زیات وخت شپه او ورځ متصل روژه نیول په دې توګه چي سهار روژه ونیسي او ماښام روژه ماته نه کړي او هیڅ نه وخوري او نه پېشلمي وکړي او راروانه ورځ بیا روژه کړي، دې ته صوم وصال وايي. صوم وصال د اُمت لپاره مکروه ده، دا فقط د نبي کریم ﷺ له خصوصیاتو څخه وه؛ او له نبي کریم ﷺ څخه د صوم وصال ممانعت وارد سوی دی، نو ځکه بعضو ورته مکروه تحریمي ویلي دي او بعضو ورته مکروه تنزیهي ویلي دي (صاحب د انوارُ الایضاح لیکلي دي چي صوم وصال عموماً د اُمت لپاره مکروه ده، او نبي کریم ﷺ شفقتاً اُمت له صوم وصال څخه منع کړی دی، لهذا که څوک د دې طاقت لري، نو د هغه لپاره صوم وصال جائز ده، خو د عامو خلکو لپاره مشکل ده، نو ځکه هغو ته صوم وصال نه نیول پکار دي).

## صومِ دهر

﴿۱۰۲۷﴾ وَ كُرِهَ صَوْمُ الدَّهْرِ او مکروه دي ټوله زمانه (همېشه) روژه نیول.

**تشریح:** د صومُ الدهر درې صورتونه دي: ① ټوله کال متصل روژې نیول تر دې چي په هغه ممنوعه ورځو (یعني د کوچني اختر او لوی اختر په ورځو او په ایام التشریق) کي هم روژې نیول چي په هغوی کي روژه نیول حرام دي، دا صورت بالاتفاق ناجائز او مکروه تحریمي دی، ② دویم صورت دا چي له ایامِ ممنوعه څخه بغیر نور ټوله کال روژې نیول، دا صورت که څه هم جائز دی، لېکن خلاف اولیٰ دی او شریعت له خوښ نه دی (ځکه چي دا ده چي څوک همېشه روژه نیسي، هغه تر صبح صادق مخکي او تر ماښام وروسته اَدوه وخت، په خوراک کولو عادت سي او د دې دوو وختونو په مېنځ کي خوراک، چښاک ته د هغه شوق او خواهش نه کېږي او دا یې عادت جوړ سي، نو د روژې نیولو چي کوم مشقت او تکیف وو، هغه ده ته نه حاصلیږي، نو روژه به بې فایدې وي امراقی الفلاح ص: ۱۳۵۱)، ③ او درېیم صورت صوم داؤد ﷺ دی یعني یوه نه بله ورځ روژه نیول، دا بالاتفاق افضل او مستحب دي. (درس ترمذي بتصرفٍ)



## فَصْلٌ فِيْمَا يُشْتَرَطُ تَبْيِيْتُ النِّيَّةِ وَتَعْيِيْنُهَا فِيْهِ وَمَا لَا يُشْتَرَطُ

(دا) فصل په (بيان د) هغه روژو کي دی چي په هغوی کي له شپې څخه نيت کول او د هغوی متعيّن کول شرط دي او هغه روژې چي په هغوی کي دا (نيت او تعيين) شرط نه دي

**تشريح**: روژه پر څو قسمه ده: بعضي روژې داسي دي چي په هغوی کي له شپې څخه يعني له صبح صادق څخه مخکي نيت کول او د روژې متعيّن کول شرط دي. يعني په خپل زړه کي به دا پېژني او متعينوي چي کومه روژه نيسي، او بعضي روژې داسي دي چي په هغوی کي له شپې څخه نيت کول او د روژې متعيّن کول شرط نه دي بلکي دومره اراده کافي ده چي زه روژه نيسم. نو په دې فصل کي دا دواړه بيانوي.

دلته دا خبره ياده ساتئ! چي د فقط روژې نيولو نيت کول د هري روژې لپاره شرط دي، لهذا که يو کس له نيت څخه بغير له صبح صادق څخه تر لمر لوېدو پوري له خوراک، څښاک او جماع څخه منع سي، نو هغه روژتي نه شمېرل کيږي او د روژې نيت دا دی چي په زړه کي پخه اراده وکړي چي هغه نن ورځ روژه نيسي، په ژبه سره ويل ضروري نه دي لېکن مستحسن دي، په عربي کي د رمضان د روژې نيت داسي منقول دی "وَبِصَوْمِ غَدٍ نَّوَيْتُ مِنْ شَهْرِ رَمَضَانَ" چي د هغه ترجمه ده "ما د روژې (رمضان) د مياشتي د سبا د روژې نيت وکړی"، په رمضان کي د هري روژې لپاره نوی نيت کول ضروري دي، او پېشلمی کول هم نيت دی لهذا که څوک نه په زړه کي نيت وکړي او نه په ژبه سره، صرف د روژې لپاره پېشلمی وکړي، نو د هغه روژه صحيح ده. (عمدة الفقه)

### په کومو روژو کي له شپې څخه نيت او تعيين شرط نه دی؟

﴿۱۰۲۸﴾ أَمَّا الْقِسْمُ الَّذِىْ لَا يُشْتَرَطُ فِيْهِ تَعْيِيْنُ النِّيَّةِ وَلَا تَبْيِيْتُهَا کوم چي (د روژې) هغه قسم دی چي په هغه کي د نيت متعينول او له شپې څخه نيت کول شرط نه دي فَهُوَ أَدَاءُ رَمَضَانَ نو هغه د رمضان اداء روژې دي وَالنَّذْرُ الْمُعَيَّنُ زَمَانُهُ او (همدارنګه) د داسي نذر روژه ده چي د هغه زمانه متعينه (ټاکل سوې) وي وَالنَّفْلُ او (همدارنګه) نفلي روژه ده فَيَصِحُّ بِنِيَّةٍ مِّنَ اللَّيْلِ إِلَىٰ مَا قَبْلَ نِصْفِ النَّهَارِ نو (دا هره روژه) صحيح کيږي په نيت کولو سره د شپې (بيا) له

نيمي ورځي څخه تر مخکي پوري عَلَى الْأَصَحّ د صحيح ترين قول مطابق.

﴿۱۰۲۹﴾ وَنِصْفُ النَّهَارِ مِنْ طُلُوْعِ الْفَجْرِ إِلَى وَقْتِ الضَّحْوَةِ الْكُبْرَىٰ او نصف النهار د سهار (صبح صادق) له راختلو څخه د ضحوه كبرىٰ (لوى څاښت اباته څاښت) تر وخته پوري دى.

**لغات**: ﴿تبييت﴾ د تفعيل د باب مصدر دى، مراد ځني د شپې نيت كول دي. ﴿نذر معيّن﴾ يعني په كوم نذر كي چي ورځ يا مياشته وغيره معيّن (ټاكل) سوې وي مثلاً داسي يې ويلي وي: چي پر ما د الله ﷻ لپاره (يا د الله پر نامه) د دغه مياشتي د اولي جمعې روژه لازمه ده. نو د دې مياشتي اوله جمعه معيّنه سوه (وټاكل سوه)، دې ته نذر معيّن وايي. ﴿الضحوة الكبرىٰ﴾ د څاښت وخت كله چي لمر ښه ډېر راپورته سوى وي، دې وجهٔ تسميه دا ده چي په دې وخت كي د لمر رڼا پوره سي، د ضحوة معنى ده: رڼا، او د كبرىٰ معنىٰ ده: لويه، كامله او پوره. او له الضحوة الكبرى څخه مراد نصف النهار شرعي (يا بله وينا شرعي غرمه) ده چي تر هغه مخكي نيت كول ضروري دي (د دې لپاره چي په اكثر د نهار كي د عبادت نيت راسي)، تر نصف النهار شرعي وروسته نيت كولو لره اعتبار نسته.

**تشريح**: د رمضان او نذر معيّن په روژه او نفلي روژه كي له شپې څخه نيت كول او روژه متعيّنول چي دغه روژه نيسم شرط نه دي، بلكي له نصفُ النهار شرعي (شرعي نيمي ورځي) څخه مخكي كه نيت وكړي، نو هم روژه صحيح كيږي، ورځ له صبح صادق څخه تر لمر لوېدلو پوري ده، او د هغه نصف ته ضحوهٔ كبرىٰ او نصف النهار شرعي ويل كيږي، مثلاً كه صبح صادق پر شپږ (۶) بجې وي او لمر هم پر شپږ (۶) بجې لوېږي نو ورځ دوولس ساعته (۱۲ ګينټې) سوه او د هغه نصف شپږ ساعته (۶ ګينټې) سو، نو ټيک د ورځي دوولس بجې نصف النهار شرعي سو. نو د پورتني مذكوره دريو روژو د نيت آخري وخت له نصف النهار شرعي څخه تر لږ مخكي پوري دى، لهذا كه پر نصف النهار يا تر هغه وروسته نيت وكړي، نو روژه يې نه صحيح كيږي. (شفاء الارواح)

## آيا د رمضان په روژو كي تعيين ضروري دى؟

﴿۱۰۳۰﴾ وَيَصِحُّ أَيْضًا بِمُطْلَقِ النِّيَّةِ وَبِنِيَّةِ النَّفْلِ او صحيح كيږي همداسي په مطلق نيت او د نفلو په نيت سره وَلَوْكَانَ مُسَافِرًا أَوْ مَرِيْضًا كه څه هم مسافر او مريض وي فِي الْأَصَحّ د صحيح ترين قول مطابق.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي پورتني مذکوره درې قسمه روژې په مطلق نیت سره هم اداء کیږي، مثلاً که داسي ووایي چي زه نن ورځ روژه نیسم او دا نه ووایي چي فرض یا واجب یا سنت، نو بیا هم دا روژه اداء کیږي، او د نفلو په نیت سره هم اداء کیږي، مثلاً داسي ووایي چي زه نن ورځ نفلي روژه نیسم؛ ځکه د رمضان میاشته صرف د فرض روژې لپاره متعینه ده، او پاته سو نذر معیّن، نو هغه هم د رمضان په حکم کي دی؛ ځکه چي هغه هم د نذر کونکي له طرفه متعیّن دی او د متعیّن لپاره نور تعیین ته ضرورت نه وي، او د نفلي روژې لپاره له رمضان څخه بغیر نور ټوله وختونه (د نفلي روژې) دي، نو ځکه د رمضان روژه، د نذر معیّن روژه او نفلي روژه په مطلق نیت سره اداء کیږي او په دې حکم کي مسافر او مریض دواړه سره برابر دي، لهذا د مسافر او مریض روژه هم په رمضان، نذر معیّن او نفلو کي په مطلق نیت سره اداء کیږي.

دلته مصنف رَحِمَهُ الله فی الأصح ویلي دي؛ ځکه یو قول دا هم دی چي که مسافر او مریض د رمضان په روژه کي مطلق نیت یا د نفلو نیت وکړي، نو هغه روژه یې نفلي کیږي (نفلي روژه ګرځي)، د رمضان روژه نه اداء کیږي، خو اصح (زیات صحیح) هغه قول دی کوم چي مصنف رَحِمَهُ الله ذکر کړی دی.

## په رمضان یا نذرِ معیّن کي د بل واجب (نذر یا قضائي روژې) نیت کول

﴿۱۰۲۱﴾ وَيَصِحُّ أَدَاءُ رَمَضَانَ بِنِيَّةِ وَاجِبٍ آخَرَ او صحیح کیږي د رمضان ادائي روژه د بل واجب په نیت سره لِمَنْ كَانَ صَحِيحًا مُقِيمًا د هغه کس لپاره کوم چي روغ او مقیم وي بِخِلَافِ الْمُسَافِرِ په خلاف د مسافر فَإِنَّهُ يَقَعُ عَمَّا نَوَاهُ مِنَ الْوَاجِبِ ځکه د مسافر (روژه) د هماغه واجب له طرفه واقع کیږي د کوم چي هغه نیت کړی وي.

﴿۱۰۲۲﴾ وَاخْتَلَفَ التَّرْجِيحُ فِي الْمَرِيضِ إِذَا نَوَىٰ وَاجِبًا آخَرَ فِي رَمَضَانَ او ترجیح مختلفه سوې ده (یعني د قولِ راجح په تعیین کي یې اختلاف سوی دی) د مریض په باره کي کله چي هغه په رمضان کي د بل واجب نیت وکړي.

﴿۱۰۲۳﴾ وَلَا يَصِحُّ الْمَنْذُورُ الْمُعَيَّنُ زَمَانُهُ بِنِيَّةِ وَاجِبٍ غَيْرِهِ او نه صحیح کیږي هغه نذري روژه چي د هغه زمانه متعینه (ټاکل سوې) وي د بل واجب په نیت سره بَلْ يَقَعُ عَمَّا نَوَاهُ مِنَ الْوَاجِبِ فِيهِ بلکي واقع کیږي د هماغه واجب له طرفه د کوم چي یې نیت پکښي کړی وي.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي که روغ (جوړ) او مقیم کس د رمضان روژه د بل واجب په نیت سره ونیسي، نو هغه د رمضان له طرفه اداء کیږي، مثلاً که څوک په رمضان کي داسي روایي چي زه نن ورځ د کفارې روژه یا د تیر کال د رمضان قضاء سوې روژه نیسم، نو هم د رمضان روژه اداء کیږي، هغه د کفارې یا د قضاء روژه یې نه اداء کیږي؛ ځکه د رمضان په میاشته کي د واجب آخر روژه مشروع نه ده، لیکن که مریض یا مسافر په رمضان کي د بل واجب په نیت سره روژه ونیسي، نو د مسافر روژه د همدې بل واجب له طرفه اداء کیږي، نه د رمضان له طرفه، او پاته سو د مریض په باره کي ترجیح مختلفه ده، علامه فخرُ الاسلام او شمسُ الائمه رَحِمَهُمَا الله فرمایي چي په داسي صورت کي د مریض روژه د رمضان له طرفه اداء کیږي او دوی همدې ته صحیح ویلي دي، لیکن صاحب د هدایې او اکثره مشائخ رَحِمَهُمُ الله فرمایي چي مریض چي د کوم واجب روژې نیت کړی وي، د هغه له طرفه اداء کیږي.

ولایصح المنذور الخ: د دې حاصل دا دی چي که څوک د نذر معیّن روژه د بل واجب په نیت سره ونیسي، نو هغه د نذر له طرفه نه اداء کیږي، بلکي د کوم واجب نیت چي یې کړی وي، د هغه له طرفه اداء کیږي، برابره ده دئ روغ وي او که مریض وي، مسافر وي او که مقیم وي، مثلاً که د نذر معیّن په روژه کي د کفارې نیت وکړي، نو هغه د کفارې روژه کیږي، د نذرِ معین روژه نه کیږي. (شفاء الارواح)

## په کومو روزو کي له شپې څخه نیت او تعیین ضروري دی؟

﴿۱۰۳۳﴾ وَ أَمَّا الْقِسْمُ الثَّانِيْ وَهُوَ مَا يُشْتَرَطُ فِيْهِ تَعْيِيْنُ النِّيَّةِ وَ تَبْيِيْتُهَا او کوم چي دویم قسم دی او دا هغه روژه ده چي په هغه کي د نیت متعیّنول او له شپې څخه نیت کول شرط دي فَهُوَ قَضَاءُ رَمَضَانَ او هغه د رمضان قضائي روژه ده وَ قَضَاءُ مَا أَفْسَدَهٗ مِنْ نَفْلٍ او د هغه نفلي روژې قضاء ده کوم چي یې فاسده کړې (ماته کړې) وي وَ صَوْمُ الْكَفَّارَاتِ بِأَنْوَاعِهَا او د کفاراتو روژې دي د خپل ټولو اقسامو سره وَالْمَنْذُوْرُ الْمُطْلَقُ او مطلق نذر کړل سوې روژه ده (چي په هغې کي د هیڅ وخت تعیین نه وي) كَقَوْلِهٖ: إِنْ شَفَى اللهُ مَرِيْضِيْ لکه د سړي دا قول: که چیري الله زما مریض ته شفاء ورکړه فَعَلَيَّ صَوْمُ يَوْمٍ نو پر ما دیوې ورځي روژه (لازم) ده فَحَصَلَ الشِّفَاءُ بِهٖ (مریض ته) شفاء حاصله سوه (نو دا مطلق نذري روژه ده چي په دې کي د نیت تعیین او له شپې څخه نیت کول ضروري دي).

**لغات:** ﴿المنذور المطلق﴾ مطلق نذر کړل سوې روژه، مثلاً داسې ووايي چې که الله تعالی زما پلار ته شفاء ورکړه او جوړ سو، نو پر ما يوه روژه لازمه ده چې زه به يوه روژه نيسم، بيا پلار ته شفاء نصيب سي، نو پر هغه يوه روژه لازمه ده. ﴿شفی﴾ د ضرب د باب ماضي ده. شَفٰی يَشْفِي شِفَاءً: روغتيا بخښل، روغول (جوړول).

**تشریح:** د روژې دويم قسم هغه دی چې د نيت تعيين او له شپې څخه نيت کول پکښې ضروري دي او هغه د رمضان د قضاء روژه ده او د نفلو د قضاء روژه ده کوم چې يې ماته کړې وي او د څلورو سره کفارو (کفارهٔ ظهار، کفارهٔ قتل، کفارهٔ قسم او کفارهٔ افطار) روژې دي او د نذر مطلق روژه ده. نو په دغه مذکوره روژو کې تعيين شرط دی يعني په زړه کې به دا پېژني چې کومه روژه نيسي يعني په زړه کې دا ويل شرط دي چې مثلاً د رمضان د قضائي روژې نيت کوم يا د روژې ماتولو د کفارې والا روژې نيت کوم يا د نذرِ مطلق د روژې نيت کوم او داسې نور، که په دغه قسم روژو کې د نيت تعيين نه وکړي بلکې صرف مطلق نيت وکړي چې زه روژه نيسم، نو هغه روژه يې نه اداء کيږي. بلکې نفلي کيږي (نفلي روژه ګرځي) او ضايع کيږي نه؛ ځکه د اصل روژې نيت موجود دی. او په دغه قسم روژو کې له شپې څخه (يعني له صبح صادق څخه مخکې) نيت کول ضروري دي او که تر صبح صادق وروسته نيت وکړي، نو روژه يې نه اداء کيږي، ها! که د صبح صادق کېدلو په وخت کې سمدستي نيت وکړي، نو جائز دي. (شفاء الارواح بحوالهٔ عمدة الفقه)



## فَصْلٌ فِيْمَا يَثْبُتُ بِهِ الْهِلَالُ وَفِيْ صَوْمِ يَوْمِ الشَّكِّ وَغَيْرِهِ

دا فصل په (بیان د) هغه څه کې دی چې په هغه سره د میاشتې (سپوږمۍ) ثبوت کیږي او په (بیان د) ورځې د شک او داسې نورو کې دی

**تشریح:** د شعبان په نهه ویشتمه (۲۹) د رمضان د میاشتې تلاش کول (د لیدلو کوشش کول) واجب علی الکفایه دي، همدارنګه د رجب، رمضان، ذی القعدې او ذی الحجې په نهه ویشتمه د میاشتې (سپوږمۍ) تلاش کول واجب علی الکفایه دي، له دې پنځو میاشتو څخه بغیر د نورو میاشتو په نهه ویشتمه د میاشتې تلاش کول او پسې کتل مستحب علی الکفایه دي. (عمدة الفقه)

### د رمضان د میاشتې ثبوت

﴿۱۰۳۵﴾ يَثْبُتُ رَمَضَانُ بِرُؤْيَةِ هِلَالِهِ رمضان ثابتیږي (د رمضان) د میاشتې په لیدلو سره أَوْ بِعَدِّ شَعْبَانَ ثَلَاثِيْنَ إِنْ غُمَّ الْهِلَالُ یا د شعبان د دېرشو ورځو په شمېرلو (پوره کېدلو) سره که چیرې میاشته پټه (مشتبه) وي.

**لغات:** ﴿هلال﴾ نوې میاشته (سپوږمۍ)، د اولې شپې میاشته، ﴿عَدّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: شمېرل (شمارل)، ﴿غُمّ﴾ د نصر له بابه ماضي مجهوله ده، غَمَّ يَغُمُّ غمًّا: نیامېدل (نهامېدل)، پټېدل.

**تشریح:** د رمضان میاشته په دوو شیانو سره ثابتیږي: ① یا خو د شعبان په نهه ویشتمه (۲۹) د میاشتې په لیدلو سره، ② یا که میاشته نه ولیدل سي، نو د شعبان د دېرشو ورځو په پوره کېدلو سره رمضان ثابتیږي، لهذا که په نهه ویشتمه د شعبان میاشته ولیدل سوه، نو را روانه ورځ به روژه نیول کیږي او که میاشته نه ولیدل سوه، نو د شعبان دېرش (۳۰) ورځې به پوره کړل سي او په را روانه ورځ به روژه نیول کیږي.

خلاصه دا چې د میاشتې د ثبوت مدار د میاشتې (سپوږمۍ) پر لیدلو دی، نه د میاشتې پر وجود، لهذا معلومه سوه چې که میاشته (سپوږمۍ) په اُفق کې موجوده وي، خو د وریځې، ګرز وغیره په وجه نه ولیدل سي، نو د هغې د وجود اعتبار به نه کول کیږي او په دې سره به میاشته نه ثابتیږي. (درس ترمذی)

## د يومُ الشک بیان

﴿۱۰۳۶﴾ وَيَوْمُ الشَّكِّ هُوَمَا يَلِيَ التَّاسِعَ وَالْعِشْرِيْنَ مِنْ شَعْبَانَ او د شک ورځ هغه ورځ ده کوم چي د شعبان د نهه ویشتمي (۲۹) سره متصله وي (يعني د شعبان دېرشمه ورځ) وَقَدِ اسْتَوٰى فِيْهِ طَرَفُ الْعِلْمِ وَالْجَهْلِ بِأَنْ غُمَّ الْهِلَالُ او په هغې کي (په میاشتي) د خبرېدلو او نا خبرۍ (يعني د میاشتي د شتون او نشتون) اړخ سره برابر وي په دې توګه چي میاشته پټه (مشتبه) پاته وي.

**لغات**: ﴿استویٰ﴾ د استفعال د باب ماضي ده، مصدر: استواءً: برابر کېدل. ﴿طرف﴾ طرف، اړخ. خوا، کناره، د یو شي آخري حدّ، جمع: أطراف. ﴿علم﴾ د سمع د باب مصدر دی: خبرېدل، واقف کېدل، پوهېدل. العلم: خبرتیا، پوهه. ﴿جهل﴾ دا هم د سمع د باب مصدر دی: نا خبره کېدل، نا پوه کېدل.

**تشریح**: له يومُ الشک څخه مراد د شعبان آخري ورځ ده چي د هغې په باره کي دا احتمال هم سته چي دا دي د رمضان اوله ورځ وي او دا احتمال هم پکښي سته چي د شعبان آخري ورځ يعني د شعبان دېرشمه دي وي.

يعني کله چي د شپې آسمان (مطلع) صفا نه وي، وريځ يا ډېر ګرز يا تېزه سره رڼا وي چي د هغه په وجه میاشته نه ليدل کېږي، نو را روانه ورځ يومُ الشک ده؛ ځکه په دې کي دوه احتماله دي: يو دا چي ممکنه ده د آسمان په څنډه کي میاشته موجوده وي او د علّت په وجه نه ليدل کېږي نو دا به هغه د رمضان اوله ورځ وي، او دا هم ممکنه ده چي میاشته موجوده نه وي، نو دا به د شعبان دېرشمه ورځ وي، نو ځکه ورته يومُ الشک وايي.

وقد استویٰ: د دې مطلب دا دی چي د شعبان دېرشمه په هغه صورت کي يوم الشک کېږي کله چي په نهه ویشتمه (۲۹) د شعبان د آسمان د نا صفا والي په وجه د میاشتي په شتون او نشتون (وجود او عدمِ وجود) کي شک وي (چي میاشته به موجوده وي او که نه)، او که په هغه شپه آسمان او مطلع صفا وي، نو بيا را رواني ورځي ته يوم الشک نه ويل کېږي.

## په يومُ الشک کي د روژې نيولو څو صورتونه

﴿۱۰۳۷﴾ وَكُرِهَ فِيْهِ كُلُّ صَوْمٍ او مکروه ده د شک په ورځ هره روژه إِلَّا صَوْمَ نَفْلٍ جَزَمَ بِهِ بِلَا تَرْدِيْدٍ بَيْنَهُ وَبَيْنَ صَوْمٍ آخَرَ مګر هغه نفلي روژه چي د هغې (د نيولو) يې ټينګه (قطعي)

اراده کړې وي بغیر له متردّد کېدو (زړه نازړه کېدو) څخه د نفلي او بلي روژې تر مینځ وَإِنْ ظَهَـرَأَنَّـهُ مِنْ رَمَضَـانَ او که ښکاره سي دا چې دغه د رمضان (ورځ) ده (یعني دغه د شک ورځ د رمضان ورځ سي) أَجْزَأَعَنْهُ مَا صَامَهُ نو کافي کیږي د رمضان له طرفه دا روژه کوم چې یې (په دې ورځ کي) نیولې ده وَإِنْ رَدَّدَ فِيْـهِ بَيْـنَ صِيَامٍ وَ فِطْرٍ او که پکښې متردّد (زړه نازړه) سي په دې ورځ د روژې نیولو او خوړلو (نه نیولو) تر مینځ لَا يَكُـوْنُ صَائِمًا نو هغه روژتي نه ګرځي (یعني که په مشکوکه توګه نیت وکړي چې دا ورځ [یوم الشک] که د رمضان سوه، نو روژه به مې وي، کنې روژه به مې نه وي، نو په دلسې صورت کې هغه روژه نیونکی نه شمېرل کیږي، نه د رمضان او نه د نفلي روژې؛ ځکه چې په روژه نیولو او نه نیولو کې تردّد دی، نو ګواکې ګرد سره د روژې نیت نه دی سوی، فلا یکون صائمًا).

**لغات:** ﴿جَـزَمَ﴾ د ضرب له بابه ماضي معلومه ده، مصدر: جَـزْمًا: ټینګه اراده کول (پخه اراده کول)، قطعاً نافذول چې بیا رجوع پکښې نه وي، ﴿تردید﴾ د تفعیل د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوې نقل سوې دي چې ځینې دا دي: ګرځېدل (متردّد کېدل)، پر یو طرف نه پاتېدل، مکرر کول، ګرځول (مصباح اللغات)، ﴿أَجْـزَأَ﴾ د افعال د باب ماضي معلومه ده: کافي کېدل، کفایت کول، جائز کېدل، د عَنْهُ ضمیر رمضان ته راجع دی، ردّدَفِيْـهِ أي ردّدَفي یوم الشّك.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې د شک په ورځ (یوم الشک) کي هره روژه مثلاً د قضاء یا کفارې یا نذر روژه نیول مکروه تنزیهي دي، خو که په ټینګه اراده بغیر له څه تذبذب څخه د نفلو په نیت روژه ونیسي یعني چې د ده په نیت کې د نفلو سره د بلې روژې کېدلو تردّد نه وي، نو مکروه نه دی. اوس که هغه په ټینګه د نفلي روژې نیت وکړي یا د قضاء یا د کفارې یا د نذر د روژې نیت وکړي او بیا د میاشتي لیدلو خبر راسي، نو ده چې په کوم نیت سره روژه نیولې ده، هغه د رمضان له طرفه اداء کیږي، او د قضاء، کفارې او نذر روژه به بیرته راګرځوي، او که د میاشتي لیدلو خبر رانه سي، نو د کومې روژې نیت چې یې کړی دی، هغه اداء کیږي.

**وإن ردّد إلخ:** یعني که په یومُ الشک کي خپل نیت د روژې نیولو او نه نیولو تر مینځ دائر کړي په دې توګه چې که سبا ورځ د رمضان سوه، نو روژه مې ده او که نه سوه، نو روژه مې نه ده. یا په بله وینا دا چې په مشکوکه توګه نیت وکړي چې که سبا رمضان سو، نو روژه نیسم، کنې نو یې نیسم، نو په دې صورت کې یې روژه نه کیږي او روژتي نه شمېرل کیږي، برابره ده رمضان سي او که نه سي، ځکه په

ټینګه توګه (قطعي) نیت نه وسو، او که داسي نیت وکړي چي که میاشته ولیدل سوه، نو د رمضان روژه به مي وي، کنې نفلي به وي، نو دا مکروه دي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

## د شعبان په نهه ویشتمه یا په دېرشمه روژه نیول

﴿۱۰۲۸﴾ وَ كُرِهَ صَوْمُ يَوْمٍ أَوْ يَوْمَيْنِ مِنْ آخِرِ شَعْبَانَ او مکروه ده د یوې ورځي یا دوو ورځو روژه په آخر د شعبان کي وَلَا يُكْرَهُ مَا فَوْقَهُمَا او له دوو ورځو څخه بالا مکروه نه دي.

**تشریح**: په دې مسئله کي څه تفصیل دی او هغه دا دی چي د کوم چا د روژې د عادت والا ورځي د شعبان په آخري دوو ورځو کي واقع سي (مثلاً د یو چا عادت دا وي چي هره پنجشنبه روژه نیسي. بیا د شعبان ۲۹ یا ۳۰ د پنجشنبې ورځ سي. یا مثلاً د یو چا عادت د هري میاشتي په آخره ورځ روژه نیول وي) نو د داسي کس په حق کي په دې ورځو کي روژه نیول مطلقاً مکروه نه دي، او کوم څوک چي څه عادت نه لري. نو د هغه لپاره د شعبان په آخري یوه ورځ یا دوو ورځو کي روژه نیول مکروه تنزیهي دی او له دوو څخه په زیاتو روژو نیولو کي دا کراهت هم نسته، یعني که څوک د شعبان آخري درې یا څلور ورځي یا تر دې زیاتي ورځي روژې نیسي، نو د هغه لپاره بېله کراهته دا جائز دي(او د دې وجه دا کېدلای سي چي ممانعت او کراهت اصلاً په هغه روژه کي دی کوم چي د احتیاط په غرض سره ونیول سي یعني چي کېدلای سي دا آخري ورځ به د رمضان وي [نو احتیاطاً روژه ونیسي] او احتیاط عموماً په یوه او دوو ورځو سره کیږي یعني د احتیاط په غرض سره صرف په آخري ورځ یا آخري دوو ورځو کي روژه نیول کیږي، لهذا که څوک تر دې زیات وخت روژه نیسي، نو د هغه اجازه به وي، ځکه چي د منع او کراهت علت مفقود سو). (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

## په یو الشک کي تر زواله پوري د انتظار کولو حکم او د خواصو او عوامو لپاره حکم

﴿۱۰۲۹﴾ وَيَأْمُرُ الْمُفْتِي الْعَامَّةَ بِالتَّلَوُّمِ يَوْمَ الشَّكِّ او د شک په ورځ به مفتي وعامو خلګو ته (اول) د انتظار حکم کوي ثُمَّ بِالْإِفْطَارِ إِذَا ذَهَبَ وَقْتُ النِّيَّةِ وَلَمْ يَتَعَيَّنِ الْحَالُ بیا به د روژې ماتولو (حکم ورته کوي) کله چي د نیت وخت ولاړ سي او هیڅ حال متعیَّن نه سي وَيَصُومُ فِيهِ الْمُفْتِي وَالْقَاضِي وَمَنْ كَانَ مِنَ الْخَوَاصِّ او روژه دي ونیسي (د نفلو په نیت سره) په دې ورځ مفتي او قاضي او څوک چي له خواصو (خاصو خلګو) څخه وي وَهُوَ مَنْ يَتَمَكَّنُ مِنْ ضَبْطِ نَفْسِهِ عَنِ التَّرْدِيدِ فِي النِّيَّةِ وَمُلَاحَظَةِ كَوْنِهِ عَنِ الْفَرْضِ او خاص هغه دی کوم چي قدرت لري د خپل نفس (زړه) پر قابو کولو له متردّد کېدلو څخه په نیت کي او (قدرت لري د خپل نفس پر قابو کولو) له لحاظ کولو څخه د دې روژې له فرضي روژې کېدلو څخه ایا په بله وینا، د دې نفلي روژې له

فرضي روژې کېدلو د لحاظ کولو څخه ( یعني خواص هغه دي چي په نیت کي له تردد څخه پر خپل نفس قابو او کنټرول لري او په زړه کي د دې خبري لحاظ او تصور هم نه کوي چي که سبا ورځ د رمضان وه، نو دا مي د رمضان روژه ده، یا په لنډه وینا دا چي کوم چا ته د روژې د تفصیلي مسئلې علم او خبر وي، نو هغه له خواصو څخه دي).

**لغات:** ﴿العامّة﴾ عام خلک، عوام، جاء القومُ عامّةً: ټوله خلک راغلل. ﴿التلوّم﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: انتظار کول (تر آخر وخته پوري انتظار کول)، درنګ او توقف کول. ﴿یتمکن﴾ د تفعیل د باب مضارع معلومه ده، کله چي د دې باب په صله کي مِنْ راسي، نو معنیٰ یې ده: پر یو شي قادر کېدل، قدرت لرل. ﴿ضبط﴾ د نصر د باب مصدر دی: په قابو کي راوستل، کنټرولول. ﴿ملاحظة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: لحاظ کول، خیال ساتل.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چي په یوم الشک کي دي مفتي وعامو خلکو ته فتویٰ ورکړي چي د زوال تر وخته پوري هغوی له خوراک، څښاک، جماع او داسي نورو ممنوعاتو څخه منع سي، که چیري تر زواله پوري د میاشتي لیدلو خبر راسي او ثابت سي، نو هغوی دي د رمضان د روژې نیت وکړي او روژه دي پوره وکړي، او که هغه ثابت نه سي او لمر زوال سي، نو بیا دي د افطار فتویٰ ورکړي چي اوس دي هغوی خوراک او څښاک وکړي او روژه دي نه نیسي.

ویصوم فیه المفتي إلخ: د دې حاصل دا دی چي مفتي، قاضي او خواص دي په یوم الشک کي (د عوامو په پټه) روژه ونیسي او دا د هغو لپاره مستحب دي، واجب نه دي (عمدة الفقه)، او د عوامو لپاره په دې ورځ روژه نیول مکروه دي، له خواصو څخه مراد هغه خلک دي کوم چي د نیت پر استحکام قادر وي. په تردّد کي واقع نه سي (یعني چي په یومُ الشک کي خالص د نفلي روژې نیت وکړي بغیر له دې چي په شک او تردد کي واقع سي او په زړه کي دا خیال او تصوّر نه راولي چي که سبا ورځ د رمضان سوه نو بیا مي دغه روژه د رمضان ده. نه نفلي. نو داسي کس له خواصو څخه دی، او که دا خبره پکښي نه وي، نو هغه له عوامو څخه دی)، لنډه دا چي مفتي، قاضي او خواص دي په یوم الشک کي د نفلو په نیت سره روژه ونیسي، د دې لپاره چي پر احتیاط عمل وسي؛ ځکه په یو الشک کي دا احتمال خو سته چي دا دي د رمضان ورځ وي (کما ذکرنا)، بیا که اتفاقاً دا ورځ د رمضان اوله ورځ سي، نو دا روژه یې فرض ګرځي (خو دا ضروري ده چي دا روژه د نفلو په نیت سره ونیول سي. د رمضان هیڅ تصوّر نه وي او همدا د خاص او عام معیار دی. کوم کس چي د نفلو پوخ نیت کولای سي. هغه خاص دی. او که نیت یې پوخ نه وي دا خیال یې وي چي که رمضان سو، نو روژه به مي د رمضان وي، هغه عام دی. او د عوامو په پټه به یې ځکه نیسي لئلا یتهم بالعصیان یا، کتاب الصوم، احشیه ا). (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

## د یوه کس د میاشتي لیدلو حکم او د هغه لپاره د روژې حکم

﴿۱۰۳۰﴾ وَمَنْ رَأَىٰ هِلَالَ رَمَضَانَ أَوِ الْفِطْرِ وَحْدَهُ او څوک چي یوازي (تنها) ووینې د رمضان یا کوچني اختر میاشته وَرُدَّ قَوْلُهُ او د هغه قول رد کړی سي (ګواهي یې نه ومنل سي) لَزِمَهُ الصِّيَامُ نو (خپله) پر هغه روژه نیول لازم دي وَلَا يَجُوزُ لَهُ الْفِطْرُ او د هغه لپاره روژه خوړل جائز نه دي بِتَيَقُّنِهِ هِلَالَ شَوَّالٍ د شوال د میاشتي په یقین سره هم (یعني که څه هم د ده دا یقین دی چي دا د شوال میاشته ده) وَإِنْ أَفْطَرَ فِي الْوَقْتَيْنِ او که روژه وخوري په دواړو وختونو کي (یعني د رمضان یا د شوال د میاشتي تر لیدلو وروسته...) قَضَىٰ وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ نو قضاء دي راوړي او پر هغه کفاره نسته وَلَوْ كَانَ فِطْرُهُ قَبْلَ مَا رَدَّهُ الْقَاضِي که څه هم د ده روژه خوړل (نه نیول) د قاضي له رد کولو څخه مخکي وي فِي الصَّحِيحِ د صحیح قول مطابق.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چي که تنها یو مسلمان د رمضان یا اختر میاشته ووینې او قاضي په یوه وجه د هغه ګواهي قبوله نه کړي مثلاً آسمان (مطلع) صفا وي چي په دې صورت کي د یوه کس ګواهي مقبوله نه ده، نو په دې وجه یې قبوله نه کړي، نو خپله پر داسي کس په دغه دېرشمه د شعبان او په دېرشمه د رمضان روژه نیول واجب دي او د اختر د میاشتي د لیدلو باوجود د هغه لپاره روژه پرېښوول جائز نه دي، لېکن بعضي فرمایي چي روژه دي نه نیسي، خو د خلکو مخ ته دي یې نه خوري.

**وإن أفطر الخ:** یعني که دا کس (کوم چي د رمضان او شوال میاشته) لیدلې ده روژه ونیسي او ماته یې کړي، حال دا چي قاضي د ده ګواهي رد کړې ده، نو پر ده صرف قضاء واجبېږي، کفاره نه لازمېږي.

**ولو کان الخ:** یعني که څه هم قاضي تر اوسه د ده ګواهي رد کړې نه وي، تر هغه مخکي روژه ماته کړي، نو هم صرف قضاء خو بالاتفاق واجب ده، لېکن د کفارې په واجبېدلو کي د مشایخو اختلاف دی، بعضي فرمایي چي په دې صورت کي کفاره واجبېږي، خو صحیح دا ده چي کفاره نه واجبېږي.

## كه آسمان (مطلع) صفا نه وي، نو څه حكم دی؟

﴿۱۰۲۱﴾ وَإِذَا كَانَ بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ مِنْ غَيْمٍ أَوْ غُبَارٍ أَوْ نَحْوِهِ او كله چې په آسمان كې يو علت وي يعني وريځ يا ګرز (ګرد) يا داسې بل علت (مِنْ بيانيه دی) قُبِلَ خَبَرُ وَاحِدٍ عَدْلٍ أَوْ مَسْتُوْرٍ فِي الصَّحِيْحِ نو قبلول كيږي به (د رمضان لپاره) د يوه عادل كس خبر يا د پټ حاله (نامعلومه) كس خبر د صحيح قول مطابق وَلَوْ شَهِدَ عَلَى شَهَادَةِ وَاحِدٍ مِثْلِهِ كه څه هم ګواهي يې وركړې وي هغه د ځان په څېر د يوه (عادل) كس پر ګواهي. وَلَوْ كَانَ أُنْثَى أَوْ رَقِيْقًا أَوْ مَحْدُوْدًا فِيْ قَذْفٍ تَابَ او كه څه هم هغه (يو كس) ښځه وي يا داسې كس وي چې د قذف (زنا د تهمت) په وجه پر هغه حدّ جاري سوی وي كوم چې (اوس) يې توبه كړې وي لِرَمَضَانَ د رمضان لپاره (به قبلول كيږي).

**لغات:** ﴿غيم﴾ وريځ (وريځه)، جمع: غُيُوْمٌ، ﴿مَحْدُوْد﴾ د نصر له بابه مفعول دی: هغه څوک چې د يو جرم په سزا كې حدّ پر جاري سوی وي، ﴿القَذْف﴾ د زنا تهمت (تور). له محدود في القذف څخه هغه كس مراد دی چې پر يو چا د زنا تهمت ولګوي خو هغه ثابت نه كړی سي چې د هغه په وجه حدّ (شرعي سزا) وركول سي. مثلاً يو څوک پر بل چا په درواغه تهمت ولګوي چې ده زنا كړې ده او بيا خپل تهمت ثابت نه كړی سي او درواغجن ثابت سي، نو پر داسې كس حدّ جاري كيږي كوم چې اتيا (۸۰) دُرې دي او بله سزا يې دا ده چې د آينده لپاره به د ده ګواهي نه قبلول كيږي. خو كه توبه وكړي. نو په ديني اُمورو كې د ده روايت يا خبر قبلول كېدلای سي، ځرنګه چې د رمضان د مياشتې ګواهي هم يو ديني امر دی. نو ځكه په دې كې به هم د هغه ګواهي قبلول كيږي. ﴿شهد على شهادة﴾ دې ته "شهادة على الشهادة" وايي، يعني شاهد (ګواه) د يو عذر په وجه خپله د قاضي مخ ته نه سي حاضرېدلای او د يو بل چا مخ ته شهادت (ګواهي) وركړي چې هغه دا شهادت د قاضي مخ ته پېش كړي. نو په دې صورت كې كه څه هم په نورو احكامو كې دوه نارينه يا يو نارينه او دوې ښځې ګواهان ضروري دي چې د شاهد له طرف به دوی ګواهي پېشوي، خو د رمضان د مياشتې په شهادت كې دوه ضروري نه دي، صرف يوه هم كافي دی.

**تشریح**: که آسمان صفا نه وي، بلکې وريځ يا ګرز يا دود او اسې نور د آسمان په څنډه (افق) کې غوړېدلي وي چې میاشته نه لیدل کېږي، نو په دې صورت کې د یوه عادل یا مستورُ الحاله کس ګواهي کافي ده چې د رمضان د میاشتې په لیدلو کې به قبلول کېږي.

**عدل**: په معنیٰ سره د عادل دی، د عادل کېدلو ادنیٰ درجه کوم چې په دې باب کې شرط ده دا ده چې کبیره ګناهونه نه کوي او پر صغیره ګناهونو ټینګار نه کوي او له بې ځایه او داسې کارونو څخه ځان ساتي کوم چې د مړانې خلاف وي (یعني خلاف مروّت کارونه نه کوي).

**مستور**: له مستور څخه مراد هغه کس دی چې د هغه حالت پټ او نا څرګنده وي یعني په ښکاره ښه معلومېږي او د هغه نور حالت او باطني حالت نه معلومېږي چې بدکاره دی او که ښه، نو صحیح دا ده چې د داسې کس به هم ګواهي قبلول کېږي.

ولو شهد علی شهادة إلخ: یعني بل څوک ګواهي ورکړي چې زما مخ ته فلانکي کس د میاشتې لیدلو ګواهي ورکړه چې ما په خپلو سترګو میاشته لیدلې ده، نو دا ګواهي به هم قبلول کېږي او میاشته په ثابتېږي، مثلاً کوم چا چې میاشته لیدلې وي هغه مریض وي یا یو بل سخت عذر لري او د قاضي مجلس ته نه سې حاضرېدلای نو د یو بل چا مخ ته ګواهي ورکړي د دې لپاره چې هغه دا ګواهي د قاضي په مجلس کې ورکړي، نو د دې یوه کس ګواهي هم مقبوله ده، برابره ده آزاد وي او که غلام وي. سړی وي او که ښځه یا محدود في القذف وي.

| ﴿۱۰۳۲﴾ وَلَا يُشْتَرَطُ لَفْظُ الشَّهَادَةِ وَلَا الدَّعْوىٰ او شرط نه دي لفظ د شهادت (أشهدُ) ویل او نه (شرط دي) دعویٰ کول. |
| --- |

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې د ګواهي ورکونکي کس لپاره د ګواهي (شهادة) په لفظ سره ګواهي ورکول شرط او ضروري نه دي چې مثلاً په عربي کې به "أَشْهَدُ" وایي یا په پښتو کې به "زه ګواهي ورکوم" یا "زه شاهدي ورکوم" وایي، دا شرط نه دي، همدارنګه د میاشتې لیدلو په ګواهي کې دعویٰ هم شرط نه ده چې د قاضي په مجلس کې به له مخکې څخه د میاشتې لیدلو دعویٰ شروع وي یا به دعویٰ پېشول کېږي، بیا به ګواهي پېشول کېږي، دا شرط نه دي، بلکې ګواه به بغیر له څه دعوې څخه ګواهي پېشوي.

هسې خو په نورو مسئلو کې د قاضي په مجلس کې یو ګواهي هغه وخت پیشول کېږي کله چې مخکې یو دعویٰ سوې وي او پېشه کړل سوې وي، لېکن د میاشتې په ثبوت کې دعوې ته څه

ضرورت نسته چې مخکې به دعوىٰ وي. بلکې بغیر له دعوې څخه او بغیر له لفظ شهادت څخه د شاهد ګواهي مقبوله ده (همدا وجه ده که د قاضي مخ ته محض یو څوک ګواهي پېش کړي او یو بل څوک هلته د ده ګواهي واوري او دئ په ظاهره عادل وي. نو پر سامع واجب دي چې روژه ونیسي. که څه هم قاضي تر اوسه حکم او فیصله نه وي کړې. هغه ته ضرورت نسته).

## د اختر د میاشتې حکم

﴿۱۰۳۲﴾ وَ شُرِطَ لِهِلَالِ الْفِطْرِ إِذَا كَانَ بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ او شرط دي د اختر د میاشتې لپاره کله چې وي پر آسمان یو علت لَفْظُ الشَّهَادَةِ مِنْ حُرَّيْنِ أَوْ حُرٍّ وَحُرَّتَيْنِ بِلَا دَعْوىٰ (شرط دي) لفظ د شهادت کوم چې به د دوو آزادو کسانو یا د یوه آزاد کس او دوو ښځو له طرفه (ویل سوی) وي بغیر له دعوې څخه (یعني دعوىٰ په دې صورت کې هم شرط نه ده).

**تشریح:** مخکې د رمضان د میاشتې په هکله تفصیل بیان سو، اوس دلته د کوچني اختر د میاشتې په هکله تفصیل بیانوي، مسئله دا ده که د رمضان په نهه ویشتمه (۲۹) آسمان صفا نه وي. بلکې وریځ یا ګرز او داسي نور وي، نو د اختر د میاشتې په ثبوت کې د دوو سړیو یا د یوه سړي او دوو ښځو شهادت ضروري دی، د یوه کس ګواهي کافي نه ده، او د دې ګواهانو آزاد والی هم ضروري دی چې دوی به آزاد وي، همدارنګه د شهادت په لفظ سره ګواهي ورکول هم ضروري دي. مثلاً په عربي کې "أَشْهَدُ" ویل یا په بله ژبه کې د دې په معنىٰ سره جمله ویل مثلاً په پښتو کې "زه ګواهي ورکوم" یا "زه شاهدي ورکوم" (یا پېشوم)، خو په دې ګواهي کې هم دعوىٰ شرط نه ده.

## که آسمان (مطلع) صفا وي، نو څه حکم دی؟

﴿۱۰۳۳﴾ وَإِنْ لَّمْ يَكُنْ بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ او که پر آسمان هیڅ علت نه وي (روڼ صفا وي) فَلَا بُدَّ مِنْ جَمْعٍ عَظِيمٍ لِرَمَضَانَ وَالْفِطْرِ نو چاره نسته د یو لوی جماعت (له ګواهۍ) څخه د رمضان او اختر لپاره (یعني په دې صورت کې د رمضان او اختر دواړو د میاشتې لپاره د ډېرو خلکو ګواهي ضروري ده) وَ مِقْدَارُ الْجَمْعِ الْعَظِيمِ مُفَوَّضٌ لِرَأْيِ الْإِمَامِ فِي الْأَصَحِّ او د لوی جماعت مقدار د امام رایې ته سپارل سوی دی، په صحیح ترین قول کې.

**لغات:** ﴿مفوّض﴾ د تفعیل له بابه مفعول دی: ور سپارل سوی، فَوَّضَ يُفَوِّضُ تَفْوِيضًا: یو چا ته یو شی سپارل. یو چا ته په یو معامله کې د تصرّف اختیار ورکول.

**تشریح:** مسئله دا ده چې که آسمان صفا وي یعنې داسې وریځ، یا ګرز، یا دوړ نه وي کوم چې د میاشتې په لیدلو کې حائل او مانع وي، خو بیا هم د ښار او علاقې خلک میاشته نه ویني. نو په داسې صورت کې د رمضان او اختر د میاشتې لپاره صرف د دوو، دریو ګواهانو ګواهي لره اعتبار نشته چې موږ په دې علاقه یا ښار کې میاشته لیدلې ده. بلکې په دې صورت کې د یو لوی جماعت ګواهي ضروري ده کوم چې له مختلفو اطرافو څخه راغلي وي او هر یو په خپل ځای کې د میاشتې لیدلو ګواهي ورکړي چې د یو سازښت او پلان جوړولو احتمال پاتې نه سي. لوی جماعت یعنې داسې زیات خلک چې پر هغو دا خیال نه سي کېدلای چې دومره لوی جماعت به دروغ وایي او د څه سازښت احتمال نه سي کېدلای، یا په بله وینا دومره لوی جماعت چې قاضي ته د هغو په ګواهي سره یقین حاصل سي چې واقعي دوی میاشته لیدلې ده. د داسې جماعت د شمېر په باره کې د فقهاؤ مختلفه اقوال دي، بعضو پنځوس (۵۰) شمېر بیان کړی دی، او بعضو ویلي دي چې له هر مسجد څخه یو، دوه کسه کېدل پکار دي، خو صحیح دا ده چې شرعاً څه خاص شمېر متعیّن نه دی، په څومره شمېر سره چې دا یقین حاصل سي چې دا ټول نو دروغ نه سي ویلای، بس هغه شمېر کافي دی، برابره ده پنځوس وي او که تر دې کم یا زیات وي. (درس ترمذي ج:۲، ص:۵۲۶)

## د یوه کس د ګواهي حکم

| |
|---|
| ﴿۱۰۳۵﴾ وَإِذَا تَمَّ الْعَدَدُ بِشَهَادَةِ فَرْدٍ او کله چې (د دېرشو ورځو) شمېر پوره سي د یوه کس په ګواهي سره وَلَمْ يُرَ هِلَالُ الْفِطْرِ (خو بیا هم) د اختر میاشته نه ولیدل سي وَالسَّمَاءُ مُصْحِيَةٌ حال دا چې آسمان (هم) صاف وي لَا يَحِلُّ لَهُ الْفِطْرُ نو د هغه یوه کس لپاره (هم) روژه خوړل روا نه دي. |

**لغات** ﴿ولم یُر﴾ د فتح له بابه د جحد مجهول (نفي جحد بلم در فعل مستقبل) صیغه ده، مصدر: رأیًا: لیدل.

﴿مصحیة﴾ د مفعول صیغه ده: روښانه ورځ چې په آسمان کې هیڅ وریځ نه وي، مصحیة پر وزن د مرمیّة په اصل کې مصحویة وو، واو او یاء سره جمع سوه او له هغوی څخه اول ساکن وو، واو یې په یاء سره بدل کړی او بیا یې یاء په یاء کې مدغم کړه او د حاء ضمه یې د یاء په مناسبت سره په کسره بدله کړه مَصْحِيَةٌ سو.

**تشریح:** د عبارت مطلب دا دی چې که د رمضان د میاشتې په باره کې صرف یوه کس ګواهي ورکړې وه او د هغه یوه ګواه پر ګواهي قاضي فیصله کړې وي، اوس د هغه ګواهي او فیصلې مطابق د رمضان دېرش (۳۰) روژې پوره سوې، خو بیا هم د آسمان د صفا والي باوجود په یو دېرشمه شپه

میاشته نه ولیدل سوه، نو په دې صورت کې اختر جوړول صحیح نه دي. بلکې را وانه ورځ یو دېرشمه روژه به نیول کیږي. او قاضي ته دا حق سته چې پر هغه ګواه مقدمه وچلوي او سزا ورکړي. (انوار الایضاح. شفاء الارواح)

﴿۱۰۲۶﴾ وَاخْتَلَفَ التَّرْجِيْحُ فِيْمَا إِذَا كَانَ بِشَهَادَةِ عَدْلَيْنِ او ترجیح مختلفه سوې ده (یعني د قول راجح په تعیین کې یې اختلاف سوی دی) په هغه صورت کې کله چې د دوو عادلو کسانو په ګواهۍ سره (د رمضان فیصله سوې) وي.

**تشریح**: مخکې د یوه کس د ګواهۍ حکم ذکر سو، اوس دلته دا بیانوي چې که د دوو عادلو کسانو په ګواهۍ سره د رمضان فیصله سوې وي او بیا د رمضان د دېرشو روژو تر پوره کېدلو وروسته هم میاشته نه ولیدل سي او آسمان هم صفا وي، نو په دې صورت کې اختلاف دی. یو قول دا دی چې په را روانه ورځ اختر جوړول صحیح دي او دویم قول دا دی چې اختر به نه جوړول کیږي. بعضو اول قول راجح ګرځولی دی او بعضو بیا دویم قول ته راجح ویلي دي. (شفاء الارواح. انوار الایضاح)

## د آسمان (مطلع) نه صفا کېدلو د یو صورت حکم

﴿۱۰۲۷﴾ وَلَا خِلَافَ فِيْ حِلِّ الْفِطْرِ إِذَا كَانَ بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ او اختلاف نسته دا اختر (روژه خوړلو) په حلال کېدو کې (چې دېرش ورځې پوره سي) کله چې پر آسمان یو علت وي وَلَوْ ثَبَتَ رَمَضَانُ بِشَهَادَةِ الْفَرْدِ که څه هم رمضان د یوه کس په ګواهۍ سره ثابت سوی وي.

**لغات**: ﴿فَرد﴾ د انسان وغیره یو شخص، تن، کس.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې که د یوه کس پر ګواهۍ یا د دوو کسانو پر ګواهۍ رمضان ثابت سوی وو، بیا د رمضان د دېرشو روژو تر پوره کېدلو وروسته پر آسمان د وریځې یا د داسې بل علت په وجه په یو دېرشمه ورځ میاشته نه ولیدل سوه، نو په دې صورت کې بالاتفاق را روانه ورځ اختر جوړول صحیح دي. (شفاء الارواح)

## د لوی اختر د میاشتې حکم

﴿۱۰۲۸﴾ وَهِلَالُ الْأَضْحٰى كَالْفِطْرِ او د لوی اختر میاشته د کوچني اختر (د میاشتې) په څېر ده.

**تشریح**: د لوی اختر (عید الاضحی) د میاشتې حکم د کوچني اختر د میاشتې په څېر دی. یعني د آسمان د نا صفا والي په حالت کې (یعني چې پر آسمان وریځ یا داسې بل علت وي) د دوو سړیو یا د یوه سړي او

دوو ښځو په گواهۍ سره دلوی اختر مياشته ثابتيږي. او د دې گواهانو آزاد والی او محدود في القذف نه کېدل شرط دي (لکه مخکي چي د دې وضاحت وسو) او د آسمان (مطلع) د صفا والي په حالت کي دلوی جماعت گواهي شرط ده. [illegible]

## له رمضان او اختر څخه وروسته د نورو مياشتو حکم

| |
|---|
| (۱۰۲۹) وَيُشْتَرَطُ لِبَقِيَّةِ الْأَهِلَّةِ شَهَادَةُ رَجُلَيْنِ عَدْلَيْنِ او شرط دي د نورو مياشتو لپاره د دوو عادلو سړيو گواهي أَوْ حُرٍّ وَحُرَّتَيْنِ غَيْرِ مَحْدُودَيْنِ فِي قَذْفٍ يا د يوه آزاد سړي او دوو آزادو ښځو گواهي چي پر هغوی د تهمت په وجه حد نه وي جاري سوی |

**لغات:** ﴿أَهِلَّة﴾ جمع د هِلَالٌ ده: نوې مياشته (نوې سپوږمۍ). د اولو درو شپو (۳) سپوږمۍ ته هِلال وايي. وروسته بيا قَمَر ورته وايي. ﴿محدودين﴾ تثنيه د مَحدودٌ ده د نصر له بابه مفعول دی: هغه څوک چي د يو جرم په سزا کي حدّ بانديي جاري سوی وي. ﴿قَذْف﴾ د ضرب د باب مصدر دی: پر يو چا د زنا تهمت (نور) لگول. د يو خبري تهمت باندي لگول. د محدود في القذف وضاحت مخکي وسو چي هغه کس ځني مراد دی چي پر يو چا د زنا تور ولگوي خو هغه ثابت نه کړی سي چي د هغه په وجه حدّ (شرعي سزا) ور کول سي.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي د رمضان او اخترونو له مياشتي څخه بغير په پاتو نهو (۹) مياشتو کي که آسمان صفا نه وي. نو د مياشتي د ثبوت لپاره د دوو سړيو يا د يوه سړي او دوو ښځو گواهي کافي ده. په دې شرط چي د گواهانو اوصاف په دوی کي موجود وي. او که آسمان (مطلع) صفا وي. نو بيا د مياشتي د ثبوت لپاره مجمع عظيم شرط دي يعني دومره خلک چي د هغوی په گواهي سره دا يقين حاصل سي چي واقعي دوی مياشته ليدلې ده. او بو قول دا دی چي برابره ده آسمان صفا وي او که نه وي د دې مياشتو د ثبوت لپاره د دوو سړيو يا د يوه سړي او دوو ښځو گواهي کافي ده. ځکه د دې مياشتو د تلاش او کتني په عامه تو گه اهتمام نه کول کيږي. دا قول علامه خير الدين رملي رحمه الله بيان کړی دی. (خو اول قول ظاهر روايت دی او همدا اصح دی) (انوار الايضاح سماء الارواح)

## د اختلاف مطالع بیان

وَإِذَا ثَبَتَ فِيْ مَطْلَعِ قُطْرٍ او کله چي د یو علاقې په مطلع کي (میاشته) ثابته سي لَزِمَ سَائِرَ النَّاسِ فِيْ ظَاهِرِ الْمَذْهَبِ نو پر ټولو خلکو لازمیږي. د ظاهر مذهب مطابق وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى وَأَكْثَرُ الْمَشَائِخِ او پر همدې فتوی ده او (پر همدې) زیاتره مشایخ دي.

**لغات**: ﴿مطلع﴾ (د سپوږمۍ او لمر) د راختلو ځای. مکان الطلوع. جمع: مطالع ﴿قُطْرٍ﴾ د دې لفظ څو معناوي نقل سوي دي: ناحیه، طرف، علاقه (په اکثره اُردو شروحاتو کي یې د علاقې اسیمي اعنی سوې ده). اقلیم (یعني د مختلفو ښارونو او آبادیو مجموعه کوم چي په خاص نوم سره مشهوره وي). قیل القطر لجملة من البلاد والنواحي تتمیّز باسمٍ خاصٍ. جمع: أقطار. (معجم الوسيط معجم لغة الفقهاء)

**تشریح**: په دې عبارت کي د اختلاف مطالع بیان دی. نو تاسي اختلاف مطالع او د هغه حکم وپېژنئ! مَطَالِع جمع د مَطْلَع ده چي د هغه معنیٰ ده: د راختلو ځای. څرنګه چي ځمکه (دنیا) ګردې ده. نو ځکه سپوږمۍ او لمر د دنیا په هر طرف کي په جلا، جلا وخت کي راخیږي او پټیږي. اوس پاته سوه دا خبره چي اختلاف مطالع معتبر دی، که نه؟، د معتبر کېدلو مطلب یې دا دی چي په هر طرف او هر ملک کي د هغه ځای لیدلو (رؤیت) لره اعتبار دی او د یوه طرف او ملک لیدل (رؤیت) د بل ځای لپاره معتبر او کافي نه دي، او د اختلاف مطالع د نه معتبر کېدلو مطلب دا دی چي ټوله دنیا یو مطلع ده، نو په کوم طرف او ځای کي چي هم میاشته (سپوږمۍ) ولیدل سي. نو هغه به هر ځای منل کیږي یعني چیري چي په معتبره ذریعه سره د میاشتي لیدلو خبر ورسیږي. هلته به منل کیږي (د مثال په توګه که اختلاف مطالع معتبر نه ومنل سي. نو بیا مثلاً په سعودي کي که د رمضان میاشته ولیدل سوه او بیا دا خبر ټولي دنیا ته د ټیلیفون، معتبر ټلویژون او داسي نورو په ذریعه ورسېدی. نو ټوله دنیا به یې روژه کوي). پخوا راجح قول دا وو چي اختلاف مطالع معتبر نه دی خو صرف بعضي حضراتو هغه معتبر ګڼلو مثلاً په احنافو کي امام قدوري او امام زیلعي او بعضي شوافعو او داسي نورو. لیکن په څلور سره فقهو کي فتویٰ پر همدې خبره وه چي اختلاف مطالع معتبر نه دی بلکي د یوه ځای د میاشتي د لیدلو اطلاع چي په معتبره ذریعه هر ځای ورسیږي. د هغه منل او د هغه مطابق عمل کول ضروري دي. لکه څرنګه چي مصنف رَحِمَهُ الله په عبارت کي همدا خبره بیان کړې ده. لیکن کله چي په دې آخر وخت کي د خبر ذرائع (رسنۍ) پراخه سول چي اوس په دوو. درېو دقیقو کي د دنیا د یوه کونج خبر بل کونج ته رسیږي او په ورځ. دوو ورځو کي انسان پر ټوله ځمکه را ګرځېدلای سي نو به دې آخر کي

د علماؤ فتوئ بدله سوه، که څه هم بعضي حضرات اوس هم د پخواني رايې قائل دي چي اختلاف مطالع معتبر نه دی، خو په دې زمانه کي د نهه نيوي فيصده (۹۹٪) علماؤ رايه دا ده چي اوس په ممالک بعيده (ليري سره پراته هيوادو) کي اختلاف مطالع معتبر دی (يعني که په يوه ملک کي مثلاً داختر مياشته وليدل سوه لېکن له هغه ځخه په ليري ملک کي مياشته نه وليدل سوه نو په دې ليري ملک کي نه سي اختر کېدلای) خو په ممالک قريبه کي اختلاف مطالع معتبر دی، اوس د ممالک بعيده او ممالک قريبه تر مينځ فرق څه دی؟، نو په آسانه وينا د دوی تر مينځ فرق دا دی چي د کومو ملکونو او ځايونو د مياشتي تاريخ چي همېشه يا اکثره يو شول وي (يعني چي په ټولو کي د مياشتي ليدلو تاريخ او شپه يوه وي) نو داسي ځايونه ممالک قريبه دي، لکه سعودي او افغانستان يو د بل سره ممالک قريبه دي، او پاکستان، هندوستان او بنګله ديش يو د بل سره ممالک قريبه دي، او د کومو ملکونو او ځايونو تاريخونه چي همېشه يا اکثره يو د بل سره مختلف وي، لکه پاکستان او هندوستان د سعودي سره، نو داسي ځايونه ممالک بعيده دي، نو په دې اعتبار سره د افغانستان رؤيت د پاکستان او هندوستان لپاره معتبر نه دی او د پاکستان رؤيت د هندوستان لپاره معتبر او کافي دی (ځکه چي دوی ممالک قريبه دي). (تحفة الالمعي ج:۲. ص:۶۳. الدر المنضود ج:۴. ص:۱۸۴. ايضاح المسائل ص:۷۹ بحوالۀ انوار الايضاح)

(او صاحب د شفاء الارواح د ممالک بعيده او ممالک قريبه تر مينځ فرق داسي بيان کړی دی چي کوم ملکونه چي دومره سره ليري وي چي که په دوی کي اختلاف مطالع معتبر نه ومنل سي نو د دوی تر مينځ دوې ورځي فرق راځي؛ ځکه په بعضي ملکو کي د مياشتي رؤيت اکثره له نورو ملکونو ځخه يوه. دوې ورځي مخکي هم واقع کيږي نو دا ممالک بعيده دي او اختلاف مطالع پکښي معتبر دی؛ ځکه مثلاً که په داسي ليري ملکو کي هم اختلاف مطالع معتبر نه ومنل سي، نو په يوه ملک کي به مياشته پوره دېرش ورځي سي او په دې بل ليري ملک کي به اته ويشت (۲۸) ورځي سي. چي په شريعت کي د دې هيڅ نظير نسته (بحوالۀ عمدة الفقه و درس ترمذی))



## د "ثمرة النجاح" تشريح

صاحب د ثمرة النجاح (مولانا ثمير الدين قاسمي حفظه الله) د مذکوره عبارت تشريح په لاندي توګه کړې ده (کوم چي د نورو شروحو له تشريحاتو ځخه څه مختلفه ده):

وإذا ثبت في مطلع قطر إلخ: که د يو ملک (هيواد) په يوه ښار کي په شرعي دلائلو سره مياشته ثابته سي، نو په ټوله ملک کي د مياشتي منل ضروري دي؛ د دې لپاره چي په همدې يوه ملک کي دوه اخترونه يا دوه رمضانونه واقع نه سي؛ ځکه دا اجتماعي شيان دي (چي ټوله خلک به يې پر يوه ځای قائموي). مثلاً که د هندوستان په يوه ښار مثلاً په "دهلي" کي مياشته ثابته سي، نو په ټوله هندوستان کي همدا تاريخ کېدل پکار دي. لېکن پاکستان جلا ملک دی؛ نو ځکه هلته به دا (رؤيت)

نه نافذیږي، هغوی به خپل رؤیت کوي، یا به نافذیږي، یا به هغوی دا یقین حاصلوي چې د هندوستان رؤیت صحیح دی او پر هغه به خپله فیصله صادروي، یا به نافذیږي. لېکن شرط دا دی چې صحیح رؤیت وي، د درواغو ګواهي نه وي، اوس زمانه په ټوله نړۍ کې صورت حال دا دی چې له ټولو قرائنو څخه معلومه سي چې میاشته پر آسمان نسته (یعني په قرائنو سره دا څرګنده سي چې تر اوسه میاشته د لمره ده. په وجو کې راغلې نه ده)، لېکن دوې درواغجنې ګواهي پېشي کړي او په هغه سره میاشته ثابته کړي. دې میاشتې لره هیڅ اعتبار نسته. (ثمرة النجاح شرح اردو نور الایضاح، ج: ۲، ص: ۱۹۰)

## د ورځې د میاشتې لیدلو حکم

﴿۱۰۵۱﴾ وَلَا عِبْرَةَ بِرُؤْيَةِ الْهِلَالِ نَهَارًا او اعتبار نسته په ورځ کې د میاشتې لیدلو لره (یعني د ورځې میاشته لیدل معتبر نه دي) سَوَاءٌ كَانَ قَبْلَ الزَّوَالِ أَوْ بَعْدَهُ برابره ده تر زوال مخکې وي او که تر هغه وروسته وي وَهُوَ اللَّيْلَةُ الْمُسْتَقْبِلَةُ فِي الْمُخْتَارِ او دا (لیدل سوې میاشته) د راتلونکې شپې ده، د مختار روایت مطابق.

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چې که مثلاً د اختر میاشته قبل الزوال ولیدل سي او که بعد الزوال، په دواړو صورتونو کې د دې ورځې په حق کې دا رؤیت معتبر نه دی او په دواړو صورتونو کې روژه ماتول صحیح نه دي او د ماتولو په صورت کې قضاء او کفاره پر هغه واجب دي، برابره ده قبل الزوال یې ماته کړي او که بعد الزوال، په هر حال کې ممنوع دي او دا میاشته به د را رواني شپې میاشته شمېرل کیږي، دا د طرفینو (امام صاحب او امام محمد) رَحِمَهُمَا الله قول دی، همدا مختار او مفتیٰ به قول دی. (انوار الایضاح)



# بَابُ مَا لَايُفْسِدُ الصَّوْمَ

(دا) باب د هغو شیانو (په بیان کي) دی کوم چي روژه نه فاسدوي (نه ماتوي)

## په هېره خوراک، چښاک یا جماع کول

﴿۱۰۵۲﴾ وَهُوَ أَرْبَعَةٌ وَعِشْرُوْنَ شَيْئًا او هغه څلورویشت (۲۴) شیان دي (تقریبا) مَا لَوْ أَكَلَ أَوْ شَرِبَ أَوْ جَامَعَ نَاسِيًا (۱) څه شی که په هېره وخوري (۲) یا وڅښي (۳) یا جماع (کور والی) وکړي.

﴿۱۰۵۳﴾ وَإِنْ كَانَ لِلنَّاسِيْ قُدْرَةٌ عَلَى الصَّوْمِ او که هېرېدونکي (په هېره خوراک یا چښاک کونکي) لره په روژه باندي قدرت وي (یعني په هغه کي د روژه نیولو طاقت وي) يُذَكِّرُهُ بِهِ مَنْ رَآهُ يَأْكُلُ نو ور په یادوي به یې هغه کس کوم چي دئ ویني چي خوراک کوي (یعني کوم څوک چي دئ پر خوراک کولو ویني. هغه به خپل روژه ور په یادوي چي ستا روژه ده!) وَكُرِهَ عَدَمُ تَذْكِيْرِهٖ او نه ور یادول یې مکروه دي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهٗ قُوَّةٌ او که چیري ده لره (په روژه باندي) طاقت نه وي فَالْأَوْلٰى عَدَمُ تَذْكِيْرِهٖ نو بیا یې نه ور یادول زیات بنه دي.

**لغات**: ﴿جَامَعَ﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده، مصدر: مُجَامَعَةٌ وجِمَاعًا: جماع کول، کوروالی کول.

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چي که روژتي په هېره خوراک یا چښاک یا جماع وکړي، نو په دې سره روژه نه ماتیږي او دا حکم هغه وخت دی کله چي د روژې یادېدلو په وخت کي سمدستي خوراک، چښاک او جماع پرېږدي یعني گوله سمدستي له خولې څخه وغورځوي. له جماع څخه سمدستي جلا سي. لېکن که تر یادېدلو وروسته گوله تیره کړي. یا له جماع څخه جلا نه سي، نو روژه یې فاسدیږي. بیا د گولې تېرولو په صورت کي قضاء سته او د کفارې په وجوب کي اختلاف دی. او د جماع په صورت کي قضاء لازم ده او د ظاهر روایت مطابق کفاره لازم نه ده

وإن كان للناسي إلخ: كه يو روژتي په هېره خوراک يا څښاک كوي او بل څوک هغه ويني او ليدونكي ته دا اندازه ولګېږي چي دا روژتي قدرت او طاقت لري او په آساني سره خپل روژه پوره كولا سي، نو په داسي صورت كي هغه ته خبر وركول ضروري دي او خبر نه وركول يې مكروه تحريمي دي. خو كه دا روژتي داسي وي چي په روژه نيولو سره هغه ته د ضعف رسېدلو خطره وي او د ليدونكي ګومان دا وي چي هغه په آساني سره دا روژه نه سي پوره كولای (مثلاً ډېر بوډا كس وي)، نو په داسي صورت كي يې خبر نه وركول ښه دي (او علامي زيلعي رحمه الله دې تعبير داسي كړی دی چي كه په هېره خوراک يا څښاک كونكی كس ځوان وي، نو خبر وركول ضروري دي او كه بوډا وي، نو خبر نه وركول ښه دي). (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

## په نظر كولو سره انزال،دل، روغن لګول، په سترګو كي دواء اچول

﴿١٠٥٤﴾ أَوْ أَنْزَلَ بِنَظَرٍ أَوْ فِكْرٍ (۴) يا انزال سي په كتلو سره (۵) يا په خيال كولو سره (سوچ وهلو سره) وَإِنْ أَدَامَ النَّظَرَ وَالْفِكْرَ كه څه هم مسلسل كتل يا خيال كوي (يعني كه څه هم په مسلسل ډېرا كتلو يا ډېرا خيال كولو سره انزال سي، بيا يې هم روژه نه فاسديږي).

﴿١٠٥٥﴾ أَوِ ادَّهَنَ (۶) يا تېل (روغن) ولګوي.

﴿١٠٥٦﴾ أَوِ اكْتَحَلَ (۷) يا رانجه ولګوي (سترګي توري كړي) وَلَوْ وَجَدَ طَعْمَهُ فِيْ حَلْقِهِ كه څهٔ هم د هغه خوند په خپل حلق كي وموندی (محسوس كړی).

**لغات**: ﴿ادّهن﴾ د افتعال د باب ماضي ده: روغن (تېل) لګول (ځان په غوړول)، په اصل كي إِدْدَهَنَ وو. د يوه جنس دوه حروفه په يوه كلمه كي سره جمع سوه، له هغوی څخه اول ساكن وو. نو يو يې په بل كي مدغم كړی. إِدَّهَنَ سو، ﴿اكتحل﴾ د افتعال د باب ماضي ده: رانجه لګول، سرګي تورول. ﴿طعم﴾ خوند. لذت. مزه.

**تشريح**. صورت د مسئلې دا دی چي كه د روژې په حالت كي نابېره د روژتي نظر پر يوه ښايسته ښځه پرېوځي او د كمزورۍ په وجه انزال سي، يا مثلاً د خپلي ښځي شرمګاه ته وګوري او انزال سي. يا د يو ښځي په باره كي خيال او فكر وكړي او انزال سي، نو په دې سره د هغه روژه نه فاسديږي (نه ماتيږي)، كه څه هم په دې فكر كي يې ډېر وخت لګولی وي، او د نامحرمه ښځي وطرف ته بار. بار كتل حرام دي، لېكن په دې حُرمت سره د روژې فاسدېدل نه لازميږي، او كه انزال نه سي، نو په درجهٔ اولیٰ روژه نه فاسديږي.

أو دَهن: پر بدن يا په سر او ورېښتانو باندې د تېلو او روغنو په لګولو سره هم روژه نه فاسدېږي، که څه هم هغه خوشبوداره وي.

أو اکتحل إلخ: همدارګه په رانجه لګولو (سترګو تورولو) سره روژه نه فاسدېږي، که څه هم د رانجو اثر يعني خوند په حلق (ستوني) کې محسوس سي، يا د رانجو د تور والي اثر په ناړو (لاړو) کې وليدل سي. همدارنګه په سترګو کې په دواء اچولو سره هم روژه نه فاسدېږي، که څه هم د هغه خوند په حلق کې محسوس سي. (عمدة الفقه)

## د روژې په حالت کې ښکر لګول، غيبت کول، د روژې ماتولو اراده کول، د يوشي دود يا ګرز يا مچ يا د دواء اثر ستوني ته ننوتل او محسوسول

﴿۱۰۵۷﴾ أَوِاحْتَجَمَ (۸) يا ښکر ولګوي.

﴿۱۰۵۸﴾ أَوِ اغْتَابَ (۹) يا غيبت وکړي.

﴿۱۰۵۹﴾ أَوْ نَوَى الْفِطْرَ وَلَمْ يُفْطِرْ (۱۰) يا (صرف) د افطار (روژې ماتولو) اراده وکړي او افطار نه وکړي.

﴿۱۰۶۰﴾ أَوْ دَخَلَ حَلْقَهُ دُخَانٌ بِلَا صُنْعِهِ (۱۱) يا د هغه حلق ته بغير د هغه له فعل (کړنې) څخه دود داخل سي.

﴿۱۰۶۱﴾ أَوْغُبَارٌ وَلَوْغُبَارَ الطَّاحُوْنِ (۱۲) يا ګرز (ور داخل سي) که څه هم د ژرندې ګرز وي.

﴿۱۰۶۲﴾ أَوْ ذُبَابٌ (۱۳) يا مچ (په حلق کې داخل سي).

﴿۱۰۶۳﴾ أَوْ أَثَرُ طَعْمِ الْأَدْوِيَةِ فِيْهِ وَهُوَ ذَاکِرٌ لِصَوْمِهِ (۱۴) يا د دوا ګانو د خوند اثر په حلق کې (داخل سي) په داسې حال کې چې هغه ته خپل روژه ياده وي.

**لغات**: ﴿احتجم﴾ د افتعال د باب ماضي ده: ښکر لګول. د ښکر يا د يو بلې آلې په ذريعه خرابه وينه کښل. ﴿اغتاب﴾ د افتعال د باب ماضي ده: غيبت کول.

**تشريح**: صورت د مسئلې دا دی چې د روژې په حالت کې په ښکر لګولو (وينه کښلو) سره روژه نه فاسدېږي. او که په ښکر لګولو سره د روژتي د کمزوري کېدلو خطره وي چې د روژې طاقت به پکښې پاته نه سي، نو بيا ښکر لګول (وينه کښل) مکروه دي.

أو اغتاب: د غیبت معنیٰ ده: په مسلمان پسې شاته (د هغه په پټه) داسې خبره کول چې که هغه یې واوري، نو بده به یې وګڼي او ناراضه به سي، (که چیرې دا خبره په هغه مسلمان کې وي. او که نه وي نو دا خو بیا بهتان دی). مسئله دا ده چې د یو چا په غیبت کولو سره هم روژه نه فاسدیږي، خو دا د کمال صوم منافي دي او مکروه فعل دی او په دې سره ګنهګاره کیږي (ځکه غیبت ستره ګناه ده. خصوصاً د روژې په حالت کې).

أو نوى الفطر إلخ: یعني که یو څوک صرف د روژې ماتولو نیت او اراده وکړي او له نیت څخه بغیر بل څه روژه ماتونکی شی له هغه څخه واقع نه سي، نو صرف په نیت او اراده سره روژه نه ماتیږي. ها! که یو چا د روژې ماتولو پخه اراده کړې وي، نو که څه هم روژه خو یې نه ماتیږي. لیکن ګنهګاره کیږي. (مراقي الفلاح)

أو دخل حلقه إلخ: یعني که د روژتي حلق (ستوني) ته بغیر د هغه له قصد او ارادې څخه د یو شي دود ننوځي، یا د یو شي ګرز (غبار) او داسې بل شی د هغه حلق ته ننوځي او تېر سي. نو په دې سره هم روژه نه ماتیږي، برابره ده د هغه خپل روژه په یاده وي او که نه وي، او دا حکم هغه وخت دی کله چې د روژتي له فعل او قصد څخه بغیر خودبخوده حلق ته داخل سي او که روژه یې په یاده وي او په خپل فعل او قصد سره هغه له دې شیانو څخه یو شی حلق ته ننه کړي مثلاً سګرېټ یا بیړی وڅکوي. یا مثلاً یو خوشبوداره بوټي (یا کوربتي وغیره) ولګوي او د هغه دود قصداً په پزه کش کړي .نو د هغه روژه فاسدیږي. (شفاء الارواح)

أو ذباب إلخ: همدارګه که مچ بېله قصده د روژتي ستوني ته ننوځي او نس ته یې ورسیږي. نو په دې سره هم د هغه روژه نه ماتیږي.

أو أثر طعم إلخ: د دې صورت دا دی چې که یو څوک د روژې په حالت کې یو درمل او دواء وکوټي او د هغه اثر (خوند) په حلق کې محسوس کړي، نو که څه هم هغه ته خپل روژه په یاده وي، نو بیا هم په دې سره روژه نه فاسدیږي، همدارنګه د خوشبویې په بوییولو سره هم روژه نه ماتیږي.

د روژې په حالت کې جنب کېدل، د ذکر (یا فرج) په سوري کې یو شی اچول، په غوږ او به ننوتل

﴿۱۰۶۳﴾ أَوْ أَصْبَحَ جُنُبًا (۱۵) یا د جنابت په حالت کې سهار کړي وَلَوِاسْتَمَرَّ يَوْمًا بِالْجَنَابَةِ که څه هم توله ورځ په جنابت کې تېره کړي.

﴿۱۰۶۵﴾ أَوْ صَبَّ فِي إِحْلِيلِهِ مَاءً أَوْ دُهْنًا (۱۶) یا وڅڅوي د خپل ذکر په سوري کې اوبه (۱۷) یا تیل (پکښې وڅڅوي).

﴿۱۰۶۶﴾ أَوْ خَاضَ نَهْرًا فَدَخَلَ الْمَاءُ أُذُنَهُ (۱۸) یا غوټه ووهي په واله (ویاله) کي نو د هغه غوږ ته اوبه ننوځي.

**لغات:** ﴿صبّ﴾ د نصر د باب ماضي ده: بیول (بهول)، اوبه اچول. ﴿إحليل﴾ د متیازو د وتلو سوری: جمع: أَحَالِيْل. ﴿خاض﴾ د نصر د باب ماضي ده، خَوْضًا، د دې باب له معناوو څخه یو معنیٰ ده: په اوبو ننوتل او پکښي تلل یا په بله ویناغوټه پکښي وهل.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چي که څوک د شپې جنب سي (هغه که د ښځي سره د جماع کولو په وجه وي او که د احتلام په وجه وي) او هغه روژه ونیسي او تر صبح صادق وروسته غسل وکړي، نو دا صحیح دي او په دې جنابت سره روژه نه ماتیږي که څه هم ټوله ورځ د جنابت په حالت کي باندي تیره سي، ځکه جنابت د روژې منافي نه دی، لیکن بېله عذره قصداً غسل ځنډول مکروه دي، او که د روژې په حالت کي احتلام سي (یعني په خوب کي یې شیطان خطا باسي)، نو هم یې روژه نه ماتیږي. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

أو صبّ إلخ: که روژتي د خپل ذَکَر په سوري کي اوبه، تېل یا دواء یا داسي بل شی واچوي، نو په دې سره صحفه روژه نه ماتیږي (په دې شرط چي د هغه مثانې ته نه ورسیږي [هندية ج:۱، ص:۲۰۴])، او که ښځه داسي وکړي، نو سملستي د هغې روژه ماتیږي. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

**مسئله:** که د مرض د تشخیص یا د حمل د اندازې کتلو لپاره ښځه ډاکتره د یو ښځي شرمګاه (فرج) ته لاس ننه کړي، نو د دې دوه صورتونه دي: ① که لاس بالکل وچ وي چي پر هغه د اوبو یا دواء څه اثر نه وي، نو روژه یې نه ماتیږي، ② او که لوند لاس یا په دواء یا داسي بل څه ککړ لاس ور ننه کړي، نو روژه یې ماتیږي. (عالمګیري ج:۱، ص:۲۰۴)

أو خاض إلخ: که روژتي په واله (ویاله) یا داسي بل شي کي غوټه ووهي او د هغه په غوږ اوبه ننوځي، نو روژه یې نه ماتیږي. لیکن که څوک (قصداً) په غوږ کي اوبه واچوي، نو د یوه قول مطابق روژه یې ماتیږي. لهذا احتیاط ضروري دی. (انوار الایضاح بحوالهٔ طحطاوي)

**د روژې په حالت کي غوږ ګرول... او ګروبی (خراشکي) یا د خولې اوبه تېرول**

﴿۱۰۶۷﴾ أَوْ حَكَّ أُذُنَهُ بِعُوْدٍ فَخَرَجَ عَلَيْهِ دَرَنٌ (۱۹) یا خپل غوږ په یو لرګي (چخله) سره وګروي نو پر هغه (د غوږ) خیره را ووځي ثُمَّ أَدْخَلَهُ مِرَارًا إِلَى أُذُنِهِ بیا هغه لرګی بیا، بیا په خپل غوږ ننه کړي.

﴿۱۰۶۸﴾ أَوْ دَخَلَ أَنْفَهُ مُخَاطٌ (۲۰) یا ده پزي ته ګرنګ راسي فَاسْتَنْشَقَهُ عَمْدًا أَوِ ابْتَلَعَهُ نو دې هغه قصداً (دخولې استونې اخواته) کش کړي، یا یې تېر کړي وَيَنْبَغِي إِلْقَاءُ النُّخَامَةِ او مناسب ده د ګروبې بهر غورځول (ټوکل) حَتَّى لَا يَفْسُدَ صَوْمُهُ عَلَى قَوْلِ الْإِمَامِ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ د دې لپاره چې د ده روژه فاسده (ماته) نه سي د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قول مطابق.

**لغات:** ﴿حَكَّ﴾ د نصر د باب ماضي ده: ګرول، مږل. ﴿مخاط﴾ ګرنګ، د پزي بلغمي ماده. ﴿استنشق﴾ په پزي کشول (په پزه کي خېژول). ﴿ابتلع﴾ د افتعال د باب ماضي ده. په مجرد و کي د فتح له بابه راځي، بَلَعَ يَبْلَعُ بَلْعًا: تېرول. ﴿النخامة﴾ ګروبي (ګرروبي). له سینې یا خیشوم څخه راوتلي بلغم (خراشکي).

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چي که څوک د روژې په حالت کي د خپل غوږ دننه حصه په لرګي (چخلي) یا داسي بل شي سره وګروي او د غوږ دننه خیره را وباسي بیا دا لرګی (چغله) بار. بار په غوږ دننه کړي (لکه عموماً چي یې خلک کوي)، نو په دې سره هم روژه نه فاسدیږي.

أو دخل أنفه إلخ: د دې حاصل دا دی چي که څوک د روژې په حالت کي ګروبی وغیره تېر کړي، یا یې قصداً لوړ کش کړي، نو په دې سره هم روژه نه ماتیږي، وروسته مصنف رَحِمَهُ الله فرمایي چي مناسب دا ده چي د تېرولو پر ځای ګروبی وغیره وتوکل سي (وغورځول سي). د دې لپاره چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله له اختلاف څخه ووځي؛ ځکه د هغه په نېز د دې شیانو په تېرولو سره روژه ماتیږي. او د امامانو د اختلاف پر موقع د خپل وس مطابق د دوی د مذهب رعایت کول مستحب دي. د دې لپاره چي روژه بالاتفاق د ټولو په نېز صحیح پاته سي. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)



**مسئله:** له خولې څخه پیدا سوې لونډوالی او ناړي (لاړي) تېرول هم د روژه ماتونکي نه دي، همدارنګه کله چي هغه له خولې څخه را ووځي لیکن تر اوسه لاندي ځځېدلي او جلا سوي نه وي چي بیرته یې د خولې وطرف ته کش کړي، نو په دې سره هم روژه نه ماتیږي، او که لاندي وڅڅېږي بیا یې تېري کړي، نو روژه ماتیږي. (مراقي الفلاح بتغير)

## د روژې په حالت کې قی وهل

﴿۱۰۶۹﴾ أَوْ ذَرَعَهُ الْقَيْءُ وَعَادَ بِغَيْرِ صُنْعِهِ (۲۱) او یا ده ته خپله قی راسي او بیرته دده له فعل څخه بغیر خپله واپس (تېر) سي (نو روژه یې نه فاسدیږي) وَلَوْ مَلَأَ فَاهُ که څه هم د ده خوله ډکه کړي (یعني که څه هم دا قی په ډکه خوله وي) فِي الصَّحِيحِ په صحیح قول کې أَوِ اسْتَقَاءَ أَقَلَّ مِنْ مِلْءِ فِيهِ (۲) یا قصداً قی ووهي له ډکې خولې څخه کم (نو هم یې روژه نه فاسدیږي) عَلَى الصَّحِيحِ د صحیح قول مطابق وَلَوْ أَعَادَهُ که څه هم بیرته یې واپس (تېر) کړي فِي الصَّحِيحِ په صحیح قول کې.

**لغات:** ﴿ذرعه﴾ قی غالبه کېدل او خولې ته راتلل (بې اختیاره قی راتلل)، خواګرځې کېدل. ﴿صنع﴾ کوښښ، کار (فعل). ﴿استقاء﴾ د استفعال د باب ماضي ده: د قي طلب کول، یعني قصداً قی وهل. ﴿ملء فیه﴾ په ډکه خوله. فِيْهِ دلته د فَمٌ د جرّ حالت دی او د ه ضمیر روژتي ته راجع دی.

**تشریح:** په دې عبارت کې مصنف رَحِمَهُ الله د روژې په حالت کې د قي وهلو حکم بیانوي، مسئله دا ده چې که خود بخوده (بلا قصده) قی راسي او بیا خپله وګرځي او تر ستوني تېر سي، نو برابره ده هغه په ډکه خوله وي او که کم وي، په داسې صورت کې د هغه روژه د صحیح قول مطابق نه فاسدیږي.

أو استقاء إلخ: یعني که قصد له ډکې خولې څخه کم قی ووهي، نو په دې صورت کې هم روژه نه فاسدیږي، که څه هم قصداً یې بیرته وګرځوي او تېر یې کړي د صحیح قول مطابق، دا حکم د امام ابویوسف رَحِمَهُ الله په نېز دی. لیکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز که قصداً له ډکې خولې څخه کم قی ووهي. نو روژه یې فاسدیږي، همدارنګه که قی قصداً تېر کړي، نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز یې روژه فاسدیږي. برابره ده قی لږ وي او که ډېر. (شفاء الاواح)

**فایده:** صاحب د البحر الرائق علامه ابن نجیم رَحِمَهُ الله په "البحر الرائق" کې دوولس (۱۲) صورتونه بیان کړي دي چې تفصیل یې دا دی چې قی به یا خپله راغلې وي یا قصداً به وهل سوی وي. په دواړو صورتونو کې به په ډکه خوله وي یا به نه وي، بیا له دوی څخه په هر صورت کې به دا قی بهر وتلې وي یا خپله به تېر سوی وي یا قصداً به یې تېر کړی وي، نو دا ټوله دوولس (۱۲) صورتونه

جوړیږي، صاحب د البحر الرائق رَحِمَهُ الله فرمایي چې له دې ټولو څخه صرف په دوو صورتونو کې روژه ماتیږي: یو دا چې په ډکه خوله وي او روژتي قصداً هغه بیرته تېر کړي وي. دویم دا چې قصداً په ډکه خوله یې قی وهلی وي، له دې دوو څخه بغیر په بل صورت کې روژه نه فاسدیږي. (طحطاوي، درس ترمذی)

## له نخود څخه د کم مقدار حکم

﴿۱۰۷۰﴾ أَوْ أَكَلَ مَا بَيْنَ أَسْنَانِهِ وَكَانَ دُوْنَ الْحِمَّصَةِ (۲۳) یا وخوري هغه څه (د خوراک ذره) کوم چې د غاښو په مینځ کې (پاته) وي او هغه له نخود څخه کم وي (نو هم یې روژه نه فاسدیږي).

﴿۱۰۷۱﴾ أَوْ مَضَغَ مِثْلَ سِمْسِمَةٍ مِنْ خَارِجٍ فَمِهِ حَتّٰى تَلَاشَتْ (۲۴) یا وژووي دیوې کونجتي غوندي شی (کوم چې یې) له بهر څخه د خولې (وخولې ته ننه کړی وي) تر دې چې (په خوله کې) سره ختم سي وَلَمْ يَجِدْ لَهَا طَعْمًا فِيْ حَلْقِهِ او نه وموندي د هغه خوند په خپل حلق کې (یعني په ستوني کې یې خوند محسوس نه کړي).

**لغات:** ﴿الحِمَّصَة﴾ او الحِمِّصَة د "مُشدّد میم" په فتحه او کسره سره: یو نخود. ﴿مضغ﴾ د فتح د باب ماضي ده: ژوول. ﴿سمسمة﴾ یوه کونجته. ﴿تلاشت﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: لا شی کېدل، بالکل ختمېدل.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چې که د روژتي په غاښو کې د غوښو یو ریښه یا دیو بل خوراک ذره بنده وي او روژتي هغه ریښه یا ذره په ژبه سره وښوروي او په خوله کې یې وژووي او تېره یې کړي، نو ریښه او ذره که د نخود تر مقدار کمه وي، نو روژه نه فاسدیږي، "دون الحمصة" یعني تر نخود کم (کوچنی)، لهذا که د نخود تر مقدار زیات شی وي، نو روژه فاسدیږي، همدارنګه د نخود تر مقدار کم شی که یو وار له خولې څخه را وباسي، بیا یې بیرته تېر کړي، نو هم روژه فاسدیږي.

أو مضغ مثل إلخ: همدارنګه که روژتي کونجته یا د کونجتي په څېر بل کوچنی شی خولې ته واچوي او ویې ژوبي تر دې چې په خوله کې سره ختم (سره ولاړ) او ورک سي یعني په غاښونو، وریو او ژبه کې ومښلي او هلته سره ختم سي او د هغه خوند په حلق کې محسوس نه سي، نو په دې سره هم روژه نه فاسدیږي (ځکه چې د ژوولو په وجه د کونجتي دانه بالکل ختمه سوه او تر معدې پورې نه ورسېده)، او که د هغه خوند په حلق کې محسوس سي یا روژتي دا شی تېر کړي، نو روژه فاسدیږي، ځکه مصنف رَحِمَهُ الله "أو مَضَغَ" ویلي دي. لهذا که خولې ته یې واچوي او له ژوولو څخه بغیر یې تېر کړي، نو هم روژه فاسدیږي. (عمدة الفقه، طحطاوي)



# بَابُ مَا يَفْسُدُ بِهِ الصَّوْمُ وَتَجِبُ بِهِ الْكَفَّارَةُ مَعَ الْقَضَاءِ

دا باب د هغو شیانو (په بیان کې) دی چې په هغوی سره روژه فاسدیږي (ماتیږي) او د هغوی په وجه قضاء د کفارې سره واجبیږي

## د کومو شیانو په جه قضاء او کفاره دواړه واجبیږي؟

﴿۱۰۷۲﴾ وَهُوَ اثْنَانِ وَعِشْرُونَ شَيْئًا او هغه دوویشت (۲۲) شیان دي (تقریبا) إِذَا فَعَلَ الصَّائِمُ شَيْئًا مِنْهَا طَائِعًا مُتَعَمِّدًا غَيْرَ مُضْطَرٍّ کله چې روژتي (روژه نیونکی) له هغوی څخه یو شی په خپله رضاء قصداً وکړي په داسي حال کي چي غیرِ مجبوره وي (یعني د هغه په کولو باندي مجبوره نه وي) لَزِمَهُ الْقَضَاءُ وَالْكَفَّارَةُ نو پر هغه قضاء او کفاره (دواړه) لازمیږي.

**لغات:** ﴿طَائِعًا﴾ د فاعل صیغه ده: راضي (په خپله رضاء سره)، په خپله خوښه. مختار (په اختیار سره). ﴿متعمدًا﴾ د تفعّل له بابه د فاعل صیغه ده: قصداً کونکی، ﴿مضطر﴾ د افتعال د له بابه د مفعول صیغه ده: مجبور (مجبوره کړی سوی)، محتاج کړی سوی، ﴿کفّارة﴾ (بتشدید الفاء) لغتاً د گناه پټونکې (د گناه محوه کونکې)، اصطلاحاً: داسي تصرّف (یعني غلام آزادول. یا روژې نیول. یا صدقه کول او داسي نور) کوم چي شریعت د معیّني گناه د محوه کېدلو لپاره واجب کړی دی، یا په بله وینا شریعت چي د گناه له سزا څخه د خوندي کېدلو لپاره کوم بدل تجویز کړی دی لکه روژه نیول، یا غلام آزادول، یا مسکینانو ته خوراک ورکول، هغه ته کفّاره وایي.

**تشریح:** په کومو شیانو سره چي روژه ماتیږي، هغه پر دوه قسمه دي: ① یو هغه دي چي د هغوی په وجه صرف قضاء لازمیږي، ② او دویم هغه شیان دي چي د هغوی په وجه قضاء او کفاره دواړه لازمیږي، د روژې د فاسدېدلو (ماتېدلو) په وخت کي خو قضاء په هر صورت کي واجبیږي، او د قضاء سره کفاره په یو څو خاصو صورتونو کي واجبیږي او دا هلته وي چي په هغوی کي د روژه ماتونکي کس فعل عمداً (قصداً) وي او په خپله رضاء سره وي، دیو چا په جبر او اکراه سره نه وي. لهذا که یو څوک د مرض وغیره په وجه. یا د یو چا د جبر او اکراه په وجه مضطرّ او مجبوره سي روژه ماته کړي، نو کفاره نه لازمیږي. مثلاً یو جابر کس روژتي ته ووایي چي که ته دا شی نه وخورې! نو زه تا وژنم یا ستا لاس، غوږ یا داسي نور در پرې کوم. او روژتي هغه وخوري، نو په دې صورت کي صرف قضاء سته، کفاره نسته. (شفاء الارواح)

﴿۱۰۷۳﴾ وَ هِيَ الْجِمَاعُ فِيْ أَحَدِ السَّبِيْلَيْنِ (۱) او هغه جماع كول دي په يوه د دوو لارو (قُبل يا دُبُر) كي عَلَى الْفَاعِلِ وَ الْمَفْعُوْلِ بِهٖ (نو په دې كي كفاره هم واجبيږي) پر فاعل او مفعول (دواړو).

**تشريح:** صورت د مسئلې دا دی چي كه روژتي قصداً جماع وكړي. برابره ده په فرج كي وي كوم چي "محلِ حلال" دی او كه په مقعد كي وي كوم چي "محلِ حرام" دي. نو پر هغه قضاء او كفاره دواړه واجبيږي، برابره ده انزال سي او كه نه سي؛ ځكه د كفارې واجبېدو لپاره صرف ادخال شرط دی. انزال شرط نه دی، او د كوم چا سره چي يې جماع كړې ده يعني مفعول، كه هغه په راضي وي (يعني په خپله خوښه يې جماع ور سره كړې وي)، نو پر هغه هم كفاره واجبيږي. (شفاء الارواح)

﴿۱۰۷۴﴾ وَالْأَكْلُ وَالشُّرْبُ (۲) او خوراك او څښاك كول سَوَاءٌ فِيْهِ مَا يُتَغَذّٰى بِهٖ أَوْ يُتَدَاوٰى بِهٖ برابر دي په دې كي هغه شيان چي په هغوی سره غذا حاصلول كيږي يا په هغوی سره دواء (علاج) كول كيږي.

**لغات:** ﴿يتغذیٰ﴾ د تفعّل له بابه مضارع مجهوله ده: غذا حاصلول. او غذا د خوراك او څښاك هغه شي ته وايي چي د هغه وطرف ته د طبيعت رغبت وي او د نس خواهش په هغه سره پوره كيږي لكه د غنمو ډوډۍ، غوښي، اوبه. ﴿يتداویٰ﴾ د تفاعل له بابه مضارع مجهوله ده: تداوي كول. دواء او علاج كول.

**تشريح:** صورت د مسئلې دا دی چي كه روژتي د غذا يا دواء په توګه يو شی قصداً وخوري يا وڅيښي،نو پر هغه قضاء او كفاره دواړه واجبيږي. له غذا څخه مراد داسي شی دی چي طبيعت د هغه خوړولو ته راغب وي او په هغه سره د نس خواهش پوره كيږي. مثلاً د غنمو. اُوربشو يا داسي نورو ډوډۍ وخوري، يا شيدي او داسي نور وڅيښي، او له دواء څخه مراد داسي شی دی چي په هغه سره د بدن اصلاح او روغتيا كيږي. (شفاء الارواح)

﴿۱۰۷۵﴾ وَابْتِلَاعُ مَطَرٍ دَخَلَ إِلٰى فِيْهِ (۳) او د باران (څاڅكی) تېرول كوم چي د ده خولې ته ننوتلی وي.

**لغات:** ﴿ابتلاع﴾ د افتعال د باب مصدر دی: تېرول (تر ستوني تېرول).

**تشريح:** صورت د مسئلې دا دی چي كه روژتي قصداً خوله خلاصه كړي او د باران قطره يعني څاڅكی تېر كړي. نو قضاء او كفاره دواړه لازميږي، او كه بغير له قصده د باران څاڅكی د هغه خولې

ته ننوځي او تر ستوني تېر سي، نو صرف قضاء سته (واوره او ژلی هم په دغه حکم کي داخل دي). (شفاء الارواح)

﴿١٠٧٦﴾ وَأَكْلُ اللَّحْمِ النَّيِّءِ (۴) او اُومې غوښي خوړل إِلَّا إِذَا دَوَّدَ مګر دا چي غوښي چینجي کړي وي (یعني چي ورستې سوي او چینجي پکښي پیدا سوي وي).

**لغات:** ﴿النيء﴾ اوم، اللحم النئ: اومه غوښه کوم چي په اُور نه وي پخ کړل سوې. ﴿دَوّد﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: چینجي (چینجیان) کول، چینجي پکښي پیدا کېدل.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چي د روژې په حالت کي د اُومو غوښو په خوړلو سره هم قضاء او کفاره دواړه لازمیږي، لېکن که غوښي ورستې سوي وي او چینجي یې کړې وي، نو د هغه په خوړلو سره صرف قضاء واجبیږي، کفاره نه واجبیږي؛ ځکه داسي غوښي له غذائیت څخه وتلي دي، د غذا معنیٰ پکښي نسته، بلکي اوس به هغه بدن ته نقصان رسونکي وي او په هغه سره به د بدن اصلاح نه کیږي. (شفاء الارواح)

﴿١٠٧٧﴾ وَأَكْلُ الشَّحْمِ (۵) او وازګه خوړل (هم قضاء او کفاره دواړه واجبوي) فِي اخْتِيَارِ الْفَقِيهِ أَبِي اللَّيْثِ دفقیه ابو اللیث رَحِمَهُ الله په اختیار کړی سوي قول کي.

﴿١٠٧٨﴾ وَقَدِيدِ اللَّحْمِ بِالِاتِّفَاقِ (۶) او وچي غوښي (خوړل هم قضاء او کفاره دواړه واجبوي) په اتفاق سره.

**لغات:** ﴿الشحم﴾ وازګه (وازده)، ﴿قدید﴾ ټوټه کړل سوې غوښي چي مالګه پرې اچول سوې او وچي کړل سوي وي.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چي که روژتي وازګه (وازده) وخوري، نو د کفارې په لازمېدلو کي اختلاف دی، فقیه ابو اللیث رَحِمَهُ الله فرمایي چي کفاره هم واجبیږي، همدا صحیح او مختار قول دی.

او د وچو غوښو په خوړلو سره بالاتفاق کفاره هم واجبیږي؛ ځکه چي غوښي عادتاً همداسي خوړل کیږي.

﴿١٠٧٩﴾ وَأَكْلُ الْحِنْطَةِ وَقَضْمُهَا (۷) او غنم خوړل (۸) او د هغوی ژوول (په غاښو میده کول) إِلَّا أَنْ يَمْضَغَ قَمْحَةً فَتَتَلَاشَى مګر دا چي یو غنم (یوه دانه) وژووي او هغه (په خوله کي) سره ختم (سره ولاړ) سي.

**لغات:** ﴿حنطة﴾ غنم، جمع: حِنَطٌ، ﴿قضم﴾ مصدر دی، له ضرب او سمع دواړو بابونو څخه راځي: د غاښنو په اطرافو یوشی میده کول (یا په بله ویناژوول)، ﴿یمضغ﴾ د مضارع صیغه ده. له فتح او نصر دواړو بابونو څخه راځي، ژوول، ﴿قمحة﴾ د غنمو یوه دانه، ﴿تلاشت﴾ د تفاعل له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي معلومي صیغه ده: لاشی کېدل، بالکل ختمېدل او ورکېدل.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې که روژتي غنم وخوري یا هغوی په غاښنو سره میده کړي او ویې خوري، نو هم قضاء او کفاره دواړه واجبیږي، لېکن که د غنمو یوه دانه خولې ته واچوي او ویې ژووي، خو هغه کوچنۍ وي او په خوله کې سره ولاړه او ختمه سي (یعني په غاښنو. وریو او ژبه کې ذره، ذره پاته سي) او دننه حلق ته ولاړه نه سي او نه یې خوند په حلق کې محسوس سي، نو په دې صورت کې د هغه روژه نه ماتیږي او قضاء او کفاره نه لازمیږي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

﴿۱۰۸۰﴾ وَابْتِلَاعُ حَبَّةِ حِنْطَةٍ (۹) او د غنمو یوه دانه تېرول وَابْتِلَاعُ حَبَّةِ سِمْسِمَةٍ أَوْ نَحْوِهَا (۱۰) او د کونجتو یوه دانه یا داسي بل شی تېرول مِنْ خَارِجِ فَمِهٖ له بهر څخه د خپلې خولې (یعني چې له دباندي څخه یې خولې ته اچولې وي، د خولې دننه دانه وي چې په خوله کې دننه په غاښنو وغیره کې پاته وي، نو په دې سره هم قضاء او کفاره دواړه لازمیږي) فِي الْمُخْتَارِ د مختار (خوښ سوي) قول مطابق.

**تشریح:** فرمایي که روژتي د غنمو یوه دانه یا یوه کونجته یا داسي بله کوچنۍ دانه تېره کړي یعني له بهر (دباندي) څخه یې خولې ته واچوي او تېره یې کړي، نو مختار او مفتیٰ بهٖ قول دا دی چې په دې صورت کې هم قضاء او کفاره دواړه لازمیږي، که څه هم بعضي حضرات فرمایي چې کفاره نه لازمیږي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

﴿۱۰۸۱﴾ وَأَكْلُ الطِّينِ الْأَرْمَنِيِّ مُطْلَقًا (۱۱) او ارمني خټه (خاوره) خوړل مطلقاً (یعني برابره ده دې خاوري په خوړلو عادت اعادي اوي او که نه وي. په هر صورت کې پر هغه قضاء او کفاره دواړه واجبیږي) وَالطِّينِ غَيْرِ الْأَرْمَنِيِّ كَالطَّفَلِ (۱۲) او له ارمني څخه بغیر بله خټه (خوړل) لکه طفل خټه إِنِ اعْتَادَ أَكْلَهٗ (په دې شرط) که د هغه په خوړلو عادت وي.

**لغات:** ﴿الطين الأرمني﴾ دا یو ډول سره خاوره ده کوم چې په گل ارمني سره هم یادیږي، او دا په هغه تبه کې ډېره فایده کوي کوم چې د وبا او طاعون په ورځو کې پیدا سي (شفاء الارواح)، ﴿اعتاد﴾ د

افتعال د باب ماضي ده: (په یو شي) عادت کېدل، عادي کېدل. ﴿الطِّـفْل﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه یوه معنیٰ ده: "یو ډول کلکه ژړه خټه" صاحب د معجم یې داسي تعریف کړی دی "طين اصفر يتجمد على هَيْئَة رقائق بتأثير ضغط مَا فَوْقه من صخور وتصبغ بِهِ الثِّيَاب" (یعني یو ډول کلکه ژړه خټه ده د پاڼو په څېر کوم چي د لوړو ډبرو او پرښو د تأثیر او بوج په وجه کلکه سوې وي او په هغه سره جامې رنګول کیږي)، او په پښتو کي یې بعضو د دې معنیٰ کړې ده "د خړو اوبو کړک".

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چي که روژتي یو داسي خاوره او خټه وخوري کوم چي د درمل او دواء په توګه خوړل کیږي مثلاً "ارمني خاوره"، نو پر هغه هم کفاه واجبیږي. برابره ده هغه د دې خاوري په خوړلو عادت وي او که نه وي؛ ځکه چي دا د دواء په توګه خوړل کیږي. او له "ارمني خاوري" څخه بغیر بله خاوره هغه وخت د کفارې موجب ګرځي کله چي خوړونکی کس په هغه عادت (عادي) وي. کنې کفاره نه بلکي صرف قضاء واجبیږي، یعني د بې فایدې خاوري په خوړلو سره صرف قضاء واجبیږي. (شفاء الارواح)

﴿۱۰۸۲﴾ وَالْمِلْحِ الْقَلِيْلِ فِي الْمُخْتَارِ (۱۳) او لږ مالګه (خوړل) د مختار قول مطابق.

**لغات:** ﴿ملح﴾ مالګه، جمع: أملاح.

**تشریح:** فرمایي چي که روژتي لږ غوندي مالګه وخوي. نو قضاء او کفاره دواړه واجبیږي؛ ځکه زیاته مالګه نه د دواء په توګه خوړل کیږي او نه ورته رغبت او خواهش کیږي. لږ (قلیل) مقدار هغه دی کوم چي عادتاً په یوه دم خوړل کیږي (یعني په یوه ځل خوړل یې عادت وي). (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

﴿۱۰۸۳﴾ وَابْتِلَاعُ بُزَاقِ زَوْجَتِهِ أَوْ صَدِيْقِهِ لَا غَيْرِهِمَا (۱۴) او ناړي تېرول د خپلي ښځي (۱۵) یا (ناړي تېرول) د خپل ګران دوست، نه له دې دواړو څخه بغیر د بل چا.

**لغات:** ﴿ابتلاع﴾ د انتعال د باب مصدر دی: (ترستوني) تېرول. ﴿بزاق﴾ ناړي (لاړي)، ﴿الصَّدِيق﴾ (د صاد په فتحه او د دال په کسره سره): خالص محبت کونکی دوست، رښتوني محبت والا ملګری. (معجم...)

**تشریح:** مسئله داده چي که روژتي د بل چا ناړي (ناړي) تیري کړي، نو روژه فاسدیږي او صرف قضاء لازمیږي، نه کفاره. همدارنګه که روژتي خپلي ناړي له خولې څخه بهر تو (تف) کړي او بیا یې په لاس را واخلي او تیري یې کړي، نو هم روژه فاسدیږي او صرف قضاء لازمیږي او کفاره نه لازمیږي. لیکن که روژتي د خپل خوښ کس مثلاً د خپلي ښځي یا د خپل خوښ ګران دوست ناړي تیري کړي؛ نو د قضاء سره کفاره هم لازمیږي؛ ځکه له هغه څخه د طبیعت نفرت نه کیږي او په هغه

سره لذت حاصلیږي. نو هغه د مُصلح بدن په حکم کې سو. او له نورو ناړو څخه عموماً نفرت کول کیږي. (انوار الایضاح. شفاء الارواح)

۱۰۸۴ وَ أَكْلُهُ عَمَدًا بَعْدَ غِيْبَةٍ (۱۶) او قصداً خوراک کول تر غیبت کولو وروسته أَوْ بَعْدَ حَجَامَةٍ (۱۷) یا تر ښکر لګولو (وینه کښلو) وروسته أَوْ بَعْدَ مَسٍّ أَوْ قُبْلَةٍ بِشَهْوَةٍ (۱۸) یا تر مسه کولو (۱۹) یا مچولو وروسته په شهوت سره أَوْ بَعْدَ مُضَاجَعَةٍ مِنْ غَيْرِ إِنْزَالٍ (۲۰) یا تر پرېوتلو وروسته بغیر له انزالېدو څخه أَوْ بَعْدَ دُهْنِ شَارِبِهِ (۲۱) یا د خپلو برېتو تر غوړولو وروسته ظَانًّا أَنَّهُ أَفْطَرَ بِذٰلِكَ په دې ګومان (خیال) کولو سره چې په دې شیانو سره یې روژه ماته سوه إِلَّا إِذَا أَفْتَاهُ فَقِيْهٌ مګر دا چې کله یو فقیه فتویٰ ورکړې وي أَوْ سَمِعَ الْحَدِيْثَ وَلَمْ يَعْرِفْ تَأْوِيْلَهُ عَلَى الْمَذْهَبِ یا یې حدیث اورېدلی وي او د هغه په تأویل نه وي پوهېدلی پر خپل مذهب وَإِنْ عَرَفَ تَأْوِيْلَهُ او که د هغه په تأویل پوه سوی وي (ورته معلوم وي) وَجَبَتْ عَلَيْهِ الْكَفَّارَةُ نو پر هغه کفاره واجبیږي.

**لغات:** ﴿قبلة﴾ مچه، جمع: قُبَلٌ و قُبُلَاتٌ، ﴿مضاجعة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: یو د بل سره پرېوتل، بدن د بدن سره لګول، ﴿دهن﴾ تېل، روغن، جمع: أدهان، ﴿تأویل﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: له ظاهري مطلب څخه خبره اړول. (انوار الایضاح)

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې که روژتي د یو چا غیبت وکړي، یا ښکر ولګوي (وینه وباسي)، یا یو ښځه په شهوت سره مسه کړي. یا یې په شهوت سره مچه کړي. یا ور سره پرېوځي او په دې درېو صورتونو کې انزال نه سي. یا پر برېتو روغن ولګوي او روژتي دا ګومان وکړي چې په دې شیانو سره روژه ماتیږي نو په دې ګومان سره قصداً یو شی وخوري، نو قضاء او کفاره دواړه لازمیږي. لېکن که هغه له یو فقیه عالم څخه پوښتنه وکړي او هغه فتویٰ ورکړي چې روژه دې ماته سوه او بیا هغه قصداً خوراک وکړي. نو صرف قضاء سته، کفاره نسته. او که هغه له یو مفتي څخه پوښتنه نه وي

کړي بلکې هغه دا حدیث او ربدلی وي چې "الغِیبَةُ تُفْطِرُ الصَّوْمَ" (غیبت روژه ماتوي) او همدارنګه بل حدیث دی "أَفْطَرَ الْحَاجِمُ وَالْمَحْجُوْمُ" چې په ښکر لګولو سره د ښکر ورلګونکي او ورلګېدونکي دواړو روژه ماتیږي، نو روژتي د دې حدیث پر ظاهر اعتماد کړی وي او د دې حدیث په تفسیر او تأویل پوه سوی نه وي او نه یې له بل چا څخه معلوم کړی وي (حال دا چې په دې ځای کې بالاجماع د روژې ماتېدلو تأویل په ثواب کمېدلو سره سوی دی یعني د حدیث مطلب دا دی چې په داسې کولو سره د روژې اجر وثواب کمیږي، نه دا چې روژه یې ماتیږي)، نو په داسې صورت کې صرف قضاء سته، کفاره نسته. او که د حدیث تأویل ورته معلوم وي خو بیا هم خوراک یا څښاک وکړي، نو په دې صورت کې کفاره هم واجبیږي. (شفاء الارواح بحوالهٔ درس ترمذی)

**یادونه**: د سفیان ثوري رَحِمَهُ الله په باره کې نقل سوي دي چې هغه په غیبت کولو سره د روژې فاسدېدلو قائل دی او جمهوره علماء د عدمِ فساد قائل دي.

**د حدیثونو تأویل**: د غیبت د حدیث تأویل خو ذکر سو چې په غیبت کولو سره د روژې ثواب کمیږي (او بعضو لیکلي دي چې ثواب یې ختمیږي)، او د ښکر لګولو په باره کې چې کوم حدیث راغلی دی، د هغه مختلفه تأویلونه سوي دي: ① یو دا چې په "أفطر الحاجم والمحجوم" کې "أفطر" د "كَادَ أن يفطِرَ" په معنیٰ سره دی او مطلب یې دا دی چې په ښکر لګولو (وینه کښلو) سره د دواړو روژه ماتېدلو ته نژدې کیږي، د حاجم روژه په دې وجه چې هغه وینه راځښېښي (ځکه مخکې به حجامه د ښکر په ذریعه کېدله چې حاجم به پر هغه خوله کېښودله او وینه به یې را کښوله)، نو حلق ته د وینې رسېدلو بېره سته، او د محجوم روژه په دې وجه چې د وینې وتلو په وجه هغه ته ضعف او کمزوري پېښېدلای سي چې د هغه په وجه د دواء د خوړلو او روژې ماتولو بېره سته، ② بل تأویل یې دا سوی دی چې په "الحاجم والمحجوم" کې الف لام عهدي دی او مراد ځني هغه مخصوص کسان دي کوم چې د حجامت په دوران کې غیبت کوي، د دوی په باره کې نبي ﷺ کریم فرمایلي چې د دواړو روژه ماته سوه یعني د دواړو د روژو ثواب ضایع سو، نو د ثواب ضایع کېدلو (ختمېدلو) علت حجامت نه سو، بلکې غیبت سو (شامي ج۳، ص۴۲۷)، ③ دریم تأویل دا چې "أفطر الحاجم والمحجوم" که څه هم جمله خبریه ده، خو په دې جمله کې انشاء مضمر ده او همدا انشاء مقصود ده، یعني نبي کریم ﷺ

خلکو ته دا مشوره ورکړې ده چې تاسي د روژې په حالت کي ښکر مه لګوئ او ممانعت شفقة وو، د حرمت په توګه نه وو؛ ځکه چې په دې سره روژتي ته ضعف او کمزوري رسيږي. (تحفة الألمعي ج: ۳، ص: ۱۴۸ بحوالۀ انوار الايضاح)

﴿۱۰۸۵﴾ وَتَجِبُ الْكَفَّارَةُ عَلٰى مَنْ طَاوَعَتْ مُكْرَهًا او (همدارنګه) کفاره واجبيږي پر هغه ښځي چې موافقت يې کړی وي د مجبوره کړل سوي سره (يا په بله وينا: چې [د جماع] قدرت يې ورکړی وي پر خپل ځان مجبوره کړل سوي سړي ته).

**لغات**: ﴿طاوعت﴾ د مفاعلې له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: طَاوَعَ يُطَاوِعُ مُطَاوَعَةً: موافقت ور سره کول، راضي کېدل او خبره ور سره منل پر خپل ځان (د جماع)موقع او قدرت ورکول.

﴿مكرهًا﴾ د افعال د باب مفعول دی: مجبوره کړل سوی، کوم چې بل چا په زوره (جبراً) پر يو شي مجبوره کړی وي.

**تشريح**: مسئله دا ده چې که يو چا روژتي ته مثلاً د مرګ يا د يو اندام پرېکولو دمکي ورکړه او مجبوره يې کړی چې د فلانکی ښځي سره جماع وکړه!، خو هغه ښځه په خپله خوښه او رضاء جماع ته اماده سوه (يعني هغه د يو چا له طرفه مجبوره نه کړل سوه)، نو په دې صورت کي صرف پر ښځي کفاره واجبيږي، نه پر سړي.



# فَصْلٌ فِي الْكَفَّارَةِ وَمَا يُسْقِطُهَا عَنِ الذِّمَّةِ

دا فصل په (بيان د) كفارې او په (بيان د) هغو شيانو كې دى كوم چې د (روژتي) له ذمې (غاړې) څخه كفاره ساقطوي

## په كومو شيانو سره كفاره ساقطيږي؟

| |
|---|
| ۱۰۱۲: وَ تَسْقُطُ الْكَفَّارَةُ بِطُرُوِّ حَيْضٍ أَوْ نِفَاسٍ كفاره ساقطيږي د حيض يا نفاس په پېښېدلو (راتللو) سره أَوْ مَرَضٍ مُبِيْحٍ لِلْفِطْرِ فِي يَوْمِهٖ يا د داسي مرض (په پېښېدلو سره) كوم چې روا كونكى وي روژه ماتولو لره په هغه ورځ (يعني داسي مرض چې د هغه په وجه روژه ماتول او خوړل روا ګرځي) |

**لغات**: ﴿طُرُوْ﴾ د فتح د باب مصدر دى، طَرَأَ يَطْرَأُ طَرَأً و طُرُوْءًا: پېښېدل، ناڅاپه واقع كېدل، ﴿مُبِيح﴾ د افعال د باب فاعل دى: روا كونكى، جائز ګرځونكى.

**تشريح**: صورت د مسئلې دا دى چې كه روژتي ښځې قصداً خوراك يا څښاك كړى وي چې د هغه په وجه قضاء او كفاره دواړه باندي لازم سي، خو بيا په همدې ورځ كي ښځې ته حيض يا نفاس راسي، نو په دې صورت كي كفاره ساقطيږي، صرف قضاء لازميږي. همدارنګه كه يو سړي قصداً روژه ماته كړې وي، خو بيا په همدې ورځ داسي مريض سي چې كه روژتي واى نو روژه ماتول به ورته جائز واى. نو كفاره څني ساقطيږي او صرف قضاء لازميږي.

**فوائد قيود**. مرض مبيح: مخكني حكم هغه وخت دى كله چې دا مرض خپله روژتي نه وي پيدا كړى (يا په بله وينا خپله د مرض سبب نه وي جوړ سوى)، لهذا كه خپله ځان زخمي كړي، يا خپل ځان تر بام يا بل لوړى ځاى را ايله كړي. يا يو داسي كار وكړي چې د هغه په وجه ډېر زيات مريض يا مثلاً د هغه په وجه ډېر زيات تږى سي. نو په دې ټولو صورتونو كي كه روژه ماته كړي، نو كفاره نه ساقطيږي (مراقي الفلاح، و حاشية نور الايضاح)

في يومه: همدارنګه مخكني حكم هغه وخت دى كله چې حيض و نفاس يا مرض په هاغه ورځ پېښ سوي وي په كومه ورځ چې يې روژه ماته كړې وي، لهذا كه تر هغه ورځي مخكي يا تر هغه ورځي

وروسته دغه أمور پیښ سي، نو بیا کفاره نه ساقطیږي. (حاشیة نور الایضاح، مراقی الفلاح بحوالة انوار الایضاح)

﴿۱۰۸۰﴾ وَلَا تَسْقُطُ عَمَّنْ سُوْفِرَ بِهِ كُرْهًا بَعْدَ لُزُوْمِهَا عَلَيْهِ او کفاره نه ساقطیږي له هغه کس څخه کوم چي مسافر کړی سي (په سفر بېول سي) په زوره (جبراً) د کفارې لازمېدلو څخه وروسته پر هغه فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ په ظاهر روایت کي.

**لغات:** ﴿سُوفِرَ﴾ د مفاعلې د باب ماضي مجهوله ده. مصدر: مُسَافَرَةٌ و سِفَارًا: سفر کول. او دلته د باء په ذریعه دا باب متعدي کړی سوی دی، نو معنی یې ده: په سفر بېول، مسافر کول. سفر په کول.

**تشریح:** که یو څوک قصداً روژه ماته کړي. تر دې وروسته یو څوک هغه پر سفر مجبوره کړي. نو د ظاهر روایت مطابق په دې سره کفاره نه ساقطیږي؛ ځکه دا آسماني او قدرتي عذر نه دی لکه حیض و نفاس، چي په حیض و نفاس کي د روژتي فعل لره هیڅ دخل نسته.

ها! که څوک د روژې په حالت کي په سفر ولاړ سي، برابره ده خپله ولاړ سي یا یو څوک یې مجبوره کړي او بیا چي هلته ولاړ سي روژه ماته کړي، نو ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي صرف قضاء لازمیږي او کفاره ساقطیږي.

## د روژې د کفارې بیان

﴿۱۰۸۸﴾ وَالْكَفَّارَةُ تَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ وَلَوْ كَانَتْ غَيْرَ مُؤْمِنَةٍ او کفاره د یوه مریي آزادول دي که څه هم هغه مؤمن (مسلمان) نه وي فَإِنْ عَجَزَ عَنْهُ بیا که هغه له دې (مریي آزادولو) څخه عاجزه سي صَامَ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ نو دوې میاشتي دي پرلپسې روژه ونیسي لَيْسَ فِيْهِمَا يَوْمُ عِيْدٍ وَ لَا أَيَّامُ التَّشْرِيْقِ چي په هغوی (دوو میاشتو) کي به د اختر ورځ او د تشریق ورځي نه وي فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعِ الصَّوْمَ او که د روژې طاقت نه لري أَطْعَمَ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا نو شپېتو مسکینانو ته دي خوراک (ډوډی) ورکړي يُغَدِّيْهِمْ وَ يُعَشِّيْهِمْ غَدَاءً وَ عَشَاءً د سهار (غرمې) خوراک دي ورکړي او د ماخوستن خوراک دي ورکړي مُشْبِعَيْنِ د دوی تر مړه نسه أَوْ غَدَاءَيْنِ أَوْ عَشَاءَيْنِ یا دوه د سهار خوراکونه یا دوه د ماخوستن خوراکونه (یا په بله وینا، دوې ورځي د سهار (غرمې) خوراک او دوې ورځي د ماخوستن خوراک) أَوْ عَشَاءً وَ سَحُوْرًا یا د ماخوستن خوراک او د پېشلمي خوراک أَوْ

يُعْطِيْ كُلَّ فَقِيْرٍ نِصْفَ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ أَوْ دَقِيْقِهِ أَوْ سَوِيْقِهِ يا دي ورکړي هر غريب ته نيم صاع د غنمو يا د هغه (نيم صاع غنمو) اوړه يا د هغه نينې أَوْ صَاعَ تَمْرٍ أَوْ شَعِيْرٍ أَوْ قِيْمَتَهُ يا (دي ورکړي) يو صاع د خُرماوو يا اُوربشو يا د هغه قيمت.

**لغات**: ﴿متتابعين﴾ تشنيه ده، واحد يې متتابعٌ دی، د تفاعل د باب فاعل دی: پرلپسې، ﴿يغدّی﴾ د تفعيل د باب مضارع ده، غَدّیٰ تَغْدِيَةً: د سهار خوراک ورکول (د غرمې ډوډۍ ورکول)، غداء: د سهار خوراک، او په عربو کې د سهار خوراک پر لس، يوولس بجې خوړل کېدی لکه زموږ د غرمې خوراک، ﴿يعشيهم﴾ د تفعيل د باب مضارع دي، عشّٰی تَعْشِيَةً: د شپې يعني د ماخوستن په وخت کې خوراک ورکول (د ماخوستن ډوډۍ ورکول)، ﴿سَحور﴾ د پېشلمي خوراک، عَشَاء: د ماخوستن خوراک، ﴿مشبعين﴾ د افعال له بابه د جمع مذکر فاعل صيغه ده، أَشْبَعَ يُشْبِعُ إِشْبَاعًا: نس ډکول، مړول، تر ماړه نسه خوړل، ﴿نصف صاع﴾ د نيم صاع وزن پاؤ کم دوه کېلو کيږي (په پاکستانی کېلو سره)، او ځينو ليکلي دي څه د پاسه يو نيم کېلو، ﴿دقيق﴾ وچ اوړه، ﴿سويق﴾ نينې، د غنمو او اوربشو وريته سوي (کباب سوي) او ميده سوي دانې.

**تشريح**: د رمضان د روژې کفاره دا ده ① چې غلام يا مينځه دي آزاده کړي، برابر ده هغوی کافران وي او که مسلمانان، بالغان وي او که نا بالغه؛ ځکه په آيت کې "تحرير الرقبة" ذکر سوي دي کوم چې عام دی، خو مسلمان غلام آزادول زيات ښه دي، ② که د غلام آزادول ممکن نه وي لکه په اوس وخت کې، نو بيا به پرلپسې (مسلسل) دوې مياشتې روژې نيسي، چې په مينځ کې رمضان او کوچنی اختر يا لوی اختر او تر هغه وروسته درې ورځې (ايامُ التشريق) را نه سي، لهذا که د کفارې په دې دوو مياشتو کې يوه روژه هم پرېږدي، يا يې ماته کړي، برابره ده د عذر مثلاً د مرض وغيره په وجه وي يا بېله عذره وي، يا مثلاً په مينځ کې د لوی اختر ورځ او ايام التشريق راسي، نو مخکې نيول سوي روژې ټوله په کفاره کې نه شمېرل کيږي، بلکې بيا به له نوي سره پرلپسې دوې مياشتې روژې نيسي. (انوار الايضاح، شفاء الارواح)

فإن لم يستطع إلخ: ③ او که يو څوک په روژو نيولو باندې قادر نه وي يعني ډېر بوډا وي يا لا علاجه مريض وي چې د روغېدلو اُميد يې نه وي، نو هغه به شپېتو (۶۰) مسکينانو ته خوراک ورکوي، او د دې دوه صورتونه دي: ① يو دا چې شپېتو مسکينانو ته دوه وخته په ماړه نس (په ډک نس) خوراک

ورکړي او په دې کي تسلسل ضروري نه دی، بلکي په دوو جلا وختونو کي یې هم ورکولای سي، مثلاً دوې ورځي د سهار لخوا خوراک ورکړي، یا دوې ورځي د ماخوستن لخوا خوراک ورکړي. یا همداسي یو وخت د ماخوستن خوراک ورکړي او یو وخت په پېشلمي کي خوراک ورکړي. خو شرط دا دی چي په اوله ورځ یا په اول وخت کي چي یې وکومو شپېتو مسکینانو ته خوراک ورکړی دي، په راروانه ورځ یا راروان وخت کي به هم هاغه فقیران وي. که سره جلا سي. نو کفاره نه اداء کیږي. (مراقی الفلاح مع الطحطاوي ص: ۳۶۶)

② دویم صورت دا دی چي وهر مسکین ته نیم صاع غنم یا د هغه اوړه یا نیني یا د هغه قیمت ورکړي، یا یو صاع خرما یا اوربشي یا د هغه قیمت ورکړي، او که قیمت ورکوي. نو د بازاري قیمت اعتبار به کول کیږي. یا په بله وینا دومره قیمت به ورکوي چي که په هغه قیمت سره مسکین مثلاً (نیم صاع) غنم رانیول وغواړي، نو په آساني سره یې له بازار څخه رانیولای سي. (انوار الایضاح بحوالهٔ فتاویٰ رحیمیه)



**مسئله (۱)**: که یوازي یوه مسکین ته شپېته ورځي سهار او ماښام خوراک ورکړي، نو هم کفاره اداء کیږي.

**مسئله (۲)**: د لسو کالو کوچنیان کوم چي قریبُ البلوغ نه وي، هغو ته په خوراک ورکولو سره کفاره نه اداء کیږي، خو که هغو ته د کفارې مقدار تملیکاً ورکړي، مثلاً نصف صاع غنم یا د هغه قیمت هر کوچني ته ورکړي، نو صحیح دي. (انوار الایضاح، بحوالهٔ در مختار مع الشامي)

﴿۱۰۸۹﴾ وَ كَفَتْ كَفَّارَةٌ وَاحِدَةٌ عَنْ جِمَاعٍ وَأَكْلٍ مُتَعَدِّدٍ فِيْ أَيَّامٍ او کافي ده یوه کفاره له متعدده (څو واره) جماع کولو څخه او له متعدده خوراک کولو څخه په څو ورځو کي لَمْ يَتَخَلَّلْهُ تَكْفِيْرٌ (په دې شرط) چي د هغوی په مینځ کي کفاره اداء کول نه وي واقع سوي (یعني په دې شرط چي په هغه دوران کي یې کفاره نه وي اداء کړې) وَلَوْ مِنْ رَمَضَانَيْنِ که څه هم له دوو رمضانو څخه وي (یعني که څه هم دا کارونه اجماع او اکل... ایې په دوو رمضانو کي کړي وي) عَلَى الصَّحِيْحِ د صحیح قول مطابق فَإِنْ تَخَلَّلَ التَّكْفِيْرُ بیا که په مینځ کي کفاره اداء کول واقع سي لَا تَكْفِيْ كَفَّارَةٌ وَاحِدَةٌ فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ نو یوه کفاره نه کافي کیږي، په ظاهر روایت کي.

**لغات**: ﴿کفت﴾ د ضرب له بابه ماضي معلومه ده. مصدر: کِفَایَةً: کافي کېدل. کفایت کول. له یو شي څخه بې پروا کول. ﴿لـم یتخلـل﴾ د تفعل لـه بابـه د جحـد (نفـي جحـد بلـم) صیغه ده. مصدر: تَخَلُّلًا: په مینځ کي راتلل، په مینځ کي واقع کېدل. ﴿تکفیر﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: کفاره ور کول.

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چي که څوک په رمضان کي څو واره روژه ماته کړي، مثلاً څو واره جماع وکړي. یا څو واره خوراک وکړي. یا په یوه رمضان کي یوه روژه ماته کړي او تر اوسه یې د هغه کفاره نه وي اداء کړې چي په بل رمضان کي بیا یوه روژه ماته کړي. تر دې وروسته په آخر کي یوه کفاره اداء کړي، نو د ټولو له طرفه کفاره اداء کیږي (خو داسي کول سخته ګناه ده)، لېکن که له روژې ماتولو (مثلاً له جماع کولو) څخه وروسته کفاره اداء کړي، بیا بل وار روژه ماته کړي (مثلاً بیا جماع وکړي). نو په دې صورت کي به دویمه کفاره اداء کوي، اوله کفاره نه کافي کیږي، دلته مصنف رَحِمَهُ الله "علی الصحیح" ویلي دي؛ ځکه بل قول دا دی چي که څوک په جلا، جلا رمضانو کي یوه، یوه روژه ماته کړي مثلاً په دوو رمضانو کي جماع وکړي او د اول رمضان کفاره اداء نه کړي، نو پر هغه دوې کفارې لازمیږي. (شفاء الارواح)



# بَابُ مَا يُفْسِدُ الصَّوْمَ مِنْ غَيْرِ كَفَّارَةٍ

(دا) باب د هغو شیانو (په بیان کې) دی کوم چې روژه فاسدوي بغیر له کفارې څخه (یعني چې د هغوی په وجه صرف قضاء واجبیږي. نه کفاره)

## په کومو شیانو سره صرف قضاء واجبیږي، نه کفاره؟

﴿۱۰۹۰﴾ وَهُوَ سَبْعَةٌ وَّ خَمْسُوْنَ شَيْئًا او هغه اُوه پنځوس (۵۷) شیان دي إِذَا أَكَلَ الصَّائِمُ أُرُزًّا کله چې روژتي وخوري وریجې نِيًّا اومې (یعني اومې وریجې وخوري) أَوْ عَجِيْنًا أَوْ دَقِيْقًا یا (وخوري) خیشته (اخښلې) اوړه یا وچ اوړه أَوْ مِلْحًا كَثِيْرًا دَفْعَةً یا ډېره مالګه په یوه وار أَوْ طِيْنًا غَيْرَ أَرْمَنِيٍّ لَمْ يَعْتَدْ أَكْلَهُ یا (وخوري) له ارمني خټې څخه بغیر بله خټه چې د هغه په خوړلو عادت نه وي أَوْ نَوَاةً أَوْ قُطْنًا أَوْ كَاغِدًا (كَاغَدًا) یا تاکی (د خرما مندکه) یا پنبه یا کاغذ أَوْ سَفَرْجَلًا وَلَمْ يُطْبَخْ یا بهي او هغه (تر اوسه) پوخ سوی نه وي (یعني اوم بهي وخوري) أَوْ جَوْزَةً رَطْبَةً یا لوند (شین) جوز أَوِ ابْتَلَعَ حَصَاةً أَوْ حَدِيْدًا أَوْ تُرَابًا أَوْ حَجَرًا یا تېره کړي شګه یا اوسپنه یا خاوره یا ډبره.

**لغات:** ﴿أُرُزًّا﴾ وریجې. ﴿نِيًّا﴾ اوم (کچه). ﴿عجين﴾ اخښل سوي اوړه (خیشته اوړه). ﴿دقيق﴾ وچ اوړه. ﴿نواة﴾ د خرما مندکه (تاکی). ﴿قطن﴾ پمبه (پنبه). ﴿كَاغِد﴾ او كَاغَد: کاغذ (مصباح اللغات ص ۷۱۱). ﴿سَفَرْجَل﴾ پر وزن د فَعْلَل. د سېب په څېر یوه مېوه ده کوم ته چې بهي وریل کیږي. په انګرېزي کې ورته پیرس (pears) وایي. جمع: سَفَارِج. ﴿جوزة﴾ جوز. ﴿حصاة﴾ شګه. کوچنی کانی.

**تشریح:** هر هغه شی کوم چې د غذا یا د دواء په غرض سره یا د عادت په توګه نه خوړل کیږي. د هغه په خوړلو سره صرف قضاء لازمیږي، نه کفاره. لهذا که څوک اُومې وریجې وخوري. یا خیشته اوړه یا وچ اوړه. یا په یوه پلا ډېره مالګه (مثلاً یو، په ملګه په یوه وار) وخوري، نو پر هغه صرف قضاء واجب ده. ځکه دغه شیان دا ډول نه د غذاء په توګه خوړل کیږي او نه د دواء په توګه. او نه د عادت په توګه

خوړل کیږي (څکه وربجي او اوړه خو عادتاً پخول کیږي یعني پر پخېدو وروسته خوړل کیږي او مالګه عادتاً په یوه وار ډېره لږ خوړل کیږي).

أو طیناً غیر أرمني: د دې حکم څه مخکې په تفصیل سره تېر سو.

أو سفرجلًا: د دې تعریف په لغاتو کې ذکر سو، دلته له دې څخه صرف سفر جل نه دی مراد، بلکې هر هغه مېوه مراد ده کوم چې اومه نه خوړل کیږي، لهذا که څوک داسې مېوه وخوري کوم چې (بالکل) اومه وي، نو پر هغه صرف قضاء لازم ده.

أو جوزة: که څوک د روژې په حالت کې لوند (اوم) جوز وخوري، نو هم صرف قضاء سته، کفاره نسته.

أو ابتلع إلخ: همدارنګه که څوک د روژې په حالت کې شګه، یا اوسپنه، یا د خاورې لوټه تېره کړي (داسې خاوره کوم چې مفیده نه وي لکه طین ارمني چې مفیده خاوره ده)، یا ډېره تېره کړي، نو پر هغه هم صرف قضاء لازمه ده، همدارنګه د سرپو، ژړو، سرو او سپینو زرو په تېرولو سره هم صرف قضاء لازمیږي.

## د حقنې (امالې) او په پزه کې د دواء اچولو حکم
## په ستوني کې د نل په ذریعه د یو شي د اچولو حکم

﴿۱۰۹۱﴾ أَوِ احْتَقَنَ یا حقنه وکړي (یعني د شا په مقعد کې دواء واچوي).

﴿۱۰۹۲﴾ أَوِ اسْتَعَطَ یا په پزه کې دواء واچوي.

﴿۱۰۹۳﴾ أَوْ أَوْجَرَ بِصَبِّ شَيْءٍ فِيْ حَلْقِهِ یا په خوله کې یو شی ستوني ته توی کړي (نس ته یې ورسوي) عَلَى الْأَصَحِّ د صحیح ترین قول مطابق.

**لغات**: ﴿احتقن﴾ د افتعال د باب ماضي ده: حقنه ورکول (د شا د لارې ایعني د مقعدې لخوا د مریض معدې ته دواء رسول)، اماله کول. ﴿اِسْتَعَطَ﴾ دا هم د افتعال د باب ماضي ده (ماده: سعط): په پزه کې دواء اچول، دا لغوي معنیٰ ده، خو دا حکم صرف د دواء سره خاص نه دی، بلکې که اوبه ور واچوي، نو هم دغه حکم دی، ﴿أوجر﴾ د افعال د باب مصدر دی، أَوْجَرْتُ الْمَرِيْضَ إِيْجَارًا: دواء په حلق کې ور توېول (دوا په ستوني کې ور بهول)، په خوله کې دواء وراچول. (معجم الوسیط)

**تشریح**: د روژې په حالت کې په حقنه (اماله) کولو سره روژه ماتیږي او صرف قضاء لازمیږي.

أو استعط: همدارنګه د روژې په حالت کې که څوک پزې ته یو دواء یا اوبه واچوي او سر ته یې ورسوي، نو روژه ماتیږي او صرف قضاء لازمیږي.

لهذا داودس او غسل کولو په دوران کي د پزي پرېوللو په وخت کي احتیاط کول پکار دي که چیري اوبه دماغ ته ورسیږي، نو روژه ماتیږي؛ ځکه د پزي له سوربو څخه وروسته د خولې وطرف ته هم سوری سته او د دماغ وطرف ته هم سته او بیا له دماغ څه د نس وطرف ته جلا سوری سته، او د احتیاط طریقه دا ده چي ساه بنده کړي بیا اوبه کش کړي، نو په دې توګه دماغ ته اوبه نه ځیږي. (تحفة الالمعی ج: ۳، ص: ۱۶۱، طحطاوي ص: ۳۶۷)

أو أوجربصب إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د پیپ (نل) یا داسي بل شي په ذریعه د روژتي ستوني ته یو شی واچول سي او لاندي ورسول سي، نو په دې سره روژه ماتیږي او صرف قضاء لازمیږي، نه کفاره.

علی الأصح: د دې قید تعلق له "واحتقن" څخه تر آخره پوري د ټولو سره دی چي په دې دریو سره مسئلو کي د اصح قول مطابق صرف قضاء سته، او په دې قید سره د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله له قول څخه احتراز دی چي د هغه په نیز په دې دریو سره صورتونو کي کفاره هم واجبیږي. (حاشیة نور الایضاح، شفاء الارواح، و انوار الایضاح)



## په پیچکارۍ سره د روژې ماتېدلو حکم

**مسئله (۱)**: په پیچکارۍ خو روژه نه ماتیږي، خو که یې ضرورت نه وو، نو تر روژه مات پوري دي یې نه لګوي، "الحقن في العضل أو تحت الجلد أو في الوريد، والأولى عند الإمكان تأخيرها إلى المساء. أما الحقن الشرجية فتفطر". (الفقه الاسلامي وأدلته، مالایفسد الصوم عند الحنفية، جلد۳ص ۱۷۱۲، طبع: المکتبة الفریدية بشاور)

مفتي اعظم افغانستان مفتي عبد العلي دیوبندي رَحِمَهُ الله هم فرمایي: چي په پیچکارۍ لګولو سره روژه نه ماتیږي. (نصیر الاسلام، ص ۳۶۶، ۳۶۷، طبع: افغانستان)

همدارنګه په دې لاندیني کتابونو کي لیکلي دي چي په پیچکارۍ سره روژه نه ماتیږي، برابره ده د رګ وي او که دغوښي:

(① امداد الفتاوی لحکیم الأمة تهانوي (رحمه الله)، ② څلورسوه ضروري مسائل پښتو، ص ۳۰۴-۳۰۳، طبع: وحیدي کتب خانه پشاور، ③ فتاوی حقانیه اردو، جلد۲ص ۱۶۲، طبع: حقانیه اکوړه ختک پشاور، ④ آلات جدیده پښتو، ص ۱۹۶ الی ص ۲۰۲، طبع: پشاور. ⑤ احسن الفتاوی اردو، جلد۴ص ۴۳۲، طبع: سعید کراچي. ⑥ الملتقط عبدالستار، ص ۱۶۵ الی ص ۱۶۸، طبع: کوئټه. ⑦ فتاوی دارالعلوم دیوبند، جلد۲ص ۴۴۸ الی ص ۴۵۴. ⑧ فتاوی محمودیه اردو، جلد۳ص ۱۲۶، طبع: مظهري کتب خانه کراچي، ⑨ فتاوی رحیمیه، جلد۷ص ۲۵۷، طبع: دارالاشاعت کراچي، ⑩ کفایت المفتي پښتو، جلد۴، ⑪ فتاوی فریدیه اردو، جلد۴، ص، ۱۳۱، ۱۳۰، ۱۲۹، ۱۲۸، طبع: پشاور. او داسي نور کتابونه)

## په نسوارو سره د روژې ماتېدلو حکم

**مسئله (۲)**: په نسوارو سره روژه ماتېږي، ځکه چې نسوار په خوله کي اېښوول عملًا د خوړلو په حکم کي دي. (فتاوى عثماني، جلد۲ص۲۲۱، ۲۲۰. طبع: وحيدي کتب خانه پشاور)

ځرنګه چې نسوار تيرېږي او عمومًا په حلق کي د هغوی تريخوالی محسوسيږي. نو ځکه روژه په ماتېږي او دوباره به روژه نيسي. (فقهي کچکول پښتو، ص۱۶۱. لمولانا رشيد احمد حقاني. طبع: نور الاسلام پشاور. محمود الفتاوىٰ فارسي. جلد۲ص۲۲۷، طبع: مکتبه حبيبه کوټه)

که څه هم مفتي فريد رَحِمَهُ الله دا مسئله د پورتني تفصيل خلاف ليکلې ده. (فتاوىٰ فريديه اردو. جلد۴. ص۱۳۷، ۱۳۶)

## په غوږ کي تېل (روغن) يا دواء، يا اوبه اچول

| ﴿۱۰۹۳﴾ أَوْ أَقْطَرَ فِيْ أُذُنِهِ دُهْنًا أَوْ مَاءً يا وڅځوي په خپل غوږ کي تېل يا اُوبه فِي الْأَصَحِّ په صحيح ترين قول کي. |
| --- |

**لغات**: ﴿أقطر﴾ د افعال د باب ماضي ده: څڅول، ځاځکي، ځاځکی ور اچول. دا لفظ معلوم (معروف) او مجهول دواړه ويله ويل کېدلای سي، يعني أَقْطَرَ او أُقْطِرَ. د مجهول ويلو په صورت کي فِيْ إِذْنِهِ د هغه نائب فاعل دی او دويمه جمله مفعول ثاني دی، خو معلوم (معروف) ويل اولىٰ دي لکه ځرنګه چې د مصنف رَحِمَهُ الله له عبارت څخه هم معلوميږي. (انوار الايضاح)

**تشريح**: مسئله دا ده چې که روژتي په غوږ کي تېل يا دواء واچوي، نو بالاتفاق روژه ماتيږي او صرف قضاء واجبيږي. برابره ده روژتي په خپل فعل سره اچولي وي يا خپله ور ننوتلي وي. او که غوږ ته خپله اوبه ننوځي، نو بالاتفاق روژه نه ماتيږي او که د روژتي په فعل سره غوږ ته اوبه ننوځي، نو په دې کي اختلاف دی، د بعضو په نېز روژه ماتيږي او صرف قضاء واجبيږي او د بعضو په نېز نه ماتيږي، په عمدة الفقه کي دي چې دې دواړو قولونو ته صحيح ويل سوي دي. نو ځکه احتياط په همدې کي دی چې په روژه کي په اوبو کي له غوټه وهلو او داسي نورو څخه ځان وساتي. (شفاء الارواح)



## د غوږ د دواء په باره کي نور تحقيق

**مسئله**: مفتي سعيد احمد دَامَتْ بَرَكَاتُهُمْ (صاحب د تحفة الألمعي) فرمايي چې په غوږ کي په دواء څڅولو او اچولو سره د بعضو په نېز روژه ماتيږي او د بعضو په نېز نه ماتيږي، او د اختلاف وجه دا ده چې په غوږ کي دننه مخ ته د خولې و طرف ته خو بالاتفاق سوری نسته، خو د دماغ و طرف ته سوری سته، که نه؟ په دې کي اختلاف دی د کومو حضراتو په نېز چې سوری سته، د هغو په نېز په غوږ کي

دواء اچول مفسد صوم دي او د کومو حضراتو په نیز چي سوری نسته، هغوی د روژې نه ماتېدلو قائل دي، او زما (مفتي سعید احمد صاحب) په نیز به غوږ کي په دواء اچولو سره روژه نه ماتیږي. خو بهتره دا ده چي د روژې په حالت کي غوږ ته دواء نه واچوي، لېکن که یې واچوي، نو روژه نه ماتیږي. (تحفة الالمعي ج: ۳، ص: ۱۶۱ بحوالهٔ انوار الایضاح)

## د زخم د لاري نس یا دماغ ته د دواء رسېدلو حکم

﴿۱۰۹۵﴾ أَوْ دَاوىٰ جَائِفَةً أَوْ آمَّةً بِدَوَاءٍ یا علاج وکړي د نس د زخم یا د سر (دماغ) د زخم (یعني دواء پرې ولګوي) وَوَصَلَ إِلىٰ جَوْفِهِ أَوْ دِمَاغِهِ او هغه (دواء) نس یا دماغ ته ورسیږي.

**لغات:** ﴿دواىٰ﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: دواء کول، علاج او درملنه کول. ﴿جائفه﴾ هغه زخم ته وایي کوم چي جوف یعني دننه نس (معدې) ته رسیږي او هغه مستقل سوری جوړ سوی وي. جمع: جَوائِف. ﴿آمّة﴾ هغه زخم کوم چي دننه دماغ (ماغزو) ته رسیږي. د إلىٰ جوفه تعلق د جائفة سره دی او د إلىٰ دماغه تعلق د آمّة سره دی.

**تشریح:** مسئله دا ده که د چا په نس کي داسي زخم وي کوم چي د نس دننه حصې (معدې) ته رسیږي، یا په سر کي یې داسي زخم وي کوم چي دننه دماغ (ماغزو) ته رسیږي، او د روژې په حالت کي په هغه زخم کي دواء واچوي او دواء په یقیني توګه د زخم د لاري نس یا دماغ ته ورسیږي، نو برابره ده هغه دواء لنده وي او که وچه وي، د هغه روژه فاسدیږي او صرف قضاء واجبیږي، او که په یقیني توګه معلومه سي چي دواء دننه نس یا دماغ ته نه ده رسېدلې، نو د هغه روژه نه فاسدیږي او که په یقیني توګه له دواړو خبرو څخه یوه هم معلومه نه سي او دواء لنده دواء وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ په نیز روژه ماتیږي او د صاحبینو رَحِمَهُمَا اللهُ په نیز نه ماتیږي او که وچه دواء وي، نو بالاتفاق روژه نه ماتیږي. (شفاء الارواح)

﴿۱۰۹۶﴾ أَوْ دَخَلَ حَلْقَهُ مَطَرٌ أَوْ ثَلْجٌ یا نوځي (دننه سي) د ده ستوني ته باران یا واوره فِي الْأَصَحِّ د صحیح ترین قول مطابق وَلَمْ يَبْتَلِعْهُ بِصُنْعِهِ او دئ هغه په خپل فعل سره تېر نه کړي.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چي که د روژتي خولې ته د باران څاڅکي یا د واوري ټوټه ننوځي (مثلاً د اربمی راتللو په وخت کي هغه سر پورته کړي او خوله یې خلاصه سي او ستوني ته یې د باران څاڅکي یا واوره تېره سي)، نو د ده روژه فاسدیږي او صرف قضاء واجبیږي، په دې شرط چي روژتي

هغه په خپل فعل سره (قصداً) نه وي تېر کړي، او که هغه په خپل فعل سره تېر کړي وي. نو پر ده کفاره هم واجبېږي.

## خطاءً روژه ماتېدل (د اودس په دوران کي اوبه تر ستوني تېرېدل)

﴿۱۰۹۷﴾ أَوْ أَفْطَرَ خَطَأً بِسَبْقِ مَاءِ الْمَضْمَضَةِ إِلٰى جَوْفِهٖ یا په غلطي سره روژه ماته کړي (روژه یې خطاءً ماته سي) د خولې پر مینځلو د اُوبو د مخکي کېدلو (تېرېدلو) په وجه ونس ته.

**تشریح:** مسئله دا ده چي که د رژوتي خپل رژوه په یاده وي او بیا په خطاء سره روژه ماته کړي، مثلاً خوله پر بولي او بېله قصده اوبه د هغه تر ستوني تیري سي او نس ته ولاړي سي، نو روژه یې فاسدېږي او صرف قضاء واجبېږي.

د خطاء مطلب دا دی چي هغه ته خو روژه په یاده وي او د هغه قصد د روژې ماتولو نه وي او له هغه شخه روژه ماتونکی فعل یعني خوراک، چښاک او داسي نور بېله قصده صادر سي. (عمدة الفقه)

## د بل چا په زوره او جبر سره (مجبوراً) د روژې ماتولو حکم

﴿۱۰۹۸﴾ أَوْ أَفْطَرَ مُكْرَهًا وَلَوْ بِالْجِمَاعِ یا روژه ماته کړي په داسي حال کي چي مجبور کړل سوی وي که څه هم په جماع سره وي أَوْ أُكْرِهَتْ عَلَى الْجِمَاعِ یا ښځه پر جماع کولو مجبوره کړل سوې وي.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چي که یو څوک روژتي ته دمکي ورکړي او مجبوره یې کړي چي خوراک یا چښاک وکړي، یا د ښځي سره پر جماع کولو یې مجبوره کړي مثلاً هغه ته ووایي چي که ته داسي نه وکړې! نو تا وژنم یا یو اندام دي پرېکوم، یا د سخت وهلو دمکي ورکړي، او روژتي مجبوراً هغسي وکړي، نو پر هغه صرف قضاء واجبېږي، کفاره نه واجبېږي. همدارنګه که یوه روژتي ښځه پر جماع کولو مجبوره کړل سي او د هغې سره په زوره (جبراً) جماع وکړل سي، نو پر هغې صرف قضاء سته، کفاره نسته. (شفاء الارواح)

## د خدمت کولو په وجه د روژې ماتولو حکم

﴿۱۰۹۹﴾ أَوْ أَفْطَرَتْ خَوْفًا عَلٰى نَفْسِهَا مِنْ أَنْ تَمْرَضَ مِنَ الْخِدْمَةِ یا ښځه روژه ماته کړي له دې بیري شخه پر خپل ځان چي هغه به د خدمت کولو په وجه مریضه سي أَمَةً كَانَتْ أَوْ مَنْكُوحَةً برابره ده هغه مینځه وي او که منکوحه ښځه وي.

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چې که روژتې مېنځې ته یا منکوحه ښځې ته د روژې په حالت کې دا بېره وي چې که کار او خدمت وکړم، نو مریضه به سم، او دا بېره یې د ظن غالب په درجه کې وي محض وهم و خیال نه وي او روژه ماته کړي، نو پر هغې صرف قضاء سته، کفاره نسته.

په عمدة الفقه کې دي چې که روژتې په ګرمۍ کې په خپل اختیار او رضاء سره په یو کار کې دومره خواري وکاږي چې مریض سي او بیا هغه روژه ماته کړي، نو پر هغه د کفارې واجبېدلو په باره کې دوه قوله دي: ① بعضې فرمایي چې کفاره واجبیږي او بعضې فرمایي چې پر هغه کفاره نه واجبیږي. امام باقلي رَحِمَهُ الله د کفارې نه واجبېدلو فتویٰ ورکړې ده. د مېنځې او غلام حکم د دې په خلاف دی چې که دوی د زیات کار او خواري کښلو په وجه مریضان سي او روژه ماته کړي، نو پر دوی کفاره نه واجبیږي: ځکه دوی د خپل مالک (بادار) تر حکم لاندې کېدلو په وجه معذوره دي. (شفاء الارواح)

﴿۱۱۰۰﴾ أَوْصَبَّ أَحَدٌ فِيْ جَوْفِهِ مَاءً وَهُوَنَائِمٌ یا څوک د ده (روژتي) نس ته اوبه توی کړي (ورسوي) په داسې حال کې چې دئ بیده وي (یعني د روژتي په خوله کې اوبه واچوي او هغه یې نس امعدې ته ورسیږي).

**لغات**: ﴿صَبَّ﴾ د نصر له بابه ماضي معلومه ده: اوبه اچول، بهول. ﴿جوف﴾ نس، د هر شي دننی حصه، جمع: أَجْوَافٌ.

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چې که روژتي بیده وي او یو څوک د هغه په خوله کې اوبه واچوي کوم چې د هغه نس ته ورسیږي (یا په بله وینا د خوب په حالت کې یو څوک اوبه په وڅښي)، نو د هغه روژه ماتیږي او صرف قضاء لازمیږي.

## د هیري تر خوراک وروسته قصداً د خوراک کولو حکم

﴿۱۱۰۱﴾ أَوْأَكَلَ عَمَدًا بَعْدَ أَكْلِهِ نَاسِيًا یا قصداً خوراک وکړي په هېره تر خوراک کولو وروسته وَلَوْعَلِمَ الْخَبَرَ که څه هم په حدیث باندې خبر وي عَلَى الْأَصَحِّ د صحیح ترین قول مطابق.

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چې که روژتي په هېره څه وخوري، یا وڅښي او د هغه دا ګومان سي چې روژه مې ماته سوه، بیا هغه قصداً خوراک او څښاک وکړي، نو هم پر هغه صرف قضاء واجبیږي، او که هغه ته معلومه وي چې په هېره په خوراک کولو سره روژه نه ماتیږي لکه څرنګه چې په حدیث کې دي، خو بیا هم په هېره تر خوراک کولو وروسته هغه قصداً خوراک او څښاک

وکړي، نو هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز کفاره نه لازمیږي، صرف قضاء لازمیږي او همدا صحیح او مفتیٰ به قو دی. (شفاء الانوار، انوار الایضاح)

**فایده:** په عبارت کي له "خبر" څخه مراد د نبي کریم ﷺ دا حدیث دی "چي کوم څوک په هېره خوراک یا څښاک وکړي، هغه دي روژه نه ماتوي؛ ځکه دا یو رزق دی کوم چي الله تعالیٰ په ده وخوړی او وڅېښی". (ترمذي)

| ﴿۱۱۰۲﴾ أَوْ جَامَعَ نَاسِيًا ثُمَّ جَامَعَ عَامِدًا یا په هېره جماع (کور والی) وکړي بیا قصدا جماع وکړي. |
|---|

**تشریح:** که روژتي ته خپل روژه بالکل یاده نه وي او په هېره د ښځي سره جماع وکړي، بیا تر دې وروسته قصداً جماع ور سره وکړي، نو پر هغه صرف قضاء لازمیږي. برابره ده په مخکیني جماع سره د هغه دا گومان وي چي روژه مي ماته سوه او که نه وي. (طحطاوي بحوالهٔ شفاء الارواح)

## تر صبح صادق وروسته د نیت کولو په صورت کي د روژې ماتولو حکم

| ﴿۱۱۰۳﴾ أَوْ أَكَلَ بَعْدَ مَا نَوىٰ نَهَارًا یا دورځي له نیت کولو څخه وروسته خوراک وکړي وَلَمْ يُبَيِّتْ نِيَّتَهُ او هغه له شپې څخه نیت نه وي کړی. |
|---|

**لغات:** ﴿لم یبیّت﴾ د تفعیل له بابه د جحد معلوم صیغه ده: د شپې یو کار کول. (انوار الایضاح)

**تشریح:** د عبارت تر حلّ مخکي دا وپېژنئ! چي د رمضان او نذرِ معین په روژه کي د ائمه ثلاثه وو یعني د امام مالک، امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمُ الله په نیز تر صبح صادق (طلوع فجر) مخکي نیت کول ضروري دي لهذا که صبح صادق را وخیږي (یعني سپېدې وچاودي) او نیت نه وکړي، نو روژه یې نه کیږي او د احنافو په نیز په دې روژو کي تر صبح صادق وروسته هم نیت کولای سي.

صورت د مسئلې دا دی چي که د رمضان په میاشته کي یو کس تر صبح صادق (طلوع فجر) وروسته (تر نصف النهار مخکي) نیت وکړي او تر هغه وروسته قصداً خوراک، څښاک یا جماع وکړي، نو د هغه روژه ماته سوه او د قضاء سره کفاره هم لازمېدل پکار دي خو څرنگه چي د ائمه ثلاثه وو په مذهب کي تر صبح صادق وروسته نیت کول معتبر نه دي (اعتبار ورلره نشته)، نو ځکه دا کس د هغوی د مذهب مطابق گردسره روژتي نه شمېرل کیږي، نو اوس چي ده کوم خوراک یا څښاک او داسي نور کړي دي. هغه یې د غیرِ روژې (نا روژتي کېدو) په حالت کي کړي دي، نو د ائمه ثلاثه وو د دې مذهب پر بناء د ده د روژې ماتولو په جرم کي شبهه او کمزوري راغله، د دغه شبهې پر بناء به د کفارې حکم نه

ورکول کيږي: ځکه چې کفاره يو سزا ده او سزا د شبهې په صورت کې نه لازميږي. (يا په بله وينا کفاره د شبهې په صورت کې ساقطيږي). (مراقی الفلاح مع الطحطاوي بحوالۀ انوار الايضاح)

## که روژتي مسافر مقيم سي، نو څه حکم دی؟

﴿۱۱۰۴﴾ أَوْ أَصْبَحَ مُسَافِرًا يا سهار کړي د مسافر والي په حالت کې (يعني د سهار په وخت کې مسافر وي) فَنَوَى الْإِقَامَةَ ثُمَّ أَكَلَ بيا د پاتېدلو (مقيم والي) نيت وکړي بيا خوراک وکړي.

**تشريح:** صورت د مسئلې دا دی چې که يو کس د سهار په وخت کې مسافر وي او تر صبح صادق مخکې يې د روژې نيولو نيت کړی وي، يا نه وي کړی (په دواړو صورتونو کې حکم برابر دی). بيا وروسته هغه په يو ځای کې د پنځلسو ورځو اقامت (پاتېدلو) نيت اراده وکړي او تر دې وروسته خوراک يا څښاک وکړي او روژه ماته کړي. يا اول روژه ماته کړي (د سافر کېدو په وجه). بيا د اقامت نيت وکړي، نو پر هغه کفاره نه واجبيږي، صرف قضاء لازميږي. او اوس بقيه ورځ خوراک، څښاک کول حرام دي؛ د کفارې نه لازمېدلو وجه دا ده چې هغه مخکې مسافر وو چې په دې وجه د هغه لپاره روژه ماتول جائز وه. او کفاره په شبهې سره ساقطيږي. (مراقی الفلاح ص: ۳۶۹ بحوالۀ انوار الايضاح)

## که روژتي مقيم مسافر سي، نو څه حکم دی؟

﴿۱۱۰۵﴾ أَوْ سَافَرَ بَعْدَ مَا أَصْبَحَ مُقِيمًا فَأَكَلَ يا مسافر سي وروسته تر دې چې سهار کړي د مقيم والي په حالت کې (يعني د سهار په وخت کې مقيم وي تر دې وروسته سفر شروع کړي) بيا خوراک وکړي.

**تشريح:** صورت د مسئلې دا دی چې که يو کس مقيم وي، روژه يې وي او تر صبح صادق وروسته په سفر ولاړ سي (مسافر سي) او بيا د سفر په حالت کې روژه ماته کړي او خوراک، څښاک يا جماع وکړي په دې ګومان سره چې اوس خو زه مسافر يم (حال دا چې کوم څوک د روځې په شروع کې مقيم وي.نو پر هغه روژه پوره کول ضروري دي، خو روژه ماته کړي)، نو په دې صورت کې هم پر هغه صرف قضاء سته، کفاره نه سته. ځکه د مسافر لپاره د روژې نه نيولو رُخصت سته. نو که څه هم دا کس د ورځې په شروع کې مقيم دی، خو د دې رُخصت په وجه شبه پيدا سوه او په شبهې سره کفاره ساقطيږي، نو ځکه پر هغه کفاره نسته.

ها! که څوک بيرته له سفر څخه راوګرځي، وطن ته واپس سي او بيا قصداً روژه ماته کړي. نو اوس د قضاء سره کفاره هم لازميږي؛ ځکه د راګرځېدلو او واپس کېدلو په وجه د ده سفر ختم سو. همدارنګه کله چې هغه د سفر په اراده روان سي، خو تر اوسه له خپل کلي او آبادۍ څخه نه وي وتلی (يعني شرعاً مسافر نه وي ګرځېدلی) او په همدې حالت کې روژه ماته کړي، نو پر هغه هم کفاره لازميږي: ځکه چې تر اوسه شرعاً هغه مسافر نه دی ګرځېدلی. (مراقی الفلاح مع الطحطاوي ص ۳۶۹ بحوالۀ انوار الايضاح)

## بغیر له نیته د خوراک، څښاک وغیره نه کولو حکم

﴿۱۱۰۶﴾ أَوْ أَمْسَكَ بِلَا نِيَّةِ صَوْمٍ وَلَا نِيَّةِ فِطْرٍ یا ځان ونیسي (له خوراک، څښاک او ناسي نورو څخه) بېله نیت څخه د روژې نیولو او بېله نیت څخه د روژې خوړلو.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چې که څوک په رمضان شریف کې ټوله ورځ هسې بېله نیته له خوراک، څښاک او جماع څخه ځان ونیسي (یا په بله وینا: بېله نیته روژه ونیسي)، نه د روژې نیت وکړي او نه د روژې نه نیولو (روژې خوړلو) نیت وکړي، نو په دې صورت کې هم پر هغه صرف د دې ورځې قضاء واجبیږي، کفاره نه واجبیږي؛ وجه یې دا ده چې د روژې د صحیح کېدو لپاره نیت کول شرط دي، حال دا چې هغه نیت نه دی کړی او د شرط په نشتوالي سره مشروط ختمیږي. او کفاره پر هغه کس لازمیږي کوم چې د روژې نیولو څخه وروسته هغه ماته کړي، او دلته د نیت د نشتوالي په وجه روژه بالکل په وجود کې نه راغله، نو ځکه کفاره نه لازمیږي. (مراقی الفلاح مع الطحطاوي ص: ۳۶۹ بحواله انوار الایضاح)

## تر صبح صادق وروسته په خطاء سره د خوراک کونکي حکم

﴿۱۱۰۷﴾ أَوْ تَسَحَّرَ أَوْ جَامَعَ شَاكًّا فِيْ طُلُوْعِ الْفَجْرِ یا پېشلمی وکړي یا جماع وکړي په داسې حال کې چې شک کونکی وي د صبح صادق (سپېدو) په راختلو کې وَهُوَ طَالِعٌ حال دا چې هغه راختلی وي أَوْ أَفْطَرَ يَظُنُّ الْغُرُوْبَ یا روژه ماته کړي د لمر لوېدلو په ګومان سره وَالشَّمْسُ بَاقِيَةٌ حال دا چې لمر (تر اوسه) پاته وي.

**لغات:** ﴿تسحّر﴾ د تفعّل له بابه ماضي معلومه ده: پېشلمی کول (یا په بله وینا د پېشلمي په وخت کې خوراک کول). ﴿شاك﴾ د نصر له بابه فاعل دی: شک کونکی، شکمن.

**تشریح:** که څوک په صبح صادق (سپېده چاود) کې شکمن وي، مثلاً نا وخته راویښ سي او په دې کې یې شک سي چې تر اوسه به صبح صادق سوی وي که نه وي (یا په بله وینا چې تر اوسه به سپېدې چاودلې وي، که نه)، په دې وخت کې پېشلمی (خوراک او څښاک) وکړي، یا جماع وکړي، حال دا چې په هغه وخت کې صبح صادق وي (یعني بیا معلومه سي چې دده پېشلمي خوړلو یا جماع کولو په وخت د سهار سپېدې چاودلې وې)، نو په دې صورت کې صرف قضاء واجبیږي.

همدارنګه که څوک ناوخته راویښ سي او ګومان یې دا سي چې تر اوسه شپه لا پاته ده او په همدې ګومان پېشلمی وکړي یا جماع وکړي، بیا وروسته ورته معلومه سي چې ما خو تر صبح

صادق (سپېده چاود) وروسته پېشلمي يا جماع کړی دی، نو هم پر هغه صرف قضاء واجبېږي؛ کفاره نه واجبېږي، خو بيا هم پاته ورځ به د روژتي په څېر خوراک او څښاک نه کوي.

أو أفطر بظنّ الغروب إلخ: همدارنګه که څوک د لمر لوېدلو په ګومان سره روژه ماته کړي، وروسته معلومه سي چي په حقيقت کي لمر لوېدلی نه وو، بلکي په هغه وخت کي خو لمر لوېدو ته څو دقيقې لا پاته وي، نو په دې صورت کي هم پر هغه صرف قضاء واجبېږي؛ ځکه تر څو چي لمر لوېدلی نه وي خوراک، څښاک او داسي نور صحيح نه دي، او کفاره نه واجبېږي. (انوار الایضاح. شفاء الارواح)

## د چارپای یا د مړې ښځې سره د وطي کولو یا په ورنو او نس باندي د انزال حکم

﴿۱۱۰۸﴾ أَوْ أَنْـزَلَ بِوَطْءِ مَيْـتَةٍ أَوْ بَهِيْـمَةٍ يا انزال سي په وطي کولو سره د مړه يا د چارپای سره أَوْ بِتَفْخِيْذٍ أَوْ بِتَـبْطِيْـنٍ يا (انزال سي) په نس يا وورون کي په مږلو سره.

**لغات**: ﴿ميتة﴾ په قاموسونو کي د "مَيْتَة" (بغير تشديد الياء) معنىٰ خو په "مړزګي" سره سوې ده: يعني داسي حيوان کوم چي په خپل مرګ مړ سوی وي (يا بله وينا: په خپله مردار سوی څاروی کوم چي ذبح کړی سوی نه وي) کوم ته چي "مرداره" هم وايي، او که "مَيِّتَة" (بتشديد الياء) سي نو د "مړې ښځې" معنىٰ ورکوي، خو په شروحو کي "مَيْتَة" دی او معنىٰ يې په مطلق "مړه" (مرده) سره کړې ده.

**تشريح**: صورت د مسئلې دا دی چي که روژتي د مړه انسان يا د چارپای سره وطي وکړي او انزال سي، نو څرنګه چي په دې صورت کي له جانبينو څخه پوره قضاء شهوت نسته، نو ځکه په دې صورت کي صرف قضاء لازميږي، همدارنګه که روژتي د خپلي ښځې په ورنو يا نس باندي ذکر ومږي او ځان انزال کړي، نو په دې صوت کي هم صرف د روژې قضاء لازميږي، کفاره نه لازميږي. (انوار الايضاح)

## د مچي اخيستلو او مسه کولو په وجه د انزال حکم

﴿۱۱۰۹﴾ أَوْ قُبْلَةٍ أَوْ لَمْسٍ يا (انزال سي) په مچولو (مچه اخيستلو) يا مسه کولو سره.

**لغات**: ﴿قبلة﴾ مچه، جمع: قُبَلٌ.

**تشريح**: که يو څوک د روژې په حالت کي له خپلي ښځي څخه مچه واخلي يا يې مسه کړي (مثلاً په غېږ کي يې ونيسي) چي د هغه په وجه انزال سي، نو روژه فاسديږي او صرف قضاء لازميږي، کفاره نه لازميږي. (انوار الايضاح)

## له رمضان څخه بغیر د بلې روژې قصداً ماتولو حکم

﴿۱۱۱۰﴾ أَوْ أَفْسَدَ صَوْمَ غَيْرِ أَدَاءِ رَمَضَانَ یا د رمضان له ادائي روژې څخه بغیر بله روژه فاسده (ماته) کړي.

**تشریح**: که یو چا د رمضان له روژې څخه بغیر بله روژه نیولې وي، مثلاً د رمضان د قضاء روژه، یا نفلي روژه، یا د کفارهٔ ظهار، کفارهٔ قتل او داسې بله روژه، او بیا یې ماته کړي، نو پر هغه کفاره نه راځي. صرف قضاء لازمېږي. (انوار الایضاح)

## د بیدې ښځې سره د جماع کولو حکم

﴿۱۱۱۱﴾ أَوْ وُطِئَتْ وَهِيَ نَائِمَةٌ یا د (روژتي) ښځې سره وطي وکړل شي په داسې حال کې چې هغه بیده وي.

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چې که روژتي ښځه بیده وي او خاوند په همدې حالت کې وطي ور سره وکړي، نو د ښځې روژه فاسدېږي او صرف قضاء یې لازمېږي او (که خاوند روژتی وي. نو) پر خاوند قضاء او کفاره دواړه لازمېږي. (انوار الایضاح)

## په شرمګاه (فرج) کې د دواء اچولو حکم

﴿۱۱۱۲﴾ أَوْ أَقْطَرَتْ فِيْ فَرْجِهَا یا ښځه څه شی وڅڅوي په خپل فرج کې (نو هم صرف قضاء لازمېږي) عَلَى الْأَصَحِّ د صحیح ترین قول مطابق.

**تشریح**: که ښځه په خپل شرمګاه کې دواء یا تېل او داسې نور وڅڅوي او واچوي، نو د اصح قول مطابق د هغې روژه ماتېږي او صرف د روژې قضاء لازمېږي. (انوار الایضاح بحوالهٔ البحر الرائق ج:۲. ص:۲۰۱)

## په دُبر کې د ګوتې داخلولو حکم

﴿۱۱۱۳﴾ أَوْ أَدْخَلَ إِصْبَعَهُ مَبْلُوْلَةً بِمَاءٍ أَوْ دُهْنٍ فِيْ دُبُرِهٖ یا (روژتي) سړی دننه کړي خپله ګوته په داسې حال کې چې هغه خیشته (لنده) وي په اُوبو یا خیشته (غوړه) وي په تېلو سره خپل دشا په لاره (معقده) کې.

**لغات**: ﴿مبلولة﴾ د نصر له بابه اسم مفعول مؤنث دی: لنده، بَلَّ بَلَلًا: لندول، خیشتول.

**تشریح**: مسئله دا ده چې که روژتي خپل د شا په لاره کې ګوته واچوي، نو د دې دوه صورتونه دي:
① که ګوته وچه وي چې پر هغه د اوبو یا دواء اثر نه وي، نو روژه یې نه ماتېږي، ② او که لنده ګوته

وي کوم چې په اوبو، روغنو (تېلو) یا دواء سره لنده وي، نو روژه یې ماتیږي (ځکه اوبه یا تېل او داسې نور دننه نس ته ورسېدل)، او صرف قضاء لازمیږي. (انوار الایضاح)

﴿۱۱۱۴﴾ أَوْ أَدْخَلَتْهُ فِيْ فَرْجِهَا الدَّاخِلِ یا ښځه دننه کړي خیشته ګوته په خپل دنني فرج کې (نو هم یې روژه ماتیږي او صرف قضاء لازمیږي) فِي الْمُخْتَارِ د مختار (خوښ سوي) قول مطابق.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چې که یو ښځه په خپل دنني فرج (د شرمګاه په دننی حصه) کې لنده ګوته داخله کړي، نو فوراً د هغې روژه ماتیږي. (شامي ج:۲، ص:۱۳۵، شامي ج:۳، ص:۳۲۹)

## په دُبر وغیره کې پمبه داخلول

﴿۱۱۱۵﴾ أَوْ أَدْخَلَ قُطْنَةً فِيْ دُبُرِهٖ أَوْ فِيْ فَرْجِهَا الدَّاخِلِ یا دننه کړي پمبه سړی خپل د شا په لاره کې یا ښځه په خپل دنني فرج کې وَغَيَّبَهَا او پکښې غائبه (ورکه) یې کړي.

**لغات:** ﴿غَيَّبَ﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: غائبول، پټول، نهامول (نیامول).

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چې که یو سړی خپل د شا په لاره کې پمبه، یا د تهو کړیو ټوټه داخله کړیم یا یې ښځه په خپل دنني فرج کې داخله کړي او پوره لاندې یې ورسوي، نو په دې سره هم روژه فاسدیږي او صرف قضاء لازمیږي.

## قصداً دود کشول

﴿۱۱۱۶﴾ أَوْ أَدْخَلَ حَلْقَهٗ دُخَانًا بِصُنْعِهٖ یا دننه کړي خپل حلق (ستوني) ته دود په خپل فعل سره.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چې که روژتي قصداً د یو شي دود (لکه د ښه بوی لرونکي بوټي دود یا د بل شي دود) د خولې د لارې یا د پزې د لارې کش کړي او ستوني یې ته داخل کړي، نو روژه یې فاسدیږي او پر هغه صرف قضاء واجبیږي.

همدارنګه که روژتي قصداً سګرېټ، بېړۍ او چلم وڅکوي، (یا مثلاً قصداً د عُود یا عنبر او داسې نورو دود ځان ته دننه داخل کړي)، نو په دې سره هم روژه ماتیږي او قضاء لازمیږي او په بعضې صورتونو کې کفاره هم لازمیږي یعنې کله چې دا شیان (سګرېټ، چلم، عُود او داسې نور) نفع منډ وګڼي او له دوی څخه د نفع او لذت په حاصلولو سره د نس طلب پوره کوي، نو کفاره او قضاء دواړه لازمیږي. کنې صرف قضاء سته. (فتاویٰ دار العلوم ج:۶، ص:۴۱۹، شامي ج:۲، ص:۱۳۴ بحوالهٔ انوار الایضاح)

## په روژه کي قی وهل

| |
|---|
| ﴿۱۱۱۷﴾ أَوِ اسْتَقَاءَ وَلَوْ دُوْنَ مِلْءِ الْفَمِ يا (قصدا) قی ووهي که څه هم په ډکه خوله وي (نو هم صرف قضاء لازميږي) فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ په ظاهر روايت کي وَ شَرَطَ أَبُوْيُوْسُفَ مِلْءَ الْفَمِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د خولې ډکوالی (په ډکه خوله قی وهل) شرط کړي دي وَهُوَ الصَّحِيْحُ او همدا صحيح ده. |

**لغات**: ﴿استقاء﴾ د استفعال د باب ماضي ده: د قي طلب کول. يعني قصداً قی وهل. ﴿دُوْن﴾ ظرف مکان منصوب دی. د دې لفظ څو معناوي دي، د مضاف اليه په بدلون سره يې معنیٰ هم بدليږي. دلته يې معنیٰ ده: کم، د کمي درجې، لکه څرنګه چي ويل کيږي: هٰذا الشيء دون کذا: دا شی له هغه څخه د کمي درجې دی.

**تشريح**: مسئله دا ده چي که د روژې په حالت کي په خپل فعل سره مثلاً ګوته ستوني ته داخله کړي او قصداً قی ووهي، نو که دا قی په ډکه خوله وي، نو بالاتفاق روژه ماتيږي او قضاء لازميږي او که په ډکه خوله نه وي، نو هم دامام محمد رَحِمَهُ الله په نېز روژه ماتيږي. همدا ظاهر روايت دی او دامام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز نه ماتيږي او همدا صحيح ده.

| |
|---|
| ﴿۱۱۱۸﴾ أَوْ أَعَادَ مَا ذَرَعَهُ مِنَ الْقَيْءِ وَكَانَ مِلْءَ الْفَمِ يا واپس (تېر) کړي هغه قی کوم چي ده ته خپله راغلی وي (بغير صنعه) او هغه په ډکه خوله وي وَهُوَ ذَاكِرٌ لِصَوْمِهِ په داسي حال کي چي هغه ته خپل روژه ياده وي. |

**لغات**: ﴿ذرعه﴾ قی غالبه کېدل او خولې ته راتلل (بې اختياره قی راتلل). خوا ګرځې کېدل.

**تشريح**: صورت د مسئلې دا دی چي که يو روژتي ته خپله (د هغه له فعل څخه بغير) په ډکه خوله قی راسي او روژتي هغه قصداً ستوني ته وګرځوي او تېر يې کړي، نو روژه يې ماتيږي او صرف قضاء لازميږي. او که له ډکي خولې څخه کم قی وي او بيا يې قصداً وګرځوي، نو هم روژه ماتيږي لکه څرنګه چي په فتاویٰ عالمګيري (ج۱، ص۲۰۴) کي ليکلي دي، خو علامه طحطاوي رَحِمَهُ الله عدمِ فساد ته اصح ويلي دي.

## د نخود په اندازه د غاښو په مینځ کي پاته شی خوړول

﴿۱۱۱۹﴾ أَوْ أَكَلَ مَا بَيْنَ أَسْنَانِهِ یا وخوري هغه څه کوم چي يې د غاښو په مینځ کي (بند پاته) وي وَكَانَ قَدْرَ الْحِمَّصَةِ او هغه د نخود په اندازه وي.

**لغات**: ﴿أسنان﴾ جمع د سِنّ ده: غاښ. ﴿حِمَّصَة﴾ يو نخود.

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چي مثلاً د پېشلمي په خوراک کي څه شی د روژتي په غاښو کي پاته سوی (بند سوی) وي، که روژتي هغه په ژبه سره را وباسي او ويې خوري او هغه د نخود په اندازه وي، نو روژه يې ماتيږي او صرف قضاء لازميږي. او که له خولي څخه يې بهر را وباسي او بيا يې وخوري، نو قضاء او كفاره دواړه لازميږي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

## په هېره له خوراک کولو څخه وروسته د روژې د نیت کولو حکم

﴿۱۱۲۰﴾ أَوْ نَوَى الصَّوْمَ نَهَارًا بَعْدَ مَا أَكَلَ نَاسِيًا یا د روژې نیت د ورځي وکړي وروسته تر دې چي په هېره خوراک وکړي قَبْلَ إِيجَادِ نِيَّتِهِ مِنَ النَّهَارِ مخکي تر موجودوالي د خپل نیت په ورځ کي (یعني د رمضان په ورځ کي يې تر اوسه د روژې نیت نه وي کړی او تر هغه مخکي په هېره خوراک وکړي او بيا د روژې نیت وکړي، نو په دې صورت کي هم صرف قضاء لازميږي).

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چي که په رمضان کي يو څوک په هېره خوراک یا څښاک وکړي، تر دې وروسته روژه ور په ياده سي چي دا خو د رمضان مياشته ده، نو د روژې اراده وکړي او له دغه په هېره خوراک او څښاک څخه مخکي يې د روژې نیت بالكل نه وي کړی، نو که څه هم دا خوراک او څښاک يې په هېره کړی دی خو (د نیت د ناموجودوالي په وجه) بيا هم پر هغه قضاء لازميږي. (په بله وینا دا چي که څوک د روژې له نیت کولو څخه مخکي په هېره خوراک یا څښاک وکړي. بيا د رمضان د روژې نیت له نصف النهار شرعي څخه مخکي وکړي، نو هم د هغه روژه نه صحیح کیږي او پر هغه قضاء لازميږي، خو په عمدة الفقه کي دي چي د صحیح روایت پر بناء د هغه روژه صحیح کیږي (شفاء الارواح)). ها! که مخکي يې د روژې نیت کړی وي. بيا په هېره خوراک یا څښاک وکړي، نو اوس په روژه باندي هیڅ اثر نه لوېږي. (انوار الایضاح)

## د روژې له نيت کولو څخه وروسته د بېهوښه کېدلو حکم

﴿۱۱۲۱﴾ أَوْ أُغْمِيَ عَلَيْهِ وَلَوْ جَمِيْعَ الشَّهْرِ يا پر هغه بېهوښي راسي (بې هوښه سي) که څه هم ټوله مياشته وي إِلَّا أَنَّهُ لَا يَقْضِي الْيَوْمَ الَّذِيْ حَدَثَ فِيْهِ الْإِغْمَاءُ أَوْ حَدَثَ فِيْ لَيْلَتِهِ خو قضاء به نه راوړي د هغه ورځې چې دا بېهوښي پکښې پېښه سوې وي يا چې د هغه ورځې په شپه کې دا بېهوښي پېښه سوې وي.

**لغات:** ﴿أُغمي﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده، مصدر: إِغْمَاء: بېهوښه کېدل (بې سده کېدل).

﴿حدث﴾ د نصر د باب ماضي معلومه ده، مصدر: حُدُوْثًا: پېښېدل.

**تشريح:** صورت د مسئلې دا دی چې که څوک پېشلمي وکړي او د روژې نيت هم وکړي، تر دې وروسته په ورځ کې يا په همدې شپه کې بېهوښه سي او څو ورځې بېهوښه پروت وي، يا تر دې چې ټوله مياشت بېهوښه وي، نو په کومه ورځ چې بېهوښه سوی وي، د هغه ورځې قضاء پر ده واجب نه ده، لېکن تر هغه وروسته د نورو قضاء پر ده واجب ده؛ ځکه په کومه ورځ چې بېهوښه سوی دی، په هغه ورځ کې د روژې نيت موجود سو (ځکه د روژې نيت خو يې وکړی)، او د نيت کولو سره، سره دا بېهوښه کس د روژې له ماتونکو شيانو څخه هم منع او محفوظ سو، نو ځکه د هغه ورځې قضاء نه واجبېږي، او له هغه څخه بغير په نورو ورځو کې نيت موجود نه سو، لهذا په دې نورو ورځو کې د روژې له ماتونکو شيانو څخه منع کېدل روژه نه شمېرل کېږي، او نيت ځکه موجود نه سو چې بېهوښي له نيت څخه مانع ده. (انوار الايضاح، مراقي الفلاح)

## په روژه کې د جنون (لېونتوب) ختمېدلو حکم

﴿۱۱۲۲﴾ أَوْ جُنَّ يا لېونی سي (مجنون سي) غَيْرَ مُمْتَدٍّ جَمِيْعَ الشَّهْرِ په داسي حال کې چې هغه (لېونتوب يې) ټوله مياشت نه وي غځېدلای (يعني جنون يې ټوله مياشت نه وي پاته سوی بلکې په بعضي حصه کې روغ سي).

**لغات:** ﴿جُنّ﴾ مصدر: جُنُونًا: لېونی کېدل، جنون پر دوه قسمه دی: يو اصلي دی او هغه دا چې جنون تر بلوغت مخکې پېښ سوی وي، دويم عارضي دی او هغه دا چې جنون تر بلوغت وروسته پېښ سوی وي، بيا به جنون ممتد وي (يعني ټوله مياشت به پاته سوی وي) يا به غير ممتد وي (يعني ټوله مياشته به جنون نه وي پاته سوی). که جنون اصلي وي، نو برابره ده ممتد وي او که نه وي، قضاء يې نه لازمېږي، او که عارضي وي او

ممتد وي، نو هم قضاء لازميږي لکه د تشريح په آخر کي چي ذکر سوي دي او که عارضي وي او غير ممتد وي، نو د هغه حکم هم په تشريح کي مذکور دی. ﴿ممتدّ﴾ د افتعال له بابه فاعل دی: غوړېدلی. اوږد.

**تشريح**: صورت د مسئلې دا دی چي که مجنون د رمضان په يو حصه کي روغ سي او لېونتوب يې زائل سي (چي دې ته غيرِ ممتدّ جنون وايي)، نو د تېرو ورځو قضاء پر ده لازميږي او په را روانو ورځو کي به روژه نيسي، حتیٰ که د رمضان په آخري ورځ هم مجنون تر زوال (نصف النهار) مخکي روغ سي. نو په دې صورت کي هم پر ده د هغه ټولو ورځو قضاء لازميږي چي په هغوی کي دئ لېونی وو. او که ټوله رمضان تېر سي او دئ روغ نه سي (چي دې ته جنون ممتدّ وايي)، نو بيا پر ده قضاء نسته، ځکه چي غير مکلف سو. (انوار الايضاح)

﴿۱۱۲۳﴾ وَلَا يَلْزَمُهُ قَضَاؤُهُ بِإِفَاقَتِهِ لَيْلًا أَوْ نَهَارًا بَعْدَ فَوَاتِ وَقْتِ النِّيَّةِ او نه لازميږي پر مجنون (لېوني) د رمضان قضاء د ده په روغېدلو (پر سد کېدلو) سره په شپه يا ورځ کي د نيت د وخت تر ختمېدلو وروسته فِي الصَّحِيْحِ د صحيح قول مطابق.

**لغات**: ﴿إفاقة﴾ د افعال د باب مصدر دی: په هوښ کي راتلل. پر سد کېدل. روغېدل.

**تشريح**: صورت د مسئلې دا دی چي که يو څوک د رمضان ټوله مياشته مجنون پاته سي او بيا د رمضان په آخري ورځ تر زوال (نصف النهار) وروسته يعني کله چي د نيت آخري وخت ختم او تېر سي بيا روغ سي، نو پر هغه قضاء نسته، همدارنګه که مجنون په شپه کي روغ سي. نو بيا هم پر هغه قضاء نسته. صاحب د مراقي الفلاح ليکلي دي "وعليه الفتوى لأن الليل لا يُصام فيه ولا فيما بعد الزوال...". (انوار الايضاح)

**يادونه**: صاحب د شفاء الارواح د مذکوره عبارت پوره تشريح داسي کړې ده: چي که جنون غيرِ ممتد وي (يعني مجنون د رمضان په دوران کي يو وخت روغ سي) نو له روغوالي څخه مخکي د تيرو ورځو قضاء پر هغه لازم ده. او که ټوله رمضان مجنون وي يعني ټوله مياشت جنون باقي وي. يا د رمضان په دوران کي په يو شپه کي روغ سي، يا د رمضان په آخري ورځ تر نصفُ النهار شرعي وروسته روغ سي، نو په دې دريو صورتونو کي د امامانو اختلاف دی. د بعضو په نېز پر هغه قضاء لازم نه ده. همدې ته مصنف رَحِمَهُ الله "صحيح" ويلي دي، او د بعضو په نېز که مجنون د رمضان په هسي يو ساعت کي هم روغ سي، برابره ده په شپه کي وي او که تر نصف النهار وروسته وي. نو پر هغه د تيرو ورځو قضاء لازميږي، په کتابو کي دواړو قولونو ته صحيح ويل سوي دي. لېکن اصح او د فتوىٰ لپاره مختار دويم قول دی. (شفاء الارواح بحوالة عمدة الفقه)



# فَصْلٌ فِیْ لَوَاحِقِهٖ

## د روژې فاسدېدلو او د روژتیانو سره د مشابهت اختیارولو حکم

﴿۱۱۲۴﴾ يَجِبُ الْإِمْسَاكُ بَقِيَّةَ الْيَوْمِ عَلٰى مَنْ فَسَدَ صَوْمُهٗ واجب دي ځان نیول (له خوراک، چښاک او داسې نورو شخه منع کېدل) په پاته ورځ کې پر هغه چا چې روژه يې فاسده سوې (ماته سوې) وي.

**لغات:** ﴿إمساك﴾ د افعال د باب مصدر دی: نیول، منع کول، منع کېدل، پرهېز کول.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چې که دیو چا روژه ماته سي، نو د هغه لپاره ضروري ده چې پاته ورځ د روژتیانو په څېر له خوراک، چښاک او داسې نورو شخه پرهېز وکړي او تر مانبامه پورې د روژتیانو سره مشابهت اختیار کړي. برابره ده هغه بېله عذره روژه ماته کړې وي مثلاً قصداً يې خوراک یا چښاک کړی وي، یا د عذر مثلاً د سختي تبې په وجه يې ماته کړې وي او بیا تبه ختمه سي، په هر صورت کي به تر مانبامه پورې له خوراک، چښاک او داسې نورو شخه ځان ساتي.

بعضي حضراتو فرمایلي دي چې تر مانبامه پورې ځان ساتل او د روژتیانو سره مشابهت اختیارول مستحب دي، واجب نه دي، لېکن صحیح دا ده چې واجب دي. (شفاء الارواح)

﴿۱۱۲۵﴾ وَعَلٰى حَائِضٍ وَنُفَسَاءَ طَهُرَتَا بَعْدَ طُلُوْعِ الْفَجْرِ او (همدارنګه واجب دی امساک) پر هغه حیض والا او نفاس والا ښځي چې هغوی د صبح صادق له راختلو شخه وروسته پاکي سوي وي.

﴿۱۱۲۶﴾ أَوْ عَلٰى صَبِيٍّ بَلَغَ وَكَافِرٍ أَسْلَمَ او (همدارنګه واجب دی امساک) پر هغه کوچني (هلک) چې بالغ سي او پر هغه کافر چې اسلام راوړي وَعَلَيْهِمُ الْقَضَاءُ إِلَّا الْأَخِيْرَيْنِ او پر دوی ټولو قضاء واجب ده مګر پر آخري دوو (یعني له کوچني او نوي مسلمان شخه بغیر پر نورو د دې روژې قضاء هم واجب ده).

**تشریح:** یعني که تر صبح صادق (طلوع فجر) وروسته حیض یا نفاس والا ښځه له حیض یا نفاس شخه پاکه سي. یا نابالغه هلک بالغ سي، یا کافر مسلمان سي، نو پر دوی ټولو د هغه ورځي په پاته حصه کي د روژتیانو په څېر له خوراک، چښاک او داسې نورو شخه منع کېدل واجب دي، او پر دغه حیض یا نفاس والا ښځي د هغه ورځي او د تېرو (فوت شده) روژو قضاء واجب ده، ماسوا له نابالغه هلک شخه چې د ورځي بالغ سي او ماسوا له کافر شخه چې د ورځي مسلمان سي، پر دوی د هغه ورځي قضاء واجب نه ده.

## فَصْلٌ فِيْمَا يُكْرَهُ لِلصَّائِمِ وَفِيْمَا لَا يُكْرَهُ وَمَا يَسْتَحِبُّ

(دا) فصل په (بيان د) دهغو شيانو كي دى كوم چي د روژتي لپاره مكروه دي او كو چي مكروه نه دي او هغه شيان كوم چي مستحب دي

### د كنډورو او داسي نورو د ژوولو حكم

﴿۱۱۲۷﴾ كُرِهَ لِلصَّائِمِ سَبْعَةُ أَشْيَاءَ مكروه دي د روژتي (روژه دار) لپاره اووه شيان ذَوْقُ شَيْءٍ وَمَضْغُهُ بِلَا عُذْرٍ (۱) يو شى څكل (خونديې كتل) (۲) او يو شى ژوول بغير له عذر څخه.

**لغات:** ﴿ذَوق﴾ د نصر د باب مصدر دى: څكل، خوند كتل.

**تشريح:** مسئله دا ده چي د يو شي په څكلو (خوند كتلو) يا ژوولو سره روژه نه فاسديږي. لېكن بېله عذره داسي كول مكروه دي. كه عذر وي، نو مكروه نه دي، عذر مثلاً د يو ښځي خاوند ډېر بد مزاجه وي. د مالګي په كموالي يا زياتولي سره ډېر ناراضه كيږي او سختي كوي. نو كه د هغه ښځه مجبوراً د ښوروا يا كتغ وغيره خوند وڅكي، نو څه پروا نسته. او د څكلو (خوند كتلو) مطلب دا دى چي د ژبي په سر باندي يې داسي وڅكي او خوند يې وګوري چي د هغه ښوروا وغيره هيڅ جزء ستوني ته ولاړ نه سي.

او د ژوولو لپاره عذر دا دى چي بچى ورى وي او د هغه لپاره نرم (پوست) خوراك نه وي او نه د مور شيدې وي او نه د مور سره نژدې داسي څوك وي چي پر هغه روژه فرض نه وي مثلاً حيض يا نفاس والا ښځه يا نابالغه هلك يا مريض او داسي نور څوك چي د دغه بچي لپاره خوراك وژووي او ورېې كړي، نو په داسي صورت كي د روژتي ښځي لپاره خورواك ژوول او په بچي خوړل څه پروا نه لري. (شفاء الارواح)

### ګوند يا داسي نور ژوول

﴿۱۱۲۸﴾ وَمَضْغُ الْعِلْكِ (۳) او ګوند ژوول.

**لغات:** ﴿الْعِلْك﴾ هر هغه ګوند (كنډوري) چي ژوول كيږي او په ژوولو سره يې ذات نه ويلي كيږي.

جمع: عُلُوْك و أَعْلَاك.

**تشريح:** مسئله دا ده چي كه روژتي ګوند (كنډوري) وژووي. نو د هغه روژه خو نه فاسديږي. خو د روژتي لپاره ګوند ژوول مكروه دي. ځكه كېدلاى سي چي د هغه څه اجزاء تر ستوني تېر سي.

او په عمدة الفقه کي دي چي د کوم گوند څه حصه هم د نارو (لارو) سره نس ته نه رسیږي، د هغه په ژوولو سره روژه نه ماتیږي او د کوم گوند څه حصه هم چي د نارو سره ګډ نس ته رسیږي، نو د هغه گوند په ژوولو سره روژه ماتیږي (لکه د نن سبا ژاولي چي خوږ والی یې د نارو سره نس ته رسیږي).

## د روژې په حالت کي ښځه مچول او ور سره پرېوتل

﴿۱۱۲۹﴾ وَالْقُبْلَةُ وَالْمُبَاشَرَةُ (۴) او مچه اخیستل (۴) او یو د بل سره بدن مسه کول (یو ځای ور سره پرېوتل) إِنْ لَمْ يَأْمَنْ فِيهِمَا عَلَى نَفْسِهِ الْإِنْزَالَ أَوِ الْجِمَاعَ که چیري په امن (مطمئن) نه سي په دې دواړو (مچولو مسه کولو) کي پر خپل ځان له انزال او جماع څخه (نو مکروه دي) فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ په ظاهر روایت کي.

**تشریح:** د روژې په حالت کي خپله ښځه مچول او یو ځای ور سره پرېوتل د داسي کس لپاره مکروه دي چي هغه ته د انزال یا جماع بېره وي او پر ځان یې باور نه وي، لیکن کوم کس ته چي دا بېره نه وي او پر ځان یې پوره باور وي، نو هغه ور سره پرېوتلای سي. (انوار الایضاح بحوالهٔ در مختار مع الشامي)

## نارې (لارې) تېرول

﴿۱۱۳۰﴾ وَجَمْعُ الرِّيقِ فِي الْفَمِ ثُمَّ ابْتِلَاعُهُ او نارې په خوله کي جمع کول او بیا تېرول.

**لغات:** ﴿رِيق﴾ نارې (لارې)، جمع: أَرْيَاقٌ و رِيَاق.

**تشریح:** په خوله کي نارې جمع کول او تېرول د روژې په حالت کي مکروه دي او له جمع کولو څخه بغیر نارې تېرول مکروه نه دي؛ ځکه له هغه څخه بچ کېدل ممکن نه دي. (شفاء الارواح)

## داسي کار کول کوم چي د روژتي د ضُعف سبب گرځي (مثلا وینه کښل)

﴿۱۱۳۱﴾ وَمَا ظَنَّ أَنَّهُ يُضْعِفُهُ او (هر) هغه څه چي د هغه په باره کي د روژتي دا گومان وي چي کمزوري به یې کړي (نو هغه هم مکروه دی) كَالْفَصْدِ وَالْحِجَامَةِ لکه رګ وهل او ښکر لګول (وینه کښل).

**لغات:** ﴿فصد﴾ د رګ د لارې خرابه (فاسده) وینه کښل. ﴿حجامة﴾ د ښکر په ذریعه خرابه وینه راخېښل (کښل)، دیو آلې په ذریعه خرابه وینه کښل.

**تشریح:** د روژې په حالت کي هر داسي کار چي په هغه سره د دومره ضعیف کېدلو بېره وي (چي روژتي به دومره اندازه ضعیف کړي) چي روژې ماتولو ته به مجبوره سي او د روژې ماتولو نوبت به راسي،

نو داسي کار اختيارول مکروه دي. او که د ضُعف او کمزورۍ خطره ځني نه وي، نو جائز دي. ستلا شوګر (شکري) د ټيست (ازمايښت) لپاره په وينه ورکولو کي هيڅ حرج نسته؛ ځکه په هغه کي لږ غونډي وينه اخيستل کيږي.

او په روژه خصوصاً په فرض روژه کي يو مريض ته خپله وينه ورکول مکروه دي، همدارنګه ښکر لګول يا له رګ څخه وينه کښل؛ ځکه چي له دې څخه د ضُعف او کمزورتيا خطره سته. او که دا خطره نه وي چي په دې عمل سره به د روژې ماتولو ته مجبوره نه سي، نو مکروه نه دي. (انوار الايضاح. شفاء الارواح)

## نهه (٩) شيان کوم چي د روژتي لپاره مکروه نه دي

| ﴿١١٣٢﴾ وَتِسْعَةُ أَشْيَاءَ لَا تُكْرَهُ لِلصَّائِمِ او نهه (٩) شيان د روژتي لپاره مکروه نه دي اَلْقُبْلَةُ وَالْمُبَاشَرَةُ مَعَ الْأَمْنِ (١) مچه اخيستل (٢) او يو د بل سره (يو تر بله) بدن مسه کول د امن سره (يعني چي پر ځان له انزال او جماع څخه په امن او مطمئن وي). |
|---|

**تشريح**: د روژې په حالت کي له خپلي ښځي څخه مچه اخيستل او ور سره پر يو تل د داسي سري لپاره بېله کراهته جائز دي چي هغه ته د انزال يا جماع خطره نه وي (يا په بله وينا چي پر ځان باور لري چي انزال به نه سم او جماع ته به بالکل نژدې هم نه سم)، لهذا د ضعيفه بوډا کس لپاره بېله کراهته جائز دي.

| ﴿١١٣٣﴾ وَدَهْنُ الشَّارِبِ وَالْكُحْلُ (٣) او بريت غوړول (٤) او رانجه لګول (سترګي تورول) وَالْحِجَامَةُ وَالْفَصْدُ (٥) او ښکر لګول (٦) او رګ وهل. |
|---|

**تشريح**: د روژې په حالت کي په بريتو باندي روغن لګول (بريتونه غوړول)، همدارنګه سترګي تورول (رانجه لګول) بېله کراهه جائز دي او په دې سره په روژه کي هيڅ خرابي نه راځي، همدارنګه ښکر لګول يا د رګ د لاري وينه کښل بېله کراهته صحيح دي کله چي له هغه څخه د ضُعف پيدا کېدلو خطره نه وي.

## د روژې په حالت کي مسواک وهل

| ﴿١١٣٤﴾ وَالسِّوَاكُ آخِرَ النَّهَارِ (٧) او مسواک وهل د ورځي په آخره (حصه) کي بَلْ هُوَ سُنَّةٌ كَأَوَّلِهِ بلکي هغه (د ورځي په آخره کي مسواک وهل) سنت دي لکه د ورځي په اوله کي وَلَوْ كَانَ رَطْبًا أَوْ مَبْلُوْلًا بِالْمَاءِ که څه هم هغه مسواک خيشت (شين تازه) وي يا په اوبو سره لوند سوی وي. |
|---|

**تشريح**: د روژې په حالت کې مسواک وهل بېله کراهته جائز دي، برابره ده د سهار په وخت کې وي او که د ورځې په آخر کې وي. مصنف رَحِمَهُ الله د "آخر النهار" قيد ځکه لګولی دی چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د روژتي لپاره تر زوال وروسته مسواک وهل مکروه دي. د هغه د مذهب رد کولو لپاره مصنف رَحِمَهُ الله د "آخر النهار" قيد لګولی دی او فرمايلي يې دي چې مسواک هر وخت وهلای سي. برابره ده مسواک خيشت تازه ي او که وچ وي او برابره ده په اوبو لوند سوی وي او که نه وي، مطلقاً هيڅ کراهت نسته. (شفاء الارواح)



**مسئله**: که د مسواک وهلو په وخت کې د مسواک ريښه ستوني ولاړه سي او نس ته ورسيږي، نو په دې سره روژه نه فاسديږي. (احسن الفتاوىٰ ج:۴، ص:۴۳۵)

| |
|---|
| ۞ د ۱۱۳۵ ۞ وَالْمَضْمَضَةُ وَالِاسْتِنْشَاقُ لِغَيْرِ وُضُوءٍ (۸) او خوله پرېولل او پزه پرېولل (اوبه پکښې اچول) بغير له اودس ځخه (په بل وخت کې هم مکروه نه دي). |

**تشريح**: د روژې په حالت کې له اودسه ځخه بغير بل وخت خوله او پزه پرېولل يعني په خوله کې اوبه رغړول او پزې ته اوبه کشول او پرېولل بېله کراهته صحيح دي، خو په مضمضه او استنشاق کې په مبالغه کولو سره روژه مکروه کيږي (خو په دې کې ډېر احتياط کول پکار دي؛ ځکه که د پزې يا د خولې د لارې اوبه ستوني ته داخل سي، نو روژه يې ماتيږي). (انوار الايضاح بحوالهٔ هنديه ج:۱، ص:۱۹۹)

## د ګرمۍ يا تندې په وجه په روژه کې غسل کول

| |
|---|
| ۞ ۱۱۳۶ ۞ وَالِاغْتِسَالُ وَالتَّلَفُّفُ بِثَوْبٍ مُبْتَلٍّ لِلتَّبَرُّدِ (۹) او غسل کول او په لنده (خيشته) جامه کې ځان پېچل د ځان يخولو لپاره (هم مکروه نه دي) عَلَى الْمُفْتَى بِهِ د مفتیٰ به قول مطابق. |

**لغات**: ﴿تلفف﴾ د تفعل د باب مصدر دی: ځان پېچل (ځان پکښې نغښتل)، ﴿تبرّد﴾ دا هم د تفعل له بابه اسم مصدر دی: يخوالی، ځان يخول، لکه ځرنګه چې ويل کيږي نَزَلَ منَ الْمَاءِ يَتَبَرَّدَ: فلانکی د يخوالي (ځان يخولو) لپاره اوبو ته شوه سو.

**تشريح**: صورت د مسئلې دا دی چې د ګرمي يا تندې په وجه او د ځان يخولو لپاره ځان لندول، غسل کول (او بار بار کول) بېله کراهته صحيح دي، همدارنګه په لنده خيشته کپړه کې ځان پېچل او لوند خيشت ځادر يا داسې بل شی پر سر اېښودل بېله کراهته جائز دي. پر همدې فتویٰ ده. دا د امام ابو

یوسف رَحِمَهُ الله مسلک دی. امام صاحب رَحِمَهُ الله دغه افعالو ته مکروه ویلي دي. (انوار الایضاح بحواله در مختار مع الشامی)

## د روژې مستحبات (په پېشلمي کي تأخیر کول او په روژه مات کي تعجیل کول)

| |
|---|
| ۱۴۷ وَيُسْتَحَبُّ لَهُ ثَلَاثَةُ أَشْيَاءَ او مستحب دي د روژتي (روژه دار) لپاره درې شیان السُّحُوْرُ (۱) پېشلمی کول وَتَأْخِيْرُهُ (۲) او پېشلمی ځنډول (د شپې آخري حصې ته) وَ تَعْجِيْلُ الْفِطْرِ فِيْ غَيْرِ يَوْمِ غَيْمٍ (۳) او د وریځي له ورځ څخه بغیر په بله ورځ کي ژر (وختي) روژه ماتول (په تلوار سره اوختي اروژه مات کول). |

**لغات:** ﴿سحور﴾ (د سین په فتحه سره): پېشلمی، هغه خوراک کوم چي تر صبح صادق (طلوع الفجر) څخه مخکي خوړل کیږي. ﴿غیم﴾ وریځ، جمع: غُيُوْمٌ.

**تشریح:** په دې عبارت کي د روژتي لپاره درې مستحبات بیان سوي دي:

①... د پېشلمي خوراک کول مستحب دي، که څه هم یوه ګوله یا دوې ګولې وخوري، یا یو. دوه غوړپه اوبه وچیښي، په روایاتو کي راغي چي کوم څوک یوه ګوله وخوري یا یو غوړپ اوبه وچیښي، نو هغه پېشلمی وکړی (مسند احمد، سنن سعید بن منصور)، لهذا د کوم چا چي خوراک او څښاک ته اشتهاء نه کیږي او ضرورت يې نه وي، نو لږ تر لږه دي یوه یا دوې خرماوي وخوري، یا یو. دوه غوړپه اوبه دي وچیښي، د دې لپاره چي د پېشلمي پر سنت عمل وسي؛ ځکه بعضي حضرات د پېشلمي د سنت والي قائل دي او همدا مشهوره ده. (عمدة الفقه)

په پېشلمي کولو کي فایده دا ده چي په هغه سره د روژتي زړه مطمئن کیږي. چا چي پېشلمی نه وي کړي، روژه پر هغه زور کوي، همدارنګه په پېشلمي کولو سره د مسلمانانو او اهلِ کتابو تر مینځ توپیر راځي لکه څرنګه چي په یو حدیث کي دي چي زموږ او د اهلِ کتابو په مینځ کي فرق د پېشلمي یوه ګوله ده، همدارنګه په پېشلمي کولو کي د سنت اتباع. په نشاط کي زیاتوب او د دعاء قبلېدلو په ساعت (آخر اللیل) کي د دعاء موقع تر لاسه کېدل او داسي نور ډېر فوائد پکښي سته.

②... پېشلمي ځنډول او د شپې په آخر کې د صبح صادق (طلوع فجر) سره نژدې کول مستحب دي او د پېشلمي ځنډول تر هغه وخته پورې مستحب دي کله چې يې يقين يا غالب گومان وي چې تر اوسه شپه باقي ده، او که په وخت کې يې شک واقع سي، نو په داسي وخت کې پېشلمی کول مکروه دي (خو ځرنګه چې په اوس دور کې د وخت تعيين د ساعت او حلول (نقشې) په ذريعه سره کېږي. نو ځکه اوس د پېشلمي په تعيين او تأخير کې څه شک او ستونزه نه راځي). (عمدة الفقه)

③... په روژه مات کې تلوار کول، يعني د لمر لوېدلو سره سمدستي تر لمونځ کولو مخکي روژه مات کول، په حديث قدسي کې دي چې "ما ته په خپلو بندګانو کې هغه بندګان زيات خوښ دي کوم چې په روژه ماتولو کې تلوار (تېزي) کوي"، او په يو حديث کې دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل "خلک به برابر په خير کې وي تر څو چې په روژه ماتولو کې تلوار کوي (ترمذی ج:۱. باب ما جاء فی تعجیل الإفطار). خو که چيري په آسمان باندي وريځ وي او د لمر لوېدلو په هکله يقين نه کېږي، نو بيا دي په روژه مات کې تلوار نه کول کېږي. بلکي هر کله چې د لمر لوېدلو په باره کې پوره مطمئن سي بيا دي روژه ماته کړي (لېکن اوس د ساعتونو او نقشو په دور کې دا ستونزه نه راځي). (انوار الایضاح. شفاء الارواح)



# فَصْلٌ فِي الْعَوَارِضِ

(دا) فصل په (بیان د) عوراضو کي دی

**تشریح:** په دې فصل کي عوارض یعني هغه اعذار (عذرونه) بیانوي چي د هغوی په وجه روژه نه نیول یا روژه ماتول جائز دي.

## اعذارِ مُبیحه

﴿۱۱۳۸﴾ لِمَنْ خَافَ زِيَادَةَ الْمَرَضِ (روژه خوړل روا دي) د هغه کس لپاره چي بیر بیري د ناروغی پر زیاتېدلو أَوْ بُطْءَ الْبُرْءِ یا د روغتیا پر ځنډېدلو وَلِحَامِلٍ وَ مُرْضِعٍ او (همدارنګه روا دي) د هغه حامله ښځي او تي ورکونکي ښځي لپاره خَافَتْ نُقْصَانَ الْعَقْلِ أَوِ الْهَلَاكَ أَوِ الْمَرَضَ عَلَى نَفْسِهِمَا کوم چي بیر بیري د عقل پر کموالي (دماغي کمزوری) یا له هلاکېدلو یا ناروغه کېدلو څخه پر خپلو ځانو (پر خپل ځان یا د بچي پر ځان) نَسَبًا کَانَ أَوْ رِضَاعًا برابره ده (بچی) نسبي وي او که رضاعي وي (یعني برابره ده د ښځي خپل نسبي بچی وي چي تی ورکوي یا د بل چا بچی وي چي د دایي په توګه تی ورکوي).

**لغات:** ﴿بُطء﴾ د کرُم د باب مصدر ده. بَطَأَ بُطْأً وبِطَاءً وبُطُوءًا: سست کېدل (سستېدل)، کرار کېدل، رفتار کرارېدل. ﴿بُرْء﴾ د سمع د باب مصدر دی: بَرِئَ بَرْئًا وبُرْئًا: جوړېدل، روغېدل. البرء، اسم مصدر دی: جوړښت. روغتیا. ﴿رَضَاع﴾ (د راء په فتحه او کسره دواړو سره ویل کېدلای سي. خو د راء فتحه یې اصل ده په فصیح لغت کي) د ضرب، فتح او سمع له بابونو څخه مصدر دی: د رضاع لغوي معنیٰ ده: د مور له سینې (تیو) څخه شیدې رودل. او اصطلاحي معنیٰ یې ده: "په ځانګړي وخت کي (یعني د

رضاعت په دو نیم کاله موده کې) دیو ښځې له سینې څخه د ځانګړې کوچنې (یعني د رضیع بچې) شیدې رودل.

**تشریح**: په دې عبارت کې څو مسئلې بیان سوي دي:

(۱).... که څوک مریض وي او د روژې نیولو په وجه د هغه د مرض زیاتېدلو بېره وي. نو داسې مریض ته په رمضان کې د روژې ماتولو یا روژې نه نیولو اجازه سته، بیا چې کله روغ سي او د روژې نیولو قابل سي، نو د هغه قضاء دې را وګرځوي، (۲) که څوک مریض وي او د روژې نیولو په وجه د هغه د روغتیا ځنډېدلو (مرض اوږدېدلو) بېره وي. نو د داسې مریض لپاره هم روژه نه نیول جائز دي. (۳) د حمل په حالت کې یا بچې ته د شیدو ورکولو په حالت کې که ښځې ته دا بېره وي چې د روژې نیولو په وجه به مې په عقل کې نقص او کمزوري راسي یا به مریضه سم یا بچی به مې مریض سي یا د خپل ځان یا بچې پر هلاکت وبېرېږي. یعني حاملې ښځې ته پر خپل حمل (د نس پر بچې) بېره وي او تی ورکونکې ښځې ته د شیرخواره بچې بېره وي، نو د دې دواړو ښځو لپاره روژه نه نیول جائز دي او وروسته د هغه روژو قضاء پرې لازمه ده.

نسبًا.. رضاعًا: یعني دا (د روژه نه نیولو حکم) د بچې د خپل مور او د رضاعي مور (کوم چې بچې ته د تي ورکولو لپاره په أجرت نیول سوې وي) د دواړو لپاره برابر دي.

| ﴿۱۱۳۹﴾ وَالْخَوْفُ الْمُعْتَبَرُ مَا كَانَ مُسْتَنَدَ الْغَلَبَةِ الظَّنِّ بِتَجْرِبَةٍ او معتبره بېره (کوم چې د لته اعتبار لري) هغه بېره ده کوم چې نژدې وي غالب ګومان لره په تجربه سره (یعني په تجربه سره د مذکوره خوف غالب ګومان وي) أَوْإِخْبَارِ طَبِيْبٍ مُسْلِمٍ حَاذِقٍ عَدْلٍ یا د مسلمان ماهره عادل طبیب (ډاکټر) په خبر ورکولو سره (د مذکوره خوف غالب ګومان وي). |
| --- |

**لغات**: ﴿تجربة﴾ ازموینه (ازمایل)، جمع: تَجَارِب. ﴿حاذق﴾ ماهر. کمال داره. جمع: حُذّاق.

**تشریح**: په تېر عبارت کې چې کوم د خوف (بېرې) یادونه وسوه چې د هغه په وجه روژه ماتول او روژه نه نیول جائز ګرځي، له دې څخه هغه خوف مراد دی چې روژه نیونکې ته په یو تجربه سره د مذکوره خوف (بېرې) غالب ګومان وي (چې مرض به مې زیات سي یا مریض به سم او داسې نور)، یا یو مسلمان ماهره طبیب (ډاکټر) هغه ته د مذکوره خوف خبر ورکړي، نو داسې کس ته د روژه نه نیولو شرعي اجازه سته. لهذا تر څو چې دا قسم خوف نه وي، د هغه لپاره روژه نه نیول یا روژه ماتول جائز نه دي. بیا هم که هغه روژه نه ونیسي یا روژه ماته کړي، نو کفاره واجبېږي. (شفاء الارواح بحواله عمدة الفقه)

﴿۱۱۴۰﴾ وَلِمَنْ او (هغه ته روا دي روژه خوړل) د هغه کس لپاره حَصَلَ لَهُ عَطْشٌ شَدِيْدٌ أَوْ جُوْعٌ يُخَافُ مِنْهُ الْهَلَاكُ چي هغه ته سخته تنده یا لوږه رسېدلې وي چي له هغه څخه د هلاکت ېېره وي.

**لغات**: ﴿عطش﴾ د سمع له بابه اسم مصدر دی: تنده، عَطِشَ يَعْطَشُ عَطَشًا: تږی کېدل. ﴿جوع﴾ د نصر له بابه اسم مصدر دی: لوږه (وږه)، جَاعَ يَجُوْعُ جَوْعًا و جَوْعَةً و مَجَاعَةً: وږی کېدل.

**تشریح**: که د یو کار کولو او خواري کښلو په وجه روژتي دومره تږی او بېتابه سي چي د ځان پر هلاکت وېرېږي، نو د هغه لپاره روژه ماتول صحیح دي، لېکن که هغه خپله قصداً دا دومره کار کړی وي چي په دې وجه داسي حالت ته رسېدلی وي، نو ګنهګاره کیږي او د کفارې لازمېدلو په باره کي دوه قوله دي: یو قول دا دی چي کفاره هم لازمیږي او بل قول دا دی چي نه لازمیږي (انوار الایضاح بحواله در مختار)، (او صاحب د شفاءُ الارواح د مذکوره خبري تشریح داسي کړې ده چي که څوک له خپل طرفه داسي فعل وکړي مثلاً د ښکار کولو لپاره ولاړ سي او هلته ډېر وځغلي چي د هغه په وجه دومره تنده او لوږه ورته پېښه سي، نو په دې صورت کي د روژې ماتولو په وجه کفاره هم لازمیږي. خو نوکر او مزدور کوم چي پر دا قسم کار مجبوره وي او هغه دې حالت ته ورسیږي او روژه ماته کړي، نو پر هغه کفاره نه لازمیږي [شفاء الارواح]).

## د مسافر لپاره څه حکم دی؟

﴿۱۱۴۱﴾ وَلِلْمُسَافِرِ الْفِطْرُ او د مسافر لپاره روژه خوړل (روا) دي وَصَوْمُهُ أَحَبُّ او د ده (لپاره) روژه نیول افضل دي إِنْ لَمْ يَضُرَّهُ وَلَمْ تَكُنْ عَامَّةُ رُفْقَتِهِ مُفْطِرِيْنَ وَلَا مُشْتَرِكِيْنَ فِي النَّفَقَةِ (په دې شرط) که روژه نیول ده ته نقصان نه کوي او د ده عام (اکثره) ملګري روژه خوړونکي نه وي او نه دوی (د ده) سره مشترک وي په نفقه کي فَإِنْ كَانُوْا مُشْتَرِكِيْنَ أَوْ مُفْطِرِيْنَ بیا که دوی (د ده) سره مشترک وي یا دوی روژه خوړونکي وي (روژه یې نه وي نیولې) فَالْأَفْضَلُ فِطْرُهُ نو افضل د ده (لپاره) روژه خوړل دي مُوَافَقَةً لِلْجَمَاعَةِ د جماعت (ملګرو) سره د موافقت کولو لپاره.

**لغات:** ﴿لم یضره﴾ د نصر له بابه د جحد (نفي جحد بلم در فعل مستقبل معروف) صیغه ده: ضرر رسول، تاوان رسول. او دلته له ضرر څخه مراد هغه ضرور دی چي په هغه کي د ځان خطره نه وي، ځکه که د ځان خطره پکښي وي، نو بیا د مسافر لپاره روژه ماتول واجب دي.

**تشریح:** مسئله دا ده چي د مسافر لپاره روژه نه نیول جائز دي، لیکن که هغه ته روژه نیول څه ضرر او نقصان نه کوي یعني د هغه لپاره تکلیف او مشقت نه وي، نو د هغه لپاره روژه نیول مستحب او افضل دي. همدارنګه که څو ملګري یو ځای په سفر روان وي او داکثرو ملګرو روژه وي او دوی د خوراک او څښاک په خرچه (توښهٔ سفر) کي مشترک نه وي بلکي د هر یوه سره جلا، جلا (توښهٔ) وي، نو هم روژه نیول افضل او غوره دي، لیکن که داکثره ملګرو روژه نه وي، یا ټوله د خوراک او څښاک په خرچه (توښهٔ سفر) کي سره شریکان وي، نو د ملګرو په رعایت کي روژه نه نیول افضل دي: ځکه که د دوی سره موافقت نه وسي او روژه ونیول سي، نو د خوراک په انتظام او د خرچ په تقسیم کي به د ده ملګرو ته تکلیف وي، نو ځکه د ملګرو په موافقت کي به روژه نه نیول افضل وي. (انوار الایضاح. شفاء الارواح)

## د مریض حکم

| |
|---|
| ۹ ۱۱۳۳: وَلَا يَجِبُ الْإِيصَاءُ عَلٰى مَنْ مَاتَ قَبْلَ زَوَالِ عُذْرِهٖ بِمَرَضٍ أَوْ سَفَرٍ وَنَحْوِهٖ او واجب نه دي (د فدیه اداء کولو) وصیت کول پر هغه کس کوم چي مړ سي د خپل مرض یا سفر د عذر او د داسي بل عذر تر زائلېدلو (ختمیدلو) مخکي كَمَا تَقَدَّمَ لکه مخکي چي تېر سوه وَقَضَوْا مَا قَدَرُوْا عَلٰى قَضَائِهٖ بِقَدْرِ الْإِقَامَةِ وَالصِّحَّةِ او قضاء دي راوړي د څومره روژو پر قضاء چي قدرت لري (مسافر) د اقامت په اندازه او (مریض) د روغتیا په اندازه. |

**تشریح:** مسئله دا ده چي که مریض د مرض په حالت کي مړ سي او مسافر د سفر په حالت کي مړ سي. نو د مرض او سفر په وجه چي د رمضان کومي روژې قضاء سوي دي، د هغوی د فدیې وصیت کول واجب نه دي چي "تاسي زما د مال له دریمي حصې (ثلث المال) څخه د دې روژو فدیه اداء کړئ!": ځکه د دې مریض او مسافر پر ذمه قضاء لازم سوې نه ده: ولي چي پر دوی قضاء هغه وخت لازمیږي کله چي د مرض او سفر تر ختمېدلو وروسته دومره زمانه پیدا کړي چي په هغه کي روژې نیولای سي. حال دا چي دلته دوی ته د قضاء بالکل هیڅ وخت نه دی تر لاسه سوی، نو ځکه قضاء نه باندي لازمیږي.

وقضوا الخ: یعني که مریض روغ سي او مسافر مقیم سي، بیا دوی مړه سي. نو پر دوی قضاء لازمیږي. اوس که له روغتیا او اقامت (مقیم کېدو) څخه وروسته دومره ژوندی پاته سي د څومره ورځو

چي روژې فوت سوي (پاته سوي) وي، نو د تولو فوت شده روژه قضاء باندي لازمه ده او که يو څو ورځي ژوندی پاته سوي وي، نو د روغتيا او اقامت په اندازه د روژو قضاء باندي لازمیږي. مثلاً د مرض یاسفر په وجه شل روژې ځني فوت سوي وي، بيا له روغېدلو يامقيم کېدلو څخه وروسته لس ورځي ژوندی پاته سي (او په دې لسو ورځو کي روژه نه ونيسي) او مړه سي. نو پر هغه دلسو روژو قضاء واجب ده. لهذا د مرگ په وخت کي به د لسو روژو د فديې ورکولو وصيت کوي؛ ځکه له دې څخه بغير د نورو روژو پر قضاء د دوی قدرت ثابت نه سو. (انوار الایضاح. شفاء الارواح)

## د قضاء روژې پرلپسې نيول ضروري نه دي

﴿۱۱۴۲﴾ وَلَا يُشْتَرَطُ التَّتَابُعُ فِي الْقَضَاءِ او شرط نه دی پرلپسې والی (پرلپسې نيول) په قضاء (قضايي روژه) کي فَإِنْ جَاءَ رَمَضَانٌ آخَرُ بيا که بل رمضان راسي (حال دا چي قضائي روژه پر ده پاته وي) قَدَّمَ عَلَى الْقَضَاءِ نو مخکي دي يې کړي پر قضاء (قضائي روژې) وَلَا فِدْيَةَ بِالتَّأْخِيرِ إِلَيْهِ او (پر ده) فديه نسته د (قضائي روژې) ځنډولو په وجه و دويم رمضان ته.

**لغات:** ﴿تتابع﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: پرلپسې والی. يو کار پرلپسې کول.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي د رمضان په قضائي روژو کي تتابع شرط نه دی چي تول قضاء سوي روژې يو د بل سره متصل او پرلپسې به نيسي، بلکي د ده خوښه ده که يې جلا، جلا نيسي او که يې پر يوه ځای پرلپسې نيسي.

فإن جاء إلخ: يعني که تر اوسه يو چا د رمضان د قضاء روژې نه وي نيولي چي په دې دوران کي بل رمضان راسي، نو هغه دي د همدې بل رمضان روژې ونيسي او د تېر رمضان د قضاء روژې دي تر دغه رمضان وروسته اداء کړي، او د دې تأخير په وجه پر هغه هيڅ فديه نه واجبيږي.

## د شيخ فاني او فانيه حکم

﴿۱۱۴۳﴾ وَيَجُوزُ الْفِطْرُ لِشَيْخٍ فَانٍ وَعَجُوزٍ فَانِيَةٍ او جائز دي روژه خوړل (روژه نه نيول) د زيات بوډا لپاره (کوم چي قريبُ الفناء وي) او د زياتي بوډۍ لپاره وَتَلْزَمُهُمَا الْفِدْيَةُ لِكُلِّ يَوْمٍ نِصْفُ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ او لازمه ده پر دې دواړو فديه د هري ورځي (د روژې) په بدله کي نيم صاع د غنمو كَمَنْ نَذَرَ صَوْمَ الْأَبَدِ لکه څوک چي د همېشه (تول عمر) روژو نذر ومني فَضَعُفَ عَنْهُ

اشْتِغَالِهٖ بِالْمَعِيْشَةِ بيا دئ له هغه (نذر پوره كولو) څخه عاجزه سي په روزي د مشغولېدو په وجه (يعني د روزي گټلو او د ژوند د مصروفيتونو په وجه خپل نذر پوره نه كړى سي) يُفْطِرُ وَ يَفْدِىْ هغه دي روژه خوري او فديه دي وركوي (نو لكه څرنگه چي هغه د هري روژې په عوض كي فديه وركوي. همداسي به يې شيخ فاني او فانيه هم وركوي) فَإِنْ لَمْ يَقْدِرْ عَلَى الْفِدْيَةِ لِعُسْرَتِهٖ بيا كه پر فديه قدرت نه لري د خپل تنگلاسى په وجه يَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ تَعَالٰى وَيَسْتَقِيْلُهٗ نو له الله تعالى څخه دي استغفار او د معافى طلب (غوښتنه) كوي.

**لغات**: ﴿شيخ فاني﴾ ډېر بوډا. ډېر ضعيفه سپين ږيرى چي په هغه كي بالكل هيڅ قوت پاته نه وي او مرگ ته نژدې سوى وي. د عُمر هيڅ تعيين پكښي نسته، پر قوت او عدمِ قوت باندي دار ومدار دى. ﴿عجوز﴾ بوډۍ. سپين سرې ښځه. جمع: عُجُزٌ و عَجَائِز. ﴿معيشة﴾ په كوم څه سره چي د انسان ژوند وي. د انسان د گزارې (ژوندې تېروني) سامان لكه خوراک، څښاک، آمدن او داسي نور. جمع: مَعَايِش. ﴿عُسْرَة﴾ تنگلاسي، مالي ستونزه، سختي. ﴿يستقيل﴾ د استفعال د باب مضارع ده. د دې باب له معناوو څخه يوه معنىٰ ده: د معافى طلب كول. له يو چا څخه غوښتل چي ده ته معافي وكړي او د ده له خطاء څخه تېر سي.

**تشريح**: شيخِ فاني او فانيه كه په روژه نيولو باندي قدرت نه لري، نو د دوى لپاره روژه نه نيول جائز دي او پر دوى د هري روژې په بدله كي فديه وركول واجب دي. د دې مثال داسي دى لكه يو كس چي ټوله عمر د همېشه روژو نيولو نذر ومني، بيا دا كس په كار او كسب د مشغولېدلو په وجه ضيعفه سي او له روژو نيولو څخه عاجزه سي، نو د هغه لپاره روژه نه نيول جائز دي او فديه وركول باندي لازم دي. او د هري ورځي د روژې فديه د هر فرض لمانځه د فديې په څېر ده. او د فديې مقدار دا دى چي د هري روژې په بدله كي دي نيم صاع غنم يا يو صاع اُوربشي يا خرماوي (كجوري) يا د دې شيانو قيمت مسكينانو ته وركول سي (يعني قيمت وركول يې هم جائز دي)، او په فديه وركولو كي د مسكينانو شمېر او د هر مسكين لپاره د صدقهٔ فطر مقدار وركول شرط نه دي، لهذا كه يوه مسكين ته د دوو ورځو فديه نو صاع غنم وركړي، يا يوه مسكين ته د ټولو روژو فديه وركړي، يا د يوې روژې فديه غنم څو مسكينانو ته لږ، لږ وركړي، نو هم جائز دي.

فإن لم يقدر إلخ: يعني پر كوم چا چي د روژې فديه واجب وي. كه هغه د تنګلاسى په وجه د هغه پر اداء كولو هم قادر نه وي. نو هغه دي له الله تعالىٰ څخه د بخښني (مغفرت) غوښتنه كوي او د الله تعالى د حق په ادا ينه كي د قصور واقع كېدلو لپاره دي بخښنه او معافي غواړي.

## د كفارهٔ يمين او كفارهٔ قتل فديه وركول جائز نه دي

﴿۱۱۳۵﴾ وَلَوْ وَجَبَتْ عَلَيْهِ كَفَّارَةُ يَمِيْنٍ أَوْ قَتْلٍ او كه چيري واجب سي پر يو چا د قسم يا د قتل (قتل خطا) كفاره فَلَمْ يَجِدْ مَا يُكَفِّرُ بِهِ مِنْ عِتْقٍ بيا هغه نه موندي داسي څه چي په هغه سره كفاره اداء كړي يعني غلام آزادول (يعني د كفاره اداء كولو لپاره يو غلام پيدا نه كړي) وَهُوَ شَيْخٌ فَانٍ حال دا چي هغه شيخ فاني (زيات بوډا) وي (چي د روژه نيولو هيڅ طاقت پكښي نه وي) أَوْ لَمْ يَصُمْ حَتّٰى صَارَ فَانِيًا يا (د كفارې واجبېدلو په وخت كي خو د روژې طاقت لري. لېكن) هغه روژې نه نيسي تر دې چي شيخ فاني وګرځي لَا يَجُوْزُ لَهُ الْفِدْيَةُ نو د هغه لپاره فديه وركول جائز نه دي لِأَنَّ الصَّوْمَ هُنَا بَدَلٌ عَنْ غَيْرِهٖ ځكه چي روژه دلته د بل شي (غلام آزادولو يا صدقې) بدل ده.

**تشريح:** صورت د مسئلې دا دى چي كه پر يو كس د قسم كفاره (كفارهٔ يمين) يا د قتل خطا كفاره واجب وي او هغه د غلام پر آزادولو قادر نه وي. نو پر هغه خو اوس روژې لازم دي (ځكه د كفارې په اداء كولو كي ترتيب دا دى چي اول به غلا آزادوي. كه د هغه طاقت نه لري. نو بيا به روژې نيسي). لېكن دغه كس چي دى شيخ فاني دى او د روژو نيولو قدرت هم نه لري، يا دا چي د كفارې لازمېدلو په وخت كي شيخ فاني نه وو، لېكن ده روژې نه ونيولې تر دې چي شيخ فاني او معذوره سو. نو د داسي كس لپاره (د كفارهٔ يمين او كفارهٔ قتل) فديه اداء كول جائز نه دي يا په بله وينا د داسي كس لپاره په خپل ژوند كي د فديې وصيت كول جائز نه دي؛ ځكه د روژو پر ځاى فديه وركول هغه وخت جائز كېدلاى سي چي روژه بذات خود اصل وي (يا په بله وينا مستقل فرض وي) او د يو بل شي په بدله كي نه وي، حال دا چي دلته په دغه كفاره كي روژې د غلام په بدله كي دي (يعني كله چي هغه د غلام پر آزادولو قادر نه سو. نو د هغه په بدله كي روژې واجب سوې)، نو د دې بدل (روژو) پر ځاى فديه وركول جائز نه دي (او صاحب د شفاء الارواح ليكلي دي چي اوس د داسي كس لپاره له توبې او استغفار كولو څخه بغير بله لاره نسته: ځكه اوس دوران كي خو د غلام آزادولو وصيت هم نه سي كېدلاى)). (انوار الايضاح. شفاء الارواح)

## نفلي روژه بېله عذره ماتول او د مېلمستيا په وجه نفلي روژه ماتول

﴿۱۱۴۶﴾ وَيَجُوْزُ لِلْمُتَطَوِّعِ الْفِطْرُ بِلَا عُذْرٍ فِيْ رِوَايَةٍ او جائز دي د نفلي روژه نيونكي لپاره روژه ماتول بېله عذره، په يوه روايت كي.

﴿۱۱۴۷﴾ وَالضِّيَافَةُ عُذْرٌ عَلَى الْأَظْهَرِ لِلضَّيْفِ وَالْمُضِيْفِ او مېلمستيا عذر ده د ظاهر روايت مطابق د مېلمه او كوربه (دواړو) لپاره وَلَهُ الْبِشَارَةُ بِهٰذِهِ الْفَائِدَةِ الْجَلِيْلَةِ او دده (مېلمه) لپاره زېرى دى د دغه لويي فايدي په وجه (يا په بله وينا داچي: دده لپاره په دې لويه فايده كي زېرى هم سته).

**لغات:** ﴿متطوع﴾ د تفعّل د باب فاعل دى: نفلي عبادت كونكى، غير مفروضه عبادت كونكى، ﴿الضيافة﴾ مېلمستيا، ﴿الضيف﴾ مېلمه (څرنګه چي دا مصدر دى نو څكه مفرد، تثنيه، جمع، مذكر او مؤنث يكښې برابر دي)، جمع: ضُيُوْفٌ و أَضْيَافٌ، ﴿البشارة﴾ زېرى، خوشخبري، جمع: بَشَائِر.

**تشريح:** د عبارت اوله مسئله دا ده چي نفلي روژه ماتول څنګه دي؟ نو په دې باره كي د احنافو دوه قوله دي: مشهوره قول دا دى چي بېله عذره نفلي روژه ماتول مكروه (مكروه تحريمي) دي او كه څه معقول عذر وي، نو ماتولاى يې سي، همدا اصح او ظاهر روايت دى، او دويم قول دا دى چي بېله عذره هم نفلي روژه ماتول بلا كراهته جائز دي، او قضاء په دواړو صورتونو كي واجب ده (او له امام مالك رحمه الله څخه بغير د دوړو املاتو په نيز د هغه قضاء هم واجب نه ده). (انوار الايضاح بحوالة تحفة الالمعى. شفاء الارواح)

والضّيافة إلخ: دويمه مسئله دا ده چي د نفلي روژې ماتولو لپاره ضيافت (مېلمستيا) هم يو عذر دى، لېكن په دې كي څه تفصيل دى او هغه دا دى چي كه مېلمستيا كونكى (كوربه) داسي كس وي چي كه مېلمه ډوډۍ نه وخوري، نو دئ (كوربه) نه ناراضه كيږي او نه په تكليف كيږي. بلكي دئ صرف د دې مېلمه په حاضرېدلو راضي وي . نو دا مېلمه دي روژه نه ماتوي. او كه د ډوډۍ نه خوړلو صورت كي كوربه په تكليف كيږي او ناراضه كيږي، نو روژه دي ماته كړي او وروسته دي د هغه قضاء راوړي، همدارنګه د كوربه لپاره هم مېلمستيا عذر دى، يعني كه مېلمه ټينګار كوي چي كوربه دي هم زما سره ډوډۍ وخوري (او له دې څخه بغير نه راضي كيږي)، نو كوربه دي روژه ماته كړي، او دا حكم هغه وخت دى كله چي هغه ته د روژې د قضاء راوړلو اعتماد وي (يعني پر ځان يې باور وي چي وروسته يې قضاء راوړلاى سم) او روژه ماتول له نصفُ النهار شرعي څخه مخكي وي، تر هغه وروسته دي روژه نه ماتوي. لېكن د مور يا پلار د فرمان منلو لپاره د مازيګر تر وخته پوري نفلي روژه ماتول جائز دي، تر هغه وروسته جائز نه دي.

وله البشارة إلخ: یعني کوم څوک چي د خپل ورور (کوربه) د احترام او رعایت په خاطر نفلي روژه ماتوي. نو د هغه لپاره په حدیث کي زېری او ډېر فضیلت راغلی دی او هغه د نبي ﷺ دا فرمان دی: "چي کوم څوک د خپل ورور په احترام کي روژه ماته کړي، نو هغه ته د زرو (۱۰۰۰) روژو ثواب حاصلېږي او کله چي د هغه قضاء راوړي، نو د دوو زرو (۲۰۰۰) روژو ثواب ورته حاصلېږي" په متن کي له بشارت څخه همدا مراد دی. (حاشیة نور الایضاح. مراقی الفلاح)

**د نفلي روژې د قضاء حکم او د کوچني اختر، لوی اختر او د ایامُ التشریق د ورځو د نفلي روژې حکم**

﴿۱۱۲۸﴾ وَإِذَا أَفْطَرَ عَلَىٰ أَيِّ حَالٍ او کله چي (نفلي) روژه ماته کړي پر هر حالت که وي (یعني د نفلي روژې ماتول د عذر په وجه وي او که بېله عذره وي) عَلَيْهِ الْقَضَاءُ نو پر هغه قضاء ښته (د روژې قضاء راوړل پلدي لازم دي) إِلَّا إِذَا شَرَعَ مُتَطَوِّعًا فِي خَمْسَةِ أَيَّامٍ مګر دا چي کله شروع کړې وي نفلي روژه نیونکی په پنځو ورځو کي (نو قضاء یې نه ورپلدي لازمېږي) يَوْمَيِ الْعِيدَيْنِ وَأَيَّامِ التَّشْرِيقِ دوې ورځي د دوو اخترونو (کوچني اختر او لوی اختر) او (درې) ورځي د تشریق فَلَا يَلْزَمُهُ قَضَاؤُهَا بِإِفْسَادِهَا فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ نو نه لازمېږي د دې روژو قضاء د هغوی په فاسدولو (ماتولو) سره په ظاهر روایت کي وَاللهُ أَعْلَمُ او الله تعالیٰ زیات علم والا دی.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چي څوک نفلي روژه تر شروع کولو وروسته ماته کړي. نو پر هغه قضاء واجب ده، برابره ده د عذر په وجه یې ماته کړې وي او که بېله عذره یې ماته کړې وي او برابره ده په خپل قصد سره یې ماته کړې وي او که بېله قصده ماته سوې وي مثلاً د نفلي روژې په حالت کي یو ښځي حیض جاري سي، نو پر هغې هم قضاء واجب ده.

إلا إذا شرع إلخ: یعني دا د قضاء حکم (چي د نفلي روژې قضاء واجب ده) له ممنوعه پنځو ورځو څخه بغیر په نورو ورځو کي دی. نو که څوک په دې پنځه ممنوعه ورځو کي یعني د کوچني. لوی اختر او د ایام التشریق په ورځو کي روژه شروع کړي (ونیسي) بیا یې ماته کړي. نو ظاهر روایت دا دی چي پر هغه قضاء نه لازمېږي. بلکي هغه لره روژه ماتول واجب دي. (شفاء الارواح)



## بَابُ مَا يَلْزَمُ الْوَفَاءُ بِهٖ مِنْ مَنْذُوْرِ الصَّوْمِ وَالصَّلٰوةِ وَنَحْوِهِمَا

(دا) باب د هغه عبادتونو (په بیان کې) دی چې د هغوی پوره کول لازم دي یعني نذر کړل سوي روژه او نذر کړی سوی لمونځ او داسي نور عبادتونه

### د نذر (نذرانه) تعریف او شرائط

﴿۱۱۴۹﴾ إِذَا نَذَرَ شَيْئًا کله چې د یو شي نذر ومني (پر ځان یې نذر کړي) لَزِمَهُ الْوَفَاءُ بِهٖ إِذَا اجْتَمَعَ فِيْهِ ثَلَاثَةُ شُرُوْطٍ نو د هغه شي پوره کول وربانديي لازم دي کله چې په هغه کي درې شرطونه جمع سي أَنْ يَّكُوْنَ مِنْ جِنْسِهٖ وَاجِبٌ (یو) دا چې د هغه له جنس څخه یو واجب وي وَ أَنْ يَّكُوْنَ مَقْصُوْدًا او (دویم) او دا چې هغه (خپله) مقصود وي وَ أَنْ يَّكُوْنَ لَيْسَ وَاجِبًا او (دریم) دا چې هغه (خپله) واجب نه وي.

﴿۱۱۵۰﴾ فَلَا يَلْزَمُ الْوُضُوْءُ بِنَذْرِهٖ نو اودس په نذر منلو سره اودس نه لازمیږي.

﴿۱۱۵۱﴾ وَلَا سَجْدَةُ التِّلَاوَةِ او نه سجدهٔ تلاوت.

﴿۱۱۵۲﴾ وَلَا عِيَادَةُ الْمَرِيْضِ او نه د ناروغ پوښتنه کول.

﴿۱۱۵۳﴾ وَلَا الْوَاجِبَاتُ او نه واجب عبادتونه بِنَذْرِهَا د دوی په نذر منلو سره (دوی نه لازمیږي).

**لغات:** ﴿نذر﴾ د نصر او ضرب د باب ماضي معلومه ده: نَذَرَ يَنْذُرُ نَذْرًا و نُذُوْرًا: یو شی پر خپل ځان واجبول (لازمول). نذر منل (چې که دا کار مي وسو نو دومره مال به غریبانو ته ورکوم مثلاً). ﴿الوفاء﴾ د ضرب مصدر دی: وَفٰى يَفِيْ وَفَاءً: (وعده، نذر) پوره کول. پوره اداء کول.

﴿عيادة﴾ په ناروغه کس باندي پوښتنه کول، د مریض لیدلو او پوښتني ته ورتلل.

**تشریح:** پر خپل ځان د یو شي واجبولو ته نذر (نذرانه) ویل کیږي چې بنده پر ځان یو شی لازم کړي. صاحب د انوار الایضاح د نذر تعریف داسي نقل کړی دی "د بنده پر خپل ځان داسی شی واجب ګرځول کوم چې پر ده واجب نه وي، د یو (مقصود) کار او شي د موجودېدلو په وخت کې (یعني

چي که دا کار یا شی وسي نو مثلاً پر ما یوه روژه ده ازه به یوه روژه نیسم ا" . (یا) مثلا داسي ووایي چي که زه په امتحان کي کامیابه سوم، نو پر ما د خدای تعالیٰ لپاره یوه روژه لازم ده (یا پنځه سوه افغانۍ صدقه کول پر ما لازم دي او داسي نور)، نو دلته نفلي روژه کوم چي پر بنده واجب نه ده، بنده پر خپل ځان واجب کړې ده په امتحان کي د کامیابۍ پر موجودېدلو.

اوس صورت د مسئلې ته ګوری! چي که یو څوک پر ځان د یوشي او یو عبادت نذر ومني، نو د هغه پوره کول واجب دي، کله چي په هغه شي او هغه عبادت کي درې شرطونه موجود وي:

①... یو دا چي کوم شی او کوم عبادت چي نذر کول کیږي (یعني د کوم عبادت نذر چي منل کیږي یا په بله وینا کوم عبادت چي پر ځان لازمول کیږي)، په شریعت کي به د هغه د جنس یو واجب عبادت وي، مثلاً روژه، لمونځ، صدقه، اعتکاف، او که نه وي، نو نذر نه صحیح کیږي. یا په بله وینا دا چي یو داسي عبادت پر ځان لازمول صحیح دي چي د هغه له جنس څخه یو واجب عبادت وي لکه روژه، لمونځ او داسي نور. لهذا که څوک د مریض د پوښتني یا مسجد ته د داخلېدلو نذر ومني، یا مثلاً د یو سېر هندوانې خوړولو نذر ومني (چي که زما دا کار وسو، نو یو سېر هندوانه به خورم. یا که دا کار وسو. یا مثلاً ک. خدای تعالیٰ زما مریض پلار ته شفاء نصیب کړه، نو زه به پر فلانکي مریض پوښتنه کوم. یا مسجد ته به داخلېږم او داسي نور)، نو دا نذر نه صحیح کیږي او په دې سره پر هغه هیڅ شی نه لازمیږي، یعني د دې نذر پوره کول پر هغه لازم نه دي؛ ځکه د دې کارونو له جنس څخه هیڅ یو واجب عبادت نسته.

②... دویم شرط دا دی چي کوم شی او کوم عبادت چي نذر کول کیږي، هغه به خپله مقصود عبادت وي، د عبادت لپاره به وسیله او شرط نه وي، لهذا که څوک د جامو پرېولو، یا د غسل کولو یا داودس کولو نذر ومني (چي که دا کار مي وسو، نو زه به ټولي جامې پرېولم [یا په بله وینا: د ټولو جامو پرېولو پر ما لازم دي]. یا به غسل یا اودس کوم او داسي نور)، نو دا نذر صحیح دی؛ ځکه جامې پاکول، غسل یا اودس کول په خپله مقصود نه دي، بلکي د لمانځه لپاره وسیله ده او اصل مقصود لمونځ کول دي.

③... درېیم شرط دا دی چي د کوم شي نذر چي منل کیږي، هغه به فی الحاله یا په آینده وخت کي پر هغه واجب او لازم نه وي، مثلاً که د وترو یا د ماپښین د لمانځه نذر ومني (چي که زما دا کار وسو. نو وترو یا د ماپښین لمونځ پر ما لازم دی)، نو دا نذر صحیح نه دی، ځکه وتر یا د ماپښین لمونځ خو خپله پر ده واجب او لازم دي. یا مثلاً سجدهٔ تلاوت چي هغه خپله واجب او لازم ده یعني د سجدې د آیت تر ویلو وروسته هغه خپله واجبیږي، نو د هغه نذر منل صحیح نه دي. (انوار الایضاح، شفاء الارواح بتغیر)

فلا یلزم الوضوٴ إلخ: مخکي درې شرطونه ذکر سوه، اوس له دې ځایه د هغوی تفریعات او مثالونه ذکر کوي خو د شرائطو د ترتیب په اعتبار سره نه دي ذکر سوي او موږ تر هر شرط لاندي په ترتیب سره ذکر کړل، دلته به یې بیا د آسانۍ لپاره په لنډه توګه ذکر کړو، د دغه عبارت "فلا یلزم الوضوٴ" تعلق د

دویم (۲) شرط سره دی؛ ځکه چي اودس کول خپله عبادت مقصوده نه دی، بلکي د لمانځه لپاره صرف ذریعه او وسیله ده. نو د اودس نذر منل جائز نه دي.

ولا سجدة التلاوة: د دې تعلق د دریم (۳) شرط سره دی، ځکه چي سجدۀ تلاوت د آیت په ویلو سره خپله د الله تعالیٰ له طرفه واجبیږي، او کوم چي له مخکي څخه واجب وي، د هغه نذر منل جائز نه دي

ولا عیادة المریض: د دې تعلق د اول (۱) شرط سره دی؛ ځکه د مریض عیادت واجب نه دی، که څه هم نېک کار دی چي په هغه سره انسان ته زیات ثواب حاصلیږي، او بل فرق یې دا هم دی چي نذر د داسي عباداتو کېدل پکار دي کوم چي له حقوقُ الله څخه وي او د مریض عیادت او پوښتنه کول د بندګانو له حقوقو څخه دي.

ولا الواجبات بنذرها: یعني کوم عبادات چي واجب او فرض وي، د هغوی نذر منل هم صحیح نه دي، لکه پنځه فرض لمنځونه، د وترو لمونځ، د رمضان روژې او داسي نور؛ ځکه کوم شیان چي له مخکي څخه لازم وي، هغوی پر خپل ځان بیا لازمول محال او ناشوني دي. (انوار الایضاح بتغیرٍ)

| ﴿۱۱۵۴﴾ وَيَصِحُّ بِالْعِتْقِ وَالْاِعْتِكَافِ او صحیح کیږي (نذر منل) د غلام آزادولو او د اعتکاف کولو وَالصَّلٰوةِ غَيْرِ الْمَفْرُوْضَةِ وَالصَّوْمِ او (نذر منل) د غیر فرضي لمونځ کولو او روژه نیولو. |
|---|

تشریح: صورت د مسئلې دا دی چي که څوک داسي نذر ومني چي "که زما فلانکی کار وسي، نو زما غلام آزاد دی". نو داسي نذر منل (نذرانه کول) صحیح دي (ځکه د دې له جنس څخه واجب عبادت موجود دی. یعني په کفاره کي د غلام آزادول کوم چي د کفارې یوه حصه ده او مالي عبادت دی (الثمار الهدایه)). همدارنګه د اعتکاف نذر منل هم صحیح دي (ځکه په روژه کي اعتکاف کول سنت مؤکده دي کوم چي د واجب په درجه کي دي. او دا بدني عبادت دی (الثمار الهدایه)؛ همدارنګه له فرضي لمنځونو څخه بغیر د نورو لمنځونو مثلاً د دوو رکعتو نفلو نذر منل صحیح دي او صاحب د انوار الایضاح د دې تشریح داسي کړي ده چي له فرض او واجب عبادتونو څخه بغیر کوم ته چي "نفل" وایي، د هغوی نذر منل صحیح دی (ځکه د دې جنس واجب او فرض عبادت سته) او د روژې نذر منل هم صحیح دي (ځکه د روژې له جنس څخه واجب او فرض عبادت سته. لکه د رمضان روژه). او کوم لمونځ یا روژه چي فرض وي مثلاً د ماپښین لمونځ وي، یا د رمضان روژه، نو د هغه نذر منل صحیح نه دي (کما مرّ). ځکه چي دا له مخکي څخه فرض دي.

## د نذرِ مطلق او نذرِ معلق بیان

﴿۱۱۵۵﴾ فَإِنْ نَذَرَ نَذْرًا مُطْلَقًا بیا که څوک (له څه قید او شرط څخه بغیر) مطلق نذر ومني أَوْ مُعَلَّقًا بِشَرْطٍ وَوُجِدَ یا داسې نذر (ومني) کوم چې په یو شرط پورې معلق (تړلی) وي او هغه شرط موجود سي لَزِمَهُ الْوَفَاءُ بِهِ نو پر ده هغه (نذر) پوره کول لازم دي.

**تشریح:** اولاً په دې پوهېدل پکار دي چې نذر پر دوه قسمه دی: ① نذر مطلق ② او نذر معلق. نذر مطلق دا دی چې له څه شرط لګولو څخه بغیر نذر ومنل سي، مثلاً مطلق داسې ووایې چې پر ما د خدای تعالیٰ لپاره یوه روژه لازم ده (یا په بله وینا: زه به دالله تعالیٰ لپاره یوه روژه نیسم). یا پر ما د خدای تعالیٰ لپاره لازم ده چې دوه رکعته لمونځ به کوم. او نذرِ معلق دا دی چې نذر د یو شرط سره وتړل سي. مثلاً داسې ووایې چې که الله تعالیٰ زما ریض ته شفاء ورکړه، نو پر ما یوه روژه لازم ده.

مسئله دا ده چې نذر که مطلق وي او که معلق وي، د دواړو پوره کول لازم دي. خو د نذرِ معلق پوره کول هغه وخت لازم دي کله چې هغه شرط موجود سي پر کوم شرط چې یې دا نذر معلق کړی دی (مثلا په پورتني مثال کې مریض ته شفاء حاصله سي)، او که شرط موجود نه سي، نو د نذر پوره کول لازم نه دي. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

**فایده:** نذرِ معلق که څه هم جائز دی، خو ښه نه دی او نذرِ مطلق بېله کراهته جائز دی. (انوار الایضاح)

## د لوی اختر، کوچني اختر په ورځو او په ایامُ التشریق کې د نذر بیان

﴿۱۱۵۶﴾ وَصَحَّ نَذْرُ صَوْمِ الْعِيدَيْنِ وَأَيَّامِ التَّشْرِيقِ او صحیح دي د اخترونو (کوچني اختر او لوی اختر) او د تشریق د ورځو د روژې نذر منل فِي الْمُخْتَارِ د مختار (خوښ سوي) قول مطابق وَيَجِبُ فِطْرُهَا وَقَضَاؤُهَا او واجب دي د دې روژې ماتول او (بیا وروسته) د دې قضاء راوړل وَإِنْ صَامَهَا (خو بیا هم) که دا روژه ونیسي أَجْزَأَهُ مَعَ الْحُرْمَةِ نو کافي کېږي ده لره (خو) د حرمت سره.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې کوم څوک په ممنوعه ورځو (ایام منهیه) کې یعني د لوی اختر او کوچني اختر په ورځ او د ایام التشریق په دریو ورځو کې د روژې نیولو نذر ومني، مثلاً داسې ووایې چې پر ما د کوچني اختر روژه لازم ده. یا پر ما د دواړو اخترونو روژه لازم ده. نو د مختار قول مطابق دا نذر صحیح کېږي لېکن د داسې کس لپاره واجب دي چې په هغه ورځو کې روژه نه ونیسي، بلکې

وروسته دي د هغوی قضاء راوړي. لېکن که بيا هم په دې ممنوعه ورځو کې روژه ونيسي. نو نذر خو يې پوره کيږي. لېکن دا کس د حرام مرتکب کيږي. (شفاء الارواح)

## په نذر کې د زمان او مکان د تعيين حکم

| |
|---|
| ﴿١٨٤﴾ وَأَلْغَيْنَا تَعْيِينَ الزَّمَانِ وَالْمَكَانِ وَالدِّرْهَمِ وَالْفَقِيرِ او موږ باطل کړي دي (په نذر کې) متعينول د وخت او ځای او درهم او فقير فَيُجْزِئُهُ صَوْمُ رَجَبَ عَنْ نَذْرِهِ صَوْمَ شَعْبَانَ نو د رجب روژه ورلره کافي کيږي د شعبان د روژې له نذر منلو څخه وَيُجْزِئُهُ صَلٰوةُ رَكْعَتَيْنِ بِمِصْرَ نَذَرَ أَدَاءَهُمَا بِمَكَّةَ او په مصر کې هغه دوه رکعته لمونځ ور لره کافي کيږي چې د هغوی اداء کول يې په مکه کې نذر کړي وي (چې په مکه کې به يې اداء کوم) وَالتَّصَدُّقُ بِدِرْهَمٍ عَنْ دِرْهَمٍ عَيَّنَهُ لَهُ او يو (نامتعينه) درهم صدقه کول (کافي کيږي) د هغه (متعين) درهم په بدله کې کوم چې يې د نذر لپاره متعين کړی وي وَالصَّرْفُ لِزَيْدِ الْفَقِيرِ بِنَذْرِهِ لِعَمْرٍو او پر زيد فقير خرچ کول (صدقه کول، کافي کيږي) د عمرو فقير لپاره له نذر منلو څخه. |

**لغات:** ﴿الغينا﴾ د افعال له بابه جمع متکلم ماضي معلومه ده، إلغاء: لغو کول، باطل ګرځول، ساقطول او ختمول. ﴿تعيين﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: متعينول، ټاکل.

**تشريح:** زموږ (د احنافو) په نېز په نذر کې تعيين الزمان والمکان لغو دی او اعتبار ورلره نشته، لهذا که يو څوک په نذر کې (برابره ده معلق نذر وي او که مطلق) يو وخت، يو ځای يا درهم يا فقير متعين کړي، نو بيا هم هغه نه متعين کيږي او د ده دا قول لغو کيږي، مثلاً که څوک د شعبان په مياشته کې د روژو نذر ومني، بيا د شعبان پر ځای د رجب په مياشته کې هغه روژې ونيسي، نو هم جائز دي؛ ځکه چې په نذر کې د وخت تعيين لغو دی، همدارنګه که څوک په مکه شريفه کې د دوه رکعته لمونځ کولو نذر ومني، بيا د مکې شريفې پر ځای هغه په مصر يا په يو بل ښار کې ادا کړي، نو دا جائز دي؛ ځکه په نذر کې د مکان تعيين هم لغو دی، همدارنګه که څوک يو درهم د صدقې لپاره متعين کړي چې خاص دغه درهم به صدقه کوم. بيا د هغه پر ځای بل درهم صدقه کړي. نو دا هم

جائز او کافي دي؛ ځکه په نذر کي د درهم تعيين لغو دی، همدارنګه که څوک يوه فقير ته د صدقې ورکولو نذر ومني چي خاص دغه فقير ته به صدقه ورکوم. بيا د هغه پر ځای وبل فقير ته صدقه ورکړي، نو هم جائز دي؛ ځکه په نذر کي د فقير او مسکين تعيين هم لغو دی. (شفاء الارواح)

## په نذرِ معلق کي تعجيل جائز نه دی

۱۱۵۸ وَإِنْ عَلَّقَ النَّذْرَ بِشَرْطٍ او که نذر پر يو شرط معلق کړي لَايُجْزِئُهُ عَنْهُ مَا فَعَلَهُ قَبْلَ وُجُوْدِ شَرْطِهِ نو نه کافي کيږي ده لره د دې نذر له طرفه هغه کار کوم چي يې (د نذر) د شرط تر موجودېدلو مخکي کړی وي.

**تشريح**: صورت د مسئلې دا دی چي که څوک نذر پر يو شرط معلق کړي. نو تر څو چي هغه شرط موجوداو واقع نه سي، تر هغه وخته پوري نذر پوره کول هم نه لازميږي. لهذا که د شرط له موجودېدلو څخه مخکي يې دا نذر پوره کړی، هغه ور لره کافي او جائز نه دي (يا په بله وينا دا چي په نذر کي تعجيل جائز نه دی)، مثلاً که څوک ووايي چي که زيد راغلی، نو زه د خدای تعالیٰ لپاره سل روپۍ صدقه کوم (يا پر ما سل روپۍ لازم دي)، بيا د زيد له راتګ څخه مخکي هغه سل روپۍ صدقه کړي. نو دا صحيح نه دي. بلکي کله چي زيد راسي، نو بيا صحيح کيږي.

**يادونه**: دا خبره ياد لرئ! چي په نذرِ معلق کي صرف تعجيل جائز نه دی. باقي د شرط له موجودېدو څخه وروسته تأخير کول او د ځای، روپۍ او فقير تبديل جائز دی لکه څرنګه چي په نذرِ مطلق کي جائز دی. خلاصه دا چي د نذرِ معلق او نذرِ مطلق تر مينځ صرف په يوه خبره کي فرق سته او هغه دا چي په نذرِ معلق کي تعجيل جائز نه دی او په نذرِ مطلق (غيرِ معيّن) کي تعجيل هم جائز دی. (شفاء الارواح)



# بَابُ الْاِعْتِكَافِ

## (دا) باب د اعتکاف (په بيان کي) دی

**تشريح:** مصنف رَحِمَهُ الله د کتابُ الصوم د تکميل لپاره په آخر کي د اعتکاف باب قائم کړی، ځکه ځرنګه چي د روژې (فرضي روژې) تعلق د رمضان د مياشتي سره دی، همداسي د اعتکاف تعلق هم د رمضان سره دی چي د دې مياشتي په آخري عشره کي سنت دی. او روژه پر اعتکاف ځکه مخکي کړل سوه چي روژه د اعتکاف لپاره شرط ده (او اعتکاف مشروط دی)، او شرط پر مشروط مخکي وي. نو په دې وجه روژه هم مخکي بيان سوه.

**د اعتکاف لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** اعتکاف له عکف څخه مشتق دی او د افتعال د باب مصدر دی، د عکف معنیٰ ده: (په يو ځای کي) پاته کېدل، درنګ کول، او د اعتکاف اصطلاحي معنیٰ مختصره دا ده: هو اللبث في المسجد مع النية. "يعني په مسجد کي [د روژې او عبادت] په نيت سره پاته کېدل" (تفصيل يې مصنف رَحِمَهُ الله ذکر کړی دی).

### د اعتکاف اصطلاحي معنیٰ

﴿۱۱۵۹﴾ هُوَ الْاِقَامَةُ بِنِيَّتِهٖ فِيْ مَسْجِدٍ تُقَامُ فِيْهِ الْجَمَاعَةُ بِالْفِعْلِ لِلصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ او هغه پاتېدل (اوسېدل) دي د اعتکاف په نيت سره په داسي مسجد کي چي په هغه کي جماعت درول کيږي بالفعل (اوس مهال) د پنځو لمنځونو لپاره (يعني چي په هاغه وخت کي هلته د پنځو لمنځونو جماعت کول کيږي) فَلَا يَصِحُّ فِيْ مَسْجِدٍ لَا تُقَامُ فِيْهِ الْجَمَاعَةُ لِلصَّلٰوةِ نو اعتکاف نه صحيح کيږي په داسي مسجد کي چي په هغه کي د لمانځه لپاره جماعت نه درول کيږي عَلَى الْمُخْتَارِ د مختار (اختيار سوي) قول مطابق.

**لغات:** ﴿الاقامة﴾ د دې باب څو معناوي دي: (په يو ځای کي) پاتېدل، (لمونځ وغيره) قائمول، درول، (حد وغيره) جاري کول، تُقَامُ له همدې باب څخه مضارع مجهوله ده په معنیٰ سره د قائمولو او درولو.

**تشريح:** مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي د شريعت په اصطلاح کي د اعتکاف معنیٰ دا ده چي د اعتکاف په نيت سره په داسي مسجد کي پاتېدل چي په هغه کي پنځه سره لمنځونه په جماعت سره اداء کول

کیږي، لهذا په داسې مسجد کې اعتکاف صحیح نه دی چې هلته پنځه سره لمنځونه په جماعت سره نه کیږي، همدا مختار قول دی او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز په هر مسجد کې اعتکاف کول صحیح دي، برابره ده په هغه کې په جماعت سره لمونځ کیږي او که نه کیږي (شفاء الارواح). (او صاحب د انوار الایضاح لیکلي چې له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه منقول دي چې د واجب اعتکاف لپاره د جماعت مسجد ضروري دی او د نفلي اعتکاف لپاره مطلق مسجد کافي دی).

## د ښځې لپاره په کور کې د اعتکاف کولو حکم

﴿۱۱۶۰﴾ وَلِلْمَرْأَةِ الْاِعْتِكَافُ فِيْ مَسْجِدِ بَيْتِهَا او د ښځې لپاره اعتکاف (روا) دی د خپل کور په مسجد (لمونځ ځای) کې وَهُوَ مَحَلٌّ عَيَّنَتْهُ لِلصَّلٰوةِ فِيْهِ او دا (د کور مسجد) هغه ځای دی کوم چې ښځې د لمونځ کولو لپاره متعین کړی (ټاکلی) وي.

**تشریح:** مسئله دا ده چې د ښځې اعتکاف د کور په مسجد کې صحیح دی، یعنې ښځې چې په کور د خپل لمانځه لپاره کوم ځای ټاکلی (مقرر کړی) وي، په هغه کې اعتکاف کولای سي. او که په کور کې یې د لمانځه لپاره هیڅ ځای مقرر نه وي، نو یو ځای دې مقرر کړي او په هغه کې دې اعتکاف وکړي، خو د اعتکاف لپاره له خپل خاوند څخه اجازه اخیستل ضروري دي، همدارنګه دا هم لازم دي چې ښځه به له حیض او نفاس څخه پاکه وي (شفاء الارواح). او پاته سو د جماعت په مسجد کې د ښځې اعتکاف صحیح دی، که نه؟ په دې باره کې زموږ په نیز د جواز او عدمِ جواز دواړه قولونه نقل سوي دي. (انوار الایضاح، بحوالهٔ الدر المنضود ج: ۴، ص: ۲۶۷)

## د اعتکاف د دریو قسمونو بیان

﴿۱۱۶۱﴾ وَالْاِعْتِكَافُ عَلٰى ثَلَاثَةِ أَقْسَامٍ او اعتکاف پر دري قسمه دی وَاجِبٌ فِي الْمَنْذُوْرِ (۱) واجب (اعتکاف)، په نذر کړل سوي صورت کې (یعنې کله چې اعتکاف پر ځان نذر کړل سي، نو واجب دی).

﴿۱۱۶۲﴾ وَسُنَّةٌ كِفَايَةٌ مُؤَكَّدَةٌ فِي الْعَشْرِ الْأَخِيْرِ مِنْ رَمَضَانَ (۲) او سنت مؤکده کفایه (اعتکاف)، د رمضان په آخري لسو ورځو (آخري عشره) کې.

﴿۱۱۶۳﴾ وَمُسْتَحَبٌّ فِيْمَا سِوَاهُ (۳) او مستحب (اعتکاف)، له دې څخه ماسوا په بل وخت کې.

**تشریح:** اعتکاف پر دري قسمه دی:

① ... واجب، دا هغه اعتکاف دی کوم چې په نذر منلو سره واجب سوی وي، برابره ده معلق وي او که غیرِ معلق وي، د غیرِ معلق مثال دا دی چې څوک داسې ووایي چې "د الله لپاره زما پر ذمه واجب دي

چي زه به دومره (مثلاً درې) ورځي اعتکاف کوم". او د معلق مثال دا دی چي مثلاً داسي ووايي "که الله زما څوی ته شفاء ورکړي، نو زه به درې ورځي اعتکاف کوم".

(۲)... سنت مؤکده کفايه. دا هغه اعتکاف دی کوم چي صرف د رمضان المبارک د مياشتي په آخري عشره کي کېږي (ديوويشتم له شپې څخه بيا داختر د مياشتي تر ليدو پوري. او د رمضان په شلمه ورځ د لمر لوېدو څخه مخکي ايا په بله وينا د يوويشتم له مابنام څخه څه مخکي امسجد ته داخلېدل لازم دي). دا اعتکاف سنت مؤکده على الکفايه دی يعني که په ټوله کلي او محله کي يې يو کس هم وکړي. نو د ټوله کلي او محلې والا له طرفه سنت اداء کيږي. ليکن که يو کس يې هم نه وکړي، نو پر ټوله کلي او محلې والا به د سنت پرېښوولو (ترک السنة) وبال وي. (شفاء الارواح)

له دې څخه معلومه سوه چي د سنت په پرېښوولو باندي هم عذاب سته. په درمختار کي دي چي که يو څوک په دائمي توګه سنن مؤکده پرېږدي، نو هغه عند الله مأخوذ کيږي. او په دې اعتکاف کي روژه شرط ده. (انوار الايضاح)

﴿۱۱۶۴﴾ وَالصَّوْمُ شَرْطٌ لِصِحَّةِ الْمَنْذُوْرِ فَقَطْ او روژه صرف د نذر کړل سوي اعتکاف د صحيح کېدو لپاره شرط ده.

﴿۱۱۶۵﴾ وَأَقَلُّهُ نَفْلًا مُدَّةٌ يَسِيْرَةٌ او د اعتکاف کم مقدار په داسي حال کي چي هغه نفل وي (يعني د نفلي اعتکاف کمترين مقدار) لږ غوندي موده ده وَلَوْكَانَ مَاشِيًا که څه هم تګ کونکی وي عَلَى الْمُفْتٰى بِهٖ د مفتیٰ به قول مطابق.

**لغات:** ﴿أقل﴾ کمتر، کمه درجه، نفلاً د حاليت پر بناء منصوب دی أی أقل الاعتکاف حال کونه نفلاً. ﴿يسيرة﴾ لږ غوندي، معمولي.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي روژه صرف د واجب اعتکاف لپاره شرط ده، مثلاً که څوک د يوې مياشتي يا د يوې ورځي د اعتکاف نذر ومني، يا داسي ووايي چي که زما فلانی کار وسو، نو پر ما دومره اعتکاف لازم دی، نو د هغه لپاره دا نذر کړل سوی واجب اعتکاف د روژې سره واجب دی (برابره ده د روژې منل سوی وي او که نه وي)، له روژې څخه بغير اعتکاف نه کيږي، او که څوک د رمضان په مياشته کي پر ځان اعتکاف نذر کړي، نو په هغه کي د رمضان روژه کافي کيږي.

**وأقله نفلاً الخ:** يعني د نفلي اعتکاف لپاره هيڅ وخت مقرر نه دی، بلکي د اعتکاف په نيت سره چي يې څومره وخت هم په مسجد کي تېر کړی وي، هغه ته اعتکاف ويل کيږي، که څه هم لږ کړی وي، تر دې چي که په مسجد کي کښېني هم نه، بلکي صرف په مسجد کي تېر سي او د اعتکاف نيت

وکړي. نو هم د مفتیٰ بِهٖ قول مطابق دغه کس ته نفلي اعتکاف کونکی ویل کیږي. همدا وجه ده (یعني کله چي د نفلي اعتکاف لپاره د وخت تحدید نه سته نو په همدې وجه) د نفلي اعتکاف د صحیح کېدو لپاره روژه شرط نه ده.

یادونه: ولوکان ماشیًا إلخ: مسجد د تېرېدو لاره جوړول خو ممنوع دي. په دې عبارت کي و دې طرف ته اشاره ده چي که څوک په مسجد کي و بل طرف ته تیریږي، نو هغه دي داعتکاف په نیت سره تېرسي، نو په داسي حیله کولو سره ممانعت نه پاتیږي. (مراقی الفلاح ص: ۳۸۳)

فایده: کله چي څوک مسجد ته داخل سي، نو هغه ته پکار دي چي داعتکاف نیت وکړي. د دې لپاره چي تر څو په مسجد کي وي، هغه ته داعتکاف ثواب حاصل سي، داعتکاف د نیت لپاره دي دا الفاظ په زړه کي یا په خوله هم ووایي: "نَوَيْتُ الإِعْتِكَافَ مَا دُمْتُ فِيْ هٰذَا الْمَسْجِدِ" یا داسي دي ووایي "نَوَيْتُ سُنَّةَ الإِعْتِكَافِ". (شفاء الارواح بحوالۂ عمدۃ الفقہ)

## معتکف په کومو صورت کي له مسجد څخه وتلای سي؟

﴿۱۱۶۶﴾ وَلَا يَخْرُجُ مِنْهُ إِلَّا لِحَاجَةٍ شَرْعِيَّةٍ او نه به وځي له خپل اعتکاف ځای څخه مګر د شرعي ضرورت لپاره كَالْجُمُعَةِ لکه جمعه (د جمعې لمونځ).

﴿۱۱۶۷﴾ أَوْ طَبْعِيَّةٍ یا د طبعي (فطري) ضرورت لپاره كَالْبَوْلِ لکه بولي (متیازي).

﴿۱۱۶۸﴾ أَوْ ضَرُوْرِيَّةٍ یا د اضطراري (او ناڅاپه پېښېدونکي) ضرورت لپاره كَانْهِدَامِ الْمَسْجِدِ لکه مسجد نړېدل وَإِخْرَاجِ ظَالِمٍ كُرْهًا یا د یو ظالم (جابر) کس له طرفه په زوره ایستل کېدل وَتَفَرُّقِ أَهْلِهٖ وَخَوْفٍ عَلٰى نَفْسِهٖ أَوْ مَتَاعِهٖ مِنَ الْمُكَابِرِيْنَ او (یا) د هغه مسجد خلک منتشر (تیت پرک) کېدل او پر خپل ځان یا سامان بېرېدل له غلبه کونکو (ظالمانو) څخه فَيَدْخُلُ مَسْجِدًا غَيْرَهٗ مِنْ سَاعَتِهٖ نو (په دې صورتونو کي) دي بل مسجد ته داخل سي په هغه ګړي (سمدستي).

﴿۱۱۶۹﴾ فَإِنْ خَرَجَ سَاعَةً بِلَا عُذْرٍ بیا که یو ګړی هم بېله عذره ووځي فَسَدَ الْوَاجِبُ نو واجب (اعتکاف) فاسدیږي وَانْتَهٰى بِهٖ غَيْرُهٗ او له واجب څخه بغیر (بل اعتکاف) په دې وتلو

سره ختمیږي (یعني له واجب څخه بغیر که په بل اعتکاف کي بېله عذره ووځي. نو هغه ختمیږي اپوره کیږي او قضاء یې نه لازمیږي).

**لغات**: ﴿انهدام﴾ د انفعال د باب مصدر دی: نړېدل. ﴿کرهًا﴾ په زوره، جبراً، په ناخوښي سره. ﴿متاع﴾ سامان، "كُلُّ مَا يُنْتَفَعُ بِهِ مِنَ الحَاجَاتِ كَالطَّعَامِ وَأَثَاثِ البَيْتِ وَالأَدَوَاتِ وَالسِّلَعِ وَغَيْرِهَا سِوَى الذَّهَبِ وَالفِضَّةِ"، جمع: أَمْتِعَة. ﴿مکابرین﴾ د مفاعله له بابه د جمع مذکر فاعل صیغه ده: عناد او دښمني کونکي، غلبه کونکي.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي د معتکف لپاره له مسجد څخه وتل جائز نه دي، مګر دا چي یو عذر وي، نو په وتلو کي څه حرج نسته. له عذرونو څخه یو عذر د شرعي حاجت لپاره وتل دي، مثلاً په کوم مسجد کي چي یې اعتکاف کړی دی، هلته د جمعې لمونځ نه کیږي، نو د هغه لپاره د جمعې د لمونځ اداء کولو لپاره بهر وتل (یعني د جمعې والا مسجد ته تلل) جائز دي، اوس که د اعتکاف ځای له جامع مسجد څخه لیري وي، نو دومره مخکي دي ووځي چي هلته له رسېدلو څخه وروسته څلور یا شپږ رکعته وکړل سي.

أو طبیعة إلخ: دویم عذر دا دی چي د یو طبعي حاجت لپاره بهر ووځي، مثلاً د رګ وهلو، قضاء حاجت، اودس او فرض غسل لپاره له مسجد څخه ووځي، نو څه پروا نسته.

أو ضروریة إلخ: درېیم عذر دا دی چي معتکف ته نا ببره یو داسي سخت ضرورت پېښ سي چي د هغه په وجه له مسجد څخه وتلو ته مجبوره سي، دې ته حاجتِ ضروریه وایي، مثلاً مسجد نړېږي (یا مثلاً منفجره مواد پکښې وي او دهغوی د پېټاو ویره وي)، یا یو څوک یې په زوره له مسجد څخه وباسي، یا د مسجد خلک متفرق او منتشر سي یعني تو له لمونځ ګزاران له هغه ځایه ولاړ سي، او اوس هلته پنځه وخته لمونځ په جماعت سره نه کیږي (عمدة الفقه)، یا په هغه مسجد کي د ظالمانو له طرفه د معتکف پر ځان یا مال ویره وي، نو په دې صورتونو کي که معتکف له مسجد څخه ووځي او په هاغه وخت کي د اعتکاف په نیت سره بل مسجد ته داخل سي، نو د هغه اعتکاف نه فاسدیږي.

فإن خرج إلخ: که معتکف بېله عذره د لږ ګړي لپاره هم له مسجد څخه ووځي، نو د هغه واجب اعتکاف فاسدیږي، برابره ده قصداً وتلی وي، یا په هېره وتلی وي (نو بېرته دې مسجد ته داخل سي او د یوې ورځي قضاء واجبیږي)، او که له واجب څخه بغیر نفل اعتکاف وي، نو هغه په بېله عذره وتلو سره پوره کیږي (او هیڅ قضاء نه واجبیږي)، د رمضان په آخري عشره کي د اعتکاف هم دغه حکم دی (لکه د واجب اعتکاف حکم. همدارنګه که په نفلي اعتکاف کي د وخت تعیین وکړي چي مثلاً د یوې ورځي او یوې شپې د اعتکاف نیت وکړي، یا مثلاً د درېو ورځو په نیت نفلي اعتکاف شروع کړي، نو هغه هم

دواجب په حکم کرځي چي که لږ کرى له مسجد څخه ووځي، نو ديوې ورځي قضاء لازميږي). اوس معتکف ته پکار دي چي سمدستي مسجد ته داخل سي او له رمضان څخه وروسته ديوې ورځي قضاء دي راوړي، يعني له يوه مابنامه څخه تر بل مابنامه پوري دي په يو مسجد کي اعتکاف وکړي او د ورځي دي روژه هم ونيسي (او ديوې ورځي قضاء ځکه واجبيږي چي د هري ورځي اعتکاف مستقل عبادت دى، نو څوک چي مثلاً په دريمه ورځ اعتکاف مات کړي، نو صرف د هغه ورځي او شپې يعني د څلورويشتو ساعتو قضاء واجبيږي؛ ځکه چي د تيرو ورځو اعتکاف صحيح دى او د آينده اعتکاف تر اوسه شروع سوى نه دى، نو د کومي ورځي اعتکاف چي يې مات کړى دى، صرف د هاغه قضاء واجبيږي. او د اعتکاف په قضاء کي روژه شرط ده او که څوک يې په [بل] رمضان کي قضاء راوړي، نو د رمضان روژه کافي ده. او که په نفلي اعتکاف کي يې دوخت تعيين نه وي وکړى، نو له مسجد څخه په وتلو سره سمدستي هغه پوره کيږي، لکه اوس چي ذکر سوه او د هغه هيڅ قضاء واجب نه ده). (انوار الايضاح، شفاء الارواح، تحفة الالمعي، البحر الرائق، مراقى الفلاح)

## د معتکف لپاره په مسجد کي خوراک، څښاک، خوب او بيع کول

﴿١١٧٠﴾ وَأَكْلُ الْمُعْتَكِفِ وَشُرْبُهُ وَنَوْمُهُ وَعَقْدُهُ الْبَيْعَ لِمَا يَحْتَاجُهُ لِنَفْسِهِ أَوْعَيَالِهِ فِـي الْمَسْجِدِ او د معتکف خوراک او څښاک او خوب او د بيع معامله کول (يعني خرڅول او رانيول) د هغه شيانو چي دئ ورته محتاجه وي د خپل ځان او خپل عيال لپاره (دا ټوله) به په مسجد کي کيږي (يعني د معتکف لپاره دا ټوله په مسجد کي کول روا دي) وَكُرِهَ إِحْضَارُ الْمَبِيْعِ فِيْهِ او مکروه دي د بيع شى مسجد ته حاضرول (راوړل) وَكُرِهَ عَقْدُ مَاكَانَ لِلتِّجَارَةِ او مکروه دي د هغه شيانو معامله (سودا) کول کوم چي د تجارت لپاره وي.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دى چي د معتکف لپاره په مسجد کي خوراک، څښاک او خوب کول جائز دي، همدارنګه د خپل ځان او د خپل اهل وعيال لپاره چي د کومو شيانو د رانيولو او خرڅولو ضرورت وي، د هغوى خرڅول او رانيول هم ورلره جائز دي، خو هغه شيان او سامان دي مسجد ته نه حاضروي، داسي کول مکروه تحريمي دي، صرف د خرڅلاو او رانيولو معامله کوم چي ضروري وي، هغه دي په مسجد کي تر سره کړي.



**مسئله:** که د معتکف لپاره خوراک راوړونکى کس نه وي چي د هغه لپاره ډوډى او خوراک راوړي، يا چا ته نه سي ويلاى، نو بيا د خوراک راوړلو لپاره هم بهر وتلاى سي، او په دې کي دي ځنډ نه کوي او خوراک دي مسجد ته راوړي او په مسجد کي دي يې خوري. (طحطاوي)

## په اعتکاف کي د خاموشی (چپتیا) حکم

﴿۱۱۷۱﴾ وَكُرِهَ الصَّمْتُ إِنِ اعْتَقَدَهُ قُرْبَةً او مکروه دي چپ پاتېدل (چپ کېنستل) که چیري داسي کول عبادت (د ثواب کار) گڼي وَالتَّكَلُّمُ إِلَّا بِخَيْرٍ او (مکروه دي) خبري کول مگر د خیر (نېکي خبري).

**لغات:** ﴿صمت﴾ د نصر د باب مصدر دی: چپ کېدل، خاموشه کېدل، او د "سکوت" پر ځای یې "صمت" ځکه استعمال کړی دی چي په دواړو کي فرق دی، "سکوت" وايي محض د دواړو شونډانو (یعني د خولې) بندېدلو ته او که دا (د خولې) بند والی اوږد سي، نو صمت دی (شامي ج:۲ ص:۱۸۵). ﴿قربة﴾ عبادت او د نېکی کار، داسي کار چي په هغه سره د خدای تعالیٰ قُربت او رضاء حاصلیږي، د ثواب کار (ثوابي کار)، جمع: قُرَب و قُرُبَات.

**تشریح:** په مسجد کي بده خبره کول د ټولو لپاره ناجائز دي او د معتکف لپاره خو په خاصه توگه ممنوع دي، د اعتکاف له آدابو څخه دا دي چي له ښې خبري څخه بغیر نوري خبري نه وکړي. او پاته سو چپ چاپ (خاموشه) کېنستل په دې خیال او عقیده سره چي په دې کي ثواب زیات دی دا په اعتکاف کي مکروه دي، که یې دا خیال او عقیده نه وي، نو بیا هیڅ کراهت نسته. ها! که له بدو خبرو مثلاً له غیبت یا د بدو اشعارو له ویلو څخه د ځان ساتلو لپاره خاموشي اختیار کړي، نو دا ډېر لوی عبادت دی. همدارنگه که له بې ځایه (غیرِ مفیده) خبرو څخه یې د ژبي د ساتلو لپاره خاموشي اختیار کړې وي، نو دا هم مکروه نه دي، نو ځکه معتکف ته پکار دي چي خپل زیاتره وخت د قرآن په تلاوت او په ذکر او عبادت کي تېر کړي.

والتکلّم إلخ: یعني له نېکو او ښه خبرو څخه بغیر نوري خبري کول هم د معتکف لپاره مکروه دي، په اعتکاف کي داسي خبري کول مباح (روا) دي چي په هغوی کي گناه نه وي. د ضرورت په اندازه دنیوي خبري کول هم ممنوع نه دي، لېکن خبري کول دي خپله مشغله نه گرځوي. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

## د اعتکاف په حالت کي جماع کول حرام دي

﴿۱۱۷۲﴾ وَحَرُمَ الْوَطْءُ وَدَوَاعِيهِ او حرام دي (د اعتکاف کونکي لپاره) وطي او دواعي د وطي (یعني وطي ته بلونکي شیان اسباب، لکه ښکله مچول، مسه کول او داسي نور) وَبَطَلَ بِوَطْئِهِ وَبِالْإِنْزَالِ

بِدَوَاعِيْهِ او باطلېږي د اعتكاف كونكي په وطي سره او(يا) په انزالېدو سره د وطي د دواعيو په سبب.

**لغات:** ﴿الوطء﴾ د سمع د باب مصدر دى، وَطَأَيَطَأُوَطْأً: وطي كول. او د دې باب خپله معنى ده: تر پښو لاندې كول (پايماله كول). ﴿دواعي﴾ جمع د اعية ده: (وطي او جماع ته) بلونكي شيان. يعني هغه كارونه كوم چې سړى پر جماع را پاروي، لكه ښځه په شهوت سره مسه كول. ور سره پرېوتل. مچول.

**تشريح:** مسئله دا ده چې د اعتكاف په حالت كې جماع كول حرام دي. مثلاً كه څوك د خپل طبعي ضرورت لپاره له مسجد څخه ووځي او د ښځې سره جماع هم وكړي، نو د هغه دا فعل حرام دى او دواعي د وطي (وطي ته بلونكي شيان) يعني هغه افعال كوم چې زياتره وخت د جماع سبب ګرځي. مثلاً ښځه مسه كول (په غېږ كې نيول)، مچول او داسې نور دا ټول هم حرام دي.

وبطل بوطء: كه معتكف جماع وكړي برابره ده قصداً وي او كه په هېره وي. انزال سې او كه نه سي. د هغه اعتكاف باطلېږي.

وبالإنزال بدواعيه: يعني په دواعي د وطي سره هغه وخت اعتكاف باطلېږي كله چې انزال سي. او كه انزال نه سي، نو اعتكاف نه باطلېږي، كه څه هم د اعتكاف په حالت كې دا فعل حرام دى. (شفاء الارواح)

## د ورځو د اعتكاف په نذر كولو سره د شپو اعتكاف هم لازمېږي

﴿۱۱۸۳﴾ وَلَزِمَتْهُ اللَّيَالِي أَيْضًا بِنَذْرِ اِعْتِكَافِ أَيَّامٍ او لازمېږي پر هغه د شپو اعتكاف هم د ورځو د اعتكاف په نذر كولو سره وَلَزِمَتْهُ الْأَيَّامُ بِنَذْرِ اللَّيَالِي مُتَتَابِعَةً او لازمېږي پر هغه ورځې (هم) د شپو په نذر كولو سره پرلپسې (يعني د ورځو اعتكاف يې پرلپسې لازمېږي) وَإِنْ لَمْ يَشْتَرِطِ التَّتَابُعَ كه څه هم شرط يې نه وي لګولى د پرلپسې والي فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ په ظاهر روايت كې وَلَزِمَتْهُ لَيْلَتَانِ بِنَذْرِ يَوْمَيْنِ او لازمېږي پر هغه دواړې شپې (هم) د دوو ورځو (د اعتكاف) په نذر كولو كې.

**تشريح:** صورت د مسئلې دا دى چې كه څوك د څو ورځو اعتكاف پر خپل ځان لازم كړي (نذر يې كړي). مثلاً داسې ووايي چې د خداى تعالىٰ لپاره پر ما لس ورځې اعتكاف لازم دى. نو د دې لسو ورځو اعتكاف د هغوى د شپو سره لازمېږي او پرلپسې لازمېږي. كه څه هم د پرلپسې والي شرط يې

نه وي لګولی. همدارنګه د دې برعکس که د څو شپو اعتکاف پر خپل ځان لازم کړي، نو پر هغه دا اعتکاف د ورځو سره لازميږي او پرلپسې لازميږي.

ولزمته ليلتان إلخ: يعني که څوک د دوو ورځو د اعتکاف نذر ومني، نو پر هغه د دوو ورځو اعتکاف د هغوی د دواړو شپو سره لازميږي. او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز اوله شپه نه داخليږي. نو ګواکې د هغه په نيز دوې ورځې او يوه شپه اعتکاف لازميږي. (شفاء الارواح)

﴿١١٤﴾ وَصَحَّ نِيَّةُ النُّهُرِ خَاصَّةً دُونَ اللَّيَالِيْ او صحيح دی خاص (فقط) د ورځو (د اعتکاف) نيت کول بغير له شپو څخه.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چې که څوک د څو ورځو د اعتکاف نذر ومني، خو په ورځو "أيام" سره خاص د ورځو نيت وکړي، د شپو د اعتکاف نيت يې نه وي (چې فقط د ورځې اعتکاف کوم، نه د شپې)، نو د هغه نيت صحيح دي، مثلاً که داسې ووايې چې پر ما دالله تعالیٰ لپاره د پنځو شپو اعتکاف لازم دی او په پنځو ورځو سره خاص د ورځو نيت وکړي، نه د شپو، نو پر هغه فقط د پنځو ورځو اعتکاف لازميږي، د هغوی د شپو اعتکاف نه بانديې لازميږي (خلاصه دا چې په نذر کړل سوي اعتکاف کې د ورځو سره د شپو اعتکاف هغه وخت لازميږي کله چې يې د شپو نيت هم کړی وي. يا يې بالکل نيت نه وي کړی. لهذا که فقط د ورځو نيت وکړي او شپې په نيت کې جلا او منفي کړي. نو بيا د شپو اعتکاف نه لازميږي).

## د يوې مياشتې د اعتکاف د نذر کولو حکم

﴿١١٥﴾ وَإِنْ نَذَرَ اِعْتِكَافَ شَهْرٍ وَنَوَى النُّهُرَ خَاصَّةً أَوِ اللَّيَالِيْ خَاصَّةً او که نذر کړي (نذر ومني) د يوې مياشتې اعتکاف او نيت خاص (فقط) د ورځو وکړي يا خاص د شپو لَا تَعْمَلُ نِيَّتُهُ إِلَّا أَنْ يُصَرِّحَ بِالْإِسْتِثْنَاءِ نو د هغه دا نيت کار (اثر) نه کوي مګر دا چې د استثناء صراحت وکړي (يعني په ښکاره لفظو سره استثناء وکړي).

**لغات:** ﴿النهر﴾ جمع د نَهَارٌ ده: ورځ. يعني له صبح صادق (طلوع الفجر) څخه تر لمر لوېدو پورې وخت. ﴿يصرح﴾ د تفعيل د باب مضارع ده، مصدر: تصريحًا: په ښکاره لفظو کې ذکر کول، صراحت کول. ﴿الاستثناء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: مستثنیٰ کول، جلا کول، خارجول.

**تشريح:** صورت د مسئلې دا دی چې که څوک دا نذر ومني چې يوه مياشته به اعتکاف کوي او هغه صرف د ورځو نيت وکړي، يا صرف د شپو نيت وکړي، نو د هغه دې نيت لره اعتبار نسته او صحيح نه دی: ځکه مياشته د يو معين مقدار نوم دی کوم چې په ورځو او شپو دواړو بانديې مشتمل دی (ځکه

که میاشته مثلاً د برش ورځې وي، نو په دې کي شپې هم مراد وي)؛ لیکن که هغه صراحتاً د شپو استثناء وکړي مثلاً داسي ووايي چي "زما پر ذمه دالله لپاره د يوې مياشتي د ورځو اعتکاف دی بغير له شپو څخه"، نو په هغه کي صرف د ورځو اعتکاف لازميږي.

او که صرف د ورځو استثناء وکړي مثلاً داسي ووايي چي "زما پر ذمه دالله لپاره د يوې مياشتي د شپو اعتکاف دی"، نو بيا د هغه پر ذمه هيڅ نسته؛ ځکه د ورځو په استثناء کولو سره محض شپې پاته سوې او په شپو کي د نذر اعتکارف نه سي کېدلای؛ ځکه په نذر سوي (منذور) اعتکاف کي روژه شرط ده او شپې د روژې محل نه دي. (شفاء الارواح. انوار الايضاح)

## د اعتکاف مشروعيت

| ﴿۱۱۷۶﴾ وَالِاعْتِكَافُ مَشْرُوْعٌ بِالْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ او اعتکاف په کتاب الله او سنت (حديث) سره مشروع (په شريعت کي ثابت سوی) دی. |
|---|

**لغات**: ﴿مشروع﴾ د فتح له بابه اسم مفعول دی: په شريعت کي وارد او نافذ. په شريعت کي جائز کړی سوی.

**تشريح**: فرمايي چي اعتکاف په شريعت کي په قرآن او حديث دواړو سره ثابت دی. له قرآن څخه دليل دا آيت دی: ﴿وَلَا تُبَاشِرُوْهُنَّ وَأَنْتُمْ عَاكِفُوْنَ فِي الْمَسَاجِدِ﴾ (يعني کله چي تاسي په مسجدونو کي د اعتکاف په حالت کي يئ، نو د خپلو ښځو سره بدن هم مه مسه کوی)، او سنت يعني له حديثو څخه دليل دا حديث دی: "عن عائشة زوج النبي ﷺ أن النبي ﷺ كان يعتكف العشر الأواخر من رمضان حتّٰى توفّاه الله ثم اعتكف أزواجه من بعده" (بخاري شريف. باب الاعتکاف في العشر الأواخر ص: ۲۷۱. حديث رقم: ۲۰۲۲. مسلم شريف. کتاب الاعتکاف ص: ۳۷۱. حديث رقم: ۱۱۷۲. ۲۷۸۴)، يعني له حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي نبي کريم ﷺ به هر کال د رمضانُ المبارک په آخري عشره کي اعتکاف کوی تر دې چي هغوی ﷺ وفات سو. او د وفات په کال نبي کريم ﷺ شل ورځې اعتکاف وکړی. (انوار الايضاح. شفاء الارواح)

## د اعتکاف فضيلت او اهميت

| ﴿۱۱۷۷﴾ وَهُوَ مِنْ أَشْرَفِ الْأَعْمَالِ إِذَا كَانَ عَنْ إِخْلَاصٍ او اعتکاف له افضله اعمالو څخه دی کله چي په اخلاص سره وي وَمِنْ مَحَاسِنِهِ أَنَّ فِيْهِ تَفْرِيْغَ الْقَلْبِ مِنْ أُمُوْرِ الدُّنْيَا او د اعتکاف له ښېګڼو څخه دا دي چي په اعتکاف کي له دنياوي معاملو څخه د زړه فارغول (خالي کول) |
|---|

ستہ وَ تَسْلِيْمِ النَّفْسِ إِلَى الْمَوْلٰى او (همدارنګه په اعتکاف کي) ځان خپل مالک (رب تعالیٰ) ته سپارل دي وَ مُلَازَمَةَ عِبَادَتِهٖ فِيْ بَيْتِهٖ وَالتَّحَصُّنَ بِحِصْنِهٖ او (همدارنګه په اعتکاف کي) د خپل مالک د عبادت لازم نیول (پر ځان لازمول) دي د هغه په کور (مسجد) کي او د هغه په قلعه (کلا) کي محفوظ کېدل دي.

**لغات**: ﴿أشرف﴾ د کرُم له بابه اسم تفضیل دی: افضل او اعلیٰ. ﴿محاسن﴾ دا جمع د حُسن ده (خلاف القیاس): ښېګني، ښکلاوي. ﴿تحصّن﴾ د تفعّل د باب مصدر دی، د دې باب په صله کي چي باء او حصن ذکر سي، نو معنیٰ یې ده: ځان په محفوظه کول (ځان په خوندي کول)، پناه ور وړل.

**تشریح**: فرمایي چي که اعتکاف په اخلاص سره وي چي خالص د الله تعالیٰ د رضاء لپاره وسي، نو هغه افضل ترین عمل او عظیمُ الشان عبادت دی؛ ځکه د اعتکاف حاصل دا دی چي د خدای دَر ته راغلم او هلته دېره سوم چي تر څو زما مراد (رضاء الهي) پوره نه سي تر هغه وخته پوري نه ځم.

ومن محاسنہ إلخ: د اعتکاف له ښېګنو څخه یو دا ده چي د انسان زړه د دنیا له فکرونو څخه خالي کېږي؛ ځکه تر څو چي انسان په خلوت او په تنهایي کي وي، نو په کراره، کراره هغه ټوله شیان ختم کېږي کوم چي د انسان توجّه له خدای څخه لیري کوي او زړه په پوره توګه د دنیا له خیالاتو څخه خالي سي او د الله و طرف ته متوجه سي او د هغه خوب، ویښتیا غرض هر وخت په عبادت کي شمېرل کېږي، همدارنګه د الله تعالیٰ په کلا (مسجد) کي له ګناهونو څخه محفوظه کېږي چي د خلګو سره د ګډون او د کاروبار په مشغولیاتو کي له انسان څخه کوچني، کوچني ډېر ګناهونه کېږي.

## د معتکف مثال

﴿۱۱۸۸﴾ وَقَالَ عَطَاءٌ رَحِمَهُ اللهُ او عطاء رَحِمَهُ الله فرمایلي دي مَثَلُ الْمُعْتَكِفِ مَثَلُ رَجُلٍ يَخْتَلِفُ عَلٰى بَابِ عَظِيْمٍ لِحَاجَةٍ چي د اعتکاف کونکي مثال د هغه سړي په شان دی کوم چي پر یوه لویه دروازه د یو ضرورت لپاره ځي راځي (تر څو چي یې ضرورت پوره کېږي) فَالْمُعْتَكِفُ يَقُوْلُ: لَا أَبْرَحُ حَتّٰى يَغْفِرَ لِيْ نو اعتکاف کونکی (ګواکي داسي) وایي: چي زه (له دې ځایه) نه

لیري کېږم تر دې چې الله تعالیٰ ما ته بخښنه وکړي (یا په بله وینا: چې تر څو ما ته بخښنه امغفرت انه وسي، تر هغه وخته دالله تعالیٰ له کور امسجدا څخه نه ځم).

**لغات**: ﴿یختلف﴾ د افتعال د باب مضارع ده، اِخْتَلَفَ یَخْتَلِفُ اِخْتِلَافًا: د دې باب په صله کې چې إلی المکان یا علیٰ او داسي نور ذکر سوي وي، نو معنیٰ یې ده: تلل راتلل (تګ راتګ). ﴿لا أبرح﴾ د سمع له بابه د واحد متکلم نفي صیغه ده: له خپل ځایه لیري کېدل، جلا کېدل.

**تشریح**: عطاء بن ابي رباح رَحِمَهُ الله ډېر ستر تابعي دی او د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما شاګر دی او زموږ د امام اعظم رَحِمَهُ الله اُستاذ دی، هغه فرمایي چې معتکف داسي دی لکه یو څوک چې د یو چا په دربار باندې پروت اووسي چې تر هغه وخته نه ځم تر څو چې مي خواست قبول نه سي، نو معتکف (په زبان حال سره) وایي چې تر څو ما ته بخښنه نه وسي، تر هغه وخته نه ځم، که حقیقتاً همدغه حالت وي، نو د انسان د مغفرت او رحمت الهي سبب ګرځي.

﴿۱۱۸۹﴾ (د نور الایضاح مصنف رَحِمَهُ الله فرمایي) وَهٰذَا مَا تَيَسَّرَ لِلْعَاجِزِ الْحَقِيْرِ بِعِنَايَةِ مَوْلَاهُ الْقَوِيِّ الْقَدِيْرِ او دا (څه چې بیان سوه، دا) هغه دي کوم چې آسانه سوه (ما) عاجزه بې حیثیته لره د خپل قوي او قدرت والا مالک (رب تعالیٰ) په توجّه (او مهرباني) سره اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ هَدَانَا لِهٰذَا ټول تعریفونه هغه الله جَلّ جَلَالُهُ لره دي چې موږ ته یې هدایت (لارښوونه) وکړه د دې (خدمت التالیف) وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِيَ لَوْلَا أَنْ هَدَانَا اللّٰهُ او موږ به هیڅکله هدایت (لارښوونه) موندلې نه وای که چیري الله تعالیٰ موږ ته هدایت نه وای کړی وَصَلَّى اللّٰهُ عَلٰى سَيِّدِنَا وَمَوْلَانَا مُحَمَّدٍ خَاتَمِ الْأَنْبِيَاءِ او د الله رحمت (رحمت کامله) دې نازل وي زموږ پر سردار او زموږ پر مولا محمد ﷺ باندې چې آخر د نبیانو دی (له نبي کریم ﷺ څخه وروسته بل هیڅ نبي نه راځي، نه تشریعي، نه غیر تشریعي، نه ظلي، نه بروزي، صرف حضرت عیسیٰ علیه السلام به د نبي کریم ﷺ د اُمتي په حیثیت سره راسي چې هغه ته له نبي ﷺ څخه مخکې نبوت ورکول سوی دی) وَعَلٰى آلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَذُرِّيَّتِهٖ وَمَنْ وَّالَاهُ او (رحمت کامله دې نازل وي) د ده پر آل (کورنۍ او قریبانو اهل بیتو) او د ده پر اصحابو او د ده پر اولاد او پر هغه ټولو چې د نبي کریم ﷺ ملګري کړي دي (یا په بله ترجمه: چې هغوی د نبي کریم ﷺ سره محبت او دوستي لري) وَنَسْأَلُ اللّٰهَ

سُبْحَانَهٗ مُتَوَسِّلِيْنَ او موږ خواست کوو له الله تعالیٰ څخه په داسې حال کې چې وسیله اختیاروونکي یو (یعني د نبي کریم ﷺ په وسیله او واسطه سره دا خواست کوو) أَنْ يَّجْعَلَهٗ خَالِصًا لِوَجْهِهِ الْكَرِيْمِ چې دا کتاب د خپل کریم ذات لپاره خالص وګرځوي وَأَنْ يَّنْفَعَ بِهِ النَّفْعَ الْعَمِيْمَ او دا چې ددې په ذریعه عامه نفع (عامه فایده) ورسوي وَيُجْزِلَ بِهِ الثَّوَابَ الْجَسِيْمَ او چې ددې په ذریعه پر پیمانه (ډېر زیات) ثواب را کړي.

**لغات:** ﴿تیسّر﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: آسانه کېدل. ﴿حقیر﴾ بې حیثیته. معمولي. ﴿عنایة﴾ توجه، اهتمام. ﴿والاهٗ﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: مدد کول، مرسته کول. محبت او دوستي کول. ﴿متوسّلین﴾ د تفعّل له بابه د جمع مذکر فاعل صیغه ده: یو شی وسیله او واسطه ګرځول، وسیله اختیارول. لکه څرنګه چې ویل کیږي یجوز للإنسان أن یتوسّل إلی الله بعمله الصالح (یعني د انسان لپاره جائز دي چې (د قبولیت په اُمید سره) خپل نېک عمل د الله تعالیٰ لپاره واسطه وګرځوي). تقرّب حاصلول. ﴿یُجْزِل﴾ د افعال له بابه د واحد مذکر غائب مضارع معلومي صیغه ده: ډېر زیات ورکول. پر پیمانه ورکول. ﴿جسیم﴾ عظیم، غټ، لوی، لوړ. (معجم الوسیط بتصرّف)

**تشریح:** مصنف رَحِمَهُ الله فرمایي چې د لمانځه، روژې او داسې نورو چې کوم مسائل پېش کړل سوه. هغه ټوله د لوی څښتن ﷻ لویه مهرباني وه. کنې عاجزه بنده چیري ددې لائق وو.

مصنف رَحِمَهُ الله د دغه کتاب (نور الایضاح) اولاً تر "کتاب الاعتکاف" پوري ولیکی او تر همدې ځایه یې د لیکنې اراده وه. نو ځکه په آخر کې یې داسې اختتامي کلمات او دعائیه الفاظ هم ولیکل، بیا وروسته یې خیال سو چې د زکاة او حج مسائل هم اضافه کول پکار دي، نو بیا یې کتابُ الزکاة او کتابُ الحج هم ور سره اضافه کړی.



# كِتَابُ الزَّكوٰةِ

## (دا) كتاب د "زكاة" (په بيان كي) دی

**تشريح**: مخکي تر دې مصنف رَحِمَهُ الله کتابُ الصّوم د خپلو متعلقاتو سره بيان کړی او اوس له دې ځايه د ارکان خمسه وو د يو اهم رکن يعني د زکاة مسئلې او تفصيلات بيانوي. او د دوی تر مينځ د مناسبت وجه دا ده چي صلاة او صوم دواړه عبادت بدنيه دي او زکاة عبادت ماليه دی. همدارنګه د اصح قول پر بناء د صوم فرضيت مخکي دی پر زکاة. نو ځکه مصنف رَحِمَهُ الله اولاً کتابُ الصلاة بيا کتابُ الصوم او تر هغه وروسته کتابُ الزکوة بيان کړی دی.

**د زکاة فريضه**: هر مسلمان ته خصوصاً په دې حقيقت پوهېدل پکار دي چي کوم څه دولت او سرمايه چي ده ته حاصلېږي، د هغه اصل مالک دئ خپله نه دی، بلکي الله ﷻ يې حقيقي مالک دی او هغه محض په خپل فضل او کرم سره موږ ته په خپل ملکيت کي د نيابت په توګه د تصرّف کولو حق را کړی دی، لهذا کله چي الله تعالیٰ د هغه مالک دی او د هغه د قدرت او فضل پر بناء موږ ته دا نعمت حاصل سوی دی، نو که چيري هغه وخپلو بندګانو ته دا حکم کړي وای چي دوی دي خپل ټوله مال دا لله ﷻ په لاره کي خرچ کړي، نو موږ لره به هيڅ د شکايت يا اعتراض موقع نه وای؛ ځکه شی دالله تعالیٰ دی. د هغه چي څومره او چيري خوښه وي، خرچ کولای سي. خو دا هم د هغه لوی فضل دی چي موږ ته يې چيري د خرچ کولو حکم کړی دی، هلته يې د ټوله مال نه. بلکي د څه حصې د خرچ کولو حکم يې کړی دی.

**زکاة او صدقه په مال کي د اضافې سبب دي**: په عامه توګه خلک دا ګڼي چي د زکاة په اداء کولو او په صدقه وخيرات کولو سره مال کمېږي، لېکن د قرآن او حديث صراحت دا دی چي په صدقه سره مال نه ختمېږي بلکي زياتېږي، او که سوال وسي چي د زکاة يا صدقې دايستلو په وخت کي خو په ښکاره مال کمېدونکی ليدل کيږي، نو بيا ولي دا ويل سوي دي چي په صدقه سره مال نه کمېږي، نو جواب يې دا دی چي د صدقې په وجه که څه هم مال په ښکاره کمېدونکی ليدل کيږي، خو د هغه په بدله کي چي د الله تعالیٰ له طرفه کوم برکت کيږي په کاروبار کي د اضافې په صورت کي، يا له نقصان او مصائبو څخه د حفاظت په صورت کي، هغه د صدقې د مقدار په مقابله کي څو چنده زيات وي (همدا يې نغده فائده ده او په آخرت کي يې جلا عظيمُ الشّان اجر او ثواب دی).

**زكاة كله فرض سو؟**: زكاة د اسلام په ابتدائي دَور كي فرض سوى وو، سورةُ المزمل كوم چي له ابتدائي سورتونو څخه دى، د هغه په آخري آيت كي د زكاة ذكر دى، د الله تعالى فرمان دى ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ﴾، خو په مكي دور كي د زكاة تفصيلات نازل سوي نه وه، صحابه وو پوښتنه هم كړې وه "يَسْأَلُونَكَ مَاذَا يُنْفِقُونَ قُلِ الْعَفْوَ" (خلك ستا څخه پوښتنه كوي چي څه خرچ كړي؟ هغو ته ووايه چي له خپل ضرورت څخه زائد څه خرچ كړي)، د مال هيڅ مقدار يې متعين نه كړى، كله چي تر هجرت وروسته د هجرت په دويم كال اسلامي نظام په وجود كي راغلى او اسلامي حكومت قائم سو، نو د زكاة تفصيلات نازل سول. (تحفة الالمعي ج:۲، ص:۵۰۷)

**د زكاة سبب**: د زكاة سبب د داسي نصاب مالك كېدل دي چي پر هغه يو كال تېر سوى وي او هغه مال د انسان له قرض (پور) او نورو اړتياوو څخه فارغ وي.

**د زكاة حكم**: د زكاة په فرضيت باندي د ټوله امت اتفاق دى، كوم څوك چي د زكاة د فرضيت انكار كوي، پر هغه به د كفر فتوىٰ لګيږي. (انوار الايضاح)

**د زكاة لغوي او اصطلاحي معنىٰ**: زكاة د خپل اصل او لغوي معنىٰ په اعتبار سره د څو معناګانو لپاره استعماليږي: ① كله نا كله د پاكوالي په معنىٰ سره وي، لكه: قَدْ أَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى (بې شكه كامياب دى هغه څوك چي پاكي حاصله كړي). ② كله د زياتېدلو، نما او ودې په معنىٰ سره وي، مثلاً كښت چي كله وده وكړي، نو عرب وايي: زَكَا الزَّرْعُ (يعني كښت وده وكړه). ③ او كله دا لفظ د صدقې او خيرات كولو په معنىٰ سره وي، لكه: تَزَكَّى الرَّجُلُ، أي تَصَدَّقَ الرَّجُلُ (يعني سړي صدقه وكړه).

د زكاة اصطلاحي معنىٰ خپله مصنف رَحِمَهُ الله بيان كړي ده.

## د زكاة اصطلاحي معنىٰ

﴿۱۱۸۰﴾ هِيَ تَمْلِيكُ مَالٍ مَخْصُوصٍ لِشَخْصٍ مَخْصُوصٍ دا (زكاة) په ملك كي وركول دي د مخصوص مال و مخصوص كس ته (يعني فقير يا داسي بل مستحق د مال د يو خاص مقدار مالك جوړول).

**لغات**: ﴿تمليك﴾ د تفعيل د باب مصدر دى: مالك جوړول (مالک كول)، د يو چا په ملكيت او قبضه كي مال وغيره وركول.

**تشريح**: په دې عبارت كي د زكاة اصطلاحي تعريف بيان سوى دى چي د شريعت په اصطلاح كي د زكاة معنىٰ ده: د خپل مال يو خاص مقدار (كوم چي د شريعت له طرفه مقرر دى) خالص د الله تعالىٰ د

رضاء لپاره بېله عوضه يو مخصوص کس (فقير وغريب غير سيد) ته په ملکيت کي ورکول (مالک يې جوړول).

تفصيل يې دا دی چي پر کوم مال يو کال تېر سي او هغه د نصاب په اندازه وي، له هغه څخه څلوېښتمه حصه داسي مسلمان کس ته په ملکيت کي ورکول (مالک يې جوړول) کوم چي فقير وي او هاشمي يا د هاشمي له طرفه آزاد کړی سوی نه وي دالله د حکم د تعميل په نيت سره.

د زکاة له تعريف څخه معلومه سوه چي د زکاة حقيقت تمليک (مالک جوړول ايا په بله وينا په ملکيت کي ورکول ا) دي، لهذا چيري چي د تمليک معنیٰ موجوده نه سي، هغه به زکوٰة شرعي نه وي مثلاً په مسجد کي خرچ کول، د مړي په کفن کي ورکول، د پلمنو او مسافرانو لپاره ځای (مسافر خانه) او داسي نور جوړول، همدارنګه که فقير ته خپل يو ځای په کرايه ورکړي او د هغه په کرايه کي د زکاة نيت وکړي، نو په دې هم سره زکاة نه اداء کيږي، همدارنګه که مستحقو فقيرانو ته په ګډه يو ځای خوراک ورکول سي، نو په دې سره هم زکاة نه اداء کيږي، بلکي هغوی د خوراک مالکان جوړول ضروري دي (په اکثره مدرسو کي يو ځای په ګډه طالبانو ته د خوراک ورکولو رواج دی، نو منتظمينو ته پکار دي چي د زکاة مال د تمليک کولو څخه وروسته په خوراک کي خرچ کړي، کنې زکاة نه اداء کيږيانوار الايضاح ا). (طحطاوي ص: ۳۸۹، در مختار ج: ۳، ص: ۱۶۱، ط: بيروت)

## د زکاة د فرضيت شرائط

﴿۱۱۸۱﴾ فُرِضَتْ عَلٰى حُرٍّ مُسْلِمٍ مُكَلَّفٍ مَالِكٍ لِنِصَابٍ مِنْ نَقْدٍ فرض کړی سوی دی (زکاة) پر آزاد، مسلمان مکلف کس باندي کوم چي د نقد مال د نصاب مالک وي وَلَوْ تِبْرًا که څه هم (هغه نقد مال) د سرو او سپينو زرو ټوټې وي أَوْ حُلِيًّا أَوْ آنِيَةً يا زېورات وي يا لوښي وي أَوْ مَا يُسَاوِيْ قِيْمَتَهٗ مِنْ عُرُوْضِ تِجَارَةٍ يا له تجارتي څخه وي داسي شی (سامان) وي کوم چي د نصاب د قيمت سره برابر وي فَارِغٍ عَنِ الدَّيْنِ وَعَنْ حَاجَتِهِ الْأَصْلِيَّةِ (او) چي (دا نصاب) له قرض او د ده له ضرورت اصلي څخه فارغ (زيات) وي نَامٍ وَلَوْ تَقْدِيْرًا (او) نما کونکی (وده کونکی) وي که څه هم (هغه وده کول) تقديراً (او فرضا) وي.

**لغات:** ﴿نصاب﴾ د دې معنیٰ ده: "اصل"، او په شريعت کي نصاب د مال، اسبابو او څارويو هغه مقدار ته وايي چي په هغه کي زکاة فرض کيږي، ﴿نقد﴾ نغد مال، "نقدان" سرو زرو او سپينو

زرو ته وايي، د فقهاؤ په نيز د "نقد" لفظ په دوو معناوو سره مستعمل دی: يو خو د سرو زرو او سپينو زرو د سکو لپاره (يعني دراهم او دنانير)، د دې جمع "نُقُوْد" ده. بيا فقهاؤ د دې په استعمال کي توسّع وکړه او په هر ډول سکې او نوټ باندي يې د "نقود" اطلاق وکړی (يعني هر هغه څه چي په هغه باندي خلک نغده معامله کوي او خلک يې نغد مال ګڼي). دويم "نقد" د نغد اداء کولو په معنیٰ سره راځي. د دې په مقابله کي د پُور (قرض) لفظ دی (قاموس الفقه ج:۵، ص:۲۱۹)، ﴿تِبرْ﴾ د سرو او سپينو زرو ټوکره (ټوټه)، هغه سره او سپين زره چي تر اوسه سکه او زيورات ځني جوړ سوي نه وي. ﴿حُلِيٌّ﴾ جمع د حَلْيٌ ده (د حاء په فتحه او د لام په سکون سره): زېور (لکه غاړګی او داسي نور شيان کوم چي ښځه د ښکلا او سينګار په توګه استعمالوي)، د لته د سرو او سپينو زرو زېورات مراد دي؛ ځکه زکاة د هغه سره متعلق دی او کوم زېورات چي له جواهرو څخه جوړ وي، په هغوی کي زکاة نسته. ﴿آنية﴾ لوښي جمع أَوَانِي، ﴿عُروض﴾ (بضم العين) جمع د عَرَضٌ ده، لکه څرنګه چي فُلُوْس جمع د فَلْسٌ ده: سامان، له سرو او سپينو زرو څخه بغير نور شيان، او بعضو ليکلي دي چي عرض هغه سامان کوم چي مکيلي او موزوني نه وي او نه حيوان وي او نه جائيداد وي (المصباح المنير)، ﴿نامٍ﴾ د نصر له بابه د فاعل صيغه ده: نما کونکی، وده کونکی، داسي مال چي په هغه کي د وده کولو (زياتېدلو) صلاحيت وي.

**تشريح**: د زکاة د فرض کېدلو لپاره لاندېني شرطونه لازم دي، يعني زکاة پر هغه چا فرض کيږي چي په هغه کي دا شرطونه موجود سي: ① آزادي، نو پر غلام زکاة فرض نه دی، ② اسلام، نو پر کافر زکاة فرض نه دی، ③ مُکلّف کېدل، يعني عاقل او بالغ کېدل، لهذا پر مجنون او نا بالغه هلک زکاة نه فرض کيږي، ④ د نصاب په اندازه مال لرل، يعني د دومره مال مالک کېدل کوم چي د نصاب په اندازه وي. شريعت د زکاة يو نصاب مقرّر کړی دی، د چا سره چي هغه نصاب موجود وي، پر هغه زکاة فرض کيږي او هغه نصاب د سرو زرو په حساب سره اُووه نيمي تولې سرزر دي (کوم چي ۸۷ ګرامه و ۷۹ ملي ګرامه کيږي)، نو که د چا سره دغه مذکوره نصاب د نغدو روپو په شکل کي وي يا د سرو او سپينوزرو په شکل کي وي، برابره ده هغوی جوړ سوي سره زر يا سپين زر (يعني زېورات) وي او که ناجوړ سوي ټوټې وي، يا مذکوره نصاب د تجارت د سامان په شکل کي وي، نو پر هغه زکاة واجبيږي، په دې شرط چي دا روپۍ او مال د هغه له ضروريات اصليه وو څخه زيات (اضافه) وي. يعني له ورځني ضرورياتو مثلاً د اوسېدلو ځای (استوګنځی)، د استعمال لوښي، کالي (جامې)، يخچال، د کاليو د پرېوللو او ګنډلو مشين (ماشين)، چپر کټ او الماري (فرنيچر)، موبائل، ټليفون، موټر کتابونه او داسي نورو څخه زيات وي، او په دې شرط چي هغه مال پر خپلې ښځي او

بچیانو (کورنۍ) له خرچ کولو څخه زیات وي، او دا هم شرط دی چي دا کس قرضداره (پور وړی) نه وي، لهذا که په ده قرض باندي وي، نو د قرض تر منها (جلا) کولو وروسته به کتل کیږي چي اوس پاته مال د نصاب په اندازه دی او که تر هغه زیات دی (یا په بله وینا: دې ته به اندازه لګول کیږي چي اوس فی الحاله چي د ده سره کوم مال او روپۍ دي، که هغه په قرض اداء کولو کي صرف کړل نسي نو څومره مال نور پاتیږي، که چیري د نصاب په اندازه یا تر هغه زیات پاتیږي)، نو زکاة فرض کیږي، او که پاته مال د نصاب له مقدار څخه کمیږي، نو زکاة نه فرض کیږي.

نامٍ ولو تقدیرًا: او یو شرط دا دی چي دا مال به وده کونکی (زیاتېدونکی) هم وي برابره ده حقیقتاً وده کونکی وي لکه د تجارت مال، څاروبان (رمه) چي د بچیانو په زیږولو سره وده وکړي، یا تقدیراً وده کونکی وي لکه سره زره او سپین زر چي په دوی کي پیدایشي (خلقي) وده سته؛ ځکه سره او سپین زر اسلام د تجارت او کاروبار ذریعه ګرځولې ده، برابره ده له دوی څخه یو شی (زېور) جوړ سوی وي او که نه وي، او برابره ده د تجارت نیت یې پکښي کړی وي او که نه وي هغه نامي (وده کونکی) دی په دوی کي په هر حال کي زکاة فرض دی، او که مال وده کونکی نه وي، نه حقیقتاً او نه تقدیراً، هغه که څه هم له ضرورت څخه زیات وي، نو هم په هغه کي زکاة نسته، لکه له یوه څخه زیات (داستوګني) ځایونه یا د استعمال مو ټران او داسي نور. (شفاء الارواح)

## د زکاة پر مال د کال تېرېدل شرط دي او په مینځ کي اضافه سوی مال په نصاب کي شاملیږي

﴿۱۱۸۲﴾ وَشَرْطُ وُجُوْبِ أَدَائِهَا حَوَلَانُ الْحَوْلِ عَلَى النِّصَابِ الْأَصْلِيِّ او د زکاة اداء کولو (ور کولو) د واجبېدلو شرط د (پوره) کال تېرېدل دي پر اصلي نصاب.

﴿۱۱۸۳﴾ وَأَمَّا الْمُسْتَفَادُ فِيْ أَثْنَاءِ الْحَوْلِ او کوم چي د کال په مینځ کي حاصل سوی (اضافه سوی) مال دی فَيُضَمُّ إِلٰى مُجَانِسِهٖ نو هغه به د خپل همجنس مال سره یو ځای کول کیږي (ضمول کیږي) وَيُزَكّٰى بِتَمَامِ الْحَوْلِ الْأَصْلِيِّ او د اصلي کال پر پوره کېدلو (ختمېدلو) به (د ټوله مال) زکاة ور کول کیږي سَوَاءٌ اُسْتُفِيْدَ بِتِجَارَةٍ أَوْ مِيْرَاثٍ أَوْ غَيْرِهٖ برابره ده هغه (د کال په مینځ کي حاصل سوی) مال په تجارت سره حاصل سوی وي یا په میراث یا په بله ذریعه سره.

**لغات**: ﴿مستفاد﴾ د استفعال له بابه مفعول دی: حاصل سوی، ترلاسه کړی سوی مال.

﴿أثناء﴾ مینځ، دوران. لکه څرنګه چې ویل کیږي جاء وا في اثناء الأمر: هغوی د کار په مینځ کې راغلل. ﴿مجانس﴾ د مفاعلي له بابه فاعل دی: هَمْ جنس (همجنس)، د خپل جنس والا.

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چې د زکاۃ فرضیت خو له هغه وخت څخه کیږي کله چې انسان د نصاب مالک سي، خو د هغه اداء کول (ورکول) هغه وخت فرض کیږي کله چې کال پوره سي، او د کال شمېرولو اُصول دا دی چې په کومه ورځ (تاریخ) چې انسان ته د نصاب په اندازه مال په لاس ورسي، له هغه ورځې (تاریخ) څخه د میاشتي (سپوږمۍ) په حساب سره د پوره کال په تېرېدلو باندي چې څومره مال د ده په ملکیت کي وي، د هغه زکاۃ واجبیږي، مثلاً که څوک د شعبان په اوله ورځ د نصاب خاوند سي، نو د دې نصاب کال د را روان کال د شعبان په اوله پوره کیږي، اوس که د کال په دوران کي د نصاب سره څه نور مال اضافه او یو ځای سي (یا په بله وینا دا چې دا د نصاب خاوند څه نور مال وګټي او ورته حاصل سي)، برابره ده په تجارت سره یې وګټي، یا یو څوک څه مال ورته هبه کړي، یا په میراث کي ورته حاصل سي، نو پر دغه اضافه حاصل سوي مال علیحده پوره کال تېرېدل ضروري نه دي، بلکي کله چې اوله د شعبان راسي، نو پر یوه ځای د اول مال او د دغه اضافه سوي مال ټولو زکاۃ ورکول لازمیږي، که څه هم دا اضافه سوی مال له شعبان څخه فقط دوې، درې ورځې مخکي ورته حاصل سوی وي.

فیضم إلی مجانسه: یعني کوم مال چې د کال په مینځ کي ورته حاصل سي، هغه به د خپل جنس سره یو ځای کول کیږي او په اول مال باندي د کال له تېرېدلو څخه وروسته به دا نوی حاصل سوی (اضافه سوی) مال او هغه اول مال ټوله سره یو ځای کول کیږي (یعني یو د بل سره به ګډول کیږي) او زکاۃ به یې اداء کول کیږي (کما ذکرنا)، مثلاً سره زره، سپین زر او د دوی سکې، روپۍ (افغانۍ یا کلداري)، ډالر، زېورات او د تجارت مال ټوله یو جنس دی (کوم ته چې نقد مال هم ویل کیږي)، نو دا به یو د بل سره یو ځای کول کیږي، لهذا که د چا سره د کال په شروع کي اُووه نیمي تولې سره زر وي، بیا د کال له تېرېدلو (پوره کېدلو) څخه مخکي پنځوس تولې سپین زر ور سره اضافه سي، یا مثلاً د یو چا سره دوپنځوس نیمي تولې سپین زر وي (یعني د سپینو زرو نصاب)، بیا د کال له تېرېدلو څخه مخکي پنځوس زره روپۍ نوري ورته حاصلي سي، نو دا وروسته حاصل سوی (اضافه سوی) مال به د اصل مال سره یو ځای کول کیږي، له جلا څخه به نه شمېرل کیږي.

ها! څرېدونکي څارویان (لکه پسونه او داسي نور) جلا جنس دی، هغوی به د نقد مال سره نه یو ځای کول کیږي، همدارنګه په څرېدونکي څارویانو کي هم جلا، جلا جنسونه سته، یعني اوښ جلا جنس دی، غوا، غویي او ګامېښه جلا جنس دی، پسه، وزه (بزه) او داسي نور جلا یو جنس دي،

نو دا به هم يو جنس د بل جنس سره نه يو ځای کول کيږي، مثلاً که د کال په شروع کي د يو چا سره د نصاب په اندازه نقد مال وي، بيا د کال په مينځ کي هغه ته څو اوښان حاصل سي، نو دا اوښان به د هغه نقد مال سره نه يو ځای کول کيږي، يا مثلاً که د چا سره د نصاب په اندازه غوياَن وي، بيا د کال په مينځ کي څو پسونه ورته حاصل سي، نو هغوی به د پسونو سره نه يو ځای کيږي (بلکي هر يوه ته به جلا حساب کول کيږي). (شفاء الارواح)



**يادونـه:** دا مسئله ضرور ياده ساتل پکار دي؛ ځکه چي بعضي تاجران د آساني لپاره د انګريزي (ميلادي) مياشتو په اعتبار سره د زکاة حساب لګوي (مثلاً له يوه مارچ څخه تر بل مارچ پوري) او د قمري (هجري) کال اعتبار نه کوي چي د هغه په وجه شرعي حساب نه پوره کيږي، نو ځکه پر زکاة ايښتونکو لازم دي چي د قمري (هجري) مياشتي په کوم تاريخ (ورځ) د نصاب خاوندان سي، په هماغه تاريخ دي هر کال خپل زکاة ته حساب لګوي. (انوار الايضاح بحوالهٔ تلخيص المسائل)

## مخکي (پيشګي) زکاة اداء کول

﴿۱۱۸۴﴾ وَلَوْعَجَّلَ ذُوْنِصَابٍ لِسِنِيْنَ او که مخکي (پيشکي) ورکړي د نصاب خاوند د څو کلونو لپاره (يعني د څو کالو زکاة پر يوه ځای مخکي اداء کړي) صَحَّ نو صحيح دي.

**لغات:** ﴿عجّل﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: تلوار او تېزي کول، مخکيتوب (وړاندېتوب) کول، او چي په صله کي يې ثمن او داسي نور ذکر سي، نو معنیٰ يې ده: مخکي ورکول (پېشګي ورکول).

﴿ذُوْ﴾ والا، خاوند، لکه ذُوْ مَالٍ (د مال خاوند، مال والا)، له اسماء ستّه مکبّره وو څخه دی.

**تشريح:** مخکي ذکر سوه چي د وجوبُ الاداء (يعني د زکاة اداء کولو دواجبېدو) لپاره حولانِ حول شرط دی يعني د زکاة اداء کول هغه وخت لازميږي کله چي پر نصاب کال تېر سي، اوس دلته دا فرمايي چي که څوک له وجوبُ الاداء څخه مخکي زکاة اداء کړي، نو زکاة اداء کيږي، مثلاً د يو چا سره څلوېښت زره افغانۍ وي او هغه د زرو افغانيو پر ځای دوه زره افغانۍ په زکاة کي ورکړي او نيت د را روان کال د زکاة هم وکړي، نو د را روان کال زکاة هم اداء کيږي (همدارنګه که د څو کالو زکاة پيشګي اداء کړي، نو هم صحيح کيږي، خو په را روانو کلونو کي چي څومره مال زيات سي، نو هغه زيات سوي مال ته به حساب لګول کيږي او د هغه زکاة به جلا ايستل کيږي)، او که څوک د نصاب له پوره کېدلو څخه مخکي زکاة اداء کړي، نو نه صحيح کيږي او د دې اداء سوي زکاة حيثيت د نفلي صدقې دی (يعني ګواکي هغه دا اداء سوی مال خيرات کړی). (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

## د زکاة نیت کول شرط دي او د زکاة د نیت کولو وخت

« ۱۱۸۵ » وَشَرْطُ صِحَّةِ أَدَائِهَا نِيَّةٌ مُقَارِنَةٌ لِأَدَائِهَا لِلْفَقِيرِ أَوْ وَكِيلِهِ او د زکاة اداء کولو د صحیح کېدو شرط داسي نیت دی کوم چي متصل (یو ځای سوی) وي فقیر یا خپل وکیل ته د زکاة ورکولو سره أَوْ لِعَزْلِ مَا وَجَبَ (یا دا نیت متصل وي) د واجب سوي مقدار د جلا کولو سره (یعني یا د واجب زکاة د مقدار جلا کولو په وخت کي به نیت ور سره متصل وي) وَلَوْ مُقَارَنَةً حُكْمِيَّةً که څه هم دا متصل والی (اتصال) حکمي وي (په حکمي توګه ور سره متصل وي) كَمَا لَوْ دَفَعَ بِلَا نِيَّةٍ ثُمَّ نَوَىٰ وَالْمَالُ قَائِمٌ بِيَدِ الْفَقِيرِ (د حکمي اتصال مثال) لکه که (د زکاة مال) بېله نیته ورکړي (فقیر ته) بیا نیت وکړي په داسي حال کي چي مال د فقیر په لاس (قبضه) کي موجود وي.

**لغات**: ﴿مقارنة﴾ د مفاعلې له بابه د اسمِ فاعل مؤنث صیغه ده: متصل. جوخت. یو د بل سره یو ځای. ﴿وکیل﴾ د بل له طرفه قائم مقام او ذمه وار. جمع: وُكَلَاء. ﴿عزل﴾ د ضرب د باب مصدر دی: جلا کول. برطرفه کول.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي د زکاة اداء کولو لپاره نیت کول شرط دي. کنې زکاة نه اداء کېږي، او س پوښتنه دا ده چي د نیت وخت یې څه دی؟، نو فرمایي چي نیت دي یا فقیر ته د زکاة ورکولو په وخت کي وکړی سي چي زه زکاة ورکوم، یا کله چي د زکاة ورکولو لپاره یو څوک خپل وکیل جوړ کړي او هغه ته مال په لاس ورکوي نو په دې وخت کي دي د زکاة نیت وکړي، بیا که وکیل فقیر ته د زکاة ورکولو په وخت کي نیت نه وکړي، نو هم زکاة اداء کېږي: ځکه اصلاً د زکاة ورکونکي نیت لره اعتبار دی، یا کله چي د زکاة مال له خپل مال څخه جلا کوي، په هغه وخت کي دي د زکاة نیت وکړي. یعني کله چي د ټوله مال حساب وکړي او د زکاة مقدار معلوم کړي، د هغه د جلا کولو په وخت کي دي دا نیت وکړي چي دا د زکاة مال دی، بیا که فقیر ته د زکاة ورکولو په وخت کي د زکاة نیت وکړي او که نه وکړي، په دواړو صورتونو کي زکاة اداء کېږي.

ولو مقارنة الخ: یعني د زکاة اداء کولو په وخت کي که د نیت اتصال حکمي وي (حکماً د اداء سره متصل وي). نو بیا هم زکاة اداء کېږي، مثلاً که څوک یو فقیر ته بغیر له نیت څخه مال ورکړي او بیا وروسته په زکاة کي د دې مال ورکولو نیت وکړي (چي دا ما په زکاة کي ورکړی). نو هغه مال که د فقیر په ملکیت کي موجود وو، نو نیت یې معتبر دی او زکاة اداء کېږي، دا د نیت د حکماً متصل کېدلو مثال

دی، او که د زکاة تر نیت کولو مخکې فقیر هغه مال خرج کړی وي. نو نیت یې نه صحیح کیږي او زکاة نه اداء کیږي. (شفاء الارواح)



## له مال ورکولو څخه بغیر د زکاة وکیل جوړول

**مسئله(۱)**: که څوک وبل چا ته د زکاة اداء کولو حکم وکړي او اوس مال نه ورکړي بلکې ورته ووایي چې زما له طرفه زکاة اداء کړه! نو د هغه په اداء کولو سره هم زکاة اداء کیږي.

**مسئله(۲)**: که د زکاة اداء کولو وکیل د مالک له اجازې څخه بغیر بل څوک وکیل جوړ کړي. نو هم جائز دي. (انوار الایضاح)

## د زکاة اخیستونکي خبرېدل شرط نه دي او د هبې یا قرض په وینا سره زکاة ورکول صحیح دي

| |
|---|
| ﴿۱۱۸۶﴾ وَلَا يُشْتَرَطُ عِلْمُ الْفَقِيْرِ أَنَّهَا زَكٰوةٌ او شرط نه دي د فقیر خبرېدل (په دې) چې دا (مال د) زکاة دی عَلَى الْأَصَحِّ د صحیح ترین قول مطابق حَتّٰى لَوْ أَعْطَاهُ شَيْئًا وَ سَمَّاهُ هِبَةً أَوْ قَرْضًا وَنَوٰى بِهِ الزَّكٰوةَ تر دې چې که فقیر ته یو شی ورکړي او هغه ته د هبې (تحفې) یا قرض نوم ورکړي او په هغه سره د زکاة نیت وکړي صَحَّتْ نو صحیح کیږي (زکاة اداء کیږي). |

**لغات**: ﴿هبة﴾ په تحفه او هدیه کې ورکول، یو چا ته داسې شی ورکول کوم چې د هغه لپاره نفع مند وي، برابره ده مال وي او که غیر مال وي. (انوار الایضاح)

**تشریح**: مسئله دا ده چې د زکاة اخیستونکي کس په دې خبرېدل شرط نه دي چې دا زکاة دی (یعنې د زکاة صحیح کېدلو لپاره دا شرط نه دي چې زکاة اخیستونکی مستحق [فقیر وغیره] به په دې خبرول کیږي چې دا د زکاة مال دی)، بلکې فقط د زکاة ورکونکي نیت کافي دی، لهذا که څوک یو مستحق کس ته څه مال یا یو شی په قرض یا هبه ورکړي او په خپل زړه کې د زکاة نیت وکړي، نو زکاة یې اداء کیږي، همدا اصح قول دی. (شفاء الارواح)

## که ټول نصاب صدقه کړي، نو ضمناً زکاة هم اداء کیږي

| |
|---|
| ﴿۱۱۸۷﴾ وَلَوْ تَصَدَّقَ بِجَمِيْعِ مَالِهِ وَلَمْ يَنْوِ الزَّكٰوةَ او که چیرې خپل ټول مال صدقه کړي او د زکاة نیت نه وکړي سَقَطَ عَنْهُ فَرْضُهَا نو د زکاة فرض له هغه څخه ساقطیږي. |

**تشریح**: صورت د مسئلې دا دی چې که څوک د نصاب مالک سي، بیا هغه ټول مال خیرات کړي خو د زکاة نیت نه پکښې وکړي. نو استحساناً د هغه له غاړې څخه زکاة ساقطیږي، یعنې د قیاس

تقاضا خو همدا ده چي له نيت څخه بغير زكاة اداء نه سي، خو څرنګه چي اوس د ده سره هيڅ ماليت باقي پاته نه سو، نو ځکه د ده له ذمې څخه د دې نصاب د زكاة فريضه ساقطه سوه. (انوار الايضاح)

## د قرض د زكاة بيان او تفصيل

﴿۱۱۸۸﴾ وَزَكوٰةُ الدَّيْنِ عَلىٰ أَقْسَامٍ او د قرض (پور) زكاة پر درو قسمه دی فَإِنَّهٗ قَوِيٌّ وَوَسَطٌ وَضَعِيفٌ ځکه (يو) قوي قرض دی او (دويم) متوسط قرض دی او (درېيم) ضعيف قرض دی فَالْقَوِيُّ وَهُوَ بَدَلُ الْقَرْضِ وَمَالُ التِّجَارَةِ إِذَا قَبَضَهٗ وَكَانَ عَلىٰ مُقِرٍّ نو قوي هغه قرض دی کوم چي د قرض يا د مال تجارت بدل (په بدله کي) وي کله چي پر دې قرض قبضه وکړي (ترلاسه يې کړي) او دا قرض پر اقرار کونکي کس وي (يعني مقروض د ده نه اقرار کونکی وي) وَلَوْ مُفَلَّسًا که څه هم هغه زيات غريب وي أَوْ عَلىٰ جَاحِدٍ عَلَيْهِ بَيِّنَةٌ يا دا قرض پر انکار کونکي کس وي چي پر هغه (د قرض ورکونکي سره) ګواهان موجود وي زَكَاةٌ لِمَا مَضٰى نو د دې زكاة به ورکوي د تېر سوي وخت (يعني د داسي قرض د تېر وخت زكاة به هم ورکوي) وَيَتَرَاخٰى وُجُوْبُ الْأَدَاءِ إِلٰى أَنْ يَّقْبِضَ أَرْبَعِيْنَ دِرْهَمًا او (د زكاة) اداء کولو وجوب ځنډيږي (مؤخر کيږي) تر دې چي څلوېښت درهمه ترلاسه کړي فَفِيْهَا دِرْهَمٌ نو په څلوېښتو درهمو کي يو درهم دی لِأَنَّ مَا دُوْنَ الْخُمُسِ مِنَ النِّصَابِ عَفْوٌ لَا زَكوٰةَ فِيْهِ ځکه د نصاب تر پنځمي حصې کمه حصه (يعني تر څلوېښتو کمه) معاف ده وَكَذَا فِيْمَا زَادَ بِحِسَابِهٖ او همدارنګه (تر څلوېښتو درهمو) په زيات (مال) کي د هماغه په حساب سره دي (مثلاً که اتيا درهمه وي، نو په هغه کي دوه درهمه دي).

**لغات:** ﴿قرض﴾ پور، جمع: قُرُوْض، ﴿مفلّس﴾ د تفعيل له بابه د اسم مفعول صيغه ده: هغه کس چي په هغه کي د قرض اداء کولو طاقت نه وي، ډېر غريب، اصلاً هغه کس ته وايي چي قاضي هغه مفلس ګرځولی وي (يعني دا فيصله او اعلان يې کړی وي چي دا کس مفلس او ډېوالي دی، لهذا د قرض مالک دي اوس کار نه په لري)، ﴿جاحد﴾ د فتح له بابه فاعل دی: انکار کونکی، جَحَدَ يَجْحَدُ جَحْدًا و جُحُوْدًا: انکار کول (د علم بلاوجود انکار کول)، ﴿خُمُس﴾ پنځمه حصه، جمع: أخماس، د سپينو زرو

نصاب دوه سوه درهمه دی، نو پنځمه حصه یې څلوېښت درهمه کیږي (ځکه دوه سوه چې پنځه حصې کړل سي، نو هره حصه یې څلوېښت کیږي).

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چې که دیو سړي پر بل چا قرض (پور) باندي وي، نو په هغه قرض کي زکاة کیږي، که نه؟، د دې جواب دا دی چې قرض پر درې قسمه دی: ① قوي. ② متوسط. ③ضعیف. په دې عبارت کي د قوي قرض د زکاة بیان دی، تفصیل یې دا دی چې که یو سړي وبل چا ته قرض ورکړی وي او د قرض د ترلاسه کېدلو اُمید یې وي، مثلاً قرض اخیستونکی (پور وړی) د قرض اقرار کوي خو فی الحاله د هغه سره پیسې نه وي، یا قرض اخیستونکی له قرض څخه انکار کوي او د مالک سره شرعي ثبوت وي (دا د قوي قرض څو صورتونه دي)، نو د داسي قرض زکاة د قرض له اخیستلو (ترلاسه کولو) څخه مخکي اداء کول لازم نه دي، بلکي هر وخت چي له مقروض (پور وړي) څخه قرض ترلاسه کړي، نو بیا یې زکاة لازمیږي او څومره چي یې ځني ترلاسه کړی وي، صرف د هغه حصې زکاة لازمیږي او د تېرو کلونو زکاة یې هم لازمیږي، همدا د تجارتي قرض حکم دی. یعني که په قرض یې سامان خرڅ کړی وي او د هغه د پیسو ترلاسه کېدلو اُمید وي، نو د داسي قرض له اخیستلو (ترلاسه کولو) څخه وروسته د دې قرض د تېرو کلونو زکاة هم لازمیږي لکه څرنګه چي نن سبا عموماً د تجارت او کاروبار همدغه طریقه رواج ده. (لهذا که څوک خپل قرض مثلاً درې کاله وروسته ترلاسه کړي، یا کوم مال چي یې خرڅ کړی وي د هغه قیمت [یعني تجارتي قرض] درې کاله وروسته ترلاسه کړي، نو د تېرو درېو کلونو زکاة اداء کول واجبیږي).

تر دې وروسته مصنف رَحِمَهُ الله دا مسئله په یو مثال سره واضحه کړې ده، مثلاً که څوک د قرض څلوېښت درهمه ترلاسه کړي، نو د هغه څلوېښتمه حصه یعني یو درهم دې په زکاة کي ورکړي، بیا چي کله نور څلوېښت درهمه ترلاسه کړي، نو یو درهم دې بیا په زکاة کي ورکړي، بیا وروسته په هرو څلوېښتو درهمو کي یو درهم واجبیږي، لهذا په ۱۲۰ شلو کي درې درهمه. په ۱۶۰ کي څلور درهمه، په ۲۰۰ درهمو کي پنځه درهمه لازمیږي او په دوه سوه څلوېښت ۲۴۰ درهمو کي شپږ درهمه لازمیږي وَهَلُمَّ جَرًّا، او پاته سو تر څلوېښتو په کمه کي زکاة نسته، ځکه د نصاب تر پنځمي حصې کم (یعني تر څلوېښتو کم) معاف دی، لهذا که تر څلوېښت درهمه کم ترلاسه کړي. نو په هغه کي زکاة نه واجبیږي.

او د تېرو کلونو د زکاة اداء کولو طریقه علامه شامي رَحِمَهُ الله په یو مثال سره واضحه کړې ده او هغه دا چي که یو سړی مثلاً خالد وبل چا مثلاً زید ته درې سوه درهمه په قرض ورکړي او بیا پر هغوی درې کاله تېر سي او درې کاله وروسته د قرض مالک (خالد) دوه سوه درهمه ۲۰۰ ځني ترلاسه کړي، نو اوس د اول کال زکاة پنځه درهمه لازمیږي (ځکه په دوه سوه درهمو کي پنځه درهمه لازمیږي) او د دویم او درېیم کال زکاة څلور، څلور درهمه لازمیږي (ځکه کله چي له ۲۰۰ څخه پنځه درهمه

ویستل سوه. ... ۲۰۰ څخه څه کم سوه چې په هغه کې څلور درهمه زکاة دی. ځکه له ۱۶۰ څخه بیا تر ۱۹۹ پوري څلور درهمه پکښې لازمیږي او په ۲۰۰ کې بیا تر ۲۳۹ پوري پنځمه درهمه...). (انوار الایضاح. شفاء الارواح)

﴿۱۱۸۹﴾ وَالْوَسَطُ وَهُوَبَدَلُ مَالَيْسَ لِلتِّجَارَةِ او متوسط قرض او دا د هغه شي بدل دی کوم چې د تجارت لپاره نه وي (یعني کوم مال چې د داسي شي په بدله کې وي چې هغه شی د تجارت او کاروبار لپاره نه وی. نو داسي مال ته متوسط قرض وایي) كَثَمَنِ ثِيَابِ الْبِذْلَةِ وَعَبْدِ الْخِدْمَةِ وَدَارِ السُّكْنٰى لکه قیمت د استعمالي (کار والا) جامو او (قیمت) د خدمت والا غلام او (قیمت) د استوګنې د کور لَا تَجِبُ الزَّكٰوةُ فِيْهِ مَالَمْ يَقْبِضْ نِصَابًا په دې قرض کې زکاة نه واجبیږي تر څو چې یو نصاب (د نصاب په اندازه) ترلاسه نه کړي وَيُعْتَبَرُ لِمَا مَضٰى مِنَ الْحَوْلِ مِنْ وَقْتِ لُزُوْمِهٖ لِذِمَّةِ الْمُشْتَرِيْ او اعتبار به کول کیږي د کال د تیري سوي حصې د قرض د لازمیدلو له وخت څخه د مشتري پر ذمه (یعني له کوم وخته څخه چې مشتري دغه استعمالي جامې یا د خدمت غلام او داسي نور رانیولي دي او د ده پر ذمه د دوی قیمت لازم سوی دی. له هغه وخت څخه به کال شمېرل کیږي. یا په بله وینا دا چې له هغه وخت څخه به تېر سوی کال یا د کال تېره سوې حصه په حساب کې راوستل کیږي یعني په هغه کې هم زکاة واجبیږي) فِيْ صَحِيْحِ الرِّوَايَةِ په صحیح روایت کې.

**لغات:** ﴿ثیاب البذلة﴾ د کار کالي کوم چې سړی د کار او خدمت په وخت کې اغوندي. ﴿السکنٰی﴾ استوګنه، اوسېدنه.

**تشریح:** په دې عبارت کې د متوسط قرض د زکاة بیان دی او دا هغه قرض دی چې د داسي مال په عوض کې واجب سوی وي کوم چې د تجارت لپاره نه وي او نه یې نغد مال (روپۍ) په قرض ورکړي وي. یا په بله وینا داسي شی یې خرڅ کړی وي کوم چې د تجارت لپاره نه وي مثلاً زید د استعمال (اغوستلو) کالي یا د خدمت غلام یا د اوسېدلو کور پر خالد خرڅ کړی وي او د هغه قیمت پر خالد پاته سي، دا قرض وسط دی. نو که هغه پاته قیمت د نصاب (د سپینو زرو د نصاب) په اندازه وي یا تر هغه زیات وي او مثلاً یو کال وروسته یې ځني واخلي (ترلاسه یې کړي)، نو تر اخیستلو وروسته به د تېر کال زکاة اداء کول کیږي، او د کال شروع به د خرڅولو له وخت څخه لګول کیږي یعني کله چې یې دا شیان پر خالد (مشتري) خرڅ کړي وه او د خالد پر ذمه قیمت لازم سوی وو، له هغه وخت څخه به حساب لګول کیږي. مثلاً کله چې خالد پر زید شیان خرڅ کړه، نو له هغه وخت

شخصه یو نیم کال وروسته یې له زید څخه قیمت (پیسې) ترلاسه کړې. نو د قیمت ترلاسه کولو وروسته به خالد د تېر کال زکاة اداء کوي او بیا به شپږ میاشتې وروسته د راروان کال زکاة ادا، کوي.
همدارنګه که څو کاله وروسته یې څني واخلي، نو تر اخیستلو وروسته د تېرو ټولو کلونو زکاة پر هغه لازمیږي، او که ټوله قرض په یوه وار نه څني واخلي، بلکې په لږ، لږ سره یې څني واخلي، نو تر څو چې د نصاب په اندازه ترلاسه نه کړي، تر هغه وخته زکاة نه پکښې لازمیږي، لیکن دا حکم هلته دی کله چې د قرض له مال څخه بغیر د ده سره بل مال نه وي، لهذا که د قرض له مال څخه بغیر بل مال د نصاب په اندازه ور سره موجود وي، نو اوس په قرض کې اخیستل سوی (ترلاسه سوی) مال به د هغه سره یو ځای کول کیږي او کله چې د هغه اول مال نصاب پوره سي، نو د ټولو زکاة به یو ځای ورکول کیږي (لکه په مالِ مستفاد کې چې د دې وضاحت تېر سو).

فی صحیح الروایة: د متوسط قرض (دینِ وسط) په باره کې دوه روایتونه دي: ① یو دا چې په متوسط قرض کې هغه وخت زکاة لازمیږي کله چې یې د نصاب په اندازه ترلاسه کړي او مخکې یو کال بلندي تېر سوی وي یعني تر اخیستلو (ترلاسه کولو) وروسته جلا کال باندي تېرېدل شرط نه دي لکه په تشریح کې چې د دې وضاحت وسو (چې د مثال په توګه موږ دیو نیم کال مثال پېش کړی). همدا صحیح رواویت دی، ② دویم روایت دا دی چې کله دا قرض (دینِ وسط) د نصاب په اندازه ترلاسه کړي او پر هغه یو کال بل تېر سي، نو بیا زکاة لازمیږي، یعني تر اخیستلو وروسته پر هغه له نوي سره جلا کال تېرېدل ضروري دي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

﴿۱۱۹۰﴾ وَالضَّعِيْفُ وَهُوَبَدَلُ مَالَيْسَ بِمَالٍ او ضعیف قرض او هغه د داسې شي بدل دی کوم چې مال نه وي (یعني چې د داسې شي په بدله کې وي چې هغه شی مال نه وي) كَالْمَهْرِ لکه مهر (ځکه مهر د مال په بدله کې نه دی. بلکې د ښځې ادبضع اپه بدله کې دی) وَالْوَصِيَّةِ وَبَدَلِ الْخُلْعِ او (لکه) وصیت او بدلِ خلع (دا هم د مال په بدله کې نه دي. د ټولو وضاحت به په تشریح کې وسي) وَالصُّلْحِ عَنْ دَمِ الْعَمَدِ وَالدِّيَةِ او (لکه) د قتلِ عمد په بدله کې د صلح مال او دیت وَبَدَلِ الْكِتَابَةِ وَالسِّعَايَةِ او (لکه) بدلِ کتابت او بدلِ سعایه لَاتَجِبُ فِيْهِ الزَّكوٰةُ مَالَمْ يَقْبِضْ نِصَابًا وَيَحُوْلُ عَلَيْهِ الْحَوْلُ بَعْدَ الْقَبْضِ په دې قرض کې زکاة نه واجبیږي تر څو چې یو نصاب (د نصاب په اندازه) ترلاسه نه کړي او د ترلاسه کولو څخه وروسته پر هغه یو کال تېر سي.

[۱۱۹۱] وَهٰذَا عِنْدَ الْإِمَامِ او دا (پورتنی تفصیل) دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَأَوْجَبَا عَنِ الْمَقْبُوْضِ مِنَ الدُّيُوْنِ الثَّلَاثَةِ بِحِسَابِهٖ مُطْلَقًا او صاحبینو رَحِمَهُمَا الله واجب کړی دی (زكاة) د دريو سره قرضونو د ترلاسه کړل سوي (اخيستل سوي) حصې څخه د هغه په حساب سره مطلقاً (يعني صاحبينو په دريو سره قرضونو اقوي، متوسط او ضعيف ا کي مطلقاً د هغه په حساب سره زكاة واجب کړی دی، يعني برابره ده قرض قوي وي او که اوسط يا ضعيف وي، څومره، څومره چي ترلاسه کول کيږي ااخيستل کيږي ا د هغه زكاة واجبيږي. برابره ده له څلوېښتو درهمو څخه کم ترلاسه کړي يا زيات...).

**لغات**: ﴿مهر﴾ ولور، هغه روپۍ وغيره کوم چي د مسلمانانو د نکاح په وخت کي د خاوند پر ذمه د ښځي لپاره مقررول کيږي، جمع: مُهُوْرٌ و مُهُوْرَةٌ. ﴿دية﴾ خون بها، هغه مالي بدل چي قاتل يې د مقتول وارثانو ته ورکوي. که يو سړی په خطاء سره يو څوک قتل کړي چي دې ته "قتلِ خطاء" وايي، نو په دې قتل کي د مقتول ديت سل اوښان دي، هغه پر ټوله عاقله وو لازميږي او پر ټولو به تقسيمول کيږي او په درې کاله کي دننه به د مقتول وارثانو ته ورکول کيږي. ﴿سعاية﴾ د فتح د باب مصدر دی: سعی او کوشش کول، خواري کښل، يعني کسب او مزدوري کول او د ځان آزادولو لپاره مال ګټل (يا په بله وينا دومره مال ګټل چي د غلام پاته حصه په آزاده کړل سي).

**تشريح**: په دې عبارت کي د قرضِ ضعيف د زكاة بيان دی، قرضِ ضعيف هغه قرض دی کوم چي د يو مال په بدله کي نه وي واجب سوی، يعني نه يې نغد مال (روپۍ) چا ته په قرض ورکړي وي او نه يې يو شی (په قرض) خرڅ کړی وي، بلکي په يو بل سبب سره واجب سوی وي، مصنف رَحِمَهُ الله د دې قرض څو مثالونه بيان کړي دي، مثلاً: ① د ښځي مهر د خاوند پر ذمه پاته وي او پر هغه يو کال تېر سوی وي، (مهر د ښځي د بُضع اعضو خاص ا په بدله کي دی، د مال په بدله کي نه دی). ② يا يو چا وصيت کړی وي چي تاسي زما له مال څخه مثلاً شل زره روپۍ خالد ته ورکړئ!، خو وارثانو له ډېره وخته (مثلاً له يوه کال) څخه هغه د وصيت مال (شل زره) خالد ته نه وي ورکړي، (وصيت هم د مال په بدله کي نه دی، بلکي د مال وعده ده). ③ يا د خاوند بدلِ خلع د ښځي پر ذمه پاته وي، مثلاً ښځي پر دې شرط له خاوند څخه طلاق اخيستی وي چي هغه به و خاوند ته شل زره روپۍ ورکوي، لېکن ښځي له ډېره وخته څخه دا بدلِ خلع (شل زره) خاوند ته نه وي ورکړي، (بدلِ خلع هم د ښځي د بضع اعضو خاص ا په بدله کي دی، نه د مال). ④ يا هغه مال کوم چي د قتلِ عمد په صلح کي حاصل سوی وي، هغه تر اوسه له قاتل څخه نه وي اخيستل سوی (قبضه کړی سوی)، چي د هغه صورت دا دی چي زيد مثلاً حامد قتل کړی، بيا زيد د حامد د اولياؤ (میراثو) سره په شل زره باندي صلح وکړه، لېکن دا بدلِ صلح (شل زره) له ډېره وخته څخه د زيد (قاتل) سره وي او د حامد (مقتول) وليانو ته يې نه وي ورکړي، (بدلِ صلح د ځان انفس ا په بدله

کي دی، نه د مال)، ⑤ يا په ديت کي حاصل سوی مال تر اوسه نه وي اخيستل سوی، مثلاً زيد په خطاء سره حامد قتل کړی وي او قاتل (زيد) له ډېره وخته څخه ديت نه وي ورکړی، (ديت هم د ځان انفس ا په بدله کي دی، نه د مال)، ⑥ يا بدلِ کتابت د غلام سره پاته وي، مثلاً مالک (بادار) غلام ته ويلي وي چي کله ته شل زره وګټې او ما ته يې راکړې، نو ته آزاد يې!، اوس دا بدلِ کتابت (شل زره) تر ډېره وخته پوري غلام نه وي ورکړي، (بدل کتابت هم د غلام د ځان انفس ا په بدله کي دی، نه د مال)، ⑦ يا د سعايه (سعی کولو) بدلَ د غلام سره پاته وي، د دې صورت دا دی چي که يو غلام د دوو کسانو تر مينځ مشترک وي او يو شريک خپله حصه آزاده کړي، نو غلام به د دې بل شريک لپاره کوشش (سعی) او ګټه کوي چي کله د هغه د حصې قيمت ورکړي نو بيا پوره آزاديږي (د غه کوشش او ګټه کولو ته سعايه وايي او څومره مال او روپۍ چي وګټي، هغه ته بدلِ سعايه وايي)، نو اوس که دا د کوشش (سعايه) بدل تر ډېره وخته پوري (مثلاً يو کال) د غلام سره پاته وي، تر دې وروسته مالک (دويم شريک) هغه څني ترلاسه کړي (قبضه باندي وکړي)، (بدلِ سعايه هم د غلام د نفس په بدله کي دی، نه د مال)، دا ټوله ضعيف قرضونه دي.

نو په دغه ټولو صورتونو کي د امام صاحب رَحِمَهُ‌الله په نېز تر هغه وخته پوري زکاة نه لازميږي، تر څو چي هغه له دې مالونو څخه د نصاب پر اندازه قبضه نه کړي (ترلاسه نه کړي) او بيا له قبضې (ترلاسه کولو) څخه وروسته يو کال باندي تېر نه سي، لهذا کله چي د نصاب په اندازه د مال له قبضه کولو څخه وروسته يو کال باندي تېر سي، نو بيا زکاة پکښي واجبيږي. دا حکم هم هغه وخت دی کله چي د هغه سره له قرض څخه بغير بل مال نه وي، ليکن که له مخکي څخه د نصاب په اندازه نور مال موجود وي، نو دا قبضه کړل سوی (ترلاسه کړی) مال چي هر څومره وي، هغه به د اول مال سره يو ځای کول کيږي او کله چي د اول مال کال پوره سي، نو د دواړو زکاة به اداء کول کيږي. او د صاحبينو رَحِمَهُمَا‌الله په نېز ټوله قرضونه سره برابر دي، چي د دوی د زکاة اداء کول تر قبضې (ترلاسه کولو) وروسته لازميږي، يعني څومره قدر چي قبضه کوي (ترلاسه کوي)، برابره ده لږ وي او که ډېر وي، د هغه زکاة به اداء کوي، مثلاً کله چي شل درهمه ترلاسه کړي، نو نيم درهم زکاة به اداء کوي، خو ديت، بدلِ کتابت او بدلِ سعايه دا درې سره د صاحبينو رَحِمَهُمَا‌الله په نېز هم له دې حکم څخه مستثنیٰ دي يعني د صاحبينو رَحِمَهُمَا‌الله په نېز هم په دغه دريو سره مالونو کي هغه وخت زکاة واجبيږي، کله چي دوی د نصاب په اندازه ترلاسه کړل سي (قبضه باندي وسي) او بيا يو کال باندي تېر سي. (شفاء الارواح)

## د کوم مال د ترلاسه کېدلو چې هيڅ اُميد نه وي، په هغه کې زكاة نسته

﴿۱۱۹۲﴾ وَإِذَا قَبَضَ مَالَ الضِّمَارِ او کله چې مال ضمار (غائب سوی مال) ترلاسه کړي لَاتَجِبُ زَكوٰةُ السِّنِيْنَ الْمَاضِيَةِ نو د تېرو کلونو زکاة نه (پکښې) واجبېږي وَ هُوَكَابِقٍ وَ مَفْقُوْدٍ او هغه (مال ضمار) لکه تېښتېدلی غلام او (لکه) ورک سوی مال وَ مَغْصُوْبٍ لَيْسَ عَلَيْهِ بَيِّنَةٌ او (لکه) غصب کړی سوی مال چې پر هغه هيڅ ګواه (شاهد) نه وي وَ مَالٍ سَاقِطٍ فِي الْبَحْرِ او (لکه) په دریاب کې لوېدلی مال وَ مَدْفُوْنٍ فِيْ مَفَازَةٍ أَوْ دَارٍ عَظِيْمَةٍ وَ قَدْ نَسِيَ مَكَانَهُ او (لکه) په دښت یا لوی سرای کې ښخ کړم سوی مال چې د هغه ځای ځني هېر سوی وي وَ مَأْخُوْذٍ مُصَادَرَةً او (لکه) د تاوان (او سزا) په توګه اخيستل سوی مال (یا په ظلم او غلبه سره اخيستل سوی مال) وَ مُوْدَعٍ عِنْدَ مَنْ لَا يَعْرِفُهُ او (لکه) هغه مال کوم چې په امانت اېښوول سوی وي داسې چا ته چې دئ يې نه پېژني وَ دَيْنٍ لَا بَيِّنَةَ عَلَيْهِ او (لکه) هغه قرض چې پر هغه هيڅ ګواه نه وي.

**لغات:** ﴿مال الضمار﴾ د ضمار لغوي معنیٰ ده: غائبول، پټول او په اصطلاح کې "مال ضمار" دانسان هغه مال ته وايي کوم چې غائب وي او د هغه د پيدا کېدلو او ترلاسه کېدلو هيڅ اُميد نه وي، یا په بله وينا چې د هغه ترلاسه کول ناممکن وي، او د کوم مال د پيدا کېدلو اُميد چې وي، نو هغه ته مالِ ضمار نه ويل کيږي.
﴿آبق﴾ د واحد مذكّر اسم فاعل صيغه ده، له سمع، نصر او ضرب ټولو بابونو څخه راځي: تېښتېدلی غلام. تېښتېدونکی غلام، کوم چې د خپل شرارت په وجه يعني بغير له څه ظلم و زياتوب څخه تېښتي، او که د مالک (بادار) د ظلم و زياتوب په وجه تېښتي، نو هغه ته هَارِب ويل کيږي. ﴿مفقود﴾ د ضرب له بابه د اسم مفعول صيغه ده: ورک سوی (نادرکه)، غائب سوی. ﴿مغصوب﴾ دا هم د ضرب له بابه اسم مفعول دی: په زوره (جبراً) اخيستل سوی شی وغيره. ﴿مفازة﴾ دښت، بيابان، جمع: مَفَاوِز. ﴿مُصادرة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: ضبطول، د تاوان او سزا په توګه ځني اخيستل، په ټينګار سره مطالبه کول. ﴿مودَع﴾ (بفتح الدال): هغه کس چې امانت ورته اېښوول سوی وي. یا په بله وينا چې يو شی او مال امانتاً ورکول سوی وي.
**تشريح:** د مال ضمار تعريف په لغاتو کې ذکر سو چې د انسان هغه مال چې د هغه د پيدا کېدلو او ترلاسه کېدلو اُميد نه وي.

مسئله دا ده چي په مالِ ضمار کي زکاة نه واجبيږي، مصنف رَحِمَهُ الله د مالِ ضمار څو صورتونه بيان کړي دي.

کآبق: مثلاً د تجارت غلام دی او هغه وتښتېدی، بيا له کال تېرېدو څخه وروسته پيدا سو. يا څو کاله وروسته پيدا سو، نو په دې غلام کي د تېر کال يا د تېرو کلونو زکاة نه واجبيږي.

ومفقود: يعني که د يو چا مال ورک (نادرکه) سي، نو هغه هم مالِ ضمار دی، لهذا که څو کاله وروسته پيدا سي، نو په هغه کي هم د تېرو کلونو زکاة نه واجبيږي.

ومغصوب: يعني کوم مال چي غصب کړل سوی وي او د مالک سره د غاصب په خلاف گواهان نه وي، نو هغه هم مالِ ضمار دی، بيا که څو کاله وروسته مالک هغه مال له غاصب څخه واپس واخلي، نو په هغه کي هم د تېرو کلونو زکاة نه واجبيږي.

ومال ساقط: کوم مال چي په سمندر او درياب کي لوېدلی وي، هغه هم مالِ ضمار دی، لهذا که هغه څو کاله وروسته پيدا سي او را وېستل سي، نو د تېرو کلونو زکاة نه پکښي واجبيږي.

ومدفون: هغه مال کوم چي په دښت او بيابان کي يا په يو لوی سرای کي ښخ کړل سوی وي او ځای يې هېر وي، نو هغه هم مالِ ضمار دی، لهذا که هغه څو کاله وروسته ور په ياد سي، نو د تېرو کلونو زکاة پکښي واجب نه دی.

ومأخوذ: هغه مال کوم چي باچا يا يو بل چا د تاوان او سزا په توگه اخيستی وي، يا يو ظالم په ظلم (په زوره) اخيستی وي، هغه هم مالِ ضمار دی او زکاة پکښي واجب نه دی.

ومودع: هغه مال کوم چي نامعلومه (پردي) کس ته امانتاً اېښوول سوي وي، بيا يې هغه هېر سي، نو دا هم مالِ ضمار دی او زکاة پکښي واجب نه دی.

ودين: همدارنگه هغه قرض چي مقروض (پور وړی) انکار څني کړی وي او د قرض د مالک سره گواهان نه وي، نو دا هم مالِ ضمار دی، لهذا که دا مال څو کاله وروسته د قرض مالک ته را پس ور کول سي، نو په هغه کي د تيرو کلونو زکاة نسته. (شفاء الارواح)

## د قرض په معاف کولو سره زکاة نه اداء کيږي

﴿ ۱۱۹۳﴾ وَلَايُجْزِئُ عَنِ الزَّكوٰةِ دَيْنٌ أُبْرِئَ عَنْهُ فَقِيْرٌ بِنِيَّتِهَا او نه کافي کيږي د زکاة له طرفه هغه قرض چي فقير (مقروض) د زکاة په نيت له هغه څخه بری کړی سي (يعني چي د زکاة په نيت فقير مقروض ته ور وبخښل سي).

**لغات**: ﴿دَيْن﴾ قرض کوم چي د متعيّن مودت (معلوم وخت) لپاره ور کول سوی وي، او د کوم قرض (پور) لپاره چي متعيّن مودت نه وي، هغه ته په عربي کي قرض ويل کيږي، نه دَين. ﴿اُبرِئَ﴾ د افعال له بابه د واحد مذکر غائب ماضي مجهولي صيغه ده، مصدر: إبراءٌ: بري کول، حق ور معاف کول (ور بخښل).

**تشريح**: صورت د مسئلې دا دی چي که يو څوک فقير ته مثلاً سل روپۍ په قرض ور کړي، بيا دا فقير له قرض اداء کولو څخه عاجزه سي، نو هغه کس خپل قرض د زکاة په نيت سره ودې فقير ته ور معاف کړي، نو زکاة نه اداء کيږي، ددې صحيح طريقه دا ده چي فقير ته د زکاة په نيت سره سل روپۍ ور کړي او ور ته ووايي چي اوس زما قرض را اداء کړه!.

## د سرو زرو او سپينو زرو په زکاة کي بل شی ور کول

﴿ ۱۱۹۴﴾ وَصَحَّ دَفْعُ عَرَضٍ وَمَكِيْلٍ وَمَوْزُوْنٍ عَنْ زَكوٰةِ النَّقْدَيْنِ بِالْقِيْمَةِ او صحيح دي ور کول د يو سامان يا (ور کول) د يو پېمانه کېدونکي يا تول کېدونکي شي د سرو زرو او سپينو زرو د زکاة له طرفه د قيمت په حساب سره.

﴿ ۱۱۹۵﴾ وَإِنْ أَدّٰى مِنْ عَيْنِ النَّقْدَيْنِ او که (زکاة) اداء کړي له خاص سرو زرو او سپينو زرو څخه (يعني د سرو زرو په زکاة کي سره زر ور کوي او د سپينو زرو په زکاة کي سپين زر ور کوي) فَالْمُعْتَبَرُ وَزْنُهُمَا أَدَاءً نو معتبر په دې دواړو کي وزن (تول) دی په اداء کېدلو کي (يعني معتبر دا ده چي د وزن په اعتبار سره يې زکاة اداء کړل سي) كَمَا اعْتُبِرَ وُجُوْبًا لکه څرنگه چي (د زکاة) په واجبېدلو کي د وزن اعتبار سوی دی.

**لغات**: ﴿عرض﴾ سامان، جمع: عُرُوْض، ﴿مکيل﴾ کيلي شی، پېمانه کېدونکی شی (هغه شی چي په معلوم لوښي (پېمانه) سره خرڅول کيږي)، ﴿موزون﴾ وزن کېدونکی شی (تلل کېدونکی شی، کوم چي په وزن او تول سره خرڅول کيږي)، ﴿نقدين﴾ دوه نغد مالونه، مراد څني سره زر او سپين زر دي (كما ذكرنا).

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چې که مثلاً د زید سره سپین زر او سره زر وي چې په هغه کې زکاة واجب وي او زید وغواړي چې زکاة د بل جنس په شي سره اداء کړي، مثلاً د موجوده سرو زرو یا سپینو زرو زکاة د قیمت په حساب سره پنځه سوه روپۍ کیږي او زید وغواړي چې د دغومره قیمت لوښي یا کالي یا مکیلي یا یو موزني شی (مثلا غنم، وریجې یا اوسپنه او داسې نور) په بازار کې رانیسي او په زکاة کې یې ورکړي، نو دا صحیح او جائز دي.

**وإن أدّی من عین إلخ:** د دې حاصل دا دی چې که د سرو زرو په زکاة کې همدا غه سره زر ورکول غواړي، یا د سپینو زرو په زکاة کې سپین زر ورکول غواړي، نو ځرنګه چې د سرو زرو او سپینو زرو د زکاة په واجبېدلو کې د وزن اعتبار سوی دی (چې مثلاً شل مثقاله، یا اووه نیمې تولې سره زر به وي)، نو همداسې د زکاة په اداء کولو کې به د وزن اعتبار کول کیږي، لهذا که سره زر وي، نو څومره سره زر چې ور سره وي، د هغوی څلوېښتمه حصه به په زکاة کې ورکوي، او که سپین زر وي، نو د هغوی څلوېښتمه حصه به په زکاة کې ورکوي (مثلا که شل مثقاله سره زر ور سره وي اکوم چې د سرو زرو نصاب هم دی انو د هغه څلوېښتمه حصه نیم مثقال دی، چې هغه به په زکاة کې ورکوي...).



**مسئله:** په سرو زرو او سپینو زرو کې زکاة اصلاً د وزن په اعتبار سره واجبیږي مثلاً په ۴۰ ګرامه سرو زرو کې یو ګرام سره زر واجبیږي، اوس که څوک د روپیو په ذریعه هغه اداء کوي (لکه عموماً چې همداسې کیږي)، نو څومره وزن سره زر چې په زکاة کې واجب سوي وي، د هغه بازاري نرخ به په زکاة کې ایستل کیږي.

## که د چا سره تجارتي سامان، سره زره یا سپین زر وي او دواړه له نصاب څخه کم وي؟

| |
|---|
| ﴿۱۱۹۶﴾ وَتُضَمُّ قِيمَةُ الْعُرُوضِ إِلَى الثَّمَنَيْنِ او یو ځای کول کیږي به د سامانونو قیمت د سرو زرو او سپینو زرو سره وَالذَّهَبِ إِلَى الْفِضَّةِ قِيمَةً او (یو ځای کول کیږي به قیمت) د سرو زرو د سپینو زرو سره د قیمت په اعتبار سره. |

**تشریح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بیان سوي دي: ① که د یو چا سره تجارتي سامان وي کوم چې د نصاب په اندازه نه وي (یعني د سپینو زرو نصاب ته نه رسیږي)، خو څه سره زر یا سپین زر هم ور سره وي او دومره وي چې که هغه او د سامان قیمت سره یو ځای کړل سي، نصاب ته رسیږي، نو زکاة پکښې واجبیږي، مثلاً د تجارتي سامان قیمت یې لس زره دی او د ده سره یوه توله سپین زره هم سته، نو ځرنګه چې د تولو قیمت د زکاة نصاب (یعني د سپینو زرو نصاب) ته رسیږي، نو ځکه زکاة پکښې واجبیږي. (یا په بله وینا چې مثلاً د یو چا سره دوویشت [۲۲] تولې سپین زر دي، او بل تجارتي سامان هم ور سره دی چې د هغه قیمت د سپینو زرو په حساب سره دېرش نیمې [۳۰.۵] تولې کیږي، نو ځرنګه چې دا دواړه دو

پنځوس نیمي (۵۲.۵) تولې سپین زر کیږي، نو ځکه زکاة پکښې واجبیږي. ځکه د سپینو زرو نصاب دوه پنځوس نیمي تولې دی).

والذهب إلى الفضة: یعني که د چا سره نه د سپینو زرو نصاب پوره کیږي او نه د سرو زرو نصاب ورسره پوره کیږي، بلکي دا هریو تر نصاب کم ور سره وي، خو دواړه چي سره یو ځای کړل سي نو یو نصاب کیږي یا تر نصاب زیاتیږي، نو زکاة پکښې واجبیږي، مثلاً نن سبا د سرو زرو او سپینو زرو په قیمت کي ډېر فرق دی، نو که د یو چا سره مثلاً یو نیمه توله سره زر او پنځه تولې سپین زر وي او د دواړو قیمت چي اندازه کړل سي، نو د سپینو زرو په اعتبار سره نصاب ته رسیږي (یعني د پنځوس نیمي تولې کیږي)، نو زکاة پکښې واجبیږي. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

## که د کال په مینځ کي نصاب کم سي؟

﴿۱۱۹۷﴾ وَنُقْصَانُ النِّصَابِ فِي الْحَوْلِ لَا يَضُرُّ او د نصاب کمېدل په (مینځ د) کال کي ضرر نه کوي إِنْ كَمُلَ فِيْ طَرَفَيْهِ (په دې شرط) که د کال په دواړو طرفونو (اول او آخر) کي نصاب کامل وي.

**لغات**: ﴿حَوْل﴾ کال، جمع: أَحْوَال. ﴿كَمُلَ﴾ د كَرُمَ له بابه ماضي معلومه ده: کامل کېدل. پوره کېدل.

**تشریح**: مسئله دا ده چي که د کال په شروع او د کال په آخر کي نصاب پوره وي، خو د کال په مینځ کي د هغه مقدار کم سوی وي، نو بیا هم د ټوله (پوره) نصاب زکاة واجبیږي.

﴿۱۱۹۸﴾ فَإِنْ تَمَلَّكَ عَرَضًا بِنِيَّةِ التِّجَارَةِ بیا که څوک د یو سامان مالک سي د تجارت په نیت سره وَهُوَ لَا يُسَاوِيْ نِصَابًا او هغه سامان د نصاب برابر نه وي وَلَيْسَ لَهُ غَيْرُهُ او له هغه سامان څخه بغیر د ده سره بل مال نه وي ثُمَّ بَلَغَتْ قِيْمَتُهُ نِصَابًا فِيْ آخِرِ الْحَوْلِ بیا د هغه قیمت د کال په آخر کي نصاب ته ورسیږي لَا تَجِبُ زَكٰوتُهُ لِذٰلِكَ الْحَوْلِ نو زکاة یې نه واجبیږي د هغه کال.

**لغات**: ﴿تملّك﴾ د تفعّل د باب ماضي معلومه ده. تملّكًا: مالک کېدل. مالک جوړېدل. ﴿یُساوي﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: برابر کېدل (برابرېدل).

**تشریح**: دا پر مخکینۍ مسئلې باندي تفریع ده. صورت د مسئلې دا دی چي که د یو چا سره صرف تجارتي سامان وي (یعني سره زر، سپین زر، نقد مال او داسې نور نه وي) او په هغه سامان سره تجارت او

کاروبار وکړي، خو هغه سامان په شروع کي له نصاب څخه کم وي. بيا په تجارت کولو سره سامان ګټه وکړي او د کال په آخر کي د دې تجارتي سامان قيمت د نصاب سره برابر سي. نو پر دې سامان د هغه کال زکاة نه واجبيږي، بلکي څه وخت چي د نصاب اندازې ته رسېدلی دی، له هاغه وخت څخه چي يو کال باندي تېر سي، بيا زکاة پکښي واجبيږي.

## د سرو زرو او سپينو زرو د نصاب اندازه

﴿۱۱۹۹﴾ وَنِصَابُ الذَّهَبِ عِشْرُوْنَ مِثْقَالًا او د سرو زرو نصاب شل مثقاله دی وَنِصَابُ الْفِضَّةِ مِائَتَا دِرْهَمٍ او د سپينو زرو نصاب دوه سوه درهمه دي مِنَ الدَّرَاهِمِ الَّتِيْ كُلُّ عَشَرَةٍ مِنْهَا وَزْنُ سَبْعَةِ مَثَاقِيْلَ له هغه دراهمو څخه چي په هغوی کي هر لس درهمه د اُوو مثقالو په وزن سره وي (يا په بله وينا داچي: هغه دراهم به د "وزن سبعه والا" دراهمو څخه وي).

**لغات:** ﴿مثقال﴾ يو وزن (مقدار) دی کوم چي څلور "ماشې" او څلور "رتي" کيږي او د ګرام په حساب سره تقريباً څلور (۴) ګرامه کيږي. ﴿درهم﴾ د سپينو زرو سکه. يو درهم څه د پاسه درې (۳) ګرامه کيږي. يعني ۳ ګرامه او ۶۲ ملي ګرامه او د بعضو په نېز ۳ ګرامه او ۴۰۲ ملي ګرامه.

﴿وزن سبعة﴾ دې ته وايي چي لس درهمه د اُوو (۷) مثقالو سره (په وزن کي) برابر وي. په دې صورت کي يو درهم د يوه مثقال اُووه حصې (۰.۷) کيږي يعني له يوه مثقال څخه څه کميږي. د "وزن سبعه والا" د يوه درهم وزن تقريباً درې (۳) ګرامه کيږي. د حضرت عمر ﷺ په زمانه کي همدا وزن سبعه والا دراهم په بازار کي رائج کړل سوه. (أثمار الهدايه)

**تشريح:** شل مثقاله د تولې په حساب سره اُووه نيمي (۷.۵) تولې کيږي، او دوه سوه درهمه د تولې په حساب سره دو پنځوس نيمي (۵۲.۵) تولې کيږي، او په اوس وخت کي د انګرېزي وزن په حساب سره اُووه نيمي تولې ۸۷ ګرامه، ۴۷۹ ملي ګرامه (يا په بله وينا څه د پاسه اووه اتيا ګرامه) کيږي. او دو پنځوس نيمي تولې ۶۱۲ ګرامه، ۳۵ ملي ګرامه کيږي (كما مرّ).

نو که د چا سره دو پنځوس نيمي تولې (يا د ګرام په حساب سره څه د پاسه ۶۱۲ ګرامه) سپين زر وي او پر هغه کال هم تېر سي، نو د هغه زکاة ايستل ضروري دي (او د زکاة په باب کي د سپينو زرو نصاب معتبر دی يعني دو پنځوس نيمي تولې يا دوه سوه درهمه).

**من الدراهم التي إلخ:** د نبي کريم ﷺ مبارک په زمانه کي درې قسمه درهمه رواج ول: ① يو هغه درهم وو چي د هغه وزن يو مثقال وو، نو د هغه لس درهمه لس مثقاله کېدل (يا په بله وينا لس درهمه يې د

لسو مثقالو سره برابره وه)، ② دويم هغه درهم وو چي وزن يې نصف مثقال (نيم مثقال) وو، نو د هغه لس درهمه پنځه مثقاله کېدل، ③ او د دريم قسم لس درهمه شپږ مثقاله کېدل (يا په بله وينا لس درهمه يې د شپږو مثقالو سره برابر وه)، بيا د اميرُ المؤمنين حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت زمانه کي دا سوال را پورته سو چي د زکاة د نصاب لپاره به کوم قسم درهم معيار ګرځول کيږي، نو بيا د دې دريو سره درهمونو تناسب را ويستل سو، يعني د دې دريو سره قسمونو لس، لس درهمه چي د ټولو مجموعتاً وزن يوويشت (۲۱) مثقاله کېدی، دا (۲۱ مثقاله) پر دريو تقسيم کړل سوه، نو اوس يو داسي قسم را ووتلی چي د هغه لس درهمه د اوو مثقالو سره برابر سول، همدې ته د فقهاؤ په اصطلاح کي "وزنِ سبعه" وايي (چي لس درهمه د اوو مثقالو په وزن سره وي)، د اوسني وزن په اعتبار سره وزنِ سبعه والا يو درهم تقريباً درې ګرامه کيږي او لس درهمه يې څه د پاسه دېرش (۳۰) ګرامه کيږي (يعني ۳۰ ګرامه او ۶۱۸ ملي ګرامه)، نو د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کي همدا وزنِ سبعه والا دراهم د نصاب معيار و ټاکل سوه او نور ټوله وزنونه حضرت عمر رضي الله عنه ختم کړل او د وزنِ سبعه حکم يې وکړی او هم په دې وزن سره يې د عُشر، خراج، د زکاة، سرسايې او داسي نورو د اداء کولو حکم جاري کړی.

## پر نصاب د زياتوب کولو حکم

| |
|---|
| ﴿۱۲۰۰﴾ وَمَازَادَعَلىٰ نِصَابٍ وَبَلَغَ خُمُسًا او کوم څه مال چي پر نصاب زيات سي او (د نصاب) پنځمي حصې ته ورسيږي زَكَاةُ بِحِسَابِهٖ نو د هغه زکاة دي د هاغه په خپل حساب سره ورکړي. |

**تشريح:** مخکي دا مسئله ذکر سوه چي د سپينو زرو نصاب دوه سوه درهمه (دو پنځوس نيمي تولې) دی او د سرو زرو نصاب شل مثقاله دی، اوس دلته دا بيانوي چي که تر دوه سوه درهمه زيات سپين زر ور سره وي، نو په زياتوب (زائده حصه) کي زکاة هغه وخت واجبيږي کله چي هغه زياتوب د نصاب پنځمي حصې ته يعني څلوېښتو درهمو ته ورسيږي، لهذا که دوه سوه څلوېښت درهمه وي، نو په هغوی کي شپږ درهمه واجبيږي، او که دوه سوه نهه دېرش درهمه وي، نو په دې نهه دېرشو کي زکاة نسته، صرف په هغه دوه سوه درهمو کي پنځه درهمه واجبيږي؛ ځکه دا نهه دېرش (۳۹) د نصاب پنځمه حصه نه ده، ګواکي تر دوه سوه نهه دېرشو پوري صرف پنځه درهمه واجبيږي، بيا په هرو څلوېښتو کي يو درهم واجبيږي (مثلاً که دوه سوه اتيا درهمه وه، نو دوه نور درهمه يعني اووه درهمه پکښې واجبيږي ... الخ). (شفاء الارواح)

## د هغه سرو يا سپينو زرو حكم چې بل شى (كوټ) په كې سوى وي

﴿۱۲۰۱﴾ وَمَا غَلَبَ عَلَى الْغِشِّ او (له سرو او سپينو زرو څخه) چې كوم پر كوټ غالب وي فَكَالْخَالِصِ مِنَ النَّقْدَيْنِ نو هغه د خالص سرو او سپينو زرو په څېر دى.

**لغات:** ﴿غش﴾ كوټ، اميزش (ملاوټ)، يعني په سرو زرو يا سپينو زرو د بل فلز [عنصر] ګډون. لكه ژېړ، ګيلټ، اوسپنه او داسې نور. ﴿نقدين﴾ دوه نغد مالونه. مراد ځنې سره زر او سپين زر دي (كما ذكرنا).

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دى چې كه په سرو زرو او سپينو زرو يو بل شى ګډ سوى وي (لكه عموماً چې دزرو د جوړولو په وخت كې د جوړښت او تيار والي لپاره بل شى په كې ګډول كېږي) چې هغه ته كوټ وايي، نو په دې صورت كې به د زيات (غالب) يوه اعتبار كول كېږي، كه چېرې سره زر يا سپين زر باندې زيات وي، نو هغه د سرو زرو او سپينو زرو په حكم كې دى، او كه كوټ زيات (غالب) وي او سره يا سپين زر كم (مغلوب) وي، نو هغه د سامان په حكم كې دى (يا په بله وينا كوم شى چې په كې ګډ سوى وي، د هغه شي په حكم كې دى)، نو اوس به د هغه قيمت اندازه كول كېږي، كه چېرې هغه د نصاب مقدار ته رسيږي، نو زكاة پكښې واجبيږي، كنې نه واجبيږي. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

## د استعمال په جواهراتو او ملغلرو كې زكاة واجب نه دى

﴿۱۲۰۲﴾ وَلَا زَكٰوةَ فِي الْجَوَاهِرِ وَاللَّآلِيِّ او زكاة نسته په قيمتي كاڼو او ملغلرو كې إِلَّا أَنْ يَّتَمَلَّكَهَا بِنِيَّةِ التِّجَارَةِ مګر دا چې د تجارت په نيت سره د هغوى مالک سي كَسَائِرِ الْعُرُوْضِ لكه نور ټوله سامانونه (چې كه د تجارت په نيت سره رانيول سي، نو زكاة پكښې سته. كنې نسته).

**لغات:** ﴿جواهر﴾ جمع د جَوْهَرٌ ده: قيمتي كاڼى (ډبره) چې له هغه څخه نفع مند شيان (مثلاً غميان او داسې نور) جوړيږي، ﴿لآلى﴾ جمع د لُؤْلُؤَةٌ ده: ملغلره (مرغلره)، ﴿سَائِر﴾ د دې لفظ دوې معناوې نقل سوې دي: ① ټوله (تمام)، ② نور (پاته، باقي).

**تشريح:** جواهرات، هيره او ملغلرې كوم چې د استعمال (اغوستلو...) په غرض سره رانيول سوي وي، په هغوى كې زكاة نسته، كه هر څومره قيمتي وي، ليكن كه په جواهراتو او ملغلرو سره تجارت

کوي، نو د تجارتي مال کېدلو په اعتبار سره د هغوی په قیمت کي زکاة واجبېږي کله چي کال بانـدي تېر سي، همدا حکم د عام سامان دی. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

﴿۱۳۰۲﴾ وَلَوْتَمَّ الْحَوْلُ عَلٰى مَكِيْلٍ أَوْ مَوْزُوْنٍ فَغَلَا سِعْرُهٗ أَوْ رَخُصَ او که کال پوره (تېر) سي پر پیمانه ئېدونکي یا تول کېدونکي شي بیا د هغه نرخ گران سي یا ارزانه سي (پورته یا کښته سي) فَأَدّٰى مِنْ عَيْنِهٖ رُبْعَ عُشْرِهٖ بیا اداء کړي (ورکړي) خاص له هغه شي څخه د هغه د لسمي څلورمه حصه (یعني د هغه څلوېښتمه حصه په زکاة کي ورکړي) أَجْزَأَهٗ نو کافي کېږي ده لره وَإِنْ أَدّٰى مِنْ قِيْمَتِهٖ او که يې د هغه له قیمت څخه اداء کړي تُعْتَبَرُ قِيْمَتُهٗ يَوْمَ الْوُجُوْبِ نو د هغه د(زکاة) واجبېدلو د ورځي د قیمت اعتبار به کول کېږي وَهُوَتَمَامُ الْحَوْلِ عِنْدَ الْإِمَامِ او هغه (د زکاة واجبېدلو ورځ) د کال پوره کېدلو ورځ ده، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز وَقَالَا: يَوْمَ الْأَدَاءِ لِمَصْرِفِهَا او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چي (اعتبار به کول کېږي) مصرف (مستحق کس) ته د زکاة اداء کولو د ورځي (د قیمت، یعني د دوی په نېز د زکاة واجبېدلو د ورځي قیمت معتبر نه دی، بلکي د هغه ورځي قیمت معتبر دی په کومه ورځ چي مستحق کس (فقیر او داسي نورو) ته زکاة ورکول کېږي).

**لغات:** ﴿غلا﴾ د نصر له بابه ماضي معلومه ده، مصدر: غَلاءً: گرانېدل، نرخ پورته لوړېدل. ﴿رَخُصَ﴾ د کرُم له بابه ماضي معلومه ده، مصدر رُخْصًا: ارزانه کېدل. ﴿رُبعَ عشرِ﴾ د لسمي څلورمه حصه، یعني څلوېښتمه حصه. ﴿مصرف﴾ د ضرب له بابه اسمِ ظرف دی: د صرف کولو یا مصرفولو (خرچ کولو) ځای، مراد ځني مستحق کس دی یعني هغه کس چي پر هغه به د زکاة وغیره مال خرچول کېږي (ورکول کېږي).

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چي که چا یو مکیلي شی (لکه غنم، وریجي) یا موزوني شی (لکه اوسپنه یا بل شی) د تجارت په غرض سره رانیوی، بیا چي کله پر هغه شي یو کال تېر سو، نو د هغه شي نرخ پورته سوی وو، گران سوی وو، یا ارزانه سوی وو، نو د داسي شي او سامان د زکاة ورکولو دوه صورتونه دي: ① که مالک بعینه له هغه شي څخه زکاة ورکول غواړي، نو د هغه څلوېښتمه حصه دي اداء کړي (مثلاً چي څومره غنم یا اوسپنه ور سره ده، د هغه څلوېښتمه حصه دي راوباسي او په زکاة کي دي يې ورکړي).

② او که قیمت ورکول غواړي، نو دې ته به کتل کېږي چي کال يې په کومه ورځ پوره سوی دی، په هاغه ورځ د دې سامان بازاري قیمت (نرخ) څو وو؟ نو د هغه په اعتبار سره به زکاة

باسي (مثلاً یو سړي د کال په شروع کي د پنځوسو زرو غنم رانیول او چي کله یو کال باندي تېر سو. نو په هغه وخت کي یې قیمت اتیا زرو (۸۰۰۰) ته رسېدلی وو. او بیا یو څو ورځي وروسته هغه وغوښتل چي د دې غنمو زکاة ادا، کړي. نو په کومه ورځ چي یې زکاة اداء کوی. په هغه ورځ د غنمو قیمت نیوي زرو (۹۰۰۰) ته رسېدلی وو. نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ په نېز پر دغه کس د اتیا زرو (۸۰۰۰) زکاة لازمېږي. نه د نیوي زرو؛ ځکه د کال پوره کېدلو په وخت کي یې قیمت اتیا زره وو). او صاحبین رَحِمَهُمَا اللهُ فرمایي چي په کومه ورځ زکاة اداء کوي، د هغه ورځي د قیمت په اعتبار سره به زکاة ورکوي (مثلاً په پورتني مثال کي د صاحبینو رَحِمَهُمَا اللهُ په نېز پر دغه کس د نیوي زرو (۹۰۰۰) زکاة واجبېږي. ځکه چي د اداء په ورځ یې همدا قیمت دی). (انوار الایضاح، شفاء الارواح)



## د تجارت په مال کي د خرڅلاو قیمت معتبر دی

**مسئله:** د تجارتي سامان په زکاة کي به دې ته کتل کیږي چي د زکاة واجبېدلو په وخت کي د هغه بازاري قیمت څو دی؟، د هغه قیمت په حساب سره به زکاة اداء کول کیږي، د تاجر د رانیولو د وخت قیمت لره اعتبار نسته، مثلاً که یو تاجر په لک روپۍ سامان رانیسي او بیا چي یې دوکان ته راوړي، نو هغه په ګټه سره په دوه لکه روپۍ خرڅوي، نو هغه به د خرڅلاو د قیمت په اعتبار سره زکاة باسي. (انوار الایضاح بحوالۀ تلخیص المسائل بتغیر)

## په زکاة کي د تأخیر کولو او د مال هلاکېدلو حکم

﴿۱۲۰۴﴾ وَلَا يَضْمَنُ الزَّكوٰةَ مُفَرِّطٌ غَيْرُ مُتْلِفٍ او نه ضامن کیږي د زکاة (یعني د زکاة ضمان [تاوان] نه وربا ندي لازمیږي پر) افراط کونکی (سستي کونکی) کس کوم چي د مال تلفونکی (ضایع کونکی) نه وي (یعني هغه کس کوم چي د زکاة په اداء کولو کي سستي او غفلت کوي او بیا مال خپله تلف او هلاک سي او ذئ یې هلاکونکی نه وي) فَهَلَاكُ الْمَالِ بَعْدَ الْحَوْلِ يُسْقِطُ الْوَاجِبَ نو د مال هلاکېدل (ضایع کېدل) له کال تېرېدلو څخه وروسته واجب زکاة ساقطوي وَهَلَاكُ الْبَعْضِ حِصَّتَهٗ او د بعضي مال هلاکېدل د هغه د حصې مطابق (واجب زکاة ساقطوي).

**لغات:** ﴿مُفرط﴾ په دې لفظ کي دوه لغته دي: یو دا چي دا د تفعیل له بابه فاعل سي یعني د راء په تشدید سره مُفَرِّط، نو معنیٰ یې ده: سستي (کهالي) کونکی، دویم دا چي د افعال له بابه فاعل سي

يعني د راء په تخفيف سره مُفْرِط، نو معنیٰ يې ده: زياتوب كونكی، دلته د دواړو لغاتو ګنجائش

سته(انوار الايضاح)، ﴿مُتلف﴾ د افعال له بابه فاعل دی: تلفونكی، ضايع كونكی، بربادونكی.

**تشريح**: صورت د مسئلي دا دی چي كه په مال كي زكاة واجب سي يعني پوره كال باندي تېر سي خو بيا يې هم د سستۍ او غفلت په وجه اداء نه كړي او تأخير (ځنډ) پكښي وكړي، تر دې چي تو له مال هلاک سي، مثلاً غلا سي، نو د هغه زكاة ساقطيږي كه څه هم د تأخير كولو په وجه ګنهګاره كيږي، او كه خپل مال قصداً هلاک كړي، مثلاً په درياب كي يې وغورځوي، نو په دې صورت كي زكاة نه ساقطيږي. او كه څه حصه مال هلاک سي (يعني د هغه له قصد څخه بغير هلاک سي)، نو په حساب سره د هغه هلاک سوي مال په اندازه زكاة ساقطيږي، مثلاً كه د يو چا سره يو نيم لک روپۍ وي، يو كال وروسته پنځوس زره ځني غلا سي، نو اوس به صرف د لكو روپو زكاة وركوي.

## د هلاک سوي زكاة تعلق د نصاب سره دی او كه د عفو د مقدار سره

﴿۱۲۰۵﴾ وَيُصْرَفُ الْهَالِكُ إِلَى الْعَفْوِ او ګرځول كيږي به هلاک سوی مال (اول) د عفو (معاف مقدار) و طرف ته (يعني هلاک شده مال به اول له عفو مقدار څخه شمېرل كيږي) فَإِنْ لَمْ يُجَاوِزْهُ بيا كه هغه (هلاک سوی مال) له عفو څخه تېر (زيات) نه سي فَالْوَاجِبُ عَلَى حَالِهِ نو واجب زكاة پر خپل حال پاتيږي (او نه ساقطيږي).

**تشريح**: په مال كي يو نصاب وي او بل عفو، مثلاً (د نصاب له پوره كېدو څخه وروسته) په څلوېښتو (۴۰) درهمو كي يو درهم واجبيږي او له هغه څخه كم يعني نهه دېرش (۳۹) درهمه عفو دي، يا مثلاً په څلوېښتو پسونو كي يو پسه واجب دی او بيا تر يو سل و شلو (۱۲۰) پوري همدا يو پسه دی او كله چي يو سل و يو ويشت (۱۲۱) سي، نو دوه پسونه دي، لهذا څلوېښت پسونه خو نصاب دی لېكن په مينځ كي له يو څلوېښت (۴۱) څخه تر يو سل و شلو (۱۲۰) پوري عفو مقدار دی، لنډه دا چي تر نصاب كم مقدار ته عفو ويل كيږي.

اوس د عبارت مسئله دا ده چي كه څه مال هلاک سي، نو كه هغه د عفو له مقدار څخه زيات وي، نو هغه به تر عفو وروسته له نصاب څخه شمېرل كيږي، او كه هلاک سوی مال د عفو له مقدار څخه كم وي، نو له عفو څخه به شمېرل كيږي او داسي به نه كول كيږي چي له زكاة څخه د ځان خلاصولو لپاره هغه (هلاک سوی مقدار) له نصاب څخه وشمېرل سي، مثلاً كه د يو چا سره دوه سوه نهه دېرش (۲۳۹) درهمه وه، بيا نهه دېرش (۳۹) درهمه هلاک سوه مثلاً غلا سوه، نو دا هلاک سوی

مال (۳۹ درهمه) به له عفو څخه شمېرل کیږي یعنې همدا به ګڼل کیږي چې عفو ضایع سوه، نو دوه سوه درهمه پوره پاته سوه چې په هغه کې زکاة واجبیږي، او داسې به نه کول کیږي چې هلاک سوی مال له نصاب (۲۰۰ درهمو) څخه هلاک وشمېرل سي او زکاة نه ورکول سي، خو که مثلاً یو څلوېښت (۴۱) درهمه هلاک سوه، نو بیا به څلوېښت (۴۰) درهمه له عفو څخه او یو درهم له اصل نصاب څخه هلاک شمېرل کیږي او زکاة به ساقطیږي (ځکه کله چې له اصل نصاب څخه یو عدد هم کم سي. نو زکاة ساقطیږي او کله چې دا یو عدد پکښې پوره سي، نو بیرته زکاة واجبیږي). (انوار الایضاح، شفاء الارواح بحوالهٔ ایضاح الاصباح)

## جبراً زکاة اخیستل، تر مرګ وروسته له میراث څخه زکاة اخیستل

﴿۱۲۰۶﴾ وَلَا تُؤْخَذُ الزَّكٰوةُ جَبْرًا اونه به اخیستل کیږي زکاة په زوره (په جبر سره).

﴿۱۲۰۷﴾ وَلَا مِنْ تَرِكَتِهٖ او نه (به اخیستل کیږي) د مړي له میراث څخه إِلَّا أَنْ يُّوْصِيَ بِهَا مګر دا چې مړي د هغه وصیت وکړي فَتَكُوْنُ مِنْ ثُلُثِهٖ نو بیا به د هغه له ثلث (درېیمې حصې) څخه وي (یعنې بیا به د میراث د مال له درېیمې حصې څخه زکاة اخیستل کیږي).

**لغات:** ﴿جبرًا﴾ په زوره، بېله رضاء، مجبوراً. ﴿ترکة﴾ په دې لفظ کې دوه لغته دي یو بکسر الراء او بل بسکون الراء یعنې تَرِكَة او تَرْكَة، همدارنګه بکسر التاء یعنې تِرْكَة ویل هم جائز دي، د ترکه معنیٰ ده: پرېښوول سوی مال، په اصطلاح کې هغه مال ته ویل کیږي کوم چې مړي خپل تر شا پرې اېښی وي او د هغه سره د بل چا حق تړلی نه وي، برابره ده هغه کثیر وي او که قلیل، منقول وي او که غیرِ منقول (جائیداد).

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چې که پر یو چا زکاة واجب وي، خو هغه زکاة نه اداء کوي. نو له هغه څخه په زوره (جبرا) زکاة اخیستل جائز نه دي. همدارنګه که د زکاة له اداء کولو څخه بغیر مړ سي، نو د هغه له میراث (ترکې) څخه به هم نه اخیستل کیږي، هاا که هغه تر مرګ مخکې د زکاة وصیت کړی وي (چې زما له طرفه زما زکاة اداء کړئ!)، نو بیا د هغه د مال له درېیمې حصې (ثلث) څخه زکاة اداء کول پر وارثانو لازمیږي. (شفاء الارواح)

## له زکاة واجبېدلو څخه مخکې د هغه د ساقطېدلو حیله

﴿۱۲۰۸﴾ وَيُجِيزُ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ الْحِيلَةَ لِدَفْعِ وُجُوبِ الزَّكٰوةِ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله حیله جائز ګرځوي (روا بولي) د زکاة واجبېدو د لیري کولو لپاره (یعني له ځان څخه د زکاة د وجوب دفع کولو لپاره یو حیله اختیارول د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز جائز ده) وَكَرِهَهَا مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ او امام محمد رَحِمَهُ الله دا حیله مکروه ګرځولې ده.

**لغات:** ﴿يجيز﴾ د افعال له بابه مضارع معلومه ده، مصدر: إجازةً: جائز ګرځول. ﴿الحيلة﴾ تدبیر، چل، ترکیب، داسې ماهرانه طریقه او کړنلاره کوم چې له ظاهر څخه لیرې تر مقصده د رسېدلو پر حکمت مبني وي، جمع: حِيَلٌ و حِوَلٌ.

**تشريح:** مسئله دا ده چې که څوک له زکاة څخه د ځان خلاصولو لپاره یوه حیله وکړي مثلاً د کال تر پوره کېدلو مخکې خپل ټوله مال (د نصاب په اندازه مال) بل چا ته ورکړي (مثلاً د هدیې او تحفې په توګه یې ورکړي) بیا د کال تر پوره کېدلو وروسته هغه واپس څني واخلي (برابره ده په قانوني کاروایي سره یې څني واخلي و که بغیر له قانوني کاروایي څخه)، نو په دې صورت کې پر هغه زکاة نه واجبېږي او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د داسې حیله کولو اجازه سته؛ ځکه په دې صورت کې یې د هیچا حق نه دی ضایع کړی، او په محیط کې دي چې همدا مسلک صحیح دی، لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله دې ته مکروه ویلي دي او ناخوښه یې ګڼلې دي، او شیخ حمید الدین فریري رَحِمَهُ الله همدې کراهت ته مختار مذهب ویلي دی؛ ځکه په داسې حیله کولو کې د فقیرانو او غریبانو نقصان دی، پر همدې فتویٰ ده. او په طحطاوي کې دي چې د فرض ساقطولو په غرض سره حیله کول یا د بخل پر بناء داسې صورت اختیارول چې زکاة باندې واجب نه سي، دا بالاجماع مکروه تحریمي دي. (شفاء الارواح بحوالهٔ ایضاح الاصباح)



# بَابُ الْمَصْرِفِ

## (دا) فصل د زکاة د مستحق کس (په بیان کي) دی

**تشریح:** مصرف اسم ظرف دی. لغوي معنیٰ یې ده: د صرف کولو (خرچ کولو) ځای. او په اصطلاح کي هغه مسلمان ته ویل کیږي چي هغه ته زکاة ورکول په شریعت کي صحیح وي. یا به په بله وینا هغه کس کوم چي شرعاً د زکاة مستحق وي، نو په دې باب کي د هغو مستحقو خلکو تفصیل ذکر کوي چي هغو ته زکاة ورکول (زکاة باندي مصرفول) صحیح دي، د مصرف جمع مصارف ده. د زکاة د مصارفو په باره کي اصل د الله تعالیٰ دا فرمان دی ﴿إِنَّمَا الصَّدَقٰتُ لِلْفُقَرَآءِ وَالْمَسٰكِيْنِ وَالْعٰمِلِيْنَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوْبُهُمْ وَفِى الرِّقَابِ وَالْغٰرِمِيْنَ وَفِىْ سَبِيْلِ اللهِ وَابْنِ السَّبِيْلِ فَرِيْضَةً مِّنَ اللهِ، وَاللهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ﴾[التوبة: ۶۰]، (بېشکه زکاة حق دی د فقیرانو، مسکینانو..إلخ) د دغه آیت په رڼا کي د زکاة او صدقاتو (۱) اول مصرف فقیران دي، (۲) دویم مسکینان دي، (۳) دریم محصلین او اخیستونکي د زکاة دي، (۴) څلورم مؤلفة القلوب دي (یعني هغه کفار چي اسلام ته د هغوی تألیف قلوب او راجلبول مطلوب وي، کوم چي اوس بالاتفاق ساقط دي)، (۵) پنځم رقاب یعني د غلامانو بدل کتابت اداء کول او د هغو آزادول دي، (۶) شپږم غارمین یعني مقروضین (پور وړي) او نور دي، (۷) اووم مجاهدین دي. (۸) او اتم مسافرین دي، د اسلام په شروع کي دغه اته قسمه مصارف وه کوم چي په آیت کي ذکر سوي دي، او فقهاؤ اووه (۷) قسمه مصارف ذکر کړي دي؛ ځکه یو مصرف "مؤلفة القلوب" د صحابه وو په اجماع سره ساقط سو، له مؤلفة القلوب څخه هغه خلک مراد وه چي هغو ته به نبي ﷺ د اسلام راوړلو په هیله څه مال ورکوی، یا له دې څخه هغه کمزوري عقیدې والا مسلمانان مراد وه. چي هغوی به په اسلام کي محکم او مضبوطه نه پاته کېدله، نو هغو ته به په اسلام کي د ثبات او محکمتیا لپاره څه مال ورکول کېدی، لېکن کله چي الله تعالیٰ اسلام ته تقویه ورکړه او هر طرف ته اسلامي بېرغ رپاند سو، نو بیا د ابو بکر ﷺ د خلافت په زمانه کي د حضرت عمر ﷺ په مشوره له دغو اته

قسمو څخه يو مصرف او يو صنف يعني مؤلفة القلوب ساقط کړی سو. په دې باب کي مصنف رَحِمَهُ الله د دوی ټولو تفصيل بيانوي. (شفاء الارواح، فتح الهدايه)

## د زكاة مصارف

﴿۱۲۰۹﴾ هُوَ الْفَقِيرُ (۱) هغه (د زکاة اول مصرف) فقير دی وَهُوَ مَنْ يَمْلِكُ مَا لَا يَبْلُغُ نِصَابًا وَلَا قِيمَتَهُ مِنْ أَيِّ مَالٍ كَانَ او فقير هغه دی کوم چي (له زیاتو څخه زیات) د دومره مال مالک وي کوم چي نه رسيږي نصاب ته او نه د نصاب قيمت ته، هغه که هر مال وي وَلَوْ صَحِيحًا مُكْتَسِبًا که څه هم هغه (فقير) روغ (صحت مند) او ګټونکی وي (يعني کسب او ګټه کولای سي).

﴿۱۲۱۰﴾ وَالْمِسْكِينُ (۲) او (بل مصرف) مسکين دی وَهُوَ مَنْ لَّا شَيْءَ لَهُ او مسکين هغه کس دی چي هغه لره هيڅ شی نه وي.

**لغات:** ﴿مکتسب﴾ د ضرب له بابه د فاعل صيغه ده: کسب کونکی، په چا کي چي د ګټي او کسب کولو طاقت وي.

**تشريح:** په دې عبارت کي د زکاة له مصارفو څخه د اول کس بيان دی او هغه فقير دی، فقير هغه کس دی کوم چي د نصاب خاوند نه وي يعني د نصاب په اندازه مال نه لري، يا د نصاب په اندازه خو مال ور سره وي، لېکن د هغه له ضرورت اصليه څخه زيات نه وي بلکي مال د هغه په ضرورياتو کي راګير وي مثلاً د اوسېدلو کور، د استعمال جامې او د خپل کسب او پيشې آلات. دا هم فقير دی. نو که څه هم هغه فقير روغ رمټ او د کسب کولو لائق وي، بيا هم د هغه لپاره زکاة او صدقات واجبه حلال او جائز دي، خو د داسي روغ رمټ کس لپاره د زکاة سوال کول او زکاة اخيستل جائز خو دي لېکن اولیٰ او مناسب نه دي چي صحيحُ الاعضاء او د ګټي کولو قابل کس د زکاة په خيرو باندي ګزاره وکړي.

**والمسکين إلخ:** د زکاة دويم مصرف مسکين دی او مسکين هغه کس دی چي د هغه سره هيڅ څه نه وي چي ګزاره په وکړي (يا په بله وينا چي شپاروز اخلورويشت ساعته ا ګزاره په وکړل سي). ګواکي مسکين له فقير څخه زيات تنګ حاله دی، داسي کس د زکاة سوال کولای سي.



**فائده:** د فقير او مسکين د غه معنوي فرق صرف د زکاة په باب کي سته. کنې نور په هر ځای کي د فقير او مسکين په مصداق کي فرق نسته لکه څرنګه چي ابن قدامه رَحِمَهُ الله ويلي دي، خو څرنګه چي په زکاة کي د غه دوه مصارف قرآن

کریم په جلا مستقله توګه ذکر کړي دي، نو ځکه اهلِ علم حضراتو ویلي دي چې په دې دوو لفظو کې له یوه څخه لږ حاجت مند او له بل څخه زیات حجت مند مراد دی، بیا په دې کې اختلاف دی چې زیات احتیاج په فقیر کې دی او که په مسکین کې؟ په عامه توګه د احنافو رجحان ودې طرف ته دی چې مسکین زیات حاجت مند دی (کما ذکر) یعنې فقیر هغه دی چې د هغه سره د کفایت په اندازه څه مال او سامان وي، او مسکین هغه دی چې د هغه سره هیڅ نه وي "الفقیر من له أدنیٰ شيء والمسکین من لا شيء له". بعضو د دې برعکس فقیر زیات محتاجه او مسکین کم محتاجه ګرځولی دی، او همدا خبره زیاته صحیح معلومیږي: اول خو ځکه چې په قرآن کریم کې اول د فقیر او بیا د مسکین ذکر کېدل په ظاهره د دې خبرې قرینه ده چې فقیر د مسکین په مقابله کې زیات حاجت مند دی، او دویم خپله د قرآن کریم په یوه واقعه کې ذکر سوي دي ﴿أما السّفینة فکانت لمسٰکین یعملون في البحر﴾ (الکهف: ۷۹)، د قرآن کریم له دې بیان څخه معلومیږي چې کومو خلکو ته الله تعالیٰ "مساکین" ویلي دي، هغوی د کښتۍ مالکان وه او هغو په همدې کښتۍ سره روزي حاصلوله، له دې څخه د دې خبرې تصدیق کیږي چې مسکین د څه غوندې مال مالک وي، خو دومره مال نه چې د هغه د ضروریاتو لپاره کافي وي. ښکاره دي وي چې د اهلِ لغت او مفسرینو په دې اختلاف سره د زکاة پر احکامو هیڅ اثر نه لویږي. (قاموس الفقه، عنوانِ زکاة و فقیر)

﴿۱۲۱۱﴾ وَالْمُکَاتَبُ (۳) او مکاتب دی.

**تشریح:** د زکاة دریم مصرف مکاتب دی، په مذکوره آیت کې له "في الرقاب" څخه مراد د اکثره علماؤ په نیز مکاتب غلام دي، همدا قول مصنف رَحِمَهُ الله اختیار کړی دی، مکاتب هغه غلام دی چې خپل مالک (بادار) ورته ویلي وه چې کله ته دومره مال مثلاً زر درهمه ما ته راکړې!، نو ته آزاد یې!، نو د داسي مکاتب مرسته کول او زکاة ورکول جائز دي چې هغه خپل مالک ته دا مال (بدل کتابت) ور اداء کړي او خپله غاړه د غلامۍ له طوق څخه خلاصه کړي.

﴿۱۲۱۲﴾ وَالْمَدْیُوْنُ الَّذِیْ لَا یَمْلِكُ نِصَابًا وَلَا قِیْمَتَهُ فَاضِلًا عَنْ دَیْنِهٖ (۴) او هغه مقروض (پوروړی) دی کوم چې د داسي نصاب یا د نصاب د قیمت مالک نه وي کوم چې د ده له قرض څخه زائد (اضافه) وي.

**تشریح:** د زکاة څلورم مصرف مقروض (پوروړی) دی چې هغه ته په قرآن کې "غارم" ویل سوي دي، له "غارم" څخه مراد هغه مقروض کس دی چې د هغه سره خو مال وي لیکن ټول مال یا بعضې مال په قرض کې را ګیر وي او له قرض اداء کولو څخه وروسته د نصاب په اندازه نه ور سره پاتیږي، داسي کس که څه هم په ښکاره مالدار دی خو په حقیقت کې فقیر دی، نو ځکه هغه ته زکاة ور کول او د هغه لپاره اخیستل جائز دي.



**مسئله (۱)**: که یو څوک زیات مقروضه وي او دا خطره وي چې که هغه ته زکاة ورکول سي، نو خپله به يې وخوري او قرض به په اداء نه کړي، نو زکاة ورکونکی دي له هغه څخه اجازه واخلي او د خپل زکاة په مال سره دي هغه قرض اداء کړي، نو په دې توګه به دفقیر قرض او د مالداره زکاة دواړه اداء سي. (احسن الفتاویٰ ج: ۴، ص: ۲۵۰)

**مسئله (۲)**: که یو څوک زیات مقروضه وي (کوم چې له نصاب څخه هم زیات قرض وي)، نو د قرض اداء کولو لپاره هغه ته له نصاب څخه زیات مال ورکول پروا نه لري، خو بعضي کاروباریان له دغه مسئلې څخه غلطه فایده اخلي چې ځیني وخت پر دوی د کاروبار یا حکومت قرض دومره زیات سي چې د دوی له اصل سرمایې څخه زیات وي، نو دوی خلکو ته ورسي او وایي چې موږ زیات مقروضه یو او د زکاة مستحقه یو، لهذا زموږ سره مرسته وکړئ! او د زکاة په مال سره زموږ قرضونه را اداء کړئ!، نو په دې توګه هغوی د لکاوو روپیو مطالبه لري، نو داسي خلکو ته پکار دي چې اول د خپل ذاتي مالیت جائیداد، موټران او داسي نور خرڅ کړي او خپل قرض په اداء کړي، خو که اوس هم د دوی قرض اداء نه سي، نو بیا دي د مرستي مطالبه وکړي، تر دې مخکي خپل ځان ته د زکاة مستحقین ویل د غریبانو سخت حق تلفي ده. (انوار الایضاح بتصرفٍ)

﴿۲۱۳﴾ وَفِيْ سَبِيْلِ اللهِ (۵) او د الله په لاره کي (یعني بل مصرف د الله د لاري والا) دی وَهُوَ مُنْقَطِعُ الْغُزَاةِ أَوِ الْحَاجِّ او هغه له غازیانو یا له حاجیانو څخه جلا کېدونکی (شاته پاتېدونکی) کس دی.

**لغات**: ﴿منقطع﴾ د انفعال له بابه فاعل دی: قطع کېدونکی، جلا کېدونکی، ﴿غُزاة﴾ جمع د غازی ده: حمله کونکی، مجاهد، ﴿حاجّ﴾ حاجي، د حج د ارکانو اداء کونکی، جمع: حُجّاج.

**تشریح**: د زکاة پنځم مصرف "فی سبیل الله" دی، د "فی سبیل الله" تفسیر د جمهورو په نېز په مجاهدینو سره سوی دی د فقر او ضرورت له قید څخه بغیر، او په احنافو کي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله رایه هم دغه ده خو د ضرورت او فقر په قید سره، یعني هغه مجاهدین ځني مراد دي کوم چې جهاد ته تلل غواړي لېکن هغوی د جهاد په سامان برابرولو باندي د قدرت نه لرولو په وجه د مجاهدینو له جماعت څخه منقطع کېږي، نو د داسي مجاهد مرسته کول او زکاة ورکول او د هغه لپاره زکاة اخیستل صحیح او حلال دي، همدا په منقطعُ الغزاة سره تعبیر سوی دی، یا په بله وینا هغه مجاهدین او غازیان کوم چې د مال او سامان د نشتوالي په وجه له اسلامي لښکر څخه پاته سوي وي، ګواکي د جهاد کولو لپاره د زکاة په مال سره د مجاهدینو مدد کول کېدای سي.

او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز له في سبيل الله څخه مراد منقطع الحاج دی. يعني هغه کس چي پر هغه حج فرض سوی وي، لېکن في الحاله فقير وي (يا په بله وينا: هغه کس کوم چي د فقيری او غربت په وجه د حاجيانو له قافلې څخه پاتـه سوی وي)، داسي کس ته د فرض حج اداء کولو لپاره زکاة ورکول کېدای سي. (انوار الايضاح، شفاء الارواح)

﴿۱۲۱۴﴾ وَابْنُ السَّبِيلِ (۶) او (بل مصرف) دلاري والا دی وَهُوَمَنْ لَهُ مَالٌ فِيْ وَطَنِهٖ وَلَيْسَ مَعَهُ مَالٌ او دا هغه کس دی چي د هغه لپاره په خپل وطن کي مال وي او (في الحاله) د ده سره مال نه وي.

**تشريح:** د زکاة شپږم مصرف "ابن السبيل" دی، له ابن السبيل څخه مراد هغه مسافر دی چي په خپل وطن کي د هغه سره ډېر مال موجود وي، خو اوس وخت (په لاره يا بل وطن کي) د هغه سره هيڅ نه وي، مثلاً ټوله مال يې خرچ کړی وي يا غلا سوي وي، نو ګواکي في الحاله دا کس فقير دی او فقير ته زکاة ورکول او د هغه لپاره زکاة اخيستل جائز دي، خو له ضرورت څخه زيات اخيستل ورته حلال نه دي. علماؤ ليکلي دي چي غوره دا ده چي دا کس قرض واخلي او چي کور تـه ولاړ سي، هغه دي اداء کړي، لېکن کوم کس چي په خپل وطن کي هم فقير وي، نو له ضرورت څخه زيات اخيستل هغه تـه صحيح دي. (شفاء الارواح بحوالهٔ عمدة الفقه)

﴿۱۲۱۵﴾ وَالْعَامِلُ عَلَيْهَا (۷) او کار کونکی پر زکاة (د زکاتونو ټولونکی) يُعْطٰى قَدْرَ مَا يَسَعُهُ وَأَعْوَانَهُ هغه ته به دومره ورکول کيږي چي مناسب او کافي وي د هغه او د هغه د معاونينو لپاره.

**لغات:** ﴿يسع﴾ د سمع د باب مضارع ده، مصدر: سَعَةٌ: ګنجائش کېدل، وس کېدل. ﴿أعوان﴾ جمع د عَوْنٌ ده: معاون، مرستيال او مددګار، هر معاون شی. عليها د ضمير مرجع زکوٰة دی. يسعه و أعوانه د دواړو ضميرونو مرجع عامل دی.

**تشريح:** د زکاة اُووم (آخري) مصرف عامل دی. عامل هغه کس دی کوم چي د اسلامي حکومت له طرفه د زکاة اخيستلو او راټولولو لپاره ټاکل سوی وي (چي له خلکو څخه زکاة او صدقات راټول کړي). نو اسلامي حکومت به داسي عامل او د هغه سره کار کونکو (مرستيالانو) ته د زکاة له مال څخه د دوی د عمل په اندازه مال ورکوي، لېکن د دې خيال دي ساتي چي دومره به ورکوي کوم چي د عامل او د هغه

د مرستیالانو لپاره کافي وي (یعني د کفایت په اندازه)، لېکن که د زکاة مال صرف دومره وي چې که عاملینو ته د کفایت په اندازه مال ورکول سي نو ټوله زکاة به په همدې کې صرف سي، نو په داسې صورت کې به دوی ته نصف (نیمه حصه) ورکول کیږي، او کوم زکاة چې عامل ته ورکول کیږي، هغه د زکاة په حیثیت سره نه، بلکې د عمل د عوض او حقُ الزحمه په توګه ورکول کیږي، نو ځکه عامل ته به په هر حال کې ورکول کیږي، برابره ده هغه مالداره وي او که فقیر وي.

د زکاة په ټولو مصارفو کې صرف همدا یو مصرف داسې دی چې هغه ته د معاوضۀ عمل او حقُ الزحمه په توګه زکاة ورکول کیږي، کنې زکاة خو وايي هغه ورکړي ته کوم چې فقراؤ ته بغیر له څه معاوضۀ عمل څخه ورکول سي. (انوار الایضاح بحوالۀ الدر المنضود ج: ۳، ص: ۹۸)

﴿۱۲۱۶﴾ وَلِلْمُزَكِّي الدَّفْعُ إِلَى كُلِّ الْأَصْنَافِ او زکاة ورکونکي لره (مذکوره) ټولو قسمونو ته ورکول جائز دي وَلَهُ الِاقْتِصَارُ عَلَى وَاحِدٍ مَعَ وُجُودِ بَاقِي الْأَصْنَافِ او د نورو قسمونو د موجودوالي سره صرف پر یوه قسم اکتفاء کول (هم) ور لره جائز دي.

**لغات:** ﴿مزکّي﴾ د تفعیل له بابه فاعل دی: زکاة ورکونکی، ﴿أصناف﴾ جمع د صِنْفٌ ده: قسم، نوع.

**تشریح:** مذکوره اُووه سره قسمه خلک د زکاة مصرف دي، د مال مالک ته اختیار دی چې په دغه اُوو قسمونو کې هر یوه ته یې ورکوي، یا ټوله زکاة صرف یو قسم خلکو ته ورکوي، یا صرف یوه کس ته یې ورکوي، که څه هم بل قسم خلک موجود وي، مثلاً مسافر یا مکاتب موجود وي خو د مال مالک صرف فقیر ته زکاة ورکړي، نو دا جائز دي، خو یوه کس ته په یوه وار دومره مال ورکول چې هغه د نصاب خاوند سي مکروهِ تحریمي دي، خو که هغه مقروض وي او د قرض اداء کولو لپاره ډېر مال ورکړي، نو څه حرج نسته (لکه مخکې چې ذکر سوه). (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

﴿۱۲۱۷﴾ وَلَا يَصِحُّ دَفْعُهَا لِكَافِرٍ او صحیح نه دي زکاة ورکول و کافر ته.

﴿۱۲۱۸﴾ وَغَنِيٍّ يَمْلِكُ نِصَابًا او داسې مالدار ته کوم چې د نصاب مالک وي أَوْ مَا يُسَاوِي قِيمَتَهُ مِنْ أَيِّ مَالٍ كَانَ یا د دومره مال (مالک وي) چې هغه د نصاب د قیمت سره برابر وي، هغه

که هر مال وي فَاضِلٍ عَنْ حَوَائِجِهِ الأَصْلِيَّةِ (په دې شرط چې دا نصاب یا قمیت د نصاب) زائد وي د ده له اصلي ضروریاتو څخه.

﴿۱۲۱۹﴾ وَطِفْلٍ غَنِيٍّ او (صحیح نه دي زکاة ورکول) د مالداره کس وبچي ته.

**لغات:** ﴿فاضل﴾ زائد، له ضرورت څخه زیات، اضافي، فَضَلَ یَفْضُلُ فَضْلًا (باب نصر): له ضرورت څخه زیاتېدل، باقي پاتېدل، عربي مقوله ده: أَنْفِقْ مِنْ مَالِكَ مَا فَضَلَ (ستا له مال څخه چې کوم تر ضرورت زیات وي، هغه نفقه کړه!)، ﴿الطفل﴾ بچی، له ولادت څخه تر بلوغ پورې بچي ته "طفل" وایي، پر مذکر او مؤنث دواړو یې اطلاق کیږي. (معجم)

**تشریح:** د زکاة مصرف فقط مسلمان فقیر او غریب دی، کافر فقیر ته زکاة ورکول جائز نه دي، خو هغه ته نفلي خیرات ورکولای سي، او که څوک کافر فقیر ته زکاة ورکړي، نو د هغه زکاة نه اداء کیږي او هغومره زکاة دوباره مسلمان غریب ته ورکول لازم دي.

وغني یملك نصابًا إلخ: یعني کوم څوک چې د نصاب خاوند وي، یعني د هغه سره دو پنځوس نیمي (۵۲.۵) تولې سپین زر وي، یا دغومره قیمت والا مال ور سره وي، برابره ده د تجارت لپاره وي او که نه وي، په دې شرط چې د هغه له حاجت اصلیه څخه زیات وي (حاجت اصلیه لکه د اوسېدلو کور، د کور ضروري سامان، د اغوستلو جامې، سپارلي او داسي نور، له دې څخه دا مال زائد وي)، نو داسي کس مالدار (غني) دی او هغه ته زکاة ورکول جائز نه دي (لهذا لوی، لوی دېګونه او فرشونه او داسي نور شیان چې په ډېرو کلونو کي کله نا کله ضرورت ورته پېښیږي، هغه په حاجت اصلیه کي داخل نه دي، داسي سامان والا ته زکاة ورکول جائز نه دي). (شفاء الارواح بحوالۀ عمدة الفقه)

وطفل غني إلخ: یعني د مالداره کس ونا بالغه بچي ته زکاة ورکول جائز نه دي، برابره ده هغه عاقل وي او که نه؛ ځکه نابالغه اولاد د خپل پلار په مالدار والي سره مالداره شمېرل کیږي. ها! که د مالداره کس ځوی بالغ او فقیر وي، نو هغه ته زکاة ورکول جائز دي.



**مسئله**: همدارنګه د غریب کس وغیرِ عاقل بچي ته که څوک زکاة ورکړي، نو زکاة نه اداء کیږي، خو که د بچي ولي د بچي له طرفه قبضه باندي وکړي، نو زکاة صحیح کیږي، او که د غریب کس عاقل بچي ته زکاة ورکړي، نو زکاة اداء کیږي. (انوار الایضاح بحوالۀ در مختار مع الشامی)

## بنو هاشم (سیدانو) ته زکاة ورکول جائز نه دي

﴿۱۲۲۰﴾ وَبَنِیْ هَاشِمٍ وَمَوَالِیْهِمْ او (همدارنګه صحیح نه دي دزکاة ورکول) بنو هاشمو او د هغو آزاد کړل سوو غلامانو ته وَاخْتَارَ الطَّحَاوِیُّ جَوَازَ دَفْعِهَا لِبَنِیْ هَاشِمٍ او امام طحاوي رَحِمَهُ الله بنو هاشمو ته د زکاة ورکولو جائز والی اختیار کړی دی.

**تشریح**: بنوهاشم سیدانو ته زکاة ورکول جائز نه دي، ځکه نبي کریم ﷺ خپل خاندان والا د زکاة او صدقات واجبه له استعمال څخه منع کړي دي، نو ځکه سیدانو او د هغوی آزاد کړل سوو غلامانو ته زکاة ورکول جائز نه دي.

د دغه مسئلې په باره کي د ابو عصمه رَحِمَهُ الله په حواله سره د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله یو قول دا نقل سوی دی چي په کوم ځای کي د اسلامي حکومت له طرفه د بنو هاشمو لپاره وظیفه مقرّره نه وي، هلته دوی ته زکاة ورکول صحیح دي، همدا قول امام طحاوي رَحِمَهُ الله خوښ کړی دی او بنو هاشمو ته یې د زکاة ورکولو د جائز کېدلو فتویٰ ورکړې ده، خو د فقهاؤ په نېز دا قول مرجوح او غیرِ معتبر دی او صحیح او مفتیٰ به قول همدا دی چي بنو هاشموسیدانو ته زکاة ورکول صحیح نه دي، خو دوی ته له زکاة او صدقات واجبه څخه بغیر نور نفلي صدقات ورکول کېدلای سي، بلکي د پېغمبر ﷺ سره د نسبي نسبت پر بناء د دوی مالي خدمت کول د ډېر لوی ثواب کار دی. (انوار الایضاح)



## له بنو هاشمو څخه څوک مراد دي؟

له بنو هاشمو څخه د پنځو (۵) خاندانو افراد مراد دي: ① د حضرت علي رضی الله عنه تمام اولاد، ② د حضرت عباس رضی الله عنه تمام اولاد، ③ د حضرت جعفر رضی الله عنه تمام اولاد، ④ د حضرت عقیل رضی الله عنه تمام اولاد، ⑤ د حضرت حارث بن عبد المطلب رضی الله عنه تمام اولاد. همدارنګه د دې ټولو موالي (یعني کوم غلامان چي دوی آزاد کړي وي)؛ دغه حضرات او د دوی اولاد په دې وجه بنو هاشم دي چي دا ټول له د نبي کریم ﷺ د لوړ نیکه هاشم بن عبد مناف و طرف ته منسوب دي، او د بنوهاشم قبیله هم د هاشم بن عبد مناف و طرف ته منسوبه ده، نو په دې حواله سره دوی ته هاشمیان ویل کیږي، او د دوی آزاد سوي غلامان ځکه له دوی څخه شمېرل کیږي چي د نبي ﷺ غلام ابو رافع یو وار له نبي کریم ﷺ

څخه پوښتنه وکړه: أتحلُّ لی الصّدقة، (یعني آیا زما لپاره صدقه حلاله ده)، نو نبي کریم ﷺ هغه ته وفرمایل: لا أنت مولانا، (یعني ستا لپاره صدقه حلاله نه ده؛ ځکه ته زموږ آزاد سوی غلام یې)، نو کله چې زموږ لپاره صدقه حلاله نه ده، نو ستا لپاره به څنګه حلاله وي!، ځکه چې ته (خو) هم زموږ په څېر په بنوهاشمو کې داخل او شامل یې.

## کومو خپلوانو او قریبانو ته زکاة ورکول جائز نه دي؟

﴿۱۲۲۱﴾ وَ أَصْلِ الْمُزَكِّيْ وَ فَرْعِهٖ وَ زَوْجَتِهٖ او (همدارنګه زکاة ورکول جائز نه دي) د زکاة ورکونکي خپل أصولو (یعني پلار، مور، نیکه، انا او داسې نورو) ته او د زکاة ورکونکي خپل فروعو (ځوی، لور، لمسي او داسې نورو) ته او خپلې ښځې ته وَ مَمْلُوْكِهٖ وَ مُكَاتَبِهٖ وَ مُعْتَقِ بَعْضِهٖ او (نه زکاة ورکول جائز دي) خپل غلام او خپل مکاتب او خپل هغه غلام ته چې د هغه بعضې حصه آزاده کړل سوې وي.

**تشریح**: مسئله دا ده چې دوه قسمه خپلوانو ته زکاة ورکول جائز نه دي: ① یو خپل أصولو او فروعو ته، أصول یعني د کومو کسانو سره چې د ده دولادت تعلق وي، یا په بله وینا له کومو کسانو څخه چې دئ پیدا سوی وي لکه مور و پلار، انا او نیکه، ورنیکه.... او فروع یعني کوم کسان چې له ده څخه پیدا سوي وي لکه زوی، لور، لمسی، لمسۍ.... ② دویم هغه خپلوان دي چې د هغوی سره د ده د نکاح تعلق وي، یعني خاوند خپلو ښځو ته او ښځې خپل خاوند ته زکاة نه سي ورکولای، او له دغه دوه قسمه خپلوانو څخه بغیر ټولو قریبانو ته که هغوی غریبان وي زکاة ورکول جائز دي. لهذا سړی د خپل مور بنې (مېرې)، مېړور، یا زوم (د لور خاوند) ته زکاة ورکولای سي کله چې دوی د زکاة مستحق وي، همدارنګه ورور خپلې خور ته او د هغې اولاد ته او همدارنګه خپل اکا، امه، ملما، خاله او داسې نورو ټولو ته زکاة ورکولای سي، او دوی ته زکاة ورکول نه صرف دا چې جائز دي بلکې اولیٰ او غوره دي او دوچنده ثواب پکښې سته: یو د زکاة ورکولو او بل د صله رحمی (یعني د خپلوانو سره د ښۀ چلند کولو او تعلق ساتلو. لهذا مالداره کس ته پکار دي چې نورو پردیو او دلیرې ځایو خلکو ته د زکاة ورکولو پر ځای اول باید په خپلو قریبانو کې فقیران او غریبان ولټوي او هغو ته دې زکاة ورکړي او که غریب قریب د شرم په وجه زکاة نه څني اخلي. نو په پټه تو ګه دې یې د بل چا په ذریعه ورکړي. بیا به زکاة ورکونکی په خپلو سترګو د زکاة برکات ووینې، ځکه د دوی حق مقدّم دی. همدارنګه د خپل کلي د مسجد او مدرسې والا حق مقدّم دی د بلې علاقې له مسجد او مدرسې څخه. لهذا په مرسته کولو او چنده ورکولو کې هغوی مخکې کول پکار دي، او دا ډېر خراب مزاج او بد خصلت دی چې نور لیرې خلک له خپلو مستحقو قریبانو یا له خپل نژدې مسجد او مدرسې څخه مخکې کړل سي، په دې هکله پوره احتیاط کول پکار دي).

ومملوکهٖ ومکاتبهٖ: فرمايي چي خپل غلام او خپل مکاتب ته هم زکاة ورکول جائز نه دي؛ ځکه غلام او د غلام هر څه د مالک دي او د هغه ټوله مال او ګټه د مالک ده، همدارنګه د مکاتب غلام په مال او ګټه کي د مالک حق دی، نو دوی ته زکاة ورکول ګواکي خپل ځان ته زکاة ورکول دي، او خپل ځان ته په زکاة ورکولو سره زکاة نه اداء کيږي.

ومعتق بعضهٖ: همدارنګه هغه غلام چي بعضي حصه يې آزاده سوې وي او بعضي يې نه وي آزاده سوې، هغه ته هم زکاة ورکول جائز نه دي. صورت د مسئلې دا دی چي يو غلام د دوو کسانو په مينځ کي مشترک دی، په دوی کي يوه شريک خپله حصه آزاده کړه، نو شريک آخَر (بل شريک) ته اختيار دی چي که دئ هم خپله حصه آزادوي او که په غلام کسب او کار کوي او د خپلي حصې قيمت ځني اخلي، اوس که شريک آخَر د خپلي حصې قيمت اخيستل اختيار کړي، نو دا غلام د شريک آخَر په حق کي د مکاتب په درجه کي دی او خپل مکاتب ته زکاة ورکول جائز نه دي، نو ځکه د شريک آخَر لپاره هم خپل دغه غلام (معتق البعض) ته زکاة ورکول جائز نه دي. (انوار الايضاح، شفاء الارواح)

## د زکاة مال د مړي په کفن او قرض کي خرچــول

| ﴿۱۲۲۲﴾ وَ كَفَنِ مَيِّتٍ وَ قَضَاءِ دَيْنِهٖ او (همدارنګه د زکاة صرفول جائز نه دي) د مړي په کفن کي او د مړي په قرض اداء کولو کي وَثَمَنِ قِنٍّ يُعْتَقُ او د داسي غلام په قيمت کي کوم چي آزادول کيږي. |
|---|

**لغات:** ﴿قِنّ﴾ خالص غلام (کوم چي مکاتب او مدبر نه وي)، جمع: أقنان.

**تشريح:** مسئله دا ده چي د زکاة په مال سره مړي ته کفن ورکول جائز نه دي او د زکاة په مال سره د مړي قرض اداء کول جائز دي؛ ځکه د زکاة رکن تمليک (مالک جوړول) دي او مړی مالک نه سي جوړول کېدای؛ ځکه چي په هغه کي د مالک جوړېدلو صلاحيت نسته.

وثمن قن: يعني د زکاة په مال سره د آزادولو لپاره غلام يا مينځه رانيول جائز نه دي (چي غلام يا مينځه رانيسي د زکاة په مال سره او آزاد يې کړي)، په دې سره زکاة نه اداء کيږي.



دلته صاحب د البحرُ الرائق د زکاة صحيح کېدلو لپاره يوه حيله ليکلې ده او هغه دا چي په داسي صورت کي دي يو فقير ته زکاة ورکول سي او هغه ته دي وويل سي چي ته په دې مال سره د مړي لپاره د کفن او دفن انتظام وکړه! يا په دې سره غلام رانيسه! او آزاد يې کړه!، نو په دې توګه به د

مالک زکاة هم اداء سي او فقیر ته به په مذکوره شیانو باندې د مال خرچ کولو ثواب هم حاصل سي. (البحر الرائق ج: ۲، ص: ۲۶۱)

## مالدار کس ته د فقیر په ګومان د ورکول سوي زکاة حکم

﴿۱۳۲۳﴾ وَلَوْ دَفَعَ بِتَحَرٍّ لِمَنْ ظَنَّهُ مَصْرِفًا او که ورکړي (زکاة) په غور و فکر سره (یعني تر طلب او تلاش وروسته) داسي کس ته چي پر هغه یې د مستحق ګومان کړی وي فَظَهَرَ بِخِلَافِهِ بیا هغه د دې په خلاف ښکاره سي (مثلاً مالدار یا سیّد ثابت سي) أَجْزَأَهُ نو ده لره کافي دي (زکاة یې اداء کیږي) إِلَّا أَنْ يَكُونَ عَبْدَهُ وَمُكَاتَبَهُ مګر دا چي هغه د ده غلام او مکاتب وي.

**لغات:** ﴿تَحَرِّ﴾ د تفعّل د باب مصدر دی، د دې خپله معنیٰ ده: غور و فکر کول، طلب کول، او صاحب د شفاءُ الارواح دلته د تحرّی مطلب دا بیان کړی دی چي په اټکل سره د یو شي په باره کي غالب ګومان حاصلول.

**تشریح:** صورت د مسئلې دا دی چي که زکاة ورکونکی له ښه غور و فکر کولو څخه وروسته پر یو کس د فقیر ګومان وکړي مثلاً هغه کس خپل شکل د فقیرانو په څېر جوړ کړی وي، یا د فقیرانو په صف کي ولاړ وي او هغه ته زکاة ورکړي، له تحقیق څخه وروسته معلومه سي چي هغه کس خود زکاة مستحق نه وو، مثلاً مالداره وو، یا هاشمي (سیّد) وو، یا کافر وو، یا هغه د زکاة ورکونکي خپل پلار یا ځوی او داسي نور وو، نو په داسي صورتونو کي د زکاة ورکونکي زکاة اداء کیږي، لیکن که هغه کس د ده غلام یا مکاتب وو، نو بیا یې زکاة نه اداء کیږي؛ ځکه خپل غلام او مکاتب د خپل مال مالکان نه سي جوړول کېدلای، حال دا چي د زکاة اداء کېدلو رکن تملیک (مالک جوړول) دي. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

## له نصاب څخه د زیات زکاة ورکولو حکم

﴿۱۳۲۴﴾ وَكُرِهَ الْإِغْنَاءُ او مکروه دي (فقیر) مالداره کول (د نصاب مالک جوړول) وَهُوَ أَنْ يَفْضُلَ لِلْفَقِيرِ نِصَابٌ بَعْدَ قَضَاءِ دَيْنِهِ وَبَعْدَ إِعْطَاءِ كُلِّ فَرْدٍ مِنْ عِيَالِهِ دُونَ نِصَابٍ مِنَ الْمَدْفُوعِ إِلَيْهِ او هغه دا دي چي زائد پاته سي د فقیر سره یو نصاب د ده د قرض تر اداء کولو وروسته او د ده له عیال څخه و هر فرد ته تر نصاب د کم ورکول کېدلو څخه وروسته له هغه مال څخه کوم چي ده ته ورکول سوی دی (یعني د مالداره کولو صورت دا دی چي د فقیر د قرض تر اداء کېدلو وروسته او

د هغه له عیال څخه وهر فرد ته تر نصاب د کم مال رسېدلو څخه وروسته بیا هم دفقیر سره د نصاب مقدار پاته سي) وَإِلَّا فَلَا يُكْرَهُ كنې مکروه نه دی.

**لغات:** ﴿الإغناء﴾ د افعال د باب مصدر دی: مالداره کول (مالداره جوړول)، بې پروا کول (مستغني کول).

**تشریح:** مسئله دا ده چي فقیر کس مالداره کول یعني له نصاب (دوه سوه درهمو) څخه زیات مال د زکاة په توګه ورکول مکروه دي، په دې شرط چي پر هغه هیڅ قرض نه وي او د هغه عیال نه وي، نو که پر هغه قرض وي (مقروضه وي)، نو هغه ته دومره د زکاة مال ورکول چي تر قرض اداء کولو وروسته له نصاب (دوه سوه درهمو) څخه کم ور سره پاتیږي، بېله کراهته جائز دي او که پوره نصاب ور سره پاتیږي، نو مکروه دي.

همدارنګه که هغه د عیال خاوند وي، نو دومره د زکاة مال ورکول چي که د هغه پر عیال تقسیم کړل سي، نو هر یوه ته له نصاب (دوه سوه درهمو) څخه کمه حصه رسیږي، بېله کراهته جائز دي، او که په اهل وعیال کي خو هر کس ته له نصاب څخه کمه حصه ور سیږي، لېکن خپله فقیر ته پوره نصاب پاتیږي، نو دا هم مکروه دي. (شفاء الارواح)

## څومره زکاة ورکول پکار دي؟

﴿۱۳۲۵﴾ وَنُدِبَ إِغْنَاؤُهُ عَنِ السُّؤَالِ او مستحب دي فقیر له سوال څخه بې پروا کول (مستغني کول).

**تشریح:** مستحق کس او فقیر ته دومره مال ورکول مستحب دي چي په هغه ورځ دې سوال او خواست محتاجه نه سي، او افضل او غوره دا ده چي دده د قرض او دده د اهل وعیال د ضرورت په لحاظ کولو سره زکاة ورکول سي، او له ضرورت څخه مراد صرف خوراک نه دی، بلکي کپړه (جامه)، تېل، د کور کرایه او داسي نور ټول هغه شیان چي دئ د خپل ځان او د خپل اهل وعیال لپاره په هغه ورځ ور ته محتاج وي. په متفرقه توګه وڅو کسانو ته د لې، لږ ور کولو پر ځای د یوه کس ضرورتونه پوره کول افضل دي. (شفاء الارواح بحوالهٔ ایضاح الاصباح)

## بل ښار ته د زکاة وړولو حکم

﴿۱۳۲۶﴾ وَكُرِهَ نَقْلُهَا بَعْدَ تَمَامِ الْحَوْلِ لِبَلَدٍ آخَرَ او مکروه دي د زکاة نقلول (وړل) د کال تر پوره کېدو وروسته و بل ښار ته لِغَيْرِ قَرِيبٍ وَأَحْوَجَ وَأَوْرَعَ وَأَنْفَعَ لِلْمُسْلِمِينَ بِتَعْلِيمٍ

داسي کس ته (وړل) کوم چي نه وي قریب یا (نه وي) زیات محتاجه یا زیات تقویٰ داره یا د تعلیم په سلسله کي د مسلمانانو لپاره زیات نفع مند.

**لغات:** ﴿أحوج﴾ اسم تفضیل دی: زیات محتاج، ﴿أورع﴾ دا او أنفع هم اسم تفضیل دی: زیات پرہزگاره، زیات تقویٰ داره، ﴿أنفع﴾ زیات نفع مند (کټور).

**تشریح:** مسئله دا ده چي د زکاة مال له یوه ښار څخه وبل ښار ته وړل مکروه دي، ها! که په بل ښار کي د ده غریب قریب وي، یا د بل ښار خلک له دې ښار والا څخه زیات محتاجه وي، یا مثلاً بعضي مدرسې په داسي پسمانده علاقو کي واقع وي چي هلته تعاون ورسره کول د دیني تعلیم د بقاء لپاره ضروري وي، یا د بل ښار فقیر زیات پرہزگاره وي، یا هغه داسي کس وي چي مسلمانانو ته له هغه څخه زیاته نفع رسیږي، نو په دې صورتونو کي بل ښار او علاقې ته د زکاة په وړلو کي هیڅ کراهت نسته، بلکي د زیات ثواب باعث دي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

## کومو کسانو ته زکاة ورکول افضل او غوره دي؟ (غریب قریبان، بیا همسایه گان...)

﴿۱۲۲۷﴾ وَالْأَفْضَلُ صَرْفُهَا لِلْأَقْرَبِ فَالْأَقْرَبِ مِنْ كُلِّ ذِيْ رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ او افضل دي د زکاة خرچ کول (ورکول) تر ټولو نژدې قریب ته بیا (تر هغه وروسته) نژدې قریب په خپل ذی رحم محرم قریبانو کي (یعني په خپل ذی رحم محرم قریبانو کي تر ټولو نژدې قریب ته زکاة ورکول افضل دي بیا تر هغه وروسته نژدې قریب ته..) ثُمَّ لِجِيْرَانِهِ بیا خپلو همسایه گانو ته ثُمَّ لِأَهْلِ مَحَلَّتِهِ بیا خپلې محلې (کلي) والا ته ثُمَّ لِأَهْلِ حِرْفَتِهِ بیا خپل هَم کسب (هم پېشه) والا ته ثُمَّ لِأَهْلِ بَلَدَتِهِ بیا خپل ښار والا ته وَقَالَ الشَّيْخُ أَبُوْ حَفْصٍ الْكَبِيْرِ رَحِمَهُ اللهُ او شیخ ابو حفص کبیر رَحِمَهُ الله فرمایلي دي لَا تُقْبَلُ صَدَقَةُ الرَّجُلِ وَقَرَابَتُهُ مَحَاوِيْجُ چي نه قبلول کیږي صدقه د سړي په داسي حال کي چي د هغه خپل قریبان محتاجه وي حَتّٰى يَبْدَأَ بِهِمْ فَيَسُدُّ حَاجَتَهُمْ تر دې چي په هغوی شروع وکړي او د هغوی ضرورت ور پوره کړي.

**لغات:** ﴿جیران﴾ جمع د جَارٌ ده: همسایه، ﴿أهل حرفة﴾ پېشه ور، کسب و پېشې والا، ﴿ذی رحم محرم﴾ هغه قریب چي نکاح ورسره کول د همېشه لپاره حرام وي، ډېر نژدې قریب، لکه وروړ،

خور، د دوی اولاد، اکا، امه، ماما، خاله او داسي نور، کله چي دا خلک د زکاة مستحق وي،

﴿محاویج﴾ جمع د مُحْوَجٌ ده: (احتیاج مند)، ضرورت مند. (انوار الایضاح)

**تشریح**: د زکاة ورکولو په وخت کي افضل دا ده چي اول وخپلو قریبانو ته ورکول سي، دوی ته په زکاة ورکولو کي دوچنده ثواب دی: یو د زکاة او بل د صله رحمی او قرابت. ښکاره دي وي چي له أصولو او فروعو (لکه مخکي چي ذکر سوه) څخه بغیر بل هر غریب احتیاج مند قریب مثلاً ورور او خور، د دوی اولاد، اکا، امه، ماما، خاله، خوریی او داسي نور تولو ته زکاة ورکول شرعاً صحیح دي بلکي افضل دي، بیا تر دې وروسته د همسایه ګانو حق دی، بیا د کلي او محلې والا حق دی، بیا د خپل هَم پېشه خلکو حق دی (کوم چي د ده سره په پېشه او کسب کي شریکان وي)، بیا د خپل ښار والا حق دی.

**که غریب قریب موجود وي او زکاة بل چا ته ورکول سي، نو زکاة یي نه قبلیږي**

وقال الشیخ لا تُقْبَل إلخ: مصنف رَحِمَهُ الله په عبارت کي د شیخ ابو حفص کبیر رَحِمَهُ الله قول نقل کړی دی، په دې باره کي علامه شامي رَحِمَهُ الله له حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه یو مرفوع روایت هم په وضاحت سره نقل کړی دی چي نبي کریم ﷺ وفرمایل: اې خلکو! په هغه ذات دي مي قسم وي چا چي زه په حق سره رالیږلی یم چي الله تعالیٰ د هغه کس صدقه و خیرات نه قبلوي (یعني هغه ته یې ثواب نه حاصلیږي، که څه هم فریضه د هغه له غاړي څخه ساقطیږي) چي د هغه قریبان احتیاج مند وي او هغه یې پر نورو خرچ کړي او په هغه ذات دي مي قسم وي د چا په قبضه کي چي زما روح دی، الله تعالیٰ به د قیامت په ورځ د داسي کس وطرف ته د نظر په رحمت سره نه وګوري. (الله تعالیٰ دي مو وساتي او الله تعالیٰ دي موږ ته د غریب قریب سره د تعاون او ښه سلوک توفیق راکړي، آمین). (انوار الایضاح بحوالهٔ شامي ج: ۲، ص: ۹۳، او طبع بیروت ج: ۳، ص: ۲۷۴)



# بَابُ صَدَقَةِ الْفِطْرِ

(دا) باب د صدقة الفطر (سرسایې، په بیان کې) دی

**تشریح**: څرنګه چې زکاة او صدقة الفطر (سرسایه) دواړه مالي عبادتونه دي، نو ځکه یې یو تر بل وروسته بیان کړي دي، خو څرنګه چې زکاة فرض دی او صدقۀ فطر واجب ده، او ښکاره ده چې د فرضو درجه له واجبو څخه مخکې وي، نو ځکه یې مخکې د فرضو یعني د زکاة احکام او مسائل بیان کړل، او اوس د واجب یعني د صدقۀ فطر مسائل بیانوي.

**د صدقه لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: د صدقه معنیٰ ده: ورکړه (عطیه)، او دلته ځنې مراد هغه ورکړه او عطیه ده چې هغه د الله ﷻ د تقرّب (نژدېکت حاصلولو) په خاطر ورکړل سي. د صدقة الفطر شرعي او اصطلاحي تعریف دا دی: هغه مال چې د عبادت او صلې په توګه د ترحّم په خاطر ورکړل سي، او صدقه ته په دې وجه صدقه وايي چې په دې سره په ثواب حاصلولو کې د انسان غوښتنه او رغبت صادق (رښتونی) وي.

د حدیثو په کتابو کې د صدقة الفطر لپاره څو نومان ذکر سوي دي: (۱) صدقة الفطر، (۲) زکوة الفطر، (۳) زکوة رمضان، (۴) زکوة صوم، (۵) صدقة الصوم، (۶) صدقة رمضان، (۷) صدقة الرؤوس، (۸) زکوة الأبدان.

**د روژې زکاة (صدقۀ فطر)**: روژتي که هر څومره هم پرهېز او پابندي وکړي، خو بیا هم د روژې په دروان کې څه نا څه کمي او کوتاهي پېښېږي، له خوراک، څښاک او داسې نورو څخه پرهېز او بچ کېدل خو آسانه وي، لېکن د لغو کلام، بې ځایه مصروفیاتو او نامناسبه خبرو څخه پوره پرهېز نه سي کېدلای، نو ځکه د داسې کمیو او کوتاهیو د تلافي او جبران لپاره شریعت د رمضانُ المبارک په آخر کې د صدقة الفطر په نامه سره (ګواکې د روژې زکاة) جلا واجب کړې ده، له حضرت عبد الله ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چې نبي کریم ﷺ صدقة الفطر ضروري وګرځوله کوم چې د روژتي د لغو او فحش خبرو څخه د پاکۍ ذریعه ده او د مسکینانو لپاره د خوراک انتظام دی، کوم څوک چې هغه دا ختر تر لمانځه مخکې اداء کړي، نو دا مقبول زکاة دی او کوم څوک چې هغه تر لمانځه وروسته اداء کړي، نو دا له عامو صدقاتو څخه یو صدقه ده. (انوار الایضاح بحوالۀ ابو داؤد شریف حدیث شمېره: ۱۶۰۹)

له دغه روایت څخه معلومه سوه چي د صدقۀ فطر د واجبېدلو دوه مقصده ده: (۱) په روژه کي د واقع سوي کمی او کوتاهی تلافي، (۲) د اُمت د مسکینانو لپاره د اختر په ورځ د رزق انتظام، د دې لپاره چي هغوی هم په دې ورځ د خلکو سره په خوشحالیو کي شریک سي. په همدې وجه نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي "أَغْنُوهُمْ عَنِ السُّؤَالِ فِي هٰذَا الْيَوْمِ" (منهاج المسلم ص: ۲۳۲)، یعني په دې ورځ مسکینانو ته د ومره مال او خرچه ورکړئ! چي هغوی هم له سوال کولو څخه مستغني سي، نو ځکه په مال لرونکو مسلمانانو باندي لازمه ده چي پر خپل وخت د صدقۀ فطر اداء کولو پابندي وکړي، لکه څرنګه چي په پورتني حدیث کي ذکر سوه چي د اختر لمانځه مخکي د صدقۀ فطر اداء کولو ثواب زیات دی، پر همدې بنیاد عبد الله بن عمر رضی الله عنهما به له اختر څخه دوې، درې ورځي مخکي صدقۀ الفطر اداء کوله (ابو داؤد شریف، حدیث شمیره: ۱۶۱۰)، او دا مناسب هم ده، د دې لپاره چي مستحق غریبان له مخکي څخه اختر ته تیاری وکړل سي.

**د صدقۀ فطر مشروعیت**: صدقۀ فطر له زکاة څخه مخکي د هجرت په دویم کال تر اختر دوې ورځي مخکي مشروع سوه. (شفاء الارواح، فتح الهدایه، وانوار الایضاح بحوالۀ اوجز المسالک)

## صدقة الفطر پر چا واجب ده؟

﴿۱۲۲۸﴾ تَجِبُ عَلَى حُرٍّ مُسْلِمٍ مَالِكٍ لِنِصَابٍ أَوْ قِيمَتِهِ صدقۀ فطر واجب ده پر (هر) آزاد مسلمان کوم چي د نصاب یا د هغه د قیمت مالک وي وَإِنْ لَمْ يَحُلْ عَلَيْهِ الْحَوْلُ که څه هم پر نصاب کال نه وي تېر سوی عِنْدَ طُلُوعِ فَجْرِ يَوْمِ الْفِطْرِ د کوچني اختر د صبح صادق راختلو (سپېده چاود) په وخت کي وَلَمْ يَكُنْ لِلتِّجَارَةِ او (که څه هم منه نصاب یا د نصاب قیمت) د تجارت لپاره نه وي فَارِغٍ عَنِ الدَّيْنِ وَحَاجَتِهِ الْأَصْلِيَّةِ وَحَوَائِجِ عِيَالِهِ (خو) فارغ (او زائد) وي له قرض او د ده له اصلي حاجت او د عیال له حاجاتو (ضروریاتو) څخه.

﴿۱۲۲۹﴾ وَالْمُعْتَبَرُ فِيهَا الْكِفَايَةُ لَا التَّقْدِيرُ او معتبر په حاجت (ضرورت) کي کافي کېدل دي، نه (له خپل خته) فرض کول (یعني صرف د کافي کېدلو امکان او اټکل معتبر نه دی) وَهِيَ مَسْكَنُهُ وَأَثَاثُهُ وَثِيَابُهُ او حاجت د ده کور (استوګنځی) او د کور سامان او د ده جامې دي وَفَرَسُهُ وَسِلَاحُهُ وَعَبِيدُهُ لِلْخِدْمَةِ او (همدارنګه) د ده آسونه او د ده وسله او د ده د خدمت غلامان دي.

**لغات:** ﴿مسکن﴾ استوګنځی (داوسېدلو ځای)، ﴿أثاث﴾ د کور سامان، د زينت او ښکلا سامان.
﴿عبيد﴾ جمع د عَبْدٌ ده: غلام.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي صدقة فطر پر هغه کس واجب ده چي په هغه کي درې شرطونه موجود سي: ① آزاد به وي، پر غلام صدقة فطر واجب نه ده، ② مسلمان به وي. پر کافر صدقة فطر واجب نه ده، ③ د نصاب د مقدار به مالک وي، برابره ده هغه نصاب نامي وي، که نه وي او کال باندې تېر سوی وي، که نه وي، خو هغه به د ده او د ده د اهل وعيال له اصلي حاجت و ضرورت او قرض څخه به زائد (اضافه) وي، حاجت مثلاً له دې څخه شيانو څخه به زائد وي: د اوسېدلو کور، د اغوستلو جامې، د کورني استعمال سامان، د سپر تيا آسونه، د خدمت غلامان. لهذا د کوم چا سره چي له حاجت اصليه څخه زائد سامان وي او د هغوی قيمت د نصاب برابر وي، نو پر هغه صدقة فطر واجبيږي، مثلاً که د چا دوه کورونه وي: په يوه کي اوسيږي او په بل کي نه اوسيږي. نو برابره ده هغه يې په کرايه ورکړی وي او که نه، په دواړو صورتونو کي که هغه د نصاب (دوه سوه درهمو) برابر وي، نو پر هغه صدقة فطر واجبيږي.

عند طلوع الفجر: صدقة فطر د کوچني اختر په ورځ تر صبح صادق (طلوع الفجر) وروسته واجبيږي، لهذا کوم څوک چي تر صبح صادق مخکي مړ سوی وي، پر هغه صدقة فطر واجب نه ده او کوم څوک چي په دې ورځ تر صبح صادق وروسته مړ سوی وي، پر هغه صدقة فطر واجب ده.

والمعتبر الخ: يعني پورته چي کوم دريم شرط بيان سو چي د نصاب په اندازه مال به د ده او اهل وعيال له ضرورت څخه زائد وي، نو په دې باره کي فرمايي چي د ده سره به دومره مال وي چي خپله د ده او د بچيانو د ضرورت لپاره فی الواقع کافي کيږي، صرف د کافي کېدلو امکان او اندازه (اټکل) کافي نه دی، لکه څرنګه چي په بعضي عبادتونو کي صرف امکان شرط وي او دا پکښي ضروري نه وي چي په حقيقت کي به وي، مثلاً په سفر کي صرف د تکليف د امکان په وجه قصر کيږي يعني په سفر کي دا فرض کړل سوي (اټکل سوې) ده چي په سفر کي تکليف دی او دا ضروري نه ده چي په حقيقت کي تکليف دی، همدا وجه ده چي په راحت او آرام سره سفر کونکی به همداسي قصر کوي لکه څرنګه چي په تکليف سره سفر کونکی قصر کوي. (شفاء الارواح بتصرّف)

## صدقة فطر به سړی د خپل ځان، بچيانو او غلامانو له طرفه اداء کوي

﴿۱۲۲۰﴾ فَيُخْرِجُهَا عَنْ نَفْسِهٖ وَ أَوْلَادِهِ الصِّغَارِ الْفُقَرَاءِ نو صدقة فطر (سرسايه) به باسي له خپل طرفه او د خپل کوچنيو (نابالغه) غريبو بچيانو له طرفه وَإِنْ كَانُوْا أَغْنِيَاءَ او که د ده بچيان

مالداره وي يُخْرِجُهَا مِنْ مَالِهِمْ نو (بيا) به يې د دوی له مال څخه باسي.

**تشريح**: صدقۀ فطر د خپل ځان له طرفه او د خپل نا بالغه اولاد له طرفه اداء کول واجب دي؛ ځکه د صدقۀ فطر د واجبېدلو سبب داسي ذات دی چي سړی د هغه خرچ زغمي (نفقه ورکوي) او چي هغه د سړي تر سرپرستۍ لاندي وي، خو په دې شرط چي نا بالغه بچيان خپله د يو نصاب مالکان نه وي، ليکن که بچيان خپله د نصاب خاوندان وي، نو بيا پر پلار نه واجبيږي، بلکي خپله د دوی له مال څخه به صدقۀ فطر ايستل کيږي.

﴿۱۲۲۱﴾ وَلَا تَجِبُ عَلَى الْجَدِّ فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او (دلمسيانو صدقۀ فطر) پر نيکه واجب نه ده په ظاهر روايت کي وَاخْتِيْرَ أَنَّ الْجَدَّ كَالْأَبِ عِنْدَ فَقْدِهٖ أَوْ فَقْرِهٖ او غوره کړل سوې ده (يعني مختار قول دا دی) چي نيکه د پلار په څېر دی، د پلار د نشتوالي (ناموجوديت) يا فقير والي په وخت کي.

**لغات**: ﴿أُخْتِيْرَ﴾ د افتعال له بابه ماضي مجهوله ده، مصدر: إِخْتِيَار: خوښول، اختيارول (غوره کول)، په اصل کي أُخْتُيِرَ وو، له ضمې څخه وروسته کسره پر ياء ثقيله وه، نو کسره يې ماقبل ته نقل کړه او د تاء ضمه يې ليري کړه أُخْتِيْرَ سو.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي پر نيکه دلمسيانو صدقۀ فطر اداء کول واجب نه دي، که څه هم د دوی پلار (د نيکه زوی) موجود نه وي، دا ظاهر روايت دی؛ ځکه د نيکه ولايت مطلق نه وي، خو غوره او مختار مذهب دا دی چي نيکه د پلار په څېر دی که چيري پلار موجود نه وي يا موجود خو وي، ليکن محتاج او مفلسه وي، نو په دواړو صورتونو کي پر نيکه د نابالغه لمسيانو او لمسيو صدقۀ فطر واجبيږي. (انوار الايضاح)

﴿۱۲۲۲﴾ وَعَنْ مَمَالِيْكِهٖ لِلْخِدْمَةِ وَمُدَبَّرِهٖ وَأُمِّ وَلَدِهٖ او (همدارنګه صدقۀ فطر به باسي) د خپل هغه غلامانو له طرفه کوم چي د خدمت لپاره دي او د خپل مدبّر غلام او اُمِّ ولد مينځي له طرفه وَلَوْ كُفَّارًا که څه هم هغوی کافران وي لَا عَنْ مُكَاتَبِهٖ وَلَا عَنْ وَلَدِهِ الْكَبِيْرِ وَزَوْجَتِهٖ وَقِنٍّ مُشْتَرَكٍ نه د خپل مکاتب له طرفه او نه د خپل لوی (بالغ) ځوی او خپلي ښځي او مشترک غلام له طرفه وَآبِقٍ إِلَّا بَعْدَ عَوْدِهٖ او (نه) د تښتېدلي غلام له طرفه مګر د هغه تر واپس راتللو

وروسته وَكَذَا الْمَغْصُوْبُ وَالْمَأْسُوْرُ او همدارنګه (حکم دی د) غصب کړی سوي او قید کړی سوي (بندي) غلام (چې د دوی له طرفه به هم صدقهٔ فطر نه باسي. خو که دوی واپس ترلاسه سي. نو د تېرو کلونو صدقهٔ فطر يې واجبيږي (انوار الایضاح، عون المفتاح)).

**لغات:** ﴿مماليك﴾ جمع د مَمْلُوْكٌ ده: هغه کس کوم چې د بل چا تر ملکيت لاندي وي (يا په بله ورنا: کوم چې د بل چا په غلامتوب کې وي)، د مذکر او مؤنث يعني د غلام او مينځي دواړو لپاره استعماليږي. ﴿مدبّر﴾ هغه غلام چې مالک ورته ويلي وي: چې زما تر مرګ وروسته ته آزاد يې (يعني د هغه آزادي يې پر خپل مرګ معلقه کړې وي)، ﴿مکاتب﴾ هغه غلام چې خپل مالک ورته ويلي وي: چې ته ما ته دومره پيسې راوړه! (مثلاً پنځه سوه درهمه راوړه!) نو ته آزاد يې!، او غلام دا معامله منظور کړي، نو دې غلام ته مکاتب وايي او دغه معاملې ته کتابت وايي، ﴿مأسور﴾ د ضرب له بابه مفعول دی: قيد کړی سي (بندي). أَسَرَ يَأْسِرُ أَسْرًا او إِسَارًا: قيدول (بندي کول).

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چې څرنګه چې د نابالغه بچيانو له طرفه سړی صدقهٔ فطر اداء کوي، همداسې به يې د خپلو غلامانو له طرفه هم اداء کوي؛ ځکه مخکې ذکر سوه چې د صدقهٔ فطر د واجبېدلو سبب هغه ذات دی کوم چې سړی د هغه خرچ زغمي (نفقه ورکوي) او چې هغه د سړي تر ولايت او سرپرستۍ لاندي وي، او غلام همداسې دی. او په دې خبره کې غلام او مينځه ټوله سره برابر دي، همداسې برابره ده هغوی مسلمانان وي او که کافران وي. نو د هر غلام او مينځې صدقهٔ فطر پر مالک واجب ده. په مسلمان او نامسلمان کې توپير کول صحيح نه دي او دا مسئله اوس مهمه نه ده؛ ځکه اوس غلامان نسته.

ولاعن ولده الكبير إلخ: د بالغ اولاد خرچ پر پلار واجب نه دی؛ نو ځکه د دوی صدقهٔ فطر هم پر پلار واجب نه ده. لېکن که دوی د پلار په پالنه کې اوسيږي او پلار د دوی له طرفه صدقهٔ فطر اداء کړي، نو صحيح کيږي. او که يو زوی مجنون (لېونی) وي يا د عقل په اعتبار سره کمزوری وي، نو د هغه له طرفه به هم پلار صدقهٔ فطر اداء کوي، که څه هم بالغ او لوی وي.

وزوجته: همدارنګه د ښځې صدقهٔ فطر پر خاوند واجب نه ده. که چيري ښځه د نصاب مالکه وي، نو صدقهٔ فطر خپله پر هغې واجب ده. لېکن که خاوند يې د هغې له طرفه اداء کړي، نو اداء کيږي برابره ده له ښځې څخه يې اجازه اخيستې وي او که نه وي.

وقن مشترك: يعني كه يو غلام د دوو كسانو تر مينځ مشترک وي، نو د هغه صدقهٔ فطر له دوی څخه پر يوه شريک هم نه واجبيږي؛ ځکه له دوی څخه يوه ته هم پر هغه ولايت تامه نسته او نه پر يوه د هغه كامله نفقه لازم ده، حال دا چي دا دواړه شيان د صدقة الفطر د وجوب سبب دي.

و آبق إلخ: يعني كه د يو چا غلام تښتېدلی وي يا غلام يو چا غصب کړی وي يا قيد کړی سوی وي، نو پر مالک د دوی صدقهٔ طرف واجب نه ده تر هغه وخته پوري چي دوی واپس د مالک په قبضه کي راسي. (انوار الايضاح. شفاء الارواح)

## د صدقهٔ فطر شرعي مقدار

﴿۱۲۲۲﴾ وَهِيَ نِصْفُ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ أَوْ دَقِيْقِهِ أَوْ سَوِيْقِهِ او صدقهٔ فطر (سرسايه) له غنمو څخه يا د غنمو له اوړو يا د غنمو له نينو څخه نيم صاع ده أَوْ صَاعُ تَمْرٍ أَوْ زَبِيْبٍ أَوْ شَعِيْرٍ يا د خرماوو يا كشمشو يا اُوربشو يو صاع دی وَهُوَ ثَمَانِيَةُ أَرْطَالٍ بِالْعِرَاقِيِّ او صاع اته رطله دی په عراقي رطل سره (يعني يو صاع اته عراقي رطله كيږي).

**لغات:** ﴿دقيق﴾ وچ اوړه، ﴿سويق﴾ نينې، ﴿تمر﴾ خرما، كجوري، ﴿زبيب﴾ كشمش، وشكي (وچ كړل سوي انګور)، ﴿شعير﴾ اُوربشي.

**تشريح:** د صدقهٔ فطر مقدار له غنمو يا د غنمو له اوړو څخه د احنافو په نېز نيم صاع دی، او له خرماوو يا له كشمشو يا اُوربشو څخه يو صاع دی، او د راجح قول مطابق له كشمشو څخه هم نيم صاع دی د غنمو په څېر (او د ائمه ثلاثه وو په نېز له هري غلې څخه يو صاع دی). نو اوس كه څوک د غنمو يا اُوړو يا د نينو په ذريعه صدقهٔ فطر وركول غواړي، نو هغه به د هر نفر او هر فرد له طرفه نيم صاع وركوي، همدا د كشمشو حكم دی د راجح قول مطابق چي نيم صاع به وركوي، او كه د كجورو او خرماوو په ذريعه صدقهٔ فطر وركول وغواړي، نو بيا به يو صاع وركوي.



## د صاع مقدار

يو صاع اته (۸) عراقي رطله كيږي، كوم چي تقريباً زموږ د وزن په اعتبار سره دري نيم كېلو كيږي (په پاكستاني كېلو سره)، ځكه رطل په اوسني حساب سره (۴۴۲.۵۲) گرامه كيږي، يعني څلور سوه دوڅلوېښت گرامه كيږي او لږ څه زيات، نو دې ته چي په اته (۸) كي ضرب وركول سي،

مجموعتاً درې زره پنځه سوه اته دېرش (۳۵۳۸) ګرامه کیږي یعني تقریباً درې نیم کېلو (ځکه زر ګرامه یو کیلو دی).

## د صاع وزن د اوسني او پخواني وزن په اعتبار سره

| صاع | رطل | کېلو | ګرام | لېټر |
|---|---|---|---|---|
| یو صاع | ۸ رطله | ۳.۵۳۸ (یعني ۳ کېلو او ۵۳۸ ګرامه کیږي) تقریباً درې نیم کېلو | ۳۵۳۸ | ۵.۸۸ |
| نیم صاع | ۴ رطله | ۱.۷۶۹ (یعني یو کېلو او ۷۶۹ ګرامه کیږي) تقریباً پاؤ کم دوه کېلو | ۱۷۶۹ | ۲.۹۴ |

## د مالداره کسانو لپاره مشوره

نن سبا د نیم صاع قیمت ډېر کم پرېوځي (تقریباً ۱۲۰ یا ۱۳۰ کلداري) کوم چې د مالداره کسانو لپاره هیڅ وقعت او حیثیت نه لري، نو ځکه سرمایه داره خلکو ته مشوره ورکول کیږي چې د زیات ثواب حاصلولو لپاره د نیم صاع غنمو پر ځای د یو صاع خرماوو یا کشمشو د قیمت صدقهٔ فطر ورکړي، په دې کې به ثواب هم زیات حاصل سي او فقراؤ ته به نفع هم زیاته حاصله سي (او بعضي بزرګانو ته په تجربه سره دا خبره ثابته سوې ده چې که دارزانه صدقهٔ فطر انیم صاع غنموا پر ځای لوړ قیمت والا صدقهٔ فطر ورکول سي، نو ټوله کال به تنګي باندي را نه سي او په پراخي کي به وي ان شاء الله تعالی)، په یو روایت کي دي چې کله حضرت علي ﷺ د بصرې ښار ته راغلی او هغه ولیدل چې د غنمو بازاري نرخ ارزانه دی، نو ویې فرمایل: چې الله تعالیٰ په تاسو باندي پراخي را وستې ده (یعني مالداره یاست)، لهذا که تاسي صدقهٔ فطر له هر شي څخه د یوه صاع په حساب سره وباسئ!، نو زیاته ښه ده (ابوداؤد. حدیث: ۱۶۲۲)، له دې څخه معلومه چې وس لرونکو کسانو ته په زیاتوب او اضافه سره صدقهٔ فطر ایستل پکار دي. (انوار الایضاح)

## په صدقهٔ فطر کي قیمت ورکول جائز نه، بلکي افضل دي

﴿۱۳۳۳﴾ وَيَجُوزُ دَفْعُ الْقِيمَةِ او د قیمت ورکول (هم) جائز دي وَهِيَ أَفْضَلُ عِنْدَ وِجْدَانِ مَا يَحْتَاجُهُ او همدا (قیمت ورکول) افضله دي د هغه شي د پیدا کېلو (ترلاسه کېدو) په وخت کي کوم ته چې فقیر محتاج (مجبوره) وي لِأَنَّهَا أَسْرَعُ لِقَضَاءِ حَاجَةِ الْفَقِيرِ ځکه دا (قیمت) د فقیر حاجت لره ژر پوره کونکی دی (یعني د فقیر ضرورت په قیمت او پیسو سره ژر پوره کیږي) وَإِنْ كَانَ زَمَنَ شِدَّةٍ او که د سختی (وچکالی) زمانه وي فَالْحِنْطَةُ وَالشَّعِيرُ وَمَا يُؤْكَلُ أَفْضَلُ مِنَ

الدَّرَاهِمِ نو غنم، اوربشي او کوم څه چي خوړل کیږي (یعني خوراکي شیان) افضل دي له دراهمو څخه.

**تشریح**: فرمایي چي په صدقۀ فطر کي د مذکوره شیانو قیمت ورکول هم جائز دي. بلکي په اوس وخت کي قیمت ورکول افضل دي، کله چي فقیر یو خاص شي ته محتاجه وي او هغه په بازار کي پیدا کیږي؛ او افضل ځکه دي چي فقیر به خپل د خوښی شی په رانیسي او د غنمو او داسي نورو په ورکولو کي دا فایده نه حاصلیږي، ها! که وچکالي وي او خلګ غلې او داسي نورو ته زیات محتاجه وي، نو بیا همداغه ورکول افضل دي. (انوار الایضاح)

## د صدقۀ فطر د اداء کولو وخت

﴿۱۲۲۵﴾ وَوَقْتُ الْوُجُوْبِ عِنْدَ طُلُوْعِ فَجْرِ يَوْمِ الْفِطْرِ او (د صدقۀ فطر) د واجبېدلو وخت د کوچني اختر په ورځ د صبح صادق (سپېدو) راختلو وخت دی فَمَنْ مَاتَ أَوِ افْتَقَرَ قَبْلَهٗ نو څوک چي تر دې وخت (صبح صادق) مخکي مړ سي یا فقیر (غریب) سي أَوْ أَسْلَمَ أَوِ اغْتَنٰى أَوْ وُلِدَ بَعْدَهٗ یا تر دې وخت وروسته مسلمان سي یا مالداره سي یا پیدا سي لَا تَلْزَمُهٗ نو پر هغه صدقۀ فطر (سرسایه) نه لازمیږي.

**لغات**: ﴿افتقر﴾ د افتعال له بابه ماضي معلومه ده، مصدر: اِفْتِقَارًا: محتاجه کېدل، ناداره کېدل، مفلس کېدل، ﴿اغتنٰی﴾ د افتعال د باب ماضي معلومه ده، مصدر: اِغْتِنَاءً: مالداره کېدل.

**تشریح**: صدقۀ فطر د کوچني اختر (عید الفطر) په ورځ د صبح صادق (طلوع الفجر) په وخت کي واجبیږي، لهذا کوم کس چي له صبح صادق څخه مخکي مړ سي یا فقیر سي، نو پر هغه صدقۀ فطر نه واجبیږي، همدارنګه که د دې وخت له تېرېدلو څخه وروسته یو کافر مسلمان سي، یا فقیر مالدار سي، یا یو کوچنی پیدا سي، نو پر هغه صدقۀ فطر نه واجبیږي.

﴿۱۲۲۶﴾ وَيُسْتَحَبُّ إِخْرَاجُهَا قَبْلَ الْخُرُوْجِ إِلَى الْمُصَلّٰى او مستحب دي ایستل یې عیدګاه ته تر تللو مخکي وَصَحَّ لَوْ قَدَّمَ أَوْ أَخَّرَ او صحیح ده که یې مخکي کړي یا یې وځنډوي (یعني که یې تر دې مخکي یا وروسته وباسي، نو هم صحیح ده) وَالتَّأْخِيْرُ مَكْرُوْهٌ او ځنډول (- خپل وخت وروسته کول) مکروه دي.

**تشریح**: مستحب او افضل دا ده چې صدقهٔ فطر داختر په ورځ عیدګاه ته له تللو څخه مخکې اداء کړي، او که څوک یې داختر له ورځې څخه مخکې په رمضان کې اداء کړي، نو هم جائز او صحیح دي، او که له رمضان څخه یې هم مخکې اداء کړي، نو هم جائز دي لېکن خلاف احتیاط دي. او که د اختر ورځ تېره سي او صدقهٔ فطر اداء نه کړي، نو دهغه غاړه نه خلاصیږي، بلکې صدقهٔ فطر دمخکې په څېر واجب پاتیږي، هغه که هر څومره تأخیر وسي، خو داختر له ورځې څخه تأخیر کول مکروه دي.

## صدقهٔ فطر به یوه کس ته ورکول کیږي او که څو کسانو ته؟

﴿۱۲۲۷﴾ وَيَدْفَعُ كُلُّ شَخْصٍ فِطْرَتَهُ لِفَقِيرٍ وَاحِدٍ او هر کس دي خپله سرسایه یوه فقیر (غریب) ته ورکړي وَاخْتُلِفَ فِيْ جَوَازِ تَفْرِيْقِ فِطْرَةٍ وَاحِدَةٍ عَلٰى أَكْثَرَ مِنْ فَقِيْرٍ او اختلاف سوی دی له یوه څخه پر زیاتو فقیرانو دیوې سرسایې د تقسیمولو په جائز کېدو کې وَيَجُوْزُ دَفْعُ مَا عَلٰى جَمَاعَةٍ لِوَاحِدٍ عَلَى الصَّحِيْحِ او جائز دي ورکول دهغه سرسایې کوم چې پر یوه جماعت (ډېرو کسانو) وي یوه کس ته، د صحیح قول مطابق (یعني دصحیح قول مطابق د څو کسانو سرسایه یوه فقیره ته ورکول هم جائز دي) وَاللّٰهُ الْمُوَفِّقُ لِلصَّوَابِ او هم الله د حق (او صحیح) خبرو توفیق ورکونکی دی.

**لغات**: ﴿یدفع﴾ د فتح له بابه مضارع ده، مصدر: دَفْعًا: د دې باب څو معناوې دي چې له هغوی څخه یوه معنیٰ ده: ورکول، اداء کول. ﴿تفریق﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: د دې لفظ له معناوو څخه یوه معنیٰ ده: تقسیمول (وېشل) (معجم الوسیط)، ﴿فِطْرَة﴾ صدقهٔ فطر، سرسایه، جمع: فِطَرٌ. ﴿الصواب﴾ صحیح والی (دُرست والی او سموالی)، حق.

**تشریح**: غوره دا ده چې دیوه کس صدقهٔ فطر و یوه مسکین او غریب ته ورکول سي، او که دیوه کس صدقه فطر دوو، یا زیاتو مسکینانو ته ورکول سي، نو دبعضو په نېز جائز نه دي. لېکن زیاته صحیح دا ده چې دیوه کس صدقهٔ فطر څو کسانو ته ورکول جائز دي.

ویجوز الخ: همدارنګه د څو کسانو صدقهٔ فطر صرف یوه مسکین او غریب ته ورکول هم د صحیح قول مطابق جائز دي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

۲۸ ذی القعدة/ یوم الجمعة/ ۱۴۴۲هـ

اللّٰهم احفظنا من الفتن وأمتنا على الإيمان واحفظنا من إبليس وجنوده

وارزقنا العافية والمعافاة في الدنيا والآخرة

آمين برحمتك يا ارحم الراحمين

# كِتَابُ الْحَجِّ

(دا) کتاب د "حج" (په بیان کې) دی

**تشریح:** مصنف رَحِمَهُ الله تر کتابُ الزکاة وروسته اوس حج او د هغه احکام بیانوي، وجه د مناسبت یې د داده چې عبادات پر درې قسمه دي: ① صرف بدني عبادات (لکه لمونځ، روژه)، ② صرف مالي عبادات (لکه زکاة وغیره)، ③ بدني او مالي مشترک عبادات (لکه حج)، نو په همدې ترتیب سره مصنف رَحِمَهُ الله هغوی ذکر کړي کړي.

ښکاره دې وي چې د "حج" لفظ د حاء په کسره او فتحه دواړو سره مستعمل دی، په قرآن کریم کې د دواړو مثال سته، د کسرې مثال دا آیت دی: ﴿وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا﴾[آلِ عمران: ۱۹۷]، او د فتحې مثال دا آیت دی: ﴿اَلْحَجُّ أَشْهُرٌ مَّعْلُوْمَاتٌ﴾[البقرة: ۱۹۷]، وګورئ! په اول آیت کې دا لفظ په کسره د حاء حِجّ دی او په دویم آیت کې په فتحه د حاء حَجّ دی. بعضو ویلي دي چې بالکسر مصدر او بالفتح اسمِ مصدر دی، وقیل بعکسه.

**د حج لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** د حج لغوي معنیٰ ده: قصد کول، اراده کول، او د حج اصطلاحي معنیٰ ده: القصد إلی مکان مخصوص في أوان مخصوص مع فعل مخصوص علی وجه التعظیم. (یعني د ځانګړي ځای [مکې شریفې] وطرف ته اراده کول په ځانګړي وخت کې د ځانګړو فعلونو سره د تعظیم په توګه). لکه خپله چې مصنف رَحِمَهُ الله هم د حج همداسې تعریف ذکر کړی دی.

**د حج د فرضیت دلائل:** د حج فرضیت په کتاب، سنت او اجماع ټولو سره ثابت دی، په کتابُ الله کې خو د حج فرضیت په دې آیت سره ثابت دی: ﴿وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا﴾[آل عمران: ۹۷]؛ او په سنت کې په ډیرو حدیثونو سره د حج فرضیت ثابت دی چې له هغوی څخه دوه حدیثونه دا دي: (۱) بُنِيَ الإسلامُ علی الخمس.... الحدیث، په دې حدیث کې د اسلام له پنځو بناګانو څخه یوه بناء حج هم شمېرل سوې دی، (۲) من مات ولم یحجّ فلیمت إن شاء یهودیاً أو

نصرانياً؛ او اجماع خو ښکاره ده چي د نبي کريم ﷺ له زمانې څخه واخله تر نننه پوري پر حج د ټولو مسلمانانو اتفاق او اجماع را روانه ده.

**د فرضيت سنه:** د حج د فرضيت په زمانه کي ډېر قولونه دي، خو د جمهورو په نېز راجح قول دا دی چي د هجرت په شپږم (۶) کال حج فرض سوی دی، او علامه شامي رَحِمَهُ الله د نهم (۹) هجري په آخر کي د حج د فرضيت والا قول ته ترجيح ورکوي او فرمايي چي په هغه کال (۹ هجري کي) نبي کريم ﷺ په دې وجه حج نه وکړی چي د حج د فرضيت حکم د حج د وخت له تېرېدو څخه وروسته سوی وو. (فتح الهدايه، انوار الايضاح)

## د حکم په اعتبار سره د حج قسمونه

د حکم او صفت په اعتبار سره د حج لاندېني پنځه قسمونه دي:

①... فرضِ عين: يعني د وس لرونکي کس لپاره په ټوله عمر کي يو وار حج کول فرض دي.

②... واجب: مثلاً له ميقات څخه بېله احرامه تېر سي او د هغه د تلافۍ لپاره د بل حج اراده وکړي. نو دې ته واجب حج ويل کيږي.

③... نفل: له يوه وار څخه زيات حجونه چي په ژوند کي وکړل سي او هغوی د واجب وغيرهٔ له قسم څخه نه وي، نو پر هغه د نفل اطلاق کيږي.

④... حرام: د نوم او شهرت په غرض سره يا په حرام مال سره حج کول حرام دي.

⑤... مکروه تحريمي: مثلاً د ضعيف پلار او مور (کوم چي د څوی خدمت ته محتاجه وي) له اجازې څخه بغير تلل يا د اهل وعيال د نفقې له انتظام کولو څخه بغير تلل. (غنية الناسک ص: ۱۰)

## د حج اصطلاحي تعريف

| ﴿۱۲۳۸﴾ هُوَ زِيَارَةُ بِقَاعٍ مَخْصُوْصَةٍ بِفِعْلٍ مَخْصُوْصٍ فِيْ أَشْهُرِهٖ هغه (حج) زيارت کول دي د ځو مخصوصو ځايونو په مخصوص فعل سره د هغه (حج) په خپلو مياشتو کي. |
|---|

**لغات:** ﴿بِقَاع﴾ جمع د بُقْعَةٌ ده: د ځمکي يوه حصه (ټوټه)، دلته څني مراد کعبه او عرفات دي. (انوار الايضاح)

**تشريح:** حج هغه خاصو (ځانګړو) افعالو او مناسکو (وقوفِ عرفه، طوافِ زيارت او داسي نورو) ته وايي کوم چي د حج په نيت سره د احرام ترولو په حالت کي په خپل خاص وخت (د حج په مياشتو) کي اداء کول کيږي. (غنية الناسک ص: ۱۰)

## د حج وخت

﴿۱۳۲۹﴾ وَهِيَ شَوَّالٌ وَذُو الْقَعْدَةِ وَعَشْرُ ذِي الْحَجَّةِ او هغوی (د حج مياشتي) شوال، ذو القعده او د ذو الحجې (اولي) لس ورځي دي.

**لغات:** ﴿شوّال﴾ د قمري کال لسمه مياشته، د کوچني اختر مياشته، پر شوّال ځيني وخت الف لام هم داخليږي، جمع: شَوَاوِيْلُ و شَوَاوِلُ، ﴿ذو القعدة﴾ د قمري کال يوولسمه مياشته، دې ته ذو القعده (د ناستي مياشت) ځکه ويل کيږي چي په دې مياشته کي به عرب پر کور کښېنستل، نه به يې سفر کوی او نه به يې جنګ وغيره کول جمع: ذَوَاتُ الْقَعْدَةِ، ﴿ذو الحجة﴾ د قمري کال آخري مياشته، د حج مياشته، جمع: ذَوَاتُ الحِجَّةِ.

**تشريح:** د حج اداء کولو لپاره په شريعت کي معلوم وخت ټاکل سوی دی چي هغه ته ميقات زماني ويل کيږي، او هغه د شوال او ذو القعدې دوې مياشتي او د ذو الحجې د مياشتي اولي لس ورځي دي، له دغه وخت څخه مخکي د حج يو عمل مثلاً طواف زيارت يا سعی او داسي نور اداء کول معتبر نه دي او د حج احرام تړل هم له دغو مياشتو څخه مخکي مکروه تحريمي دي، نو ځکه د شوال د مياشتي له شروع کېدلو څخه وروسته به د حج اعمال شروع کول کيږي. (انوار الايضاح)

## حج علی الفور واجب دی

﴿۱۳۳۰﴾ فُرِضَ مَرَّةً عَلَی الْفَوْرِ فرض کړی سوی دی (په ټوله عمر کي) يو وار په سمدستي توګه (اداء کول) فِي الْأَصَحِّ په صحيح ترين قول کي.

**لغات:** ﴿علی الفور﴾ فوراً، سمدستي، لاس په لاس.

**تشريح:** حج په ژوند کي يو وار فرض دی، هر کال فرض نه دی او له يوه وار څخه وروسته نور حجونه نفلي شمېرل کيږي، او بله خبره دا ده چي کله په يو کس د حج د فرض کېدلو ټوله شرطونه جمع سي، نو حج په هاغه کال کي علی الفور (سمدستي) واجبيږي، که بېله عذره يې وځنډوي، نو ګنهکاره کيږي، دا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مسلک دی يعني د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز په هاغه اول کال د حج اداء کول ضروري دي، د دې لپاره چي د حج د فوتېدلو امکان باقي پاته نه سي. او مصنف رَحِمَهُ الله هم دې ته اصح ويلي دي او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز حج علی التراخی واجب دی (په دې شرط چي د فوتېدلو امکان يې نه وي)، لهذا که څوک په هاغه اول کال حج نه وکړي بلکي ويې ځنډوي

او په را روانو کلونو کي يې وکړي، نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز نه ګنهګاره کيږي، او مصنف رَحِمَهُ الله د "في الأصح" په وينا سره د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مسلک راجح ګرځولی دی. (شفاء الارواح)



**مسئله (۱): د ښځي (ماينې) د مرض په وجه حج ځنډول:** که پر يو چا حج فرض سوی وي ليکن د هغه ښځه مريضه وي، نو دا د هغه لپاره په حج کي د تأخير عذر نه سي کېدلای (لهذا د ښځي د علاج او پوښتني لپاره دي معقول انتظام وکړي او خپله دي حج ته ولاړ سي).

**مسئله (۲): د مور وپلار د مرض په وجه حج ځنډول:** که پر يو کس حج فرض سوی وي او د هغه مور يا پلار داسي مريض وي چي د ده خدمت ته محتاجه وي، نو ده ته پکار دي چي د حج اراده وځنډوي او د مور و پلار خدمت پر ځای کړي.

**مسئله (۳): د کوچني بچي په وجه حج ځنډول:** که پر يو ښځي حج فرض سوی وي ليکن د هغې په غېږ کي کوچنی بچی وي چي د هغه د پالني او ساتني پر بناء ښځه فوراً له حج کولو څخه عاجزه وي، نو د بچي په رعايت کي د هغې لپاره په حج کي تأخير جائز دی.

**مسئله (۴): د ساه لنډۍ يا د نزلې او زکام د مرض په وجه حج ځنډول:** که څوک د ساه لنډۍ په مرض مبتلا وي چي په لږ تللو سره يې ساه بنديږي، يا د نزلې او زکام مسلسل مريض وي چي لږيخ هم نه سي زغملای، نو د هغه لپاره په حج کي د تأخير کولو ګنجائش نسته، بلکي پر هغه هم په اول وخت کي حج اداء کول لازم دي او مذکوره امراض د هغه لپاره عذر نه سي جوړېدلای (ګواکي مناسب سفري انتظامات دي وکړي، مثلاً د ضرورت کپړې، دواګاني، اسباب او داسي نور، او بيا دي د حج فريضه اداء کړي، همدا حکم د فشار (بلډ پرېشر) د مريض هم دی). (انوار الايضاح بحوالهٔ غنية الناسک)

## د حج د فرضيت شرطونه

﴿۱۲۲۱﴾ وَشُرُوْطُ فَرْضِيَّتِهٖ ثَمَانِيَةٌ عَلَى الْأَصَحِّ او د حج د فرض کېدلو شرطونه اته (۸) دي. د صحيح ترين قول مطابق الْإِسْلَامُ (۱) مسلمان کېدل.

﴿۱۲۲۲﴾ وَالْعَقْلُ (۲) او عاقل کېدل.

﴿۱۲۲۳﴾ وَالْبُلُوْغُ (۳) او بالغ کېدل.

﴿۱۲۲۴﴾ وَالْحُرِّيَّةُ (۴) او آزاد کېدل.

﴿۱۲۴۵﴾ وَالْوَقْتُ (۵) او (د حج) وخت کېدل.

**لغات**: ﴿شروط﴾ جمع د شَرْطٌ ده: شرطونه او قيود. شرط هغه قيد ته وايي چي له هغه څخه بغير شی نه پوره کيږي نېکن د هغه شي له حقيقت څخه خارج وي.

**تشريح**: د حج د فرض کېدو لپاره اته (۸) شرطونه دي، کله چي په يو کس کي دغه ټوله شرطونه موجود سي، نو پر هغه حج فرض کيږي، او که دا ټوله شرطونه، يا له دوی څخه يو هم پکښي موجود نه سي، نو پر هغه حج نه فرض کيږي، شرطونه دا دي:

①... الإسلام (مسلمان کېدل)، نو پر کافر حج فرض نه دی او نه د يو کافر لپاره د حرم په حدودو کي داخلېدل جائز دي.

②... العقل (عاقل کېدل)، نو پر مجنون (لېوني) حج فرض نه دی. او که د مجنون ولي (سرپرست يعني پلار وغيره) د هغه له طرفه احرام وتړي او بيا په هغه سره د حج ارکان اداء کړي، نو دا د مجنون له طرفه نفلي حج کيږي او ولي ته هم ثواب حاصليږي.

③... البلوغ (بالغ کېدل)، نو پر نابالغه هلک حج فرض نه دی، لهذا کوم څوک چي له بلوغ څخه مخکي حج وکړي، نو په دې سره د هغه فرضي حج نه اداء کيږي، بلکي دا نفلي حج کيږي.

④... الحرية (آزاد کېدل)، نو پر غلام حج فرض نه دی، او نه د هغه په حج کولو سره د هغه فرضي حج اداء کيږي، بلکي تر آزادېدو وروسته که استطاعت وي، نو دوباره به حج کوي.

⑤... الوقت (د حج وخت کېدل)، يعني د حج استطاعت (وس لرل) د حج په زمانه کي کېدل ضروري دي، او د حج زمانه هغه د حج مياشتي دي: شوال، ذو القعده او د ذو الحجې د شروع لس ورځي، لهذا له وخت څخه مخکي به څوک صاحب استطاعت نه شمېرل کيږي. (شفاء الارواح)

﴿۱۲۴۶﴾ وَالْقُدْرَةُ عَلَى الزَّادِ (۶) او قدرت لرل (دلاري او سفر) پر توښه وَلَوْبِمَكَّةَ که څه هم په مکه کي وي بِنَفَقَةٍ وَسَطٍ په متوسط (ميانه) خرچ سره (پر توښه قدرت لرل) وَالْقُدْرَةُ عَلٰى رَاحِلَةٍ مُخْتَصَّةٍ بِهٖ (۷) او قدرت لرل پر داسي سپارلۍ کوم چي د ده سره خاص وي أَوْعَلٰى شِقِّ مَحْمَلٍ يا (قدرت لرل) د کجاوې پر يوه حصه بِالْمِلْكِ وَالْإِجَارَةِ په ملکيت او (يا) په کرايه سره (يعني پر سپارلۍ يا شقِ محمل باندي د ده قدرت لرل به په دې توګه وي چي دئ به يې يا خپله مالک وي يا په

کرایه به یې نیولی وي) لَا الْإِبَاحَةِ وَالْإِعَارَةِ نه په مباح کولو او خواست کولو سره (یعني پر سپارلی یا شق محمل باندي د ده قدرت لرل به په دې توګه نه وي چي یو چا احسان په توګه ورکړی اوږته مباح کړی اوي. یا ده له یو چا څخه خواست کړی وي او هغه ورکړی وي) لِغَيْرِ أَهْلِ مَكَّةَ دمکې له خلکو څخه بغیر د نورو لپاره(یعني دا شرط او حکم د بهرني خلکو لپاره دی. نه د هغه خلکو لپاره کوم چي په مکه یا د مکې شا وخوا ته اوسیږي) وَمَنْ حَوْلَهُمْ إِذَا أَمْكَنَهُمُ الْمَشْيُ بِالْقَدَمِ وَالْقُوَّةِ بِلَا مَشَقَّةٍ او څوک چي (په مکه مکرمه یا) د دوی (اهل مکه) په شا وخوا کي دي (پر هغو حج هغه وخت فرض کیږي) کله چي هغوی لره په خپل طاقت سره بېله مشقته په پښو (پیاده) تلل ممکن وي وَإِلَّا فَلَا بُدَّ مِنَ الرَّاحِلَةِ مُطْلَقًا کنه چاره نسته له سپارلی څخه مطلقاً (یعني که بېله مشقته پیاده تلل ورلره ممکن نه وي. نو بیا مطلقاً سپارلي ضروري ده) وَتِلْكَ الْقُدْرَةُ فَاضِلَةٌ عَنْ نَفَقَتِهِ وَنَفَقَةِ عِيَالِهِ إِلَىٰ حِيْنِ عَوْدِهِ او دا قدرت به (یعني د سفر پر توښه او خرڅ چي کوم قدرت لري. هغه) به زائد (اضافه) وي د ده او د ده د بچو له نفقې (خرڅې) څخه د ده تر واپس راتلو پوري وَعَمَّا لَا بُدَّ مِنْهُ كَالْمَنْزِلِ وَأَثَاثِهِ وَآلَاتِ الْمُحْتَرِفِيْنَ وَقَضَاءِ الدَّيْنِ او (همدارنګه زائد به وي) له هغه شیانو څخه چي چاره ځني نسته (یعني ضروري شیان) لکه کور، د کور سامان او د کسبګرو (پېشه ګرو) آلې او د قرض اداینه.

**لغات**: ﴿زاد﴾ د سفر توښه او خرڅه، هغه خوراکه کوم چي یې انسان په سفر کي د ځان سره وړي (د لاري خوراکه او خرڅه)، جمع: أَزْوَادٌ و أَزْوِدَةٌ، ﴿نفقة﴾ د خوراک و څښاک او داسي نورو ضروریاتو خرڅه (خرڅه)، ﴿راحلة﴾ سپارلي، د سپرتیا لائق اوښ. د سفر او بار وړلو لپاره طاقتور اوښ یا اوښه(د مذکر او مؤنث دواړو لپاره مستعمل دی)، جمع: رَوَاحِل، ﴿مَحْمِل﴾ کجاوه (هودج)، د لښتو او لرګیو څخه جوړ سوی هغه ځای کوم چي به پر اوښ د سپرېدو او کښېنستلو لپاره ایښوول کېدی. همدارنګه هغه خورجین او لویه خلته (د خورجین په څېر) کوم چي د چارپای دواړو طرفونو ته ځړول سوې وي چي په هغه کي بار او سامان ایښوول کیږي، جمع: مَحَامِل، ﴿شق محمل﴾ یوه حصه د کجاوې، پر اوښ چي کومه کجاوه پرته وي د هغې دوې حصې وي او په هره حصه کي یو، یو سړی کښېني. یوې حصې ته "شق محمل" وایي، همدارنګه پر اوښ یا داسي بل سپارلي چي کومه خورجین او خلته ایښوول سوي وي. د هغه هم دوې حصې وي کوم چي دواړو طرفونو ته راځړیږي، هري حصې ته یې "شق محمل" وایي. ﴿مِلك﴾ د ضرب د باب مصدر دی: مالک کېدل (مالک جوړېدل)، ملکیت،

﴿إجارة﴾ د افعال د باب مصدر دی: په کرایه ورکول، په اُجرت (مزدوري) نیول. ﴿إباحة﴾ دا هم د افعال د باب مصدر دی: مباح کول، روا ګرځول، له یو شي څخه مفته نفع اخیستل. ﴿إعارة﴾ دا هم د افعال د باب مصدر دی: بېله عوضه یو شی ورکول چي بیرته به یې واپس کوي. خواست کونکي ته شی ورکول. مثلاً زید خالد ته خواست وکړي چي فلانکی شی ما ته دیو څو وخت لپاره راکړه! چي زما ضرورت پوره سي بیرته یې درکوم، او خالد هغه شی ورکړي، نو دې ته عاریتاً ورکول وایي. یا په بله وینا د مفت استعمال لپاره د ضرورت تر وخته پوري شی ورکول او وروسته څني اخیستل. ﴿حول﴾ شاوخوا، اطراف. ﴿قدم﴾ قدم، د پښې خپره، یعني د پښې هغه حصه کوم چي پر ځمکه ایښوول کیږي. ﴿مشقة﴾ تکلیف، مشقت، جمع: مَشَاقّ و مَشَقَّات. ﴿منزل﴾ استوګنځی، ځای، جمع: مَنَازِل. ﴿أثَاث﴾ کورنی سامان. ﴿محترفین﴾ واحد د مُحْتَرِفٌ دی: کسب او پیشې والا، پیشه ګر.

**تشریح:** ⑥... شپږم شرط "زاد" یعني د حج د لاري په توښه باندي قدرت لرل دي. ⑦... اُووم شرط "راحله" یعني د سپر تیا په شي (سپارلي) باندي قدرت لرل دي.

په زاد او راحله باندي د قدرت لرلو مطلب دا دی چي د ده سره به له اصلي او بنیادي ضروریاتو (کور، کالیو، کورني سامان وغیره) څخه بغیر نور زائد دومره مال وي چي په هغه سره مکې شریفي ته د تګ راتګ او هلته د استوګني او خوراک خرچ اداء کولای سي او د واپس کېدلو تر وخته پوري د خپل هغه اهل وعیال د خرچ انتظام هم کولای سي چي د هغوی نفقه د ده پر ذمه واجب ده.

مختصة به إلخ: یعني کوم څوک چي په مکه شریفه کي نه اوسیږي، د هغه لپاره دا هم شرط دي چي په راحله باندي د ده قدرت لرل خو به یا د ملکیت په توګه وي (یعني راحله به د ده خپل ملکیت وي. یا په بله وینا: دئ به یې مالک وي) یا به د اجارې په توګه وي، یعني یا د ده سره به دومره مال وي چي د کجاوې یو طرف (یا په اوس کي وخت کي د طیارې یا موټر یو سیټ) تر مکې شریفي پوري په کرایه نیولای سي (مخکي چي پر اُوښ وغیره به کومه کجاوه یا د سپر تیا شی پروت وو، په هغه کي به راسته او چپه طرف ته دوه ځایه وه چي په هر طرف کي به یو مسافر کښېنستی).

لا الإباحة إلخ: یعني په راحله باندي د ده قدرت لرل به د اباحت یا عاریت په توګه نه وي، یعني که بل چا خپله سپارلي ورکړې وي، یا د سفر د خرچ او اخراجاتو لپاره یې مال ورکړی وي چي په دې باندي حج وکړه!، نو په دې سره په زاد او راحله باندي قدرت نه ثابتیږي نو پر داسي کس حج نه فرض کیږي او دا مال او سپارلي قبلول پر هغه نه لازمیږي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

ومن حولهم إلخ: څه مخکې ذکر سوه چې د حج د فرضیت له شرطونو څخه یو شرط په راحله باندې قدرت لرل دي، لېکن د مکې شریفې او د مکې شریفې د شا وخوا (اطرافو) پر اوسېدونکو د حج فرض کېدلو لپاره راحله شرط نه ده، لهذا که د هغه ځای له اوسېدونکو څخه یو څوک په راحله باندې قدرت نه لري، نو هم پر هغه حج فرض کیږي، په دې شرط چې هغه بېله مشقته په خپل طاقت سره په پښو (پیاده) تللو باندې قادر وي او که هغه بېله مشقته په پیاده تللو باندې قادر نه وي، نو د هغه په حق کې به هم د حج د فرضیت لپاره راحله شرط وي.

له "حَوالیِ مکه" (د مکې له اطرافو) څخه څه مراد دي؟، نو په دې باره کې دوه قوله دي: ① یو قول دا دی چې کوم خلک د مکې شریفې او میقات تر مینځ آباد دي، هغوی ته ولو ته د "حَوالیِ مکه" اوسېدونکي ویل کیږي، ② دویم دا چې د هغوی او مکې شریفې تر مینځ له دریو ورځو (مودتِ سفر) څخه کمه مسافه وي، نو هغوی ته وله دا اهلِ مکه په حکم کې دي. (شفاء الارواح بحوالۀ عمدة الفقه)

وتلك القدرة إلخ: د دې تشریح په شروع کې وسوه.



## د حج لپاره به حوائجِ اصلیه نه خرڅول کیږي؟

**مسئله (۱)**: د کور ضروري سامان مثلاً یخچال، کولر او داسې نور که څه هم قیمتي وي، د هغوی په وجه به د حج د وجوب حکم نه کول کیږي، لهذا د هغوی خرڅول او حج ته تلل ضروري نه دي. بلکې د حج د وجوب لپاره له حوائجِ اصلیه وو څخه زائد مال موجودېدل ضروري دي. (غنیة الناسک ص: ۲۰)

## که د حج لپاره مال وي خو د یو شي رانیولو ته ضرورت وي؟

**مسئله (۲)**: که د یو چا سره د حج په اندازه مال موجود وي، لېکن هغه ته د کور لپاره د یو شي رانیولو ته ضرورت وي، مثلاً د کور د برق لپاره څو شمسیانو او بېټریو ته ضرورت وي، نو که د حج وخت راغلی وي، دا شیان دې نه رانیسي بلکې اول دې حج وکړي او که د حج وخت لیرې وي، نو د ضرورت لپاره هغوی رانیولای سي او پر هغه حج نه فرض کیږي. (غنیة الناسک ص: ۲۰ بتصرفٍ)

## اول به حج کول کیږي او که واده؟

**مسئله (۳)**: که واده ته ضرورت وي او د حج وخت راسي، نو اولاً دې حج وکړي، او که حج ته ډېر وخت پاته وي، نو واده کولو لره ترجیح ده، همدا حکم د خپل بچي د واده وغیره دی چې د بچي د واده په وجه حج مؤخر کول جائز نه دي. (غنیة الناسک ص: ۲۰)

﴿۱۲۲۸﴾ وَيُشْتَرَطُ الْعِلْمُ بِفَرْضِيَّةِ الْحَجِّ لِمَنْ أَسْلَمَ بِدَارِ الْحَرْبِ او شرط دی علم (خبرېدل) د حج په فرضیت د هغه کس لپاره کوم چې اسلام راوړی وي په دارُ الحرب کې أَوِ الْكَوْنُ بِدَارِ

اَلْإِسْلَامِ یا (شرط دي) په دار الاسلام کي کېدل (لهذا که څوک په دارُالاسلام او مسلمان ملک کي وي. نو د هغه لپاره د حج د فرضیت علم هم شرط نه دی).

**تشریح**: ⑧... اتم او آخري شرط دا دی چي د حج په فرضیت به عالم (خبر) وي (چي اوس په ما باندي حج فرض دی). برابره ده علمِ حقیقي وي او که علمِ حکمي وي، د حکمي مطلب دا دی چي سړی په دارُ الاسلام کي یا په اسلامي چاپېریال کي اوسیږي چي هلته اوسېدونکی به حکماً په فرضیت عالم شمېرل کیږي او د هغه لپاره به دا خبره عذر نه شمېرل کیږي چي ما ته د فرضیت علم نه وو. او د کوم چا استوګنه او پالنه چي په دارُ الحرب کي په غیر اسلامي چاپېریال کي سوې وي او هغه ته له مخکي څخه د حج د فرضیت علم نه وي سوی، نو پر هغه حج فرض نه دی، لېکن که هغه یې وکړي، نو بیا هم د هغه حج اداء کیږي. (انوار الایضاح)

## د حج اداء کولو د وجوب شرطونه

﴿۱۲۴۸﴾ وَ شُرُوْطُ وُجُوْبِ الْأَدَاءِ خَمْسَةٌ او د (حج د) اداء کولو د واجبېدلو شرطونه پنځه دي عَلَى الْأَصَحِّ د صحیح ترین قول مطابق صِحَّةُ الْبَدَنِ (۱) د بدن روغتیا وَزَوَالُ الْمَانِعِ الْحِسِّيِّ عَنِ الذَّهَابِ لِلْحَجِّ (۲) او حسّي مانع زائلېدل حج ته له تللو څخه (یعني کوم څه چي له حج څخه مانع او خنډ وي، د هغه ختمېدل) وَأَمْنُ الطَّرِيْقِ (۳) او لاره په امن کېدل.

﴿۱۲۴۹﴾ وَعَدَمُ قِيَامِ الْعِدَّةِ (۴) او (د ښځي) عده نه پاتېدل (چي ښځه به په عده کي نه وي).

﴿۱۲۵۰﴾ وَ خُرُوْجُ مَحْرَمٍ (۴) او (د ښځي سره) محرم سړی وتل (یعني داسي سړی ورسره تلل چي د هغه سره د ښځي نکاح د همېشه لپاره حرامه وي) وَلَوْ مِنْ رَضَاعٍ أَوْ مُصَاهَرَةٍ که څه هم (هغه محرم ادنکاح حُرمت!) له رضاع یا له خسرګني قرابت څخه وي (یا په بله وینا داچي که څه هم د دوی ترمینځ نکاح د رضاع یا د خېښي توب د قرابت په وجه حرامه وي) مُسْلِمٍ مَأْمُوْنٍ عَاقِلٍ بَالِغٍ أَوْ زَوْجٍ لِامْرَأَةٍ (داسي محرم) چي هغه مسلمان، په امن، عاقل، بالغ وي یا د ښځي خاوند وي فِيْ سَفَرٍ په سفر کي (یعني دا د ښځي سره مذکوره محرم یا خاوند کېدل په هر سفر کي شرط دي).

﴿۱۲۵۱﴾ وَالْعِبْرَةُ بِغَلَبَةِ السَّلَامَةِ بَرًّا وَبَحْرًا او اعتبار د سلامتیا غالب والي لره دی په وچه او سمندر کي (یعني د مفتیٰ به قول مطابق د زمیني لاري او دریابي لاري په امن کېدلو کي معتبر دا ده چي اکثره

لاروبان به صحيح سالم را واپس کیږي. یا معنیٰ دا چي د لاري د سلامتیا او په امن کېدو به غالب ګومان وي) عَلَی الْمُفْتیٰ بِهٖ پر هغه قول چي فتویٰ باندي ورکول سوې ده.

**لغات:** ﴿زوال﴾ د نصر د باب مصدر دی، کله چي د دې په صله کي عَنْ راسي، نو معنیٰ یې ده: ختمېدل، لیري کېدل. ﴿مَحْرِم﴾ هغه قریب ته وایي چي نکاح ور سره حرامه وي (یا په بله وینا چي د قرابت په وجه نکاح ورسره ناجائز وي)، جمع: مَحَارِم. ﴿مُصَاهرة﴾ د مفاعلې له بابه اسم مصدر دی: د خسرتوب او خواښې توب قرابت، یا په بله وینا د خېښۍ او زومتوب قرابت. ﴿بَـرّ﴾ وچه ځمکه (زمیني) لاره، جمع: بُرُوْرٌ. ﴿البحر﴾ سمندر، دریاب، جمع: أَبْحُرٌ و بُحُوْرٌ.

**تشریح:** مخکي چي کوم شرطونه تېر سوه، هغه د حج د فرضیت شرطونه وه، یعني د هغوی تر موجودېدلو وروسته حج فرض کیږي او لازمیږي، اوس له دې ځایه د حج د اداء د وجوب شرطونه بیانوي، یعني د حج اداء کول بیا هغه وخت لازمیږي او واجبیږي کله چي دا ټوله شرطونه موجود سي، لهذا په کوم کس کي چي د حج د فرضیت شرطونه موجود وي، لېکن د وجوبُ الاداء نه شرطونو څخه یو پکښې نه وي، نو بیا خپله پر هغه حج اداء کول نه فرض کیږي، بلکي د خپل ځان له طرفه بل څوک استول، یا له خپل مال څخه د حج اداء کولو وصیت کول باندي فرض کیږي، دلته مصنف رَحِمَهُ الله "علی الأصح" ځکه ویلي دي چي د بعضو په وینا هم دا د حج د فرضیت شرطونه دي، نو مصنف رَحِمَهُ الله د "أصح" په قید سره د هغو له قول څخه احتراز وکړی.

صحة البدن: ① ... اول شرط د بدن روغتیا او سلامتیا ده، لهذا شل او ګوډ، فالج وهلی روند او داسي پخواني مریض چي د هغه د روغتیا (جوړېدلو) اُمید نه وي او هغه کس چي دواړي پښې یې یو وه پښه یې پرې سوې وي، یا دواړه لاسونه یا یو لاس یې پرې سوی وي او داسي بوډا کوم چي خپله پر سپارلي نه سي کښېنستلای او بغیر له سخت تکلیف او مشقت څخه پر سپارلي نه سي ټینګېدلای، نو پر دغه ټولو د حج اداء کول واجب نه دي، لېکن څرنګه چي د حج د فرضیت شرائط پکښې موجود دي، نو ځکه حج خو فرض سو، لېکن اداء کول یې باندي واجب نه دي، بلکي فی الحاله له خپل مال څخه بل څوک د خپل ځان له طرفه استول او حج په کول واجب او لازم دي، او که داسي نه وکړي، نو د مرګ په وخت کي د دې وصیت کول واجب او لازم دي.

وزوال المانع: ② ... مانع حسّی، مثلاً هغه په بندیخانه او محبس کي بندي وي، یا د حکومت له طرفه حج ته پر تللو ممانعت او بندیز وي، (لکه اوس چي د اټکلي کرونا په وجه پر سفر او حج بندیز ...ملی دی. یا

مثلاً يو وخت حكومت په وېزه او ټكټ باندي بنديز لګولی وي)، نو پر داسي كس د حج اداء كول واجب نه دي بلكي هغه دي خپل پر ځای بل څوك واستوي، يا دي د مرګ په وخت كي د حج وصيت وكړي، او دا حكم هغه وخت دی كله چي دا عذر يعني قيدي كېدل يا د حكومت له طرفه ممانعت او بنديز د هغه د مرګ تر وخته پوري وي، لهذا كه د مرګ تر وخته پوري نه وي او بېر ته زائل سي، نو د عذر تر زائلېدلو وروسته خپله د هغه لپاره حج كول واجب دي.

وأمن الطّريق: ③... يعني د ځان او مال له هلاكت او ډاكه ماری څخه د لاري په امن كېدل، او د دې معيار دا دی چي اكثره خلك به صحيح سالم ځي راځي، لهذا كه صرف بعضي وخت نابېره په لاره كي غلا او ډاكه ماري كيږي، يا كښتۍ كله نا كله ډوبيږي، نو بيا هم داسي لاره په امن شمېرل كيږي او د حج اداء كول واجب كيږي.

وعدم قيام العدة: ④... دا شرط صرف د ښځي سره خاص دی چي ښځه به په عده كي نه وي، يعني كه د هغې خاوند وفات سوی وي، يا يې طلاق وركړی وي، نو تر څو چي هغه په عده (عدت) كي وي، تر هغه وخته پوري د حج اداء كول پاندي واجب نه دي.

وخروج محرم إلخ: ⑤... يعني پر ښځي د حج اداء كول هغه وخت واجبيږي كله چي د هغې سره مَحرم وي يا خاوند وي، مَحرِم هغه قريب ته وايي چي د همېشه لپاره نكاح ور سره حرامه وي، برابره ده د نكاح دا حُرمت د قرابت په وجه وي لكه ورور، ځوی او داسي نور، يا د رضاعت په وجه وي لكه رضاعي ورور، مثلاً دواړو په كوچنيوالي كي ديوې ښځي شيدې رودلي وي، نو دا دواړه په خپل مينځ كي رضاعي ورور او خور سوه، يا د نكاح حُرمت د مصاهرت يعني د خپښۍ د تعلق په وجه وي، مثلاً د خولښي سره د هغې زوم وي، چي د دوی تر مينځ هم حرمت ابدي دی.

مسلم: له دې ځايه د مَحرِم قريب شرطونه بيانوي چي د مَحرِم لپاره دا شرط دي چي هغه به مسلمان وي؛ ځكه كه كافر وي، نو دا خطره سته چي هسي نه له اسلام څخه د ښځي داړولو كوښښ وكړي.

مأمون: يعني مَحرِم به داسي كس وي چي د هغه له طرفه به اطمينان وي، يعني حقيقتاً به ديندار وي؛ ځكه كه هغه بدمعاشه، بې شرمه او فاسق وي، نو ښځه خپله له هغه څخه نه سي په امن كېدلای؛ حال دا چي د مَحرِم له ملګر تيا څخه مقصود همدا دي چي د ښځي عزت او ناموس محفوظ وي او هغه په فاسق كي مفقود دي.

عاقل بالغ: يعني محرم به عاقل او بالغ هم وي؛ ځكه لېوني او بچی دواړه خپل حفاظت ته محتاجه دي، نو د بل چا به څه حفاظت وكړي سي!.

والعبرة بغلبة السلامة: مخکي یو شرط دا ذکر سو چې لاره به په امن وي، اوس د هغه وضاحت کوي چې د لارې په امن کېدو کې اعتبار دې خبرې لره دی چې غالبه (اکثره) لارویان به صحیح سالم را واپس کیږي (کماز کرنا)، علامه ابن نجیم رَحِمَهُ الله د فتح القدیر په حواله سره لیکلي دي چې د سلامتیا د غالبوالي مطلب دا دی چې بېره به نه وي (د ځان او مال پر هلاکت)، لهذا که د ډاکوګانو بېره وي او هغوی ځو واره غالب سوي وي او مسافران بذات خود کمزوري وي، یا مثلاً په سمندر کې د کښتۍ د ډوبېدلو یا د ډاکوګانو د حملې غالبه بېره وي، نو په داسې صورت کې د حج اداء کول نه واجبیږي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح بتغیرٍ)

## د حج شرائط او فرائض

﴿۱۲۵۲﴾ وَيَصِحُّ أَدَاءُ فَرْضِ الْحَجِّ بِأَرْبَعَةِ أَشْيَاءَ لِلْحُرِّ او صحیح کیږي د فرض حج اداء کول په څلورو شیانو سره د آزاد کس لپاره الْإِحْرَامُ وَالْإِسْلَامُ وَهُمَا شَرْطَانِ (۱) احرام (محرم کېدل چې احرام به یې تړلی وي) (۲) اسلام (مسلمان کېدل)، او دا دواړه شرط دي ثُمَّ الْإِتْيَانُ بِرُكْنَيْهِ (۳، ۴) او بیا د حج دوه رکنونه اداء کول وَهُمَا الْوُقُوفُ مُحْرِمًا بِعَرَفَاتٍ لَحْظَةً مِنْ زَوَالِ يَوْمِ التَّاسِعِ إِلَى فَجْرِ يَوْمِ النَّحْرِ او هغه دوه رکنونه (یو دا چې) په عرفات کې د احرام په حالت کې د یوه ګړۍ لپاره درېدل دي (د ذو الحجې) د نهمې ورځې له زوال څخه د لوی اختر د ورځې تر سهاره پورې (یعني په دې دوران کې هلته په عرفات کې یو ګړی درېدل د حج رکن دی) بِشَرْطِ عَدَمِ الْجِمَاعِ قَبْلَهُ مُحْرِمًا د جماع (کورلوالي) نه کولو په شرط سره تر هغه مخکې د احرام په حالت کې وَالرُّكْنُ الثَّانِي هُوَ أَكْثَرُ طَوَافِ الْإِفَاضَةِ فِي وَقْتِهِ او دویم رکن د طواف افاضه (طواف زیارت) اکثره حصه اداء کول دي د هغه په خپل وخت کې وَهُوَ مَا بَعْدَ طُلُوعِ فَجْرِ النَّحْرِ او د هغه وخت د لوی اختر له صبح صادق راختلو څخه دی (یعني چې د لوی اختر په ورځ کله د سهار سپېدې وچاودي او صبح صادق سي، نو د طواف زیارت وخت شروع سو).

**لغات**: ﴿لحظة﴾ لږ ګړی، مختصره وقفه، جمع: لَحَظَاتٌ، ﴿طواف إفاضة﴾ د افاضه معنیٰ ده: روانېدل، او له طواف افاضه څخه مراد "طواف زیارت" دی، همدارنګه د طواف زیارت بل نوم طواف یوم نحر دی، په حج کې طواف زیارت رکن او فرض دی او د هغه اداء کول ضروري دي، د طواف زیارت

لپاره نور نومونه هم سته چې شپږ نومونه يې مشهوره دي: (۱) طواف زيارت. (۲) طواف فرض. (۳) طواف افاضه. (۴) طواف رکن. (۵) طواف يوم النحر. (۶) طواف مفروض. او د طواف زيارت د صحيح کېدلو ډېر شرطونه دي چې له هغوی څخه مصنف رَحِمَهُ الله صرف يو شرط بيان کړی دی او هغه دا چې د طواف زيارت اکثره حصه يعنې لږ تر لږه څلور شوطه (څلور چکره) پوره کول په طواف کې فرض او شرط دي، کنې طواف نه کيږي.

**تشريح:** له دې ځايه د حج هغه شرائط او ارکان بيانوي چې د هغوی په پوره کولو سره د حج اداء صحيح کيږي:

(۱) ... الإحرام: اول شرط د حج د صحيح کېدلو لپاره احرام دی، نو له احرام څخه بغير نه صحيح کيږي.

(۲) ... الإسلام: دويم شرط مسلمان کېدل دي، نو د کافر حج نه صحيح کيږي.

(۳) ... الوقوف: دا دريم شی (يعني وقوف) او څلورم شی د رکن له قبيل څخه دي، نو دريم شرط په عرفات کې د احرام په حالت کې وقوف کول دي، که څه هم ديوه گړي لپاره وي، په دې شرط چې له وقوف عرفه څخه مخکې يې د احرام په حالت کې جماع نه وي کړې؛ ځکه که له وقوف عرفه څخه مخکې يې جماع کړې وي، نو د هغه وقوف نه صحيح کيږي، او د وقوف وخت د عرفات په ورځ يعني په نهمه د ذی الحجې د لمر له زوال څخه شروع کيږي او د لسمي (۱۰) ذی الحجې له صبح صادق (سپېده چاود) څخه تر لږ مخکې پوري پاتيږي، لهذا که څوک له احرام څخه بغير وقوف وکړي، يا د وقوف په وخت کې ديوه گړي لپاره هم عرفات ته داخل نه سي، نو د هغه د حج رکن وقوف اداء نه سو.

(۴) ... والرکن الثاني: دويم رکن د طواف زيارت اکثره حصه (څلور شوطه) اداء کول دي، نو د رکن اداء کېدلو لپاره اکثره (يعني څلور) شوطونه کافي دي، او پاته درې شوطه واجب دي چې د هغوی په پرېښودلو باندې دَم (د څاروي ذبح کول) واجبيږي، د هغه وخت د ذی الحجې د لسمي له صبح صادق څخه شروع کيږي او په ټوله عمر کې په يو وخت کې اداء کول فرض دي، لېکن د قربانۍ په ورځو کې د هغه اداء کول واجب دي. (شفاء الارواح بحوالۀ عمدة الفقه)

## د حج واجبات (له ميقات څخه احرام تړل)

«۱۲۵۳» وَ وَاجِبَاتُ الْحَجِّ او د حج واجبات (دا) دي. (دوويشت [۲۲] واجبات يې ذکر کړي دي).

«۱۲۵۴» إِنْشَاءُ الْإِحْرَامِ مِنَ الْمِيْقَاتِ (۱) احرام له ميقات څخه شروع کول.

**تشریح**: له دې ځایه د حج واجبات بیانوي، د واجباتو حکم دا دی چې که هغوی پاتـه سي، برابره ده په هېره وي یا قصداً وي یا په مسئلې د نه خبرېدلو په وجه وي، په هر صورت کې حج اداء کیـږي لېکن په دېرو ص... تونو کي دَم یعنې د څاروي ذبح کول واجبیـږي او د قصداً پرېښوولو په صورت کي گنهکاره کیږي هم، صرف په دَم سره نه معاف کیږي تر څو چې یې توبه نه وي کړې:

(۱)... له میقات څخه احرام تېرل، یعنې بغیر له احرامه به تر میقات نه تېرېږي، کنې د واجب کار پرېښوونکي گرځي.

میقات په اصل کي تاکل سوي وقت ته ویل کیږي، بیا وروسته د دې په استعمال کي نور وسعت راغلی او (مجازاً) تاکل سوي ځای ته هم میقات وویل سوه، له میقات څخه دلته هغه تاکلي ځایونه مراد دي چې بغیر له احرامه له هغوی څخه تېرېدل جائز نه دي، نو هلته به احرام تړل کیـږي، دا د مکې شریفې څلور سره طرفونو ته معیّن ځایونه دي، او د هري علاقې لپاره جلا میقات دی، مثلاً د اهل آفاق (آفاقي) یعنې کوم خلک چې له میقات څخه بهر اوسیږي یعنې د نورو ملکو خلک (مثلاً افغانستان، پاکستان والا) د هغو لپاره جلا میقات دی، همدارنگه د اهلِ حِلّ یعنې کوم خلک چې په میقات کي دننه او د حرم له حدودو څخه بهر اوسیږي، د هغو میقات جلا دی، همدارنگه د اهلِ حرم یعنې د اهلِ مکه او د حرم په حدودو کي د اوسېدونکو لپاره جلا میقات دی (د حرم حدود له مکې شریفې څخه د مدینې شریفې پر طرف درې میله دي او د عراق او طائف پر طرف اُووه، اُووه میله دي او د یمن پر طرف هم اُووه میله دي، دا له هر طرف څخه د حرم حدود دي، د میقاتو نومونه او ځایونه په لویو کتابو کي په تفصیل سره بیان سوي دي)

**یادونه**: د حج واجبات په بنیادي توگه شپږ دي: ① وقوفِ مزدلفه، ② د صفا و مروه تر مینځ سعی کول، ③ جِمار (شیطانان) ویشتل، ④ قارن او متمتع لره دمِ شکر ورکول، ⑤ حلق یا قصر کول، ⑥آفاقي حاجي لره طواف وداع (طوافِ صدر) کول، خو مصنف رَحِمَهُ الله دوویشت (۲۲) واجبات بیان کړي او بعضو تر پنځه دېرشو (۳۵) پوري رسولي دي، هغه په حقیقت کي بلا واسطه د حج واجبات نه دي، بلکې د حج د افعالو واجبات دي (یا په بله وینا د حج د واجباتو مُلحقات دي) مثلاً بعضې د احرام واجبات دي او بعضې د طواف دي او په هغوی کي د حج د شرائطو واجبات هم شمېرل سوي دي، بلا واسطه د حج واجبات صرف شپږ دي.

(مصنف رَحِمَهُ الله خو دلته دوویشت واجبات او مُلحقات د واجباتو ذکر کړي دي، که هغوی ته په غور سره وکتل سي او سره جلا کړل سي، نو تقریباً پنځه دېرشو (۳۵) ته رسیږي).

## تر لمر لوېدو پورې په عرفات کې وقوف کول

﴿۱۳۵۵﴾ وَ مَدُّ الْوُقُوفِ بِعَرَفَاتٍ إِلَى الْغُرُوْبِ (۲) او په عرفات کې وقوف (درېده) تر لمر لوېدو پورې اوږدول.

**تشریح:** (۲)... مخکې ذکر سوه چې د وقوف عرفه وخت د ذو الحجې په نهمه ورځ د لمر له زوال څخه وروسته شروع کېږي او تر هغه مخکې وقوف نه صحیح کېږي. پر دې موقع په دعاګانو مشغولېدل او ذکر و تلبیه ویل مسنون دي، اوس دلته فرمايي چې د حج له واجباتو څخه بل واجب دا دی چې په عرفات کې به تر لمر لوېدو پورې پاتېږي، لهذا که تر لمر لوېدو مخکې له عرفات څخه ووځي، نو د واجب پرېښوولو په وجه دَم لازمېږي. (انوار الایضاح بتغیر)

## په مزدلفه کې وقوف کول

﴿۱۳۵۶﴾ وَالْوُقُوفُ بِالْمُزْدَلِفَةِ فِيمَا بَعْدَ فَجْرِ يَوْمِ النَّحْرِ وَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ (۳) او په مزدلفه کې درېدل (پاتېدل) د لوی اختر د ورځې له سهار (صبح صادق) څخه وروسته او تر لمر لوېدو مخکې.

**لغات:** ﴿مزدلفه﴾ دا د منیٰ او عرفات تر مېنځ یو لوی میدان دی چې د هغه درې سره طرفونو ته غر دی، د مزدلفې حدود متعیّن دي چې هلته وقوف کول لازم دي.

**تشریح:** (۳)... د ذی الحجې په لسمه (یعني د لوی اختر په ورځ) له صبح صادق (سپېده چاود) څخه وروسته تر لمر راختلو پورې د څه وخت لپاره په مزدلفه کې پاتېدلو ته وقوف مزدلفه وايي، دا هم واجب دي. لهذا که څوک له صبح صادق څخه مخکې یا تر لمر لوېدو وروسته په مزدلفه کې وقوف وکړي، نو د هغه وقوف د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز نه صحیح کېږي. (ډېر خلک د مزدلفې له حدودو څخه مخکې قیام کوي او شپه تېروي او بیا تر لمر راختلو وروسته له مزدلفې څخه تېرېږي، څرنګه چې له داسې خلکو څخه وقوف مزدلفه فوتېږي، نو ځکه پر هغو دَم واجبېږي).

## شیطانان ویشتل (رمی الجمار)

﴿۱۳۵۷﴾ وَ رَمْيُ الْجِمَارِ او د جمرو رمی کول (یا په بله وینا: شیطانان ویشتل).

**لغات:** ﴿جمار﴾ دا په منیٰ کې هغه درې مشهوره ستنې (پایې) دي، یا په بله وینا درې تمبې (میلان) دي کوم چې په کوچنیو کانو ویشتل کېږي (چې په اصطلاح کې هغوی ته شیطانان ویل کېږي).

**تشریح:** (۴)... د جمراتو رمی کول (یا په بله وینا، شیطانان ویشتل) هم واجب دي، په منیٰ کې درې ستنې دي چې هغوی به په شګو ویشتل کېږي، که د یوې ورځې رمی (ویشتل) پرېږدي، یا د درېو سره ورځو رمی پرېږدي، نو صرف یو دَم واجبېږي

## د قارن او متمتع ذبح کول

﴿۱۲۵۸﴾ وَ ذَبْحُ الْقَارِنِ وَالْمُتَمَتِّعِ (۵) او د حجِ قِران او حجِ تمتع کونکي (لپاره) ذبح کول.

**لغات:** ﴿قارن﴾ حَجِ قِرَان کونکی (یا په بله وینا: هغه حاجي کوم چې حج قِران کوي)، ﴿متمتّع﴾ حجِ تمتّع کونکی. حج پر درې قسمه دی: ① حَجِّ إِفْـرَاد، حجِ افراد دې ته وایي چې حاجي له میقات څخه یوازې د حج احرام وتړي (یعني فقط د حج لپاره احرام وتړي، نه د عمرې لپاره) او چې کله د حج ارکان اداء کړي او حج ختم کړي، نو احرام خلاص کړي، داسې حاجي ته مُفْرِد وایي، ② حَجِّ قِـرَان، دې ته وایي چې له میقات څخه د حج او عُمرې دواړو احرام یو ځای وتړي، داسې حاجي ته قَارِن وایي. ③ حَجِّ تَمَتُّع، دې ته وایي چې د حج په میاشتو کې صرف د عمرې احرام وتړي او چې کله عمره ختمه کړي، نو احرام خلاص کړي، بیا د ذو الحجې په اتمه ورځ (یوم الترویه) باندې د حج احرام وتړي، داسې حاجي ته مُتَمَتِّع وایي.

**تشریح:** (۵)... د قارن او متمتع لپاره قرباني کول واجب دي، لهذا که له قرباني کولو څخه بغیر احرام خلاص کړي، نو په جرمانه کې یوه بله قرباني باندې لازمیږي.

## سر خرېیل (حلق)

﴿۱۲۵۹﴾ وَالْحَلْقُ (۶) او سر خرېیل.

**تشریح:** (۶)... د احرام خلاصولو لپاره سر خرېیل (یا د سر وربښتان کوچنی کول په غچي یا ماشین سره) واجب دي، یعني له رمی الجمار (د شیطانانو له ویشتلو) څخه وروسته دې سر وخریي، یا وربښتان دې کوچني کړي (غچي کړي)، دا هم وجب دي، او په دې کې دوه شرطونه دي چې په را روان عبارت کې به ذکر سي.

﴿۱۲۶۰﴾ وَتَخْصِيصُهُ بِالْحَرَمِ وَأَيَّامِ النَّحْرِ (۷) او د سر خرېیل خاص په حرم کې او د قرباني په ورځو (یعني د ذو الحجې په لسمه، یوولسمه یا دوولسمه) کې کول.

**لغات:** ﴿الحَرَم﴾ د مکې شریفې چار طرفه متعینه ځمکه ده او د هغې پر حدودو نښې لګول سوي دي، کوم چې تقریباً په ۵۵۰ مربع کیلو متره باندې مشتمله ده، د دغه نښو دننې حصې ته حرم ویل کیږي (انوار الایضاح)، ﴿أيام النحر﴾ د ذو الحجې د لسمې څخه د ذو الحجې تر دوولسمې پورې (یا په بله

وبنا دلوی اختر داولي څخه تر دریمي پوري) دغه ورځو ته أیام النحر هم وایي، تخصیصه: د دې ضمیر حَلْق ته راجع دی.

**تشریح:** (۷) د حرم په حدودو کې او د قرباني په ورځو (لمړۍ، یوولسمه او دوولسمه ذوالحجې) کې د سر وړېښتان صفا کول او احرام خلاصول واجب دي، لهذا که څوک د حرم له حدودو څخه بهر یا تر دوولسمي ذوالحجې وروسته حلق یا قصر وکړي، نو په جرمانه کې یو دَم لازمیږي. (انوار الایضاح)

## رمی پر حلق مخکې کول

﴿۱۲۶۱﴾ وَتَقْدِيمُ الرَّمْيِ عَلَى الْحَلْقِ (۸) او رَمی (ویشتل د جمرو) تر سر خرېیلو مخکي کول.

**تشریح:** (۸)... د جمرۀ عقبه رمی له حلق څخه مخکي کول واجب دي. (په منیٰ کي چي د حرم شریف وطرف ته بالکل په آخر کي کومه ستنه [تمبه] ده، یا په بل وینا د حرم شریف وطرف ته آخرني شیطان، هغه ته جمرۀ عقبه وایي)، او ترتیب به داسي وي چي په یوم النحر (دلوی اختر په ورځ) دي اولاً د جمرۀ عقبه رمی وکړي، تر هغه وروسته دي قرباني وکړي (که قرباني بالندي لازم وي)، تر هغه وروسته دي حلق یا قصر وکړي، دا ترتیب واجب دی، لهذا که له رمي څخه مخکي قرباني یا حلق وکړي، یا له قرباني څخه مخکي حلق وکړي، نو په جرمانه کي یو دَم لازمیږي (خو د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز دا ترتیب سنت دی؛ نو د دې په خلاف کولو کي دَم نه لازمیږي، او نن سبا د ډېر رش په وجه علماء کرام پر همدې فتویٰ ورکوي). (انوار الایضاح)

## قرباني پر حلق مخکي کول

﴿۱۲۶۲﴾ وَنَحْرُ الْقَارِنِ وَالْمُتَمَتِّعِ بَيْنَهُمَا (۹) او د حج قران کونکي او حج تمتع کونکي (لپاره) د رَمی او حَلق په مینځ کي قرباني کول.

**لغات:** ﴿نحر﴾ قرباني کول، د نحر اصل معنیٰ ده: سینې ته نږدې رګونه په تېره شي بالندي داسي پرېکول چي په یوه واري کار خلاص سي، ﴿قارن، متمتع﴾ د دې دواړو وضاحت څه مخکي د مسئله نمبر ﴿۱۲۵۸﴾ په لغاتو کي وسو.

**تشریح:** (۹)... د متمتّع او قارن لپاره قرباني پر حلق مخکي کول واجب دي، لهذا که حلق مخکي کړي، نو دم لازمیږي. (انوار الایضاح)

## طواف زیارت د قربانۍ په ورځو (ایام النحر) کي کول

﴿۱۲۶۳﴾ وَإِيْقَاعُ طَوَافِ الزِّيَارَةِ فِيْ أَيَّامِ النَّحْرِ (۱۰) او طواف زیارت (طواف افاضه) د قربانۍ په ورځو کي واقع کول.

**تشریح:** (۱۰)... طواف زیارت د قربانۍ په ورځو یعني د ذو الحجې په لسمه یا یوولسمه یا دوولسمه کي اداء کول واجب دي، یعني که په دغه دریو ورځو کي یو ورځ هغه اداء کړي، نو جرمانه نه واجبیږي. (انوار الایضاح)

## د صفا و مروه تر مینځ سعی کول

﴿۱۲۶۴﴾ وَالسَّعْيُ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فِيْ أَشْهُرِ الْحَجِّ (۱۱) او د حج په میاشتو کي د صفا او مروه تر مینځ سعی کول.

**لغات:** ﴿السعی﴾ د فتح له بابه اسمِ مصدر دی، د دې باب له معناوو څخه یوه معنیٰ ده: تګ کول، مراد څني د صفا و مروه تر مینځ په مخصوصه طریقه سره تلل دي، ﴿صفا﴾ دا د کعبې شریفې مشرقي جنوبي طرف ته یو کوچنی غر دی او له همدې څخه د سعی ابتداء کول کیږي، ﴿مروة﴾ صفا غره ته مخامخ بل کوچنی غر دی، دلته سعی ختمیږي.

**تشریح:** (۱۱)... د صفا و مروه تر مینځ سعی واجب ده، د سعی د پرېښوولو په صورت کي جرمانه لازمیږي، دائمه ثلاثه وو په نېز هغه رکن ده.

﴿۱۲۶۵﴾ وَحُصُوْلُهُ بَعْدَ طَوَافٍ مُعْتَدٍّ بِهٖ (۱۲) او د سعی تر معتبر طواف وروسته واقع کېدل (یعني له طواف کولو څخه وروسته سعی کول).

**لغات:** ﴿حصول﴾ د نصر د باب مصدر دی: حاصلېدل، واقع کېدل، ثابتېدل، د ضمیر مرجع السّعي ده، ﴿معتدّ﴾ د افتعال له بابه مفعول دی، اِعْتَدَّ يَعْتَدُّ اِعْتِدَادًا: د دې باب له معناوو څخه یوه معنیٰ ده: اعتبار کول (قاموس)، همدارنګه بله معنیٰ یې ده شمېرل او داسي نور.

**تشریح:** (۱۲)... یعني دا سعی بین الصفا والمروه به تر داسي طواف وروسته وي کوم چي له جنابت، حیض او نفاس څخه د پاکوالي په حالت کي سوی وي، نو دا سعی تر معتد به (معتبر) طواف وروسته واقع سوه، لنډه دا چي له هري سعی څخه مخکي یو طواف کېدل واجب دي، برابره ده طواف قدوم وي، طواف زیارت وي او که طواف نفل وي، لهذا که څوک بغیر له طواف څخه سعی وکړي، نو په جرمانه کي دم لازمیږي. (انوار الایضاح)

## په پښو (پياده) سعی کول

﴿۱۲۶۶﴾ وَ الْمَشْيُ فِيْهِ لِمَنْ لَا عُذْرَ لَهٗ (۱۳) او (هممدارنګه واجب دي) په سعی کي پياده تلل د هغه کس لپاره چي هيڅ عذر ور لره نه وي.

**تشريح**: (۱۳) د نامعذوره کس لپاره په سعی کي په پښو تلل واجب دي، لهذا که بېله عذره پر سپارلي سعی وکړي، نو دَم لازميږي.

## له صفا غره څخه سعی شروع کول

﴿۱۲۶۷﴾ وَ بِدَاءَةُ (بِدَايَةُ) السَّعْيِ مِنَ الصَّفَا (۱۴) او سعی له صفا څخه شروع کول.

**لغات**: ﴿بداءة﴾ د فتح د باب مصدر دی: شروع کول، پېلول.

**تشريح**: (۱۴)... د سعی کولو په وخت کي له صفا غره څخه شروع کول د بعضي علماؤ په نېز واجب دي او د بعضو په نېز سنت، خو له صفا څخه د شروع نه کولو په صورت کي د هيچا په نېز دَم نه واجبيږي، فقط له صفا څخه به د سعی اعاده وکړي، نور هيڅ جرمانه نسته. او که اعاده نه وکړي، نو يوه صدقهٔ فطر لازميږي. (انوار الايضاح)

## طواف وداع (طواف صدر) کول

﴿۱۲۶۸﴾ وَ طَوَافُ الْوَدَاعِ (۱۵) او طوافِ وداع کول (دا واجب د آفاقي لپاره خاص دی).

**تشريح**: (۱۵)... پر آفاقي کس وطن ته د روانېدلو په وخت کي طوافِ وداع کول واجب دي. دې ته طواف صدر هم وايي.

**يادونه**: آفاقي هغه حاجي يا عمره کونکي ته وايي کوم چي له ميقات څخه بهر او سيږي (که څه هم له اهلِ مکه څخه وي)، يا په بله وينا چي له ميقات څخه بهر له بل وطن او بل ملک څخه حرم شريف ته راغلی وي لکه افغاني، پاکستاني، يمني، مصري او داسي نور.

## له حجرِ اسود څخه د طواف شروع کول

﴿۱۲۶۹﴾ وَ بِدَاءَةُ كُلِّ طَوَافٍ بِالْبَيْتِ مِنَ الْحَجَرِ الْأَسْوَدِ (۱۶) او د بيتُ الله (کعبي شريفي) هر طواف له حجرِ اسود څخه شروع کول.

**تشريح**: (۱۶)... د کعبې شريفي هر طواف له حجرِ اسود څخه شروع کول واجب دي. همداسي صاحب د "درمختار" ويلي دي، او زياتره علماؤ سنت ورته ويلي دي. د دې د پرېښوولو په صورت کي د راجح قول مطابق دَم نه واجبيږي.

﴿۱۲۷۰﴾ وَالتَّيَامُنُ فِيهِ (۱۷) او په طواف کې له راسته طرف څخه شروع کول.

**لغات:** ﴿التيامن﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: له راسته طرفه کار کول، له راسته طرفه شروع کول. (معجم لغة الفقهاء)

**تشريح:** (۱۷)... طواف چې څرنګه له حجرِ اسود څخه شروع کول واجب دي، همداسې له راسته طرفه شروع کول واجب دي. يعنې کعبې شريفې ته چې ورسيږي، نو اول دې د حجرِ اسود استلام وکړي (يعنې هغه دې مسه کړي)، بيا دې راسته طرف ته روان سي او اُووه واره دې په کعبې شريفې باندې راوګرځي (يعنې اُووه شوطه دې پوره کړي)، دا يو طواف سو.

## طواف پياده کول

﴿۱۲۷۱﴾ وَالْمَشْيُ فِيهِ لِمَنْ لَا عُذْرَ لَهُ (۱۸) او په طواف کې پياده تلل د هغه کس لپاره چې هيڅ عذر ورلره نه وي.

**تشريح:** (۱۸)... په طواف کې پياده (په پښو) تلل واجب دي که قدرت لري او څه عذر نه وي، لهذا که د قدرت باوجود بېله عذره پر سپارلۍ طواف وکړي، نو په جرمانه کې دَم لازميږي.

## طواف د پاکۍ په حالت کې کول

﴿۱۲۷۲﴾ وَالطَّهَارَةُ مِنَ الْحَدَثَيْنِ (۱۹) او له دواړو بې اودسيو (کوچنی او لويه بې اودسيا) څخه پاکېدل.

**تشريح:** (۱۹)... له بې اودسۍ او جنابت څخه د پاکوالي په حالت کې طواف کول واجب دي.

## په طواف کې عورت پټول

﴿۱۲۷۳﴾ وَسَتْرُ الْعَوْرَةِ (۲۰) او عورت پټول.

**تشريح:** (۲۰)... د طواف په حالت کې عورت (د عورت استر اانداموته) پټول [illegible] په لڅ [illegible] د طواف کولو په صورت کې دَم واجبيږي.

﴿۱۲۷۴﴾ وَأَقَلُّ الْأَشْوَاطِ بَعْدَ فِعْلِ الْأَكْثَرِ مِنْ طَوَافِ الزِّيَا[illegible] التحر[illegible]

طواف زيارت د اکثره (يعنې د څلورو) شوطونو تر اداء کولو وروسته کم [illegible] کو[illegible]

**لغات**: ﴿أشواط﴾ جمع د شَوْطٌ ده: پر كعبې شريفي يو ځل راګرځېدلو ته يو "شَوط" ويل كيږي، كوم ته چي "دَور" هم وايي، په طواف كي اُووه شوطه (اووه دَوره) كول كيږي، نو اكثر يې څلور شوطه كيږي او تر څلورو كم اقلّ دي.

**تشريح**: (۲۱)... د طواف زيارت د اكثره حصې (څلور شوطو) له پوره كولو څخه وروسته كم (يعني درې شوطه) اداء كول واجب دي. مطلب دا چي په طوافِ زيارت كي د شوط اكثره حصه يعني لږ تر لږ څلور شوطه پوره كول خو فرض دي، كنې طواف نه صحيح كيږي او تر هغه وروسته پاته درې شوطه واجب دي، فرض نه دي. او دا طواف به د قرباني په ورځو (ايامُ النحر) كي كول كيږي.

## د احرام ممنوعات

﴿۱۲۷۵﴾ وَتَـرْكُ الْمَحْظُـوْرَاتِ (۲۲) او ممنوعه شيان پرېښوول (دا هم واجب دي) كَلُبْسِ الرَّجُلِ الْمَخِيْطَ (ممنوعه شيان) لكه د سړي (لپاره) ګنډل سوي جامې اغوستل وَسَتْرِ رَأْسِهٖ وَوَجْهِهٖ او خپل سر او خپل مخ پټول وَسَتْرِ الْمَرْأَةِ وَجْهَهَا او د ښځي (لپاره) خپل مخ پټول وَالرَّفَثِ او ګنده (فحش) خبري كول وَالْفُسُوْقِ او نافرماني (او د ګناه كار) كول وَالْجِدَالِ او جګړه (او جنجال) كول وَقَتْلِ الصَّيْدِ او ښكار وژل وَالْإِشَارَةِ إِلَيْهِ او (يا) د ښكار وطرف ته اشاره كول وَالدَّلَالَةِ عَلَيْهِ او (يا) د ښكار پر طرف ښوونه كول.

**لغات**: ﴿محظورات﴾ جمع د مَحْظُوْرٌ ده: ممنوع شی (ناروا)، هر هغه شی چي له هغه څخه به ځان ساتل كيږي، ﴿رفث﴾ ګنده او چټي بدي خبري، لكه د ښځو په موجوديت كي د جماع او داسي نوري بدي خبري كول. د نكاح، جماع وغيره كومي خبري چي كنايتاً كول كيږي هغه صراحتاً كول، د احرام په حالت كي د دې ګنجائش هم نسته، رَفَثَ يَرْفُثُ رَفْثًا: ګنده او بدي خبري كول، ځيني وخت له رفث څخه جماع هم مراديږي، لكه په دې آيت كي: ﴿أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَى نِسَائِكُمْ﴾ .

﴿فسوق﴾ بدكاري، ګناه او معصيت (نافرماني)، د حق او صلاح له لاري څخه اوښتل. د ګناه كار خو په هر حال كي حرام او ناجائز دی، لېكن د احرام په حالت كي نور هم سنګين جرم دی، لهذا په حج كي له ګناه او معصيت څخه بچ كېدل ضروري دي، كنې حج به يې مقبول نه وي، ﴿جدال﴾ جګړه، نښته، زياته بحث او تكرار كول، د حج د ملګرو سره جګړې او جنجالونه كول، له دې څخه هم بچ

کېدل ضروري دي، ﴿صید﴾ ښکار ﴿إشارة﴾ وښکار ته اشاره کول، یعني چې ښکار مخ ته موجود وي او محرم د هغه وطرف ته اشاره وکړي، دا ناجائز دي، ﴿دلالة﴾ د ښکار لاربنوونه، یعني ښکار خو مخته موجود نه وي لېکن د ښکار په باره کې محرم ته معلومات وي او هغه بل چا ته وښیي، دا هم ناجائز دي.

**تشریح**: (۲۲)... د احرام په حالت کې د احرام له ممنوعاتو څخه ځان ساتل واجب دي، مثلاً د سړي لپاره له ګنډل سوو جامو څخه ځان ساتل، سر او مخ له پټولو څخه ساتل او داسې نور، همدارنګه د ښځې لپاره هم د احرام په حالت کې مخ پټول ممنوع دي، لېکن که له پردیو خلګو (اجنبیانو) څخه د پرده کولو په نیت پر مخ کپړه داسې واچوي چې کپړه مخ مسه نه کړي (یعني کپړه له مخ څخه لیرې وي او نه ور سره لګیږي)، نو جائز دي او د دې خیال ساتل ضروري دي چې کپړه به د مخ سره نه لګیږي.

همدارنګه د احرام په حالت کې به له هغه خبرو څخه ځان ساتي کوم چې الله تعالیٰ منع کړي دي، یعني مثلاً د ښځې په موجودیت کې د جماع خبرې او داسې نورې سپکې او ګنده (فحش) خبرې کول، جماع او دواعي د جماع خو هلته پرېږده!، خو که ښځه ور سره نه وي او د احرام په حالت کې عشقیه خبره یا عشقیه شعر ووایي، نو د احنافو په نیز دا رفث نه دی، همدارنګه له ملګرو سره جنګ وجنجال کول د حج په دوران کې له دې څخه هم ځان ساتل ضروري دي، د حج په سفر کې پر معمولي خبرو جنګ وجنجال پېښیږي، نو له دې څخه پوره بچ کېدل پکار دي، همدارنګه د احرام په حالت کې به د حرم شریف په ښکار کار نه لري او نه به یې وژني او نه به وبل چا ته د دې ښکار اشاره او لاربنوونه کوي. (انوار الایضاح)

## د حج سنتونه (له احرام څخه مخکې غسل یا اودس کول)

﴿۱۲۷۶﴾ وَسُنَنُ الْحَجِّ او د حج سنتونه (تقریباً ټول یې دوه څلوېښت [۴۲] سنتونه ذکر کړي دي) مِنْهَا الْاِغْتِسَالُ (۱) له هغوی (د حج له سنتو څخه یو) غسل کول دي وَلَوْ لِحَائِضٍ وَنُفَسَاءَ که څه هم د حیض والا یا نفاس والا ښځه وي (یعني که څه هم ښځه په حیض یا نفاس کې وي، د هغې لپاره هم غسل کول سنت دي) أَوِ الْوُضُوْءُ (۲) یا اودس کول إِذَا أَرَادَ الْإِحْرَامَ کله چې هغه د احرام تړلو اراده وکړي.

**تشریح**: د حج د سنتونو حکم دا دی چې د هغوی په کولو سره زیات اجر او ثواب حاصلیږي. قصداً پرېښوول یې مکروه دي، خو حج اداء کیږي او څه جرمانه یعني دَم یا صدقه نه لازمیږي (مصنف رَحِمَهُ الله دلته تقریباً دوڅلوېښت [۴۲] سنن ذکر کړي دي او بعضو څلور څلوېښت (۴۴) لیکلي دي او چې سره جلا کړل سي او

مكرر افعال جلا وشمېرل سي. نو تقريباً شپېتو (۶۰) ته رسيږي لکه څرنګه چي صاحب د ثمرة النجاح په آخر کي همدغه سنتونه ټوله ۶۰ سنته ليکلي دي).

ښکاره دي چي د سنن په ذکر کولو سره فقهاء کله سنن او مستحبات دواړه مرادوي او کله بيا د دې برعکس کوي، دلته هم د سننو په ضمن کي بعضي مستحبات ذکر سوي دي، او بله خبره دا ده چي بعضي شيان د حج سنتونه دي او بعضي د احرام سنتونه دي، دلته دواړه يو ځای (ګډ) بيان سوي دي. حتى الامكان به د دواړو وطرف ته اشاره وکړو (ان شاء الله تعالى).

الاغتسال إلخ: فرمايي کله چي يو کس د احرام تړلو اراده وکړي، نو اول دي غسل وکړي يا دي اودس وکړي، خو غسل کول افضل دي او غسل يا اودس کول د حج او احرام دواړو لپاره سنت دي؛ ځکه احرام له شعائرُ الله څخه دی. نو په غسل يا اوداسه سره د احرام تړل د هغه لپاره تعظيم او احترام دی لکه څرنګه چي قرآن کريم په اوداسه سره مسه کول د هغه تعظيم دی.

او که د لمبېدو موقع نه وي، نو بغير د لمبېدو څخه هم د احرام په تړلو کي هيڅ حرج نسته لکه نن سبا چي د طيارو (جهازونو) د لاري سفر کيږي او پر هيڅ هوايي ډګر د لمبېدو انتظام نه وي، نو له کور څخه د روانېدو په وخت کي لمبېدل کافي دي.

همدارنګه د حيض و نفاس په حالت کي احرام تړل او له طواف څخه بغير نور اُمور ترسره کول بېله کراهته جائز دي. يعني حيض ونفاس له احرام وغيره څخه مانع نه دي. (انوار الايضاح)

## د احرام کپړې

﴿۱۲۷﴾ وَلُبْسُ إِزَارٍ وَرِدَاءٍ جَدِيْدَيْنِ أَبْيَضَيْنِ (۳) او لنګ او څادر اغوستل کوم چي دواړه نوي (او) سپين وي (يعني نوي سپين لنګ او څادر اغوستل).

**لغات**: ﴿لُبْس﴾ د سمع د باب مصدر دی: اغوستل. ﴿إِزار﴾ لنګ، جمع: أُزُرٌ. ﴿رداء﴾ څادر (پټو)، جمع: أَرْدِيَةٌ.

**تشريح**: فرمايي چي د احرام لپاره تر غسل يا اودس کولو وروسته د احرام دوې کپړې يعني يو څادر او يو لنګ اغوستل د سړي لپاره سنت دي، او دواړه کپړې به نوي وي يا به پرېولل سوي وي، دا د احرام له مستحباتو څخه دي او په احرام کي د سپينو کپړو استعمال افضل دی، خو بيا هم که څوک له سپين رنګ څخه بغير بل رنګ مثلاً تور، سور، ژړ يا زرغون رنګ استعمال کړي. نو هم صحيح دي، يا رنګين دوه يو څادر وغيره واغوندي، نو هم څه حرج پکښې نسته. (انوار الايضاح)

## پر بدن د خوشبویــي لګولو حکم

﴿۱۲۷۸﴾ وَالتَّـطَـيُّبُ (۴) او خوشبويي لګول.

**تشريح:** داحرام تړلو لپاره تر غسل کولو وروسته په بدن باندي عطر وغيره لګول سنت دي. کله چي عطر او خوشبويي په آساني سره ترلاسه کېدلای سي، او داحرام پر کپړو داسي ګاټه (خنډ) عطر لګول مثلاً کلک مشک چي د هغه اثر او نښه تر ډېره وخته پوري نه ځي، صحيح نه دي. (انوار الايضاح)

## دوه رکعته صلاة احرام

﴿۱۲۷۹﴾ وَصَلٰوةُ رَكْعَتَيْنِ (۵) او دوه رکعته نفل کول.

**تشريح:** دوه رکعته لمونځ کول داحرام سنت دي، په اول رکعت کي دي "قُل يا أيها الكافرون" او په دويم رکعت کي دي "قُل هو الله أحد" ووايي. او که يو څوک په مکروه وخت کي احرام وتړي. نو په هغه وخت کي دي لمونځ نه کوي. (انوار الايضاح)

## تلبيه زياته ويل، په لوړ آواز سره ويل او په هر حالت کي ويل او مکرّره ويل

﴿۱۲۸۰﴾ وَالْإِكْثَارُ مِنَ التَّلْبِيَةِ بَعْدَ الْإِحْرَامِ (۶) او له احرام تړلو څخه وروسته تلبيه زياته (په کثرت سره) ويل.

﴿۱۲۸۱﴾ رَافِعًا بِهَا صَوْتَهُ (۷) په داسي حال کي چي لوړونکی وي په تلبيه سره د خپل آواز (يعني تلبيه په لوړ آواز سره ويل هم سنت دي).

﴿۱۲۸۲﴾ مَتٰى صَلّٰى أَوْعَلَا شَرَفًا (تلبيه په هر حالت کي زياته او په زوره ويل سنت دي يعني) کله چي لمونځ کوي يا يو لوړ ځای ته خېژي أَوْهَبَطَ وَادِيًا يا يو کښته (لاندي) ځای ته شوه کيږي أَوْلَقِيَ رَكْبًا يا د قافلې (کاروان والا) سره يو ځای کيږي وَبِالْأَسْحَارِ او د سهار (او پېشلمي) په وختونو کي.

﴿۱۲۸۳﴾ وَتَكْرِيرُهَا كُلَّمَا أَخَذَ فِيْهَا (۸) او تلبيه بار، بار (څو واره) ويل هر کله چي هم تلبيه ويل شروع کړي. (کم از کم دري واره پرلپسې ويل)

**لغات:** ﴿إِكثار﴾ د افعال د باب مصدر دی: زيات کول، شمېر ور زياتول. ﴿علا﴾ د نصر د باب ماضي ده، مصدر: عُلُوًّا: لوړېدل، پورته کېدل. ﴿شَرَفًا﴾ د سمع له بابه اسم مصدر دی الشَّرَفُ: د دي لفظ

څو معناوي دي چې له هغوی څخه یوه معنیٰ ده: لوړ ځای (کوم چې له خپل شا وخوا ځمکې څخه پورته وي)، ﴿هبط﴾ د ضرب د باب ماضي ده: کښته کېدل، لاندي راتلل، ﴿واديًا﴾ شله (شېله)، د غرونو یا غونډیو په مینځ کي کښته د باراني اوبو د بهېدلو لاره، دلته ځني مراد کښته (لاندي) ځای دی، ﴿رَكْبًا﴾ جمع د رَاكِبٌ ده: د لسو یا زیاتو سپرو (سپارلیو) قافله، ﴿أسحار﴾ جمع د سَحَرٌ ده: د شپې آخر له صبح صادق (طلوع الفجر) څخه لږ څه مخکي وخت، د سهار (صبح کاذب او صبح صادق) وخت ته هم ویل کیږي، لکه څرنګه چي وایي: لقيته في أعلى السّحرين (یعني د فلانکي سره په پېشلمي او سهار کي ملاو سوم)، لکه څرنګه چي فَجْران فجر کاذب او فجر صادق ته وَیل کیږي، ﴿تکریر﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: بار، بار کول، راګرځول، ﴿أخذ﴾ د نصر د باب ماضي ده، کله چي د دې باب په صله کي فِيْ راسي، نو معنیٰ یې ده: شروع کول.

**تشریح**: د احرام په شروع کي یو وار تلبیه ویل شرط دي او له یوه وار څخه زیاته تلبیه ویل سنت دي او په هر حالت کي زیاته تلبیه ویل مستحب دي، یعني د ناستي، ولاړي، تللو، راتللو، پاکي، ناپاکي لنډه دا چي په هر حالت کي له زیاتو څخه زیاته تلبیه ویل مطلوب دي. (انوار الایضاح)

رافعًا بها إلخ: د احرام یو سنت دا دی چي سړی به تلبیه په څه لوړ آواز سره وایي، خو دومره په زوره به یې نه وایي چي د تکلیف او ستړیا باعث وګرځي، او ښځه به تلبیه په کراره وایي چي پردي خلک یې نه واوري.

متى صلّى أو علا إلخ: یعني په هر حالت کي تلبیه له زیاتو څخه زیاته ویل مستحب او مطلوب دي، خو د حالت او وقت د بدلون په وخت کي د تلبیې په استحباب کي نور زیات تأکید راځي، مثلاً د لاندي څخه د لوړ ځای وطرف ته د ختلو په وخت کي، یا لاندي ځای ته د شوه کېدلو په وخت کي، سهار، ماښام او له فرضي لمنځونو څخه وروسته په دغه اوقاتو کي په خصوصي توګه تلبیه ویل پکار دي.

وتكريرها إلخ: او کله چي هم په تلبیه شروع وکړي، نو په هغه وخت کي لږ تر لږه درې واره پرلپسې تلبیه ویل مستحب دي. او د تلبیه په دوران کي دي بله هیڅ خبره نه کوي.

## درود شریف ویل او دعاګاني کول

﴿۱۲۸۴﴾ وَ الصَّلٰوةِ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ (۹) او پر نبي کریم ﷺ درود (زیات) ویل (پر "التلبية" باندي عطف دی "أي الإكثار من الصلوٰة على...") وَ سُؤَالِ الْجَنَّةِ وَ صُ[illegible]

نېکانو د ملګرتیا سوال (خواست) کول وَالْاِسْتِعَاذَةِ مِنَ النَّارِ او له اُور څخه پناه غوښتل.

**لغات:** ﴿صحبة﴾ ملګرتیا، یو ځای والی، ﴿أبرار﴾ جمع د بَرُّ ده: نېک، رېښتونی او د خیر کس. نېکي کونکی، ﴿استعاذة﴾ د استفعال د باب مصدر دی: پناه غوښتل، په حفاظت کې راتلل، ﴿نار﴾اُور، سوځونکې ګرمي او لمبه، دوږخ، جمع: نِیْرَان.

**تشریح:** فرمایي چې په کثرت سره دې درود او سلام وایي او تر څو چې ممکنه وي په همدې کې دې مستغرق او وسي، او د دې تر څنګ دې د جنت او هلته د نېکو خلکو د ملګرتیا سوال په کثرت سره کوي او د دوږخ له اُوره څخه دې پناه غواړي.

## مکې شریفې ته د داخلېدلو پر مهال غسل کول، او د باب المعلاة د لارې د ورځې داخلېدل

﴿۱۲۸۵﴾ وَالْغُسْلُ لِدُخُوْلِ مَكَّةَ (۱۱) او مکې مکرّمې ته د داخلېدو لپاره غسل کول وَ دُخُوْلُهَا مِنْ بَابِ الْمُعَلَّاةِ نَهَارًا (۱۲) او مکې مکرمې ته له "باب معلاة" (معلاة دروازې) څخه د ورځې داخلېدل.

**تشریح:** فرمایي چې مکې شریفې ته د داخلېدو په وخت کې غسل کول سنت دي. څرنګه چې پخوا به له مدینې منوّرې څخه خلک و مکې مکرّمې ته تقریباً په لسو ورځو کې رسېدله او په ټوله لاره کې به دوړې او ګرزونه وه او د سړي حالت به ډېر خراب وو، نو ځکه دا سنت سوه چې مکې ته د داخلېدو په وخت غسل وکړي او د احرام کپړې واغوندي بیا مکې ته داخل سي، په دې کې د کعبې شریفې تعظیم دی، لېکن اوس وخت حالت مختلف دی، خلک په بسانو او موټرانو کې سفر کوي. لهذا که موقع وي، نو په جده کې دې غسل وکړي، کنې مکې ته د رسېدلو په وخت کې دې هلته غسل وکړي، هلته د غسل او لمبېدو لپاره معقول انتظام سته. (انوار الایضاح)

ودخولها من باب إلخ: مکې شریفې (بیت الله) ته د داخلېدلو لپاره دوې لارې دي: ① یوه د لوړې خوا څخه ورته راځي، ② دویمه د لاندې خوا څخه ورته راځي، نو د لوړې خوا (معلاة څخه) ورته راتلل دا سنت دي؛ ځکه نبي کریم ﷺ د مکې شریفې له پاسنۍ حصې څخه و مکې ته داخلېدۍ "عن ابن عمر (رض) قال: کان رسول الله ﷺ یدخل مکة من الثنیة العُلیا ویخرج من الثنیة السفلی" (بخاري شریف، باب من أین یدخل مکة، ص: ۲۵۶، حدیث رقم: ۱۵۷۵)، صاحب د نور الایضاح رَحِمَهُ الله همدا په "من باب المعلاة" سره بیان کړي دي (او ځینو لیکلي دي چې باب المعلاة د یو خاص دروازې نوم دی). نن

سبا خلک د بسانو او موټرانو د لاري سفر کوي، نو ځکه پر کومه لاره چي بس او موټر ځي، له هماغه طرف څخه مکې ته دخول کېږي، ها! که څوک په خپل شخصي موټر کي سفر کوي، نو د لوړې خوا څخه مکې ته داخلېدل افضل دي.

نهاراً: در پیمه خبره دا ده چي نبي کریم ﷺ مکې مکرّمې ته د ورځي داخل سوی وو، او د دې څو وجهي وې، روایت دا دی "عن ابن عمر (رض) قال بات النبي ﷺ بذي طوىٰ حتّى أصبح ثم دخل مكّة و كان ابن عمر (رض) يفعله" (بخاري شريف، باب دخول مكة نهاراً أو ليلا، ص: ۲۵۵، حديث رقم: ۱۵۷۴)، نو ځکه د ورځي داخلېدل سنت دي. خو نن سبا صورتِ حال مختلف دی. (انوار الایضاح، ثمرة النجاح)

## د کعبې شریف د لیدلو په وخت کي کلمه ویل او دعاء کول

﴿۳۸۶﴾ وَالتَّكْبِيْرُ وَالتَّهْلِيْلُ تِلْقَاءَ الْبَيْتِ الشَّرِيْفِ (۱۳) او "الله أكبر" او "لآ إله إلا الله" ویل د کعبې شریفي د زیارت کولو په وخت کي (یا د "تلقاء" معنیٰ ده: د کعبې شریفي ومخ ته، چي د زیارت کولو په وخت کي کعبې ته مخامخ تکبیر او تهلیل ویل) وَالدُّعَاءُ بِمَا أَحَبَّ عِنْدَ رُؤْيَتِهِ (۱۴) او دعاء کول د هغه څه کوم چي د ده خوښ وي د کعبې شریفي د لیدلو په وخت کي وَهُوَ مُسْتَجَابٌ (ځکه) دا دعاء قبلېدونکې ده (یعني د کعبې شریفي د لیدلو په وخت کي دعاء قبلیږي).

**لغات:** ﴿تِلْقَاءَ﴾ د سمع د باب مصدر دی: ملاقات کول (دیو چا سره یو ځای کېدل)، د طرف او جهت په معنیٰ سره هم راځي (معجم الوسيط)، ﴿مستجاب﴾ د استفعال له بابه مفعول: قبلېدونکی، قبول کړی سوی.

**تشريح:** کله چي مسجدِ حرام ته داخل سي او پر کعبه شریفه یې نظر پرېوځي، نو درې واره دې "الله اكبر" او درې واره دې "لا إله إلا الله" ووایي او بغیر د لاس پورته کولو څخه د خپل زړه د مرادونو او د خپل خوښ شي دعاء حتماً وکړي؛ غوره دا ده چي د آخرت لپاره دعاء وکړي؛ ځکه په دې وخت کي دعاء قبلیږي. (انوار الایضاح، ثمرة النجاح)

## طواف قدوم کول

﴿۱۲۸۷﴾ وَ طَوَافُ الْقُدُوْمِ وَلَوْ فِيْ غَيْرِ أَشْهُرِ الْحَجِّ (۱۵) او طواف قدوم کول که څه هم د حج له میاشتو څخه په غیر (بل وخت) کي وي.

**تشریح:** له بهر څخه د راتللو په وخت کي چي کوم طواف کول کیږي، هغه ته طواف قدوم (د راتګ طواف) ویل کیږي، د آفاقي کس (کوم چي له بهر ملک څخه مکې شریفي ته راغلی وي) د هغه لپاره طواف قدوم کول سنت دي د تحیة المسجد په څېر، برابره ده د حج په میاشتو کي مکې شریفي ته راغلی وي، یا له هغه څخه بغیر په بل وخت کي (او دا د هغه آفاقي لپاره سنت دي کوم چي مفرد بالحج یا قارن وي. د متمتع آفاقي یا عمره کونکي او اهل مکه لپاره دا طواف سنت دی (انوار الایضاح)). او د دې صورت دا دی چي کله حرم شریف ته داخل سي، نو فوراً دي یو طواف د نفل په توګه وکړي، همدې ته طواف قدوم وایي. (ثمرة النجاح. انوار الایضاح)

## د اضطباع حکم

﴿۱۲۸۸﴾ وَالْاِضْطِبَاعُ فِيْهِ وَالرَّمَلُ (۱۶) او (همدارنګه سنت دي) په طواف کي اضطباع او رمل کول اِنْ سَعٰى بَعْدَهٗ فِيْ أَشْهُرِ الْحَجِّ (په دې شرط) که تر طواف وروسته سعی (بین الصفا والمروه) کوي د حج په میاشتو کي.

**لغات:** ﴿اضطباع﴾ د افتعال د باب مصدر دی: له راسته بغل څخه څادر وغیره ایستل او پر چپه اوږه اچول، مصنف رَحِمَهُ الله وروسته په "فصل فی کیفیة ترکیب افعال الحج" کي د اضطباع معنیٰ داسي بیان کړې ده: وَهُوَ أَنْ تَجْعَلَ الرِّدَاءَ تَحْتَ الْإِبْطِ الْأَيْمَنِ وَتُلْقِيَ طَرَفَيْهِ عَلَى الْأَيْسَرِ. ﴿رَمَل﴾ د نصر د باب مصدر دی: په خیال او فخر سره تګ کول، د تګ او رفتار په وخت کي د میړني جنګیالي کس په څېر خپل دواړه لاسونه لیري ساتل او سینه راکښل او خپل اوږې ښورول، دې ته رَمَل وایي، مصنف رَحِمَهُ الله وروسته په "فصل فی کیفیة ترکیب افعال الحج" کي د دې معنیٰ داسي بیان کړې ده: وَهُوَ الْمَشْيُ بِسُرْعَةٍ مَعَ هَزِّ الْكَتِفَيْنِ.

**تشریح:** په طواف کي اضطباع کول هم سنت دي، اضطباع دا ده چي محرم به خپل څادر له راسته بغل څخه لاندي راوباسي او پر چپه اوږه به یې واچوي؛ څکه چي همداسي نبي کریم ﷺ کړي وه.

هر داسي طواف چي تر هغه وروسته سعی بین الصفا والمروة کول کیږي، په هغه طواف کي اضطباع او رمل کول سنت دی د سړیو لپاره، نه د ښځو لپاره، او اضطباع د رمل د آسانتیا لپاره ده، رمل دا دی چي د طواف کولو په دوران کي سینه را ایستل او مضبوطه کول او دواړه لاسونه لیري کول، اوږې ښورول او څه تېز تلل، لکه جنګیالی میړنی کس چي کله میدان ته راشوه کیږي، او کوم څوک چي

قصداً رمل پرېږدي یا د رش او ګڼه ګوڼې په وجه رمل نه وکړي، نو پر هغه هیڅ نه واجبېږي؛ ځکه چي رمل سنت دی.

داحنافو په نېز قاعده دا ده چي تر کوم طواف وروسته سعي وي، په هغه کي رمل سته. او تر کوم وطواف وروسته چي سعي نه وي، په هغه کي رمل نسته. او دا قاعده د مکي او آفاقي ټولو لپاره ده. ځرنګه چي د عمرې تر طواف وروسته سعي سته، نو ځکه د عمرې په طواف کي به هم رمل کول کیږي، نو پر دې بناء د مصنف رَحِمَهُ الله د "فی أشهر الحج" جمله زائده ده؛ ځکه د حج له میاشتو څخه بغیر چي کله بل وخت هم عمره کوي، نو په هره عمره کي یو وار سعي کوي.

ښکاره دي وي چي رمل د طواف په دریو دَورونو (شوطونو) کي سنت دی او اضطباع په اُووه سره دَورنو کي سنت ده (او بعضو لیکلي دي چي اضطباع په اولو دریو دَورونو کي سنت ده. والله اعلم). (ثمرة النجاح، انوار الایضاح بحوالة تحفة الألمعي و ایضاح المناسک)



**فایده**: د رمل د مشروعیت سبب دا وو چي کله مسلمانان د صُلح حدیبیه په دویم کال مکې ته داخل سول او مشرکینو تر دریو ورځو پوري مکه مبارکه خالي پرېښووله، غرو ته ولاړل، نو نبي کریم ﷺ د صحابه وو سره د کعبې طواف وکړی، د طواف په دوران کي مشرکینو په بعضو مسلمانانو ملنډي ووهلې او دا یې وویل چي: أَضْنَاهُمْ حُمَّى يَثْرِبَ.(یعني د مدینې تبې دوی ناتوانه او کمزوري کړي دي). کله چي دا خبره نبي کریم ﷺ ته ورسېدله، نو نبي کریم ﷺ د ایماني قوت د ښکارندولو په غرض رمل شروع کړی، د نبي کریم ﷺ د دې عمل په لیدلو سره نورو صحابه وو هم رمل شروع کړی. او د دې فایده دا سوه چي د مشرکینو له زړونو څخه د مسلمانانو د کمزورۍ او ضُعف احساس ختم سو. تر فتحِ مکه وروسته که څه هم د رمل سبب ختم سو، لېکن بیا نبي کریم ﷺ د حجةُ الوداع پر موقع هم رمل وکړی او تر نبي کریم ﷺ وروسته د صحابه وو په زمانه کي هم دا حکم او عمل جاري وو. لهذا تر قیامته پوري د طواف کونکو په حق کي دا سنت عمل وګرځول سو.

## د سعي په هر دَور (شوط) کي د میلین اخضرین تر مینځ تېز تلل

﴿١٣٨٩﴾ وَالْهَرْوَلَةُ فِيمَا بَيْنَ الْمِيلَيْنِ الْأَخْضَرَيْنِ لِلرِّجَالِ (١٧) او تېز تلل د دوو زرغونو میلونو په مینځ کي (کوم چي د صفا او مروه په مینځ کي درول سوي دي) د خلکو لپاره (دا سنت دي) وَالْمَشْيُ عَلَى هِينَةٍ فِي بَاقِي السَّعْيِ (١٨) او په آرامه (په کراره او پر خپل طبعي حالت) تلل په پاته سعي کي.

**لغات:** ﴿هرولة﴾ د فَعْلَلَةٌ د باب مصدر دى: تېز تلل (د ځغاستي او عادي تګ تر مينځ تګ). ﴿ميلَين﴾ تثنيه د مِيْلٌ ده: هغه نښه او علامه چې په لاره کې درول سوې وي. د مسافې د ښوونې او مسافرو ته د لاربښوونې لپاره په لاره کې درول سوې مناره (پايه). ﴿مشي﴾ د ضرب د باب مصدر دى: تلل. تګ کول. ﴿هينة﴾ له هَوْنٌ څخه دى: په نرمۍ سره. په کراره.

**تشريح:** مِيْلَيْنِ أَخْضَرَيْن دوه زرغونه ميله (پايې) دي کوم چې د صفا او مروه (دوو غرونو) د لارې په مينځ کې درول سوي دي، سړی چې کله د صفا او مروه په مينځ کې سعى کوي او ميلين اخضرين ته ورسيږي نو څه دي تېز سي، عليحده ځغستل پکار نه دي، بلکې ځغاستې ته نږدې تېر تلل سنت دي. او د سعى په هر دَور (شَوط) کې د ميلين اخضرين سره تېر تلل سنت دي.



**فايده:** د ميلين اخضرين تر مينځ تېز تلل د حضرت هاجرې د يادګار په توګه دي کوم چې د حج په مناسکو کې شامل کړل سوي دي، دغه ځای کوم چې د دوو زرغونو ميلونو تر مينځ دی (چې يو طرف ته يې د صفا غر دی او بل طرف ته د مَروه غر دی)، دلته مخکې شله (شېله) وه چې د باران اوبه پکښې راتلې، حضرت هاجره چې کله د اوبو په تلاش کې له صفا غره څخه مَروه ته او له مَروه غره څخه صفا ته تلله او راتلله، نو په دې لاندينې ځای کې به هغه په منډه (په تېزي سره) تېرېدله، د هغې دا منډه او ځغاسته الله ﷻ ته دومره خوښه سوه چې د حج په مناسکو کې يې شامله کړه.

## زيات طوافونه کول (او نفلي طواف له نفلي لمانځه څخه افضل دى)

﴿١٢٩٠﴾ وَالْإِكْثَارُ مِنَ الطَّوَافِ (١٩) او طواف زيات (په کثرت سره) کول وَهُوَ أَفْضَلُ مِنْ صَلٰوةِ النَّفْلِ لِلْأَفَاقِيِّ او طواف افضل دى له نفلي لمانځه څخه د آفاقي لپاره.

**تشريح:** له حج او عمرې څخه وروسته تر څو چې په مکه شريفه کې وي، طواف دې کوي. د آفاقي لپاره دا طواف له نفلي لمانځه څخه افضل دى؛ ځکه کور ته چې ولاړ سي، نو بيا د طواف موقع نه ورته حاصليږي. په يو حديث کې دي "عن ابن عباس (رض) قال: قال رسول الله ﷺ: من طاف بالبيت خمسين مرّةً خرج من ذنوبه کيوم ولدته أمه" (يعني څوک چې پر کعبه شريفه پنځوس طوافه وکړي. هغه له ګناهونو څخه داسې صفا کيږي لکه په کومه ورځ چې دئ مور زېږولی وي)، او صاحب د تحفة الألمعي ليکلي دي چې په دې شمېر کې نفل، فرض او واجب ټول طوافونه شامل دي، همدارنګه دا پنځوس

طوافونه په یوه سفر کي کول ضروري نه دي، بلکي د ټوله ژوند د طوافونو مجموعه که پنځوس ته ورسیږي، نو هم د دې فضیلت مستحق کیږي. (ثمرة النجاح ج:۲، ص:۳۲۳، تحفة الألمعی ج:۳، ص:۲۶۶)

## امام به درې ځایه خطبه وایي

﴿۱۲۹۱﴾ وَالْخُطْبَةُ بَعْدَ صَلٰوةِ الظُّهْرِ يَوْمَ سَابِعِ الْحَجَّةِ بِمَكَّةَ (۲۰) او (مسنون که سنت دي) خطبه ویل (د امام لپاره) د ماپښین تر لمانځه وروسته د ذو الحجې په اُوومه په مکه مکرمه کي وَهِيَ خُطْبَةٌ وَاحِدَةٌ بِلَا جُلُوسٍ يُعَلِّمُ الْمَنَاسِكَ فِيهَا او دا یوه خطبه ده بغیر له کښېنستلو څخه (د منځ په مینځ کي، او) په هغې کي به ور وښیي (خلکو ته) د حج افعال (د حج عبادات او طریقې).

**لغات:** ﴿مناسك﴾ جمع د مَنسِك ده: د حج عبادات (افعال و ارکان).

**تشریح:** په حج کي درې خطبې سنت دي چي امام به درې ځایه خطبه وایي: ① د ذو الحجې په اُوومه (۷) په مکه مکرمه کي، ② د ذو الحجې په نهمه په عرفات کي، ③ د ذو الحجې په یوولسمه (۱۱) په منیٰ کي، په دې عبارت کي د اولې خطبې بیان دی، فرمایي چي د ذو الحجې په اُوومه به د ماپښین تر لمانځه وروسته یوه خطبه وایي چي په هغه کي به خلکو ته د حج د افعالو تعلیم ورکړي. (انوار الایضاح)

## د ذو الحجې د اتمې افعال

﴿۱۲۹۲﴾ وَالْخُرُوْجُ بَعْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ مِنْ مَكَّةَ لِمِنًى (۲۱) او په یومُ الترویه (یعني د ذو الحجې په اتمه) تر لمر لوېدو وروسته له مکې شریفي څخه و منیٰ ته وتل (روانېدل) وَالْمَبِيْتُ بِهَا (۲۲) او په منیٰ کي شپه تېرول ثُمَّ الْخُرُوْجُ مِنْهَا بَعْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ يَوْمَ عَرَفَةَ إِلٰى عَرَفَاتٍ (۲۳) بیا د عرفات په ورځ (په نهمه) تر لمر لوېدو وروسته و عرفات ته وتل (روانېدل).

**لغات:** ﴿یوم الترویة﴾ د ذو الحجې اتمه ورځ، ﴿منیٰ﴾ منیٰ له مسجد حرام څخه د درېو میلو پر فاصل واقع ده، کوم چي له وادئ محسر څخه تر جمرهٔ عقبه پوري یو پراخ میدان دی چي دواړو طرفونو ته یې غرونه دي، ﴿مبیت﴾ د ضرب له بابه مصدرِ میمي دی: شپه تېرول.

**تشریح:** د ذو الحجې په اتمه ورځ (یومُ الترویه) کي تر لمر راختلو وروسته د منیٰ و طرف ته روانېدل سنت دي او هلته شپه تېرول هم سنت دي، د دې لپاره چي په نهمه (یومُ العرفه) کي عرفات ته تلل آسانه سي، ځکه د ذو الحجې په نهمه ورځ تر لمر راختلو وروسته له منیٰ څخه عرفات ته وتل سنت دي.

**یادونه**: لېکن په اوس وخت کي د شپې لخوا منیٰ ته روانېدل شروع کیږي. د عامو خلکو لپاره د هغه ځای له تاکلو بسانو او موټرانو څخه بغیر په منیٰ کي خپل ځېمو ته رسېدل ډېر مشکل دي. نو ځکه عوامو ته همدا مشوره ورکول کیږي چي کوم وخت هم هغه بسانو او موټرانو والا د دوی د بېولو لپاره ټاکلی وي. د هغه پابندي دي وکړي او تر لمر راختلو پوري دي انتظار نه کوي. (انوار الایضاح)

## په عرفات کي تر زوال وروسته خطبه ویل او د ماپښین او مازیګر لمنځونه یو ځای اداء کول

﴿۱۲۹۳﴾ فَيَخْطُبُ الْإِمَامُ بَعْدَ الزَّوَالِ (۲۴) بیا دي امام خطبه ووایي تر زوال وروسته قَبْلَ صَلٰوةِ الظُّهرِ وَالْعَصْرِ مَجْمُوْعَةً جَمْعَ تَقْدِيْمٍ مَعَ الظُّهْرِ د ماپښین او (همدارنګه د) مازیګر تر لمانځه مخکي په داسي حال کي چي (دا دواړه لمنځونه) جمع کړل سوي وي د جمع تقدیم په توګه (یعني چي د مازیګر لمونځ دي له خپل وخت څخه رامقدم کړل سي) د ماپښین د لمانځه سره (دي یو ځای اداء کړل سي) خُطْبَتَيْنِ يَجْلِسُ بَيْنَهُمَا دوې خطبې چي د هغوی دواړو په مینځ کي دي کښېني. (په لنډه وینا دا چي: بیا دي امام [په عرفات کي] تر زوال وروسته دوې خطبې ووایي د مازیګر او ماپښین د لمنځونو له جمع تقدیم څخه مخکي او د دواړو خطبو په مینځ کي دي ناسته وکړي).

**لغات**: ﴿مجموعةً﴾ د فتح له بابه مفعول دی: جمع کړی سوی (یو ځای کړی سوی)، دا له "العصر" څخه د حال کېدو پر بناء منصوب دی. ﴿تقدیم﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: مقدّم کول، مخکي کول. جمع تقدیم: د مازیګر لمونځ د ماپښین وخت ته را مخکي کول او د ماپښین د لمانځه سره یو ځای اداء کولو ته جمع تقدیم وایي.

**تشریح**: د ذو الحجې په نهمه (د عرفات په ورځ) تر زوال وروسته به فوراً د ماپښین اذان کیږي او تر اذان وروسته به امام د جمعې د ورځي په څېر تر لمانځه مخکي دوې خطبې وایي چي په هغوی کي به د حج احکام بیانوي او تکبیر تشریق به وایي او له خطبې څخه تر فراغت وروسته به د ماپښین لمونځ او د مازیګر لمونځ دواړه یو ځای د ماپښین په وخت کي په دوو جلا، جلا اقامتونو سره اداء کوي، دا جمع بین الصلاتین ده او دې ته جمع تقدیم وایي (ځکه په دې کي د مازیګر لمونځ له خپل وخت څخه را مقدّم کول کیږي)، او تر لمونځ کولو وروسته به وقوف کول کیږي. (انوار الایضاح، ثمرة النجاح)

## د وقوف عرفه سنت طریقه

﴿۱۲۹۴﴾ وَالْاِجْتِهَادُ فِي التَّضَرُّعِ وَالْخُشُوْعِ وَالْبُكَاءِ بِالدُّمُوْعِ (۲۵) او کوشش کول د عاجزۍ (عجز) او د ځان د بې وسۍ (او بیري) په ښکاره کولو (او توجه سولو) او په اوښکو سره ژړلو کي

وَالدُّعَاءُ لِلنَّفْسِ وَالْوَالِدَيْنِ وَالْإِخْوَانِ الْمُؤْمِنِيْنَ بِمَا شَاءَ مِنْ أَمرِالدَّارَيْنِ (۲۶) او دعاء كول د خپل ځان، مور و پلار او مؤمنانو وروڼو لپاره د دين او دنيا له كارونو څخه چي د كوم څه (دعاء) يې خوښه وي فِي الْجَمْعَيْنِ په دواړو جمعو (مجمعو) كي.

**لغات:** ﴿الاجتهاد﴾ د افتعال د باب مصدر دی: پوره كوشش كول، محنت كول. ﴿تضرع﴾ د تفعل د باب مصدر دی: د عاجزۍ اظهار كول، د خپل بې وسۍ او لاچارۍ اظهار كول. ﴿خشوع﴾ د فتح د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي: ځان ټيټ ښكاره كول (ځان ټيټول)، د عاجزۍ اظهار كول (لكه د تضرع چي همدا معنیٰ ده)، ښېرېدل او داسي نور. په لمانځه او داسي نورو عباداتو كي د خشوع او تضرع مطلب دا دی چي د عبادت په دوران كي د الله ﷻ په ستر دربار كي ځان حاضر ګڼل او د ځان د عاجزۍ او ټيټوالي اظهار كول او په زړه او دماغ ټولو سره د الله وطرف ته پوره متوجه كېدل، همدارنګه كلمات وغيره په توجّه سره ويل. ﴿في الجمعين﴾ دا جار و مجرور د "الاجتهاد" مصدر سره متعلق دي. او صاحب د ثمرة النجاح ليكلي دي چي له دواړو جمعو څخه د عرفات جمع بين الصلاتين او د مزدلفې جمع بين الصلاتين مراد ده (په مزدلفه كي هم د ماښام او ماخوستن لمنځونه د ماخوستن په وخت كي سره جمع كول كېږي)(والله أعلم).

**تشريح:** په عرفات كي د وقوف كولو په دوران كي دي مخ پر قبله ودرېږي، دواړه لاسونه دي د آسمان وطرف ته پورته كړي، تكبير، تهليل، تسبيح، حمد و ثناء، استغفار او درود شريف دي وايي او د زړه په حضور سره دي د خپل مور و پلار، قريبانو، عزيزانو، دوستانو او ټولو مؤمنانو (نارينه او ښځينه) لپاره په ژړا، ژړا سره دعاء وكړي او په همدې طريقه سره دي بار، بار دعاګاني وغواړي (دا سنت دي). (انوار الايضاح)

**يادونه:** صاحب د ثمرة النجاح (مولانا ثمير الدين قاسمي مدظله العالی) ليكلي دي چي له "جمعين" څخه مراد د عرفات او مزدلفې دواړو جمع بين الصلاتين ده او مطلب د عبارت دا دی چي په عرفات او مزدلفه كي دي په خشوع وخضوع او ژړا سره دعاګاني كوي. (ثمرة النجاح ج:۲، ص:۳۲۵)، خو د نور الايضاح په نورو شروحو كي مي دا صراحت نه وميندی.

﴿۱۲۹۵﴾ وَالدَّفْعُ بِالسَّكِيْنَةِ وَالْوَقَارِ بَعْدَ الْغُرُوْبِ مِنْ عَرَفَاتٍ (۲۷) او روانېدل په سكون (آرام) او په حلم (زغمنه او نرمتوب) سره تر لمر لوېدلو وروسته له عرفات څخه.

**لغات:** ﴿وقار﴾ په عربي كي د دې لفظ څو معناوي دي: حِلم (تكليف زغمل، تحمّل)، نرمتوب، لويي، عزت او درنښت. (معجم الوسيط بتفصيل)

**تشريح:** د عرفات په ورځ تر لمر لوېدو وروسته دي په سکون او و قار سره له ميدان عرفات څخه ووځي په داسي حال کي چي د تلبيه، تکبير او تهليل ويونکي او ذکر کونکي وي، دا هم سنت دي، او د عرفات په ورځ د حاجيانو لپاره تر لمر لوېدو مخکي د عرفات له حدودو څخه وتل جائز نه دي.(ثمرة النجاح. انوار الايضاح)

## وقوف مزدلفه

﴿۱۲۹۶﴾ وَالنُّزُوْلُ بِمُزْدَلِفَةَ مُرْتَفِعًا عَنْ بَطْنِ الْوَادِيْ بِقُرْبِ جَبَلِ قُزَحَ (۲۸) او کښته کېدل (تمېدل) په مزدلفه کي له بطن وادي څخه لوړ (لوړي خواته) جبل قُزح ته نژدې.

**لغات:** ﴿جبل قزح﴾ دا د مزدلفې په ميدان کي يو کوچنی غر دی چي د هغه په لمنه کي "مسجدِ مشعرحرام" جوړ سوی دی، او د دې غره لپاره آثار پاته دي، کله چي له عرفات څخه مزدلفې ته روانيږي، نو راسته او چپه طرف ته دوه غرونه دي کله چي د دواړو غرونو تر مينځ تېر سي او د غره حصه ختمه سي، نو د مزدلفې حصه شروع کيږي او مخامخ جبل قزح او "مسجد مشعر حرام" ليدل کيږي (ايضاح المناسک). قُزَح پر وزن د عُمَر دی، غيرِ منصرف دی د علميت او عدل پر بناء، له قازح څخه معدول دی په معنیٰ سره د لوړوالي. (طحطاوي)

**تشريح:** د وقوف مزدلفه وخت د ذو الحجې لسمه (يعني دلوی اختر په ورځ) له صبح صادق څخه تر طلوع الشمس پوري (دالړ وخت) دی، لهذا که څوک له صبح صادق (طلوع الفجر) څخه مخکي يا له طلوع الشمس (لمر راختلو) څخه وروسته وقوف وکړي، نو دهغه وقوف نه صحيح کيږي، او په مزدلفه کي يو ځای "بطن وادي" دی، هلته دي نه دريږي، بلکي د قُزَح غره سره دي نژدې دريږي، دا سنت دي (او صاحب د "انوار الايضاح" ليکلي دي چي مستحب دي).

﴿۱۲۹۷﴾ وَالْمَبِيْتُ بِهَا لَيْلَةَ النَّحْرِ (۲۹) او شپه تېرول په مزدلفه کي د قربانۍ (لوی اختر) شپه.

**تشريح:** د عبارت مطلب دا دی چي کله د ذو الحجې په نهمه تر لمر لوېدو وروسته له عرفات څخه ومزدلفې ته ولاړ سي، نو را روانه شپه کوم چي د ذو الحجې لسمه شپه ده يعني د لوی اختر شپه هلته په مزدلفه کي تېرول سنت دي او وقوف مزدلفه (چي په تېر عبارت کي بيان وسو) واجب دی.

## د منیٰ ورځي او شپې

﴿۱۲۹۸﴾ وَبِمِنٰى أَيَّامَ مِنٰى بِجَمِيْعِ أَمْتِعَتِهِ (۳۰) او (شپه تېرول اوتمبدل) په منیٰ کي د منیٰ په ورځو کي د خپل ټوله سامان سره.

﴿۱۲۹۹﴾ وَ كُرِهَ تَقْدِيْمُ ثِقْلِهِ إِلٰى مَكَّةَ إِذْ ذَاكَ او مکروه دي خپل سامان مخکې استول ومکې مکرمې ته په دغو ورځو کې.

**لغات**: ﴿جميع﴾ ټوله، کُل، د تأکید لفظي لپاره دی، ﴿أمتعة﴾ جمع د مَتَاع ده: سامان. هر د استفادې قابل شی، ﴿ثِقْل﴾ وزن، بوج، دروند والی (درونډ شی)، جمع: أَثْقَال.

**تشریح**: د ذو الحجې په لسمه (د لوی اختر په ورځ) چې طواف زیارت وکړي، نو واپس دې منیٰ ته راسي او د منیٰ په ورځو (یعني د ذو الحجې په لسمه، یوولسمه او دوولسمه) کې دې هلته رمی جمار کوي (یعني په دې دریو ورځو کې دې شیطانان ولي) او دا درې شپې دې هلته (په منیٰ) کې پاتې کړي، دا سنت دي. (لهذا که له منیٰ څخه بغیر بل ځای شپې تېروي قصداً، نو پر هغه هیڅ شی واجب نه دي)

**فایده**: په حقیقت کې د حج ټوله پنځه ورځې دي: د ذو الحجې اتمه، نهمه، لسمه، یوولسمه او دوولسمه. د ذو الحجې له دغو پنځو ورځو څخه درې ورځې ایام منیٰ دي، یعني ۱۰/ ۱۱/ ۱۲ د ذو الحجې. یعني نهمه د ذو الحجې له ایام منیٰ څخه نه ده، بلکې هغه د عرفات ورځ ده.

وكُرِهَ تقديم إلخ: او په دې د منیٰ (رمی) په ورځو کې خپل ټوله سامان یعني د پروتې، ناستې پاستې او داسې نور سامان ومکې مکرمې ته نقل کول مکروه دي؛ ځکه په سامان د مشغولېدلو په وجه زړه د حج له افعالو څخه غافله کیږي. خو نن سبا په مکه مکرّمه کې په خپل استوګنځې کې سامان په حفاظت سره پروت وي او حاجیان د ضرورت په اندازه خپلې بسترې د ځان سره وړي. په دې کې څه حرج نشته.

﴿۱۳۰۰﴾ وَيَجْعَلُ مِنٰى عَنْ يَّمِيْنِهِ وَ مَكَّةَ عَنْ يَّسَارِهِ حَالَةَ الْوُقُوْفِ لِرَمْيِ الْجِمَارِ (۳۱) او (دا هم سنت دي چې) منیٰ دې وخپل راسته طرف ته او مکه دې وخپل چپه طرف ته کړي د جمراتو د رمی (شیطانانو ویشتلو) لپاره د درېدلو په حالت کې.

**تشریح**: د رمي کولو لپاره د میدان په مینځ کې داسې درېدل چې کعبه شریفه وچپه طرف ته راسي او منیٰ وراسته طرف ته راسي، دا سنت دي، هسې خو له څلورو سره طرفونو څخه رمی کول صحیح دي، خو سنت پورتنی طریقه ده؛ ځکه نبي کریم ﷺ د میدان له مینځ (بطنِ وادي) څخه رمی کړې وه او د رمي لپاره همداسې درېدلی وو چې کعبه یې شریف یې چپه طرفه ته وه او منیٰ راسته طرف ته وه. خو نن سبا هلته نه وادي سته او نه د هغه مینځ سته، خو د سنت په لحاظ کولو سره د رمي لاره جوړه سوې ده. (انوار الایضاح، ثمرة النجاح)

## د رمي (شیطان ویشتلو) په وخت کې د دربدلو طریقه

﴿۱۳۰۱﴾ وَكَوْنُهُ رَاكِبًا حَالَةَ رَمْيِ جَمْرَةِ الْعَقَبَةِ فِيْ كُلِّ الْأَيَّامِ (۳۲) او د ده سپور کېدل (چي دئ به سپور وي) د جمرهٔ عقبه د رمی (ویشتلو) په حالت کې په ټولو ورځو کې مَاشِيًا فِي الْجَمْرَةِ الْأُوْلَى الَّتِيْ تَلِي الْمَسْجِدَ وَالْوُسْطٰى (او د ده) پیاده کېدل په (حالت د ویشتلو د) جمرهٔ اولیٰ کې کوم چې د مسجد (مسجدِ خیف) سره متصل ده او په جمرهٔ وسطیٰ کې.

﴿۱۳۰۲﴾ وَالْقِيَامُ فِيْ بَطْنِ الْوَادِيْ حَالَةَ الرَّمْيِ (۳۳) او درېدل په "بطنِ وادي" کې د رمی په حالت کې.

**لغات:** ﴿جمرهٔ عقبه﴾ په منیٰ کې چې کوم مشهوره درې ستنې (پایې) دي کوم چې په کاڼو ویشتل کیږي (چي عوام ورته شیطانان وایي)، له هغوی څخه د حرم شریف وطرف ته چې تر ټولو آخره کومه ستنه (پایه) ده، هغه ته جمرهٔ عقبه وایي، همدارنګه جمرهٔ کُبریٰ او جمرهٔ اُخریٰ هم ورته ویل کیږي، او کومه ستنه (پایه) چې د "مسجدِ خیف" سره نژدې ده، هغه ته "جمرهٔ اولیٰ" وایي (مسجدِ خیف په منیٰ کې یو لوی مسجد دی، هغه ته نژدې چې کوم شیطان دی، هغه ته جمرهٔ اولیٰ وایي)، او د "جمرهٔ اولیٰ" څنګ ته چې کومه ستنه (پایه) ده، هغه ته "جمرهٔ اولیٰ" وایي.

**تشریح:** مسئله دا ده چې د ذو الحجې په لسمه (یعني دلوی اختر په ورځ) به صرف جمرهٔ عقبه ویشتل کیږي او په یوولسمه او دوولسمه کې د دریو سره جمراتو ویشتل (رمی) واجب دي، اوس دلته مصنف رَحِمَهُ الله فرمایي چې د جمرهٔ عقبه (جمرهٔ آخره) ویشتل به په ټولو ورځو کې د سپرتیا په حالت کې کول کیږي او پاته سوه جمرهٔ وسطیٰ او جمرهٔ اولیٰ، هغه په پښو (پیاده) ویشتل افضل دي.

د همدې په رڼا کې احنافو دلته دا قاعده بیان کړې ده چې تر کومي رمي (ویشتلو) وروسته بله رمی وي، نو هغه رمی په پښو کول افضل دي او چې تر کومي رمی وروسته رمی نه وي (لکه د جمرهٔ عقبه رمی)، هغه په سپرتیا سره کول افضل دي. خو نن سبا ټوله خلک په پښو (پیاده) رمی کوي؛ ځکه پر سپارلي د رمی کولو اوس هیڅ صورت نسته. (انوار الایضاح بتصرّفٍ)

والقیام فی إلخ: یعني کله چې رمي (ویشتل) کوي، نو د میدان له مینځ څخه دي یې کوي، د دې تفصیل څه مخکې په ﴿۱۳۰۰﴾ نمبر مسئله کې تېر سو.

﴿۱۳۰۳﴾ وَكَوْنُ الرَّمْيِ فِي الْيَوْمِ الْأَوَّلِ فِيْمَا بَيْنَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَزَوَالِهَا (۳۴) او په اوله ورځ د لمر راختلو او زوال تر مينځ د رمی کېدل وَفِيْمَا بَيْنَ الزَّوَالِ وَغُرُوْبِ الشَّمْسِ فِيْ بَاقِي الْأَيَّامِ او په پاته (دوو) ورځو کي د زوال او لمر لوېدلو تر مينځ (د رمی کېدل) وَكُرِهَ الرَّمْيُ فِي الْيَوْمِ الْأَوَّلِ وَالرَّابِعِ فِيْمَا بَيْنَ طُلُوْعِ الْفَجْرِ وَالشَّمْسِ او په اوله او څلورمه ورځ د صبح صادق او لمر راختلو په مينځ (دوران) کي رمی کول مکروه دي.

**تشریح**: له اولي ورځي څخه مراد د ذوی الحجي ۱۰ (يعني دلوی اختر ورځ) ده چي په دې ورځ تر لمر راختلو وروسته د رمی وخت شروع کيږي او تر زواله پوري د رمی سنت وخت دی، لېکن که تر مابنامه پوري يې په يو وخت کي وکړي، نو هم څه حرج نسته، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز که د شپې هم رمی وکړي، نو جائز دي، نن سبا د خلکو د ډېر رش په وجه د صاحبينو پر قول فتویٰ ده (ځکه د ورځي د ډېر رش په وجه جمراتو ته رسېدل مشکل وي).

له باقي ورځو څخه مراد د ذو الحجې ۱۱ او ۱۲ ده، په دې دوو ورځو کي تر زوال وروسته د رمی وخت شروع کيږي او تر مابنامه پوري رمی کول سنت دي، لېکن که څوک يې د شپې وکړي، نو ادا، کيږي، نن سبا د ډېر رش په وجه پر همدې فتویٰ ده.

وکره الرمی الخ: په اوله ورځ يعني د ذو الحجې په لسمه، همدارنګه په څلورمه ورځ يعني د ذو الحجې په ديارلسمه له صبح څخه تر لمر راختلو پوري رمی کول مکروه دي. (شفاء الارواح، ثمرة النجاح)

﴿۱۳۰۴﴾ وَكُرِهَ فِي اللَّيَالِي الثَّلَاثِ او په دريو سره شپو کي (رمی کول) مکروه ده وَصَحَّ او صحيح ده (يعني که د مکروه والي باوجود په شپو کي رمی وکړل سي، نو صحيح ده) لِأَنَّ اللَّيَالِيَ كُلَّهَا تَابِعَةٌ لِمَا بَعْدَهَا مِنَ الْأَيَّامِ ځکه چي ټوله شپې تابع دي د هغه ورځو کوم چي تر شپو وروسته دي (مثلا اول د جمعې شپه راځي بيا تر شپې وروسته يې د جمعې ورځ راځي، خو څلور شپې له دغه قاعدې څخه مستثنیٰ دي چي هغه دا دي) إِلَّا اللَّيْلَةَ الَّتِيْ تَلِيْ عَرَفَةَ مګر (يو) هغه شپه کوم چي د عرفات (د ورځي) سره متصل ده (يعني د عرفات د ورځي څخه وروسته راروانه شپه کوم چي د لوی اختر شپه ده، هغه د عرفات د ورځي تابع ده يعني هغه د عرفات شپه کيږي) حَتّٰى صَحَّ فِيْهَا الْوُقُوْفُ بِعَرَفَاتٍ تر دې چي

په دې شپه کې په عرفات کې وقوف کول صحیح دي وَهِيَ لَيْلَةُ الْعِيْدِ او همدا شپه د اختر شپه ده (خو تابع د عرفات د ورځې ده یعنی د عرفات شپه کیږي) وَلَيَالِيْ رَمْيِ الثَّلَاثِ او (بل) د دریو جمرو د رمی شپې (یعنی د شیطانانو د ویشتلو دری شپې، یعنی د ذو الحجې یوولسمه. دوولسمه او دیارلسمه شپه) فَإِنَّهَا تَابِعَةٌ لِمَا قَبْلَهَا نو دا شپې د خپل مخکنیو ورځو تابع دي.

**تشریح:** په اسلامي تاریخ کي شپه همېشه د را رواني ورځې تابع وي یعني اول شپه راځي او تر هغه وروسته یې ورځ راځي (یا په بله وینا شپه همېشه د مابعد تابع وي، نه د ماقبل)، مثلاً اول د جمعې شپه راځي بیا تر شپې وروسته د جمعې ورځ راځي، خو څلور شپې د مابعد تابع نه دي بلکې د ماقبل تابع دي، یعني د ذو الحجې ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲ له دغه قاعدې څخه مستثنیٰ دي، مثلاً د ذو الحجې په نهمه د عرفات ورځ ده او د عرفات شپه را روانه شپه کیږي کوم چې د لوی اختر شپه ده. د قاعدې په لحاظ سره خو تېره شپه د عرفات شپه کېدل پکار دي خو دلته د ذو الحجې د لسمې یعني د لوی اختر شپه د عرفات شپه کیږي (همدا وجه ده که د ذو الحجې په نهمه ورځ وقوف عرفه وکړي او په دې را روانه شپه هم وقوف عرفه وکړي، نو هم اداء کیږي)، همدغه ډول را رواني درې ورځې یعني ۱۰، ۱۱ او ۱۲ کوم چې د رمی ورځې دي، هغوی مخکې دي او بیا د دوی شپه راځي.

اوس مسئلې ته ګورئ! صورت د مسئلې دا دی چې د ذو الحجې د لسمې (یعني د لوی اختر د ورځې) رَمی تر لمر راختلو وروسته کول افضل او اولیٰ دي او تر لمر راختلو مخکې په شپه کې رَمی کول جائز نه دي (ځکه دا شپه د ماقبل تابع ده، نو دا د لوی اختر شپه د نهمې ورځې [عرفات] شپه کیږي. او تاسې ته معلومه ده چې د عرفات ورځ د رَمی ورځ نه ده)، او که دا د ذو الحجې د لسمې ورځې رَمی په را روانه شپه وکړي (کوم چې د یوولسمې شپه ده)، نو هم رمی اداء کیږي (ځکه هغه د لسمې شپه کیږي)، خو داسې کول مکروه دي، همدارنګه د یوولسمې او دوولسمې ورځې د رَمی وخت خو له زوال څخه شروع کیږي بیا تر لمر لوېدو پورې، خو که یې په را روانه شپه وکړي، نو هم رَمی اداء کیږي، خو داسې کول مکروه دي، لنډه دا چې د دې ورځو شپه یعني تر لمر لوېدو وروسته تر صبح صادق پورې دا مکروه وخت دی او تر هغه مخکې (یعني له زوال څخه تر لمر لوېدو پورې) مسنون وخت دی، له دغه تفصیل څخه معلومه سوه چې رمی په ورځ کې کول پکار دي، که د شپې رمی وکړل سي، نو مکروه دي، لېکن که د ورځې

د زیات رش په وجه جمراتو (شیطانانو) ته رسېدل مشکل وي، نو بیا د شپې رمی کول بېله کراهته صحیح دي.

﴿۱۳۰۵﴾ وَالْمُبَاحُ مِنْ أَوْقَاتِ الرَّمْيِ مَا بَعْدَ الزَّوَالِ إِلٰى غُرُوْبِ الشَّمْسِ مِنَ الْيَوْمِ الْأَوَّلِ او د رمی له وختونو څخه مباح وخت په اوله ورځ (یعني ذو الحجې په لسمه) له زوال څخه وروسته تر لمر لوېدو پورې دی.

**تشریح:** د رمی په اوله ورځ یعني د ذو الحجې په لسمه (کوم چې دلوی اختر ورځ ده) له زوال څخه تر لمر لوېدو پوري د رمی لپاره مباح (روا) وخت دی (لهذا په اوله ورځ که څوک د طلوعِ الشمس او زوال په مینځ کي رمی نه وکړي کوم چي د رمی مسنون وخت دی، نو بیا د زوال او غروب الشمس په مینځ کي هم د دغه لپاره رمی کول روا دي). خو بېله عذره تر زواله پوري تأخیر خلاف سنت دی.

﴿۱۳۰۶﴾ وَبِهٰذَا عُلِمَتْ أَوْقَاتُ الرَّمْيِ كُلُّهَا جَوَازًا وَكَرَاهَةً وَاسْتِحْبَابًا او په همدې (بیان) سره معلوم سول د رمی ټوله وختونه د جائز والي، مکروه والي او مستحب والي په اعتبار سره (یعني له مخکیني بیان څخه د رمی [شیطان ویشتلو] جائز وختونه او مکروه او مستحب وختونه ټوله معلوم سول).

**تشریح:** له مسئله نمبر ﴿۱۳۰۳﴾ څخه تر دې ځایه پوري چي کوم عبارت دی، له دې ټوله عبارت څخه د رمی د جواز، کراهت او استحباب وختونه معلوم سول، یعني چي کله رمی کول جائز ده، کله مکروه ده او کله مستحب ده، ستاسي د آسانتیا لپاره به ټوله صراحتاً را نقل کړو:

د اولي یعني د ذو الحجې د لسمي ورځي رَمی له طلوع الشمس څخه تر زواله پوري کول مستحب او افضل دي، او له طلوع الشمس څخه مخکي او تر صبح صادق (سپېده چاود) وروسته کول مکروه دي او له صبح صادق څخه مخکي د شپې کول بالکل ناجائز دي (ځکه دا شپه د ما قبل یعني د عرفات د ورځي تابع ده کوم چي د رمی ورځ نه ده)، او په همدې لسمه ورځ له زواله څخه تر غروبُ الشمس پوري هم رمی کول بېله کراهته مباح او جائز دي، خو بېله عذره تر دې وخته پوري تأخیر کول خلاف سنت دي او له غروبُ الشمس څخه وروسته رمی کول مکروه دي.

او د ذو الحجې د یوولسمي او دوولسمي د رمی وخت له زواله څخه شروع کېږي او د را رواني ورځي تر صبح صادق پوري پاتېږي، خو له زواله څخه تر غروب الشمس پوري دا یې سنت وخت دی او له غروب الشمس څخه تر صبح صادق پوري دا یې مکروه وخت دی او تر صبح صادق وروسته د قضاء وخت شروع کېږي او د رمی د قضاء وخت د ذو الحجې د دیارلسمي ورځي تر غروبُ الشمس پوري پاتېږي، تر دې وروسته د رمی وخت ختمېږي، او که د ذو الحجې په دیارلسمه هم په منیٰ کي پاته سي، نو تر زواله پوري د دریو سره جمراتو رمی کول واجب دي (لکه څه وروسته په ﴿۱۳۰۹﴾ نمبر مسئله کي به هم دا جزئیه ذکر سي)، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز تر زوال مخکي رمی جائز نه ده، که تر

زوال مخکې رمی وکړي، نو اعاده يې لازم ده يعني تر زوال وروسته به دوباره رمی کوي. او که اعاده نه وکړي، نو په جرمانه کې يوه قرباني واجبيږي، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په دې صورت کې يعني په دیارلسمه ورځ تر زوال مخکې د رمی کولو په صورت کې اعاده نسته. (انوار الايضاح بحواله الجوهرة النيرة ج:۱، ص:۱۹۷، و حاشية نور الايضاح)

## قرباني د کوم حاجي لپاره سنت او د کوم يوه لپاره واجب ده؟

﴿۱۳۰۷﴾ وَمِنَ السُّنَّةِ هَدْيُ الْمُفْرِدِ بِالْحَجِّ (۳۵) او (ممدارنګه) له سنت څخه دي هدی کول (يعنې څاروی (قرباني) ذبح کول) د حج إفراد کونکي حاجي (لپاره) وَالْأَكْلُ مِنْهُ او له دې هدي (قرباني) څخه خوړل (ورلره جائز دي) وَمِنْ هَدْيِ التَّطَوُّعِ وَالْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ فَقَطْ او له نفلي هدی (نفلي قرباني) او د تمتع او قِران له هدی څخه (هم خوړل جائز دي) فقط (يعني ذبح کونکي امالک الره فقط له دغه هديو (قربانيو) څخه خوړل جائز دي او پاته سوله دې څخه بغير د جناياتو له قربانيو څخه خوړل ورلره جائز نه دي).

**لغات:** ﴿مُفْرِد بالحج﴾ حج إفراد کونکی (يعني کوم چي يوازي حج کوي، نه عمره). مخکې ذکر سوه چي حج پر درې قسمه دي: ① حَجّ إِفْرَاد. حج إفراد دې ته وايي چي حاجي له ميقات څخه يوازي د حج احرام وتړي (يعني فقط د حج لپاره احرام وتړي. نه د عمرې لپاره) او چي کله د حج ارکان اداء کړي او حج ختم کړي. نو احرام خلاص کړي. داسي حاجي ته مُفْرِد وايي، ② حَجّ قِرَان، دې ته وايي چي له ميقات څخه د حج او عُمرې دواړو احرام يو ځای وتړي. داسي حاجي ته قَارِن وايي، ③ حَجّ تَمَتُّع، دې ته وايي چي د حج په مياشتو کې صرف د عمرې احرام وتړي او چي کله عمره ختمه کړي، نو احرام خلاص کړي، بيا د ذو الحجې په اتمه ورځ (يوم الترويه) باندي د حج احرام وتړي. داسي حاجي ته مُتَمَتِّع وايي.

**تشريح:** مسئله دا ده چي کوم څوک حج تمتّع يا حج قران کوي، نو پر هغه قرباني کول واجب دي (لکه مخکې چي هم ذکر سوه)، ليکن کوم څوک چي حج إفراد کوي. نو پر هغه قرباني لازمه نه ده. خو سنت دا ده چي هغه هم قرباني وکړي. او هغه د خپلې قرباني غوښې خوړلای هم سي، همدارنګه د حج تمتع او حج قران د قرباني غوښې هم خپله خوړلای سي، خو کومه قرباني چي د يو جرم (جنايت) پر بناء کول کيږي، نو د هغې مستحق صرف فقراء او غريبان دي، خپله خوړل يا مالدارانو ته ور کول صحيح نه دي، (په لنډه توګه دا چي د جناياتو قرباني صرف د غريبانو لپاره جائز ده. او د حج قران قرباني. نفلي قرباني، د تمتع او إفراد قرباني خپله د قرباني کونکي لپاره هم جائز ده).

## د حج دریمه خطبه

﴿۱۳۰۸﴾ وَ مِنَ السُّنَّةِ الْخُطْبَةُ يَوْمَ النَّحْرِ مِثْلَ الْأُوْلٰى (۳۶) او (همدارنګه) له سنت څخه دي خطبه ویل په یومُ النحر کي داولي خطبې په څېر يُعَلِّمُ فِيْهَا بَقِيَّةَ الْمَنَاسِكِ په دې کي به د حج پاته افعال (او ارکان) ورښيي وَهِيَ ثَالِثَةُ خُطَبِ الْحَجِّ او دا دريمه خطبه ده د حج په خطبو کي.

**لغات**: ﴿يوم النحر﴾ د قرباني ورځ کوم چي لسمه د ذو الحجې ده يعني د لوی اختر ورځ، خو دلته له يومُ النحر څخه مراد يوولسمه د ذو الحجې ده (يعني دلوی اختر دويمه ورځ). (انوار الايضاح)

**تشريح**: مخکي ذکر سوه چي په حج کي درې خطبې سنت دي چي امام به يې وايي: ① د ذو الحجې په اومه (۷) په مکه مکرّمه کي، ② د ذو الحجې په نهمه په عرفات کي، ③ د ذو الحجې په يوولسمه (۱۱) په منیٰ کي، په دې عبارت کي دآخري دريمي خطبې بيان دی چي د ذو الحجې په يوولسمه به يوه خطبه ووايي چي په هغه کي به خلکو ته د حج هغه احکام بيان کړي کوم چي باقي پاته سوي وي چي په مخکينو خطبو کي يې نه وي بيان کړي.

**فايده**: د حج د خطبو په شمېر کي د فقهاؤ اختلاف دی، د احنافو او مالکيانو په نېز درې خطبې دي کوم چي به د ذو الحجې په ۷/ ۹/ ۱۱ کي ويل کيږي، د شوافعو او حنابله وو په نېز څلور خطبې دي کوم چي به د ذو الحجې په ۷/ ۹/ ۱۰/ ۱۲ کي ويل کيږي، او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز هم درې خطبې دي، خو هغه به د ذو الحجې په ۸/ ۹/ ۱۰ کي ويل کيږي. (انوار الايضاح بحوالهٔ الدر المنضود ج: ۳، ص: ۲۶۵)

## د ذو الحجې په دوولسمه له منیٰ څخه روانېدل

﴿۱۳۰۹﴾ وَ تَعْجِيْلُ النَّفْرِ إِذَا أَرَادَهُ مِنْ مِنًى قَبْلَ غُرُوْبِ الشَّمْسِ مِنَ الْيَوْمِ الثَّانِيْ عَشَرَ (۳۷) او (همدارنګه سنت دي) ژر واپس کېدل (بيرته تلل) کله چي د هغه اراده وکړي له منیٰ څخه (دذو الحجې) د دولسمي ورځي تر لمر لوېدو مخکي وَإِنْ أَقَامَ بِهَا حَتّٰى غَرَبَتِ الشَّمْسُ مِنَ الْيَوْمِ الثَّانِيْ عَشَرَ او که په منیٰ کي پاته سي تر دې چي د دولسمي ورځي لمر ولوېږي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو پر ده هيڅ شی نسته (هيڅ جرمانه بانديي واجب نه ده) وَ قَدْ أَسَاءَ خو ده بد وکړه (دا يې بد کار وکړی) وَإِنْ أَقَامَ بِمِنًى إِلٰى طُلُوْعِ فَجْرِ الْيَوْمِ الرَّابِعِ او که د څلورمي

ورځې (يعني د ذو الحجې د ديارلسمې) تر صبح صادق راختلو (سپيده چاود) پورې په منیٰ کې پاتـه سې لَـزِمَـهُ رَمْـيُـهُ نو پر ده د هغه ورځې رمی (هم) لازم سوه.

**لغات:** ﴿تعجيل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: تېزي او تلوار کول، ژر کول. ﴿نفر﴾ د ضرب د باب مصدر دی: يو ځای پرېښوول بل ځای ته تلل (واپس کېدل)، کوچ کول. دلته مراد ځني د حاجيانو له منیٰ څخه ومکې ته واپس راتلل دي. ﴿أساء﴾ د افعال د باب ماضي ده: بد يا غلط کار کول.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چې کله د ذو الحجې په دوولسمه (کوم چې دلوی اختر درېيمه ده) له رمی څخه فارغ سي او له منیٰ څخه د وتلو اراده وکړي، نو تر لمر لوېدو مخکي وتل سنت دي. لېکن که لمر ولوېږي، نو بيا هم وتل جائز دي خو د کراهت سره. او د دې کراهت په وجه پر هغه هيڅ شی (جرمانه) نه واجبېږي.

خو که هغه د ذو الحجې د ديارلسمي (کوم چې د اختر څلورمه ده) تر صبح صادق (طلوع الفجر) پوري هلته په منیٰ کې پاته سي، نو د درېو سره جمراتو (شيطانانو) رمی کول پر هغه لازم سوه چې تر زواله پوري به يې په يو وخت کې کوي، لهذا که له رمی کولو څخه بغير روان سي، نو په جرمانه کې يوه قرباني باندې واجبېږي. (انوار الايضاح)

## په محصّب کې د پړاؤ کولو بيان

﴿۱۳۱۰﴾ وَمِنَ السُّنَّةِ النُّزُوْلُ بِالْمُحَصَّبِ سَاعَةً بَعْدَ ارْتِحَالِهِ مِنْ مِنًى (۳۸) او له سنت څخه په "مُحصّب" کې لږ ګړی کښته کېدل (تمېدل) دي له منیٰ څخه تر روانېدلو وروسته.

**لغات:** ﴿مُحصّب﴾ دې ځای ته په رواياتو کې أبطح او خيف بني کنانه هم ويل سوي دي (يعني دا توله د يو ځای نومونه دي) او دا هغه ميدان دی چې هلته قريشو پر خپل شرک او کفر باندې قسمونه اخيستي وه او له بنو هاشمو او بنو عبد المطلب څخه يې د تعلق پر قطع کولو قسمونه اخيستي وه او عهد يې کړی وو چې تر څو دوی موږ ته نبي کريم ﷺ نه وسپاري. موږ به د دوی سره هيڅ قسم تعلق نه ساتو. نه به نکاح ور سره کوو. او نه به بيع او سودا ور سره کوو. دا د اسلام د شروع زمانه وه (نو په بله وينا دا چې کفارو په دې ځای کې د اسلام ختمولو فيصله او قسمونه کړې وه)، درې کاله په همدې حالت کې د نبي کريم ﷺ پر خاندان په مشقت سره تېر سول. بيا اطلاع ورکول سوه چې قريشو کومه عهد نامه په کعبه شريفه کې ځړولې وه. هغه وينه وو (کوم چې مشهوره خزنده ده) خوړلې ده ما سوا د الله له نامه څخه. صرف د الله نوم پاته دی، نو په دې وخت کې د قريشو د قطع التعلق عهد ختم سو او نبي کريم ﷺ او د هغه خاندان له دې قيد څخه خلاصون وموموی (ګواکي اسلام وژغورل سو). نو په همدې خاطر چې کله نبي ﷺ تر رمی کولو وروسته له منیٰ څخه را واپس سو. نو په محصّب نومي ميدان کې يې پړاؤ وکړی او له ماز يګر څخه تر ماخوستنه پوري يې څلور لمنځونه همدلته په محصّب کې اداء کړل او د

ساخوستن تر لمانځه وروسته یې طواف وداع وکړی او د شپې ناوخته خپل ښار مدینې منوّرې ته روان سو (نو په محصّب کې په شوه، کېدلو او پاتېدلو سره د نبي کریم ﷺ مقصد دا وو چي کفارو ته وښوول سي چي تاسي خو دلته داسلام ختمولو قسمونه کړي وه، حال دا چي د الله تعالیٰ په رحم او کرم سره اسلام بیرته د خپل قوت سره دلته مکې ته واپس راغلی او په مسلمانانو باندې الله رحم وکړی، قوت او طاقت یې ور په برخه کړی، نو د همدې په شکرانه کې نبي کریم ﷺ او صحابه وو په محصّب مقام کې پړاؤ وکړی). نو په دې وجه په محصّب کې د څه وخت لپاره پاتېدل سنت سوه. ﴿ارتحال﴾ د افتعال د باب مصدر دی: سفر کول او روانېدل، کوچېدل.

**تشریح:** محصّب نومي ځای د منیٰ او مکې شریف په مینځ کې دی، لهذا کله چي آخري رمی وکړي او له منیٰ څخه د مکې وطرف ته روان سي، نو اول دې په محصّب کې د څه وخت لپاره شوه او پاته سي، بیا دې مکې شریفې ته ولاړ سي، دا سنت دي؛ دلیل او تفصیل په لغاتو کې ذکر سو. خو څرنګه چي نن سبا هلته ځایونه جوړ سوي دي، نو ځکه اوس هلته د پړاؤ کولو څه صورت نسته. (تحفة الالمعي ج: ۳، ص: ۳۲۵)

## د زمزم اوبه چیښل

﴿۱۳۱۱﴾ وَ شُرْبُ مَاءِ زَمْزَمَ (۳۹) او د زمزم اوبه چیښل وَالتَّضَلُّعُ مِنْهُ او تر ډک نسه پوري د هغوی چیښل (یعني بنه زیاتي چیښل او ځان پوره په اُوبول).

﴿۱۳۱۲﴾ وَ اسْتِقْبَالُ الْبَيْتِ وَالنَّظَرُ إِلَيْهِ قَائِمًا (۴۰) او (د چیښلو په وخت کي) کعبې شریفې ته مخ کول (۴۱) او هغې ته کتل، په داسي حال کي چي ولاړ وي (یعني د زمزم اوبه مخ پر قبله کعبې شریفې ته په کتلو سره په ولاړي چیښل) وَالصَّبُّ مِنْهُ عَلَىٰ رَأْسِهِ وَ سَائِرِ جَسَدِهِ او د زمزم له اُوبو څخه څه اوبه په خپل سر او په ټوله بدن باندې اچول (تویېول).

﴿۱۳۱۳﴾ وَ هُوَ لِمَا شُرِبَ لَهُ مِنْ أُمُوْرِ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ او دا اُوبه د (هر) هغه څه (مقصد) لپاره دي د کوم څه لپاره چي وچیښل سي د دنیا او آخرت له کارونو (مقاصدو) څخه (یعني له دُنیوي او اُخروي مقاصدو څخه چي د کوم مقصد لپاره هم وچیښل سي، د هغه لپاره مؤثره دي چي هغه مقصد به یې ان شاء الله پوره سي).

**لغات:** ﴿زمزم﴾ (غیر منصرف دی): د کعبې شریفې سره متصل مبارک څاه چي د هغه مبارکي اوبه حاجیان وغیره چیښي او د تبرّک په توګه یې خپل وطن ته وړي، ﴿تضلّع﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: تر ډک (ماړه) نسه خوړل یا چیښل، دومره خوړل یا چیښل چي نس ډک سي، ځان پوره اُوبول، ﴿صبّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: اوبه وغیره اچول، تویېول.

**تشریح**: د زمزم په اوبو کې الله تعالیٰ داسې برکت ایښی دی چې د هغه هیڅ انتهاء نشته، د غه اوبه الله تعالیٰ د هر مرض لپاره شفاء ګرځولې ده، نو ځکه دا اوبه دې د برکت حاصلولو لپاره ښه زیاتې وڅیښې.

واستقبال البیت إلخ: د زمزم د اوبو څیښلو سنت طریقه دا ده چې مخ پر قبله ودریږي او په ولاړه یې وڅیښي، له نبي کرم ﷺ څخه په ولاړه دا څیښل ثابت دي، او د څیښلو په وخت کې دې خپل مرادونه په زړه کې راولي او لږ د زمزم اوبه دې پر خپل سر او بدن هم واچوي.

وهولما شرب له إلخ: فرمایي چې د زمزم په اوبو کې پروردګار داسې برکت او تاثیر ایښی دی چې د هغوی د څیښلو او استعمالولو په وخت کې کوم نیت هم وکړل سي، ان شاء الله هغه به ضرور پوره کیږي (خو یقین شرط دی)، لکه څرنګه چې په حدیث کې هم داسې نقل سوي دي: "سمعتُ جابر بن عبد الله یقول سمعتُ رسول الله ﷺ یقول: ماء زمزم لما شُرِبَ له". (ابن ماجه شریف. ص: ۲۳. حدیث رقم: ۳۰٦۲)، همدارنګه نقل سوي دي چې سترو علماؤ د غتو کارو لپاره ماء زمزم استعمال کړي دي او د دوی مطلب حلّ سوی دی.

## د ملتزم سره التزام او دعاء کول

﴿۱۳۱۴﴾ وَمِنَ السُّنَّةِ اِلْتِزَامُ الْمُلْتَزَمِ (۴۳) او (همدارنګه) له سنت څخه دي د "ملتزم" سره ځان نیول (ځان ور سره لګول) وَهُوَ أَنْ يَّضَعَ صَدْرَهٗ وَوَجْهَهٗ عَلَيْهِ او هغه (التزام) دا دی چې خپله سینه او مخ پر ملتزم کښېږدي (ور سره ولګوي).

﴿۱۳۱۵﴾ وَالتَّشَبُّثُ بِالْأَسْتَارِ سَاعَةً (۴۴) او (همدارنګه له سنت څخه دي، د کعبې شریفې) پردې نیول د لږ ګړي لپاره دَاعِيًا بِمَا أَحَبَّ (۴۵) په داسې حال کې چې (په دې وخت کې) دعاء کونکی وي د هغه څه کوم چې ور ته خوښ وي وَتَقْبِيْلُ عَتَبَةِ الْبَيْتِ (۴٦) او د کعبې شریفې چوکاټ (درشل) مچول وَدُخُوْلُهٗ بِالْأَدَبِ وَالتَّعْظِيْمِ (۴۷) او (بیا) کعبې شریفې ته په ادب او احترام سره داخلېدل.

**لغات**: ﴿التزام﴾ د افتعال د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوې دي: د یو شي سره مښتل، لازم نیول، یو شی پر ځان لازمول. ﴿ملتزم﴾ له حجر اسود څخه د کعبې شریفې تر دروازې پورې چې د

کعبې شریفې کومه حصه ده، هغه ته ملتزم وایي. ﴿صدر﴾ سینه (له غاړې څخه لاندې تر نسه پورې)، جمع: صُدُوْر. ﴿تشبّث﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: یو شی نیول (په لاسو سره نیول)، تمسک. ﴿أستار﴾ جمع د سِتْرٌ ده: پرده. ﴿عتبة﴾ د دروازې چوکاټ، یعني د دروازې لاندینی حصه کوم چې تر پښو لاندې راځي، چې هغه ته درشل هم ویل کیږي.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې کله حاجي وخپل وطن ته واپس ځي او رخصتیږي، نو ملتزم ته دې راسي او پر هغه دې خپل سینه او مخ کښېږدي او دواړه لاسونه دې وغځوي، د دې حصې سره دې یې ولګوي او د کعبې شریفې کومه پرده چې باندې راځړېدلې ده، د هغه سره دې لږ ګړی ځان ولګوي (پسې ودې منبلي) او په ژړا، ژړا دې دعاګاني وکړي او د خپل مراد او د خپل خوښې شي دعاء دې وغواړي. په "تذكرةُ الخليل" کې لیکلي دي چې حضرت سهارنپوري رَحِمَهُ الله به فرمایله: چې پر ملتزم ما له الله تعالیٰ څخه درې دعاوې غوښتي دي او درې سره قبول سوي دي. (ثمرة النجاح، انوار الايضاح بحوالۀ الدر المنضود ج: ۳، ص: ۲۴۲)

**یادونه**: "والتشبّث بالأستار" دا په هغه صورت کې دي کله چې د کعبې شریفې د پردو نیول ممکن وي او که نیول یې ممکن نه وي، نو خپل لاسونه دې وغځوي او خپل سر دې پر دېوال کښېږدي او له الله تعالیٰ څخه دې د دنیا او آخرت مرادونه وغواړي.

وتقبيل عتبة البيت: د حج د مناسکو په کتابو کې امام نووي رَحِمَهُ الله او ملا علي قاري رَحِمَهُ الله لیکلي دي چې له طواف وداع څخه تر فراغت وروسته د حاجي لپاره مستحب ده چې د کعبې شریفې د دروازې چوکاټ مچ کړي، او که وکعبې شریفې ته د داخلېدلو موقع چا ته نصیب سي. نو په ډېر زيات ادب او تعظیم سره داخلېدل پکار دي او هلته دعاګاني کول پکار دي، او که موقع وي، نو لمونځ کول هم مستحب دي، ښکاره دې وي چې کعبې شریفې ته داخلېدل د حج له مناسکو څخه نه دي. (انوار الایضاح)

## د نبي کریم ﷺ د روضې زيارت کول

﴿۱۳۱۶﴾ ثُمَّ لَمْ يَبْقَ عَلَيْهِ إِلَّا أَعْظَمَ الْقُرُبَاتِ بيا (تر دې وروسته) په ده باندې څه (...

سوه مکر تر ټولو لوی عبادت وَهِيَ زِيَارَةُ النَّبِيِّ ﷺ وَ أَ... دبی

د هغه د اصحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ زيارت دی فَيَنْوِيهَا عِنْدَ...

سَبِيْكَةَ مِنَ الثَّنِيَّةِ السُّفْلَىٰ نو نیت دې وکړي (دنبي ﷺ او داصحابو) د زیارت له مکې شریفې څخه د وتلو په وخت کې (چې وځي به) له باب سبیکه څخه د ثنیة السفلیٰ (لاندې خوااسفله!) څخه وَسَنَذْكُرُ لِلزِّيَارَةِ فَصْلًا عَلىٰ حِدَتِهِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالىٰ او ژر به موږ ذکر کړو د زیارت لپاره خپل یو جلا (علیحده) فصل، ان شاء الله تعالی (که لله تعالیٰ وغوښتل).

**لغات:** ﴿قُربَات﴾ جمع د قُرْبَةٌ ده: د نېکۍ او ثواب کار (داسې کار چې په هغه سره د الله تعالیٰ نژدېکت حاصلیږي)، عبادت.

**تشریح:** د حج له ختمولو څخه وروسته دې له مکې شریفې څخه د سیّدُ المرسلین، خاتمُ النبیّین، رحمة للعالمین حضرت محمد مصطفیٰ ﷺ د روضې مبارکې د زیارت په نیت ومدینې ته ولاړ سي، او مخکې ذکر سوه چې مکې ته داخلېدل به دلوړې خوا (لوړ طرف) څخه کیږي او اوس چې له مکې څخه وځي، نو د لاندې خوا به د "باب سبیکه" د لارې (له مَسْفَلَه) څخه تیریږي، او کله چې له مکې شریفې څخه ووځي، نو د روضې مبارکې نیت دې وکړي، څرنګه چې نن سبا په بسانو او موټرانو کې سفر کیږي، نو د کومې لارې چې یې بسانو والا بیایي، حاجیان مجبوراً په هغه لاره ځي، انسان بې وسه وي، ها! که په خپل شخصي موټر کې سفر کوي، نو بیا دې د لاندې خوا (یعني له مَسْفَلې) څخه تېر سي، (د ثنیة السفلیٰ نوم کُدیٰ هم دی).



# فَصْلٌ فِیْ کَیْفِیَّةِ تَرْکِیْبِ أَفْعَالِ الْحَجِّ

(دا) فصل دی په (بیان د) طریقه کي د ترکیب (او ترتیب) دافعالو د حج

**تشریح:** په دې فصل کي دا بیانول کیږي چي حج به څنګه کوي او کوم، کوم اعمال به چیري او څنګه کوي او کله به يې کوي او حیثیت یې څه دی؟ (لنډه دا چي مخکي د حج کوم افعال او اعمال بیان سول، اوس په دې فصل کي د هغوی د ترکیب او ترتیب وضاحت کوي او د حج پوره کیفیت او طریقه بیانوي).

## له میقات څخه د احرام تړلو حکم

﴿۱۳۱۷﴾ إِذَا أَرَادَ الدُّخُوْلَ فِي الْحَجِّ کله چي (یو څوک) په حج کي د داخلېدلو اراده وکړي أَحْرَمَ مِنَ الْمِیْقَاتِ نو احرام دي له میقات څخه وتړي کَرَابِغَ لکه له رابغ (نومي ځای) څخه (کوم چي له جحفه میقات څخه مخکي یو میقات دی).

**تشریح:** کله چي د حج اراده وکړي، نو له میقات څخه دي احرام وتړي، بېله احرامه له میقات څخه تېرېدل جائز نه دي.

کوم خلک چي له مصر او شام څخه د تبوک د لاري ومکې شریفي ته راځي، د هغو لپاره میقات جحفه دی (لکه په لاندي جدول کي چي ذکر سوی دی)، خو اوس دا ځای ویران سوی دی او متعیّن نه دی، نو ځکه هغه ته نژدې له "رابغ" نومي ځای څخه به احرام تړل کیږي کوم چي د بدر په لاره باندي واقع دی، له دې ځایه مکه شریفه ۱۸۷ کیلومتره لیري ده.

## تول میقاتونه په یوه جدول کي

| | | |
|---|---|---|
| ذو الحلیفه | دا د مدینې د خلکو میقات دی | د شمال پر طرف له مکې مکرمې څخه ۴۱۰ کیلومتره لیري دی (یو کیلومتر ۱۰۰۰ متره کیږي). |
| ذات عرق | دا د عراق د خلکو میقات دی | د مشرق پر طرف له مکې مکرمې څخه ۹۰ کیلومتره لیري دی |
| جحفة | دا د شام د خلکو میقات دی | د شمال، مغرب پر طرف له مکې مکرمې څخه ۱۸۲ کیلومتره لیري دی |
| قرن | دا د نجد د خلکو میقات دی | د مشرق پر طرف له مکې مکرمې څخه ۸۰ کیلومتره لیري دی |
| یلملم | دا د یمن د خلکو میقات دی | د مشرق پر طرف له مکې مکرمې څخه ۱۳۰ کیلومتره لیري دی |
| تنعیم | دا د مکې د خلکو میقات دی | د شمال، مغرب پر طرف له مکې مکرمې څخه ۷.۵ (یعني اووه نیم) کیلومتره لیري دی |

## له احرام ترولو څخه مخکي د غسل يا اودس کولو حکم

﴿۱۳۱۸﴾ فَيَغْتَسِلُ أَوْيَتَوَضَّأُ نو غسل دي وکړي يا اودس دي وکړي وَالْغُسْلُ وَهُوَأَحَبُّ لِلتَّنْظِيفِ او غسل چي دی هغه (داودسه په مقابله کي) ډېر ښه دی د صفايي لپاره (او دا غسل هم د صفايي او دبدن د پاکېدو لپاره دی، نه د جنابت وغيره لپاره) فَتَغْتَسِلُ الْمَرْأَةُ الْحَائِضُ وَالنُّفَسَاءُ إِذَالَمْ يَضُرَّهَا نو حيض والا او نفاس والا ښځه دي (هم) غسل وکړي کله چي هغې ته ضرر نه کوي.

**لغات:** ﴿تنظيف﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: صفا کول، پاکول. التنظيف: صفايي، صفا والی (پاکوالی)، ﴿لم يضرّ﴾ د نصر له بابه د نفي جحد بلم صيغه ده: ضرر رسول، تکليف رسول.

**تشريح:** مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي کله يو کس د احرام ترلو اراده وکړي، نو هغه دي اول غسل يا اودس وکړي، خو غسل کول افضل دي، دا غسل د پاکوالي لپاره دی چي بدن ښه پاک صفا سي، د ناپاکی (جنابت وغيره) د ليري کولو لپاره نه دی، همدا وجه ده چي په حيض مبتلا ښځه به هم دا غسل کوي، همدارنګه که نفاس والا ښځي ته غسل تاوان نه کوي، نو هغه به يې هم کوي. او که د غسل او لمبېلو موقع نه وي، نو بغير له غسله په احرام ترولو کي هيڅ حرج نسته. (انوار الايضاح)

## د احرام بعضي مستحبات

﴿۱۳۱۹﴾ وَيَسْتَحِبُّ كَمَالُ النَّظَافَةِ او مستحب دي پوره (کامله) صفايي حاصلول بِقَصِّ الظُّفْرِوَالشَّارِبِ د نوکانو او برېتو په پرېکولو (کوچني کولو) سره وَنَتْفِ الْإِبِطِ وَحَلْقِ الْعَانَةِ او د بغلو (تخرګو د ورېښتانو) په کښلو او د سپوخځي (تر نامه لاندي ورېښتانو) په خرېيلو سره وَجِمَاعِ الْأَهْلِ او د خپلي ښځي سره په جماع کولو سره وَالدُّهْنِ وَلَوْمُطَيَّبًا او د تېلو (روغنو) په لګولو سره که څه هم خوشبوداره وي.

**لغات:** ﴿نظافة﴾ د کرُم د باب مصدر دی: صفا کول. النظافة: صفايي، ﴿قصّ﴾ د نصر د باب ماضي ده: پرېکول، کاټول، ﴿ظفر﴾ نوک، جمع: أَظْفَار، ﴿شارب﴾ برېت، تثنيه: شَارِبَيْن، جمع: شَوَارِب، ﴿إبط﴾ بغل، تخرګ، جمع: آبَاط، ﴿عانة﴾ سپخوځه (سپوخته). ﴿مُطيّب﴾ د تفعيل له بابه اسمِ مفعول دی: خوشبوداره، خوشبويه.

**تشریح:** له دې ځایه د احرام بعضې مستحبّات بیانوي، حاصل د عبارت دا دی چې له احرام تړلو څخه وروسته بیا ډېرې ورځې د بدن د پاکوالي او صفايۍ موقع نه تر لاسه کېږي، نو ځکه مخکې د بدن د پاکوالي او صفايۍ ټوله صورتونه اختیارول پکار دي، مثلاً نوکان پرېکول، برېتونه کوچنې کول، د بغل ورېښتان صفا کول، تر نامه لاندې ورېښتان صفا کول، او که ښځه ورسره وي او څه مانع نه وي. نو د هغې سره کور والی (جماع) کول، د دې لپاره چې د احرام په دوران کې یې زړه او فکر فارغه وي او په دې دوران کې چې په رش کې کومې ښځې مخ ته راځي پر هغه به یې د شهوت نظر نه پرېوځي، همدارنګه د احرام لپاره تر غسل کولو وروسته سر ږمنځول او په سر او ږېره باندې روغن لګول (غوړول) هم مستحب دي، برابره ده هغه روغن خوشبوداره وي او که نه وي. (انوار الایضاح بحوالة غنیة الناسک ص: ۶۷، ۷۰)

## د احرام کپړې

﴿۱۳۲۰﴾ وَيَلْبَسُ الرَّجُلُ إِزَارًا وَرِدَاءً جَدِيدَيْنِ أَوْ غَسِيلَيْنِ او سړی به یو لنګ او څادر اغوندي چې هغه دواړه به نوي یا پرېولل سوي وي وَالْجَدِيدُ الْأَبْيَضُ أَفْضَلُ او نوی سپین رنګ والا افضله دی.

**تشریح:** تر غسل یا اودس کولو وروسته د احرام دوې کپړې یعني یو څادر او یو لنګ اغوستل د سړیو لپاره د احرام سنت دي او څادر به دومره اوږد وي کوم چې له راسته اُوږې څخه لاندې تر را باسلو وروسته په آسانۍ سره پر چپه اُوږه راسي او د بدن هیڅ حصه ښکاره پاته نسته، او لنګ (إزار) به داسې وي چې عورت په ښه توګه پټ کړي او. پکار دا ده چې دا دوې کپړې (څادر او لنګ) دواړه نوي یا پرېولل سوي وي. دا د احرام له مستحباتو څخه دي او په احرام کې د سپین رنګه کپړو اغوستل افضل دی.



**مسئله:** بچې ته به هم احرام یعني څادر او لنګ ور اغوستل کېږي، تر دې چې کوم بچې د پوهې او شعور وخت ته نه وي رسېدلی، د هغه له طرفه د احرام تړلو په وخت کې به د هغه له بدن څخه کالي ایستل کېږي او څادر او لنګ به ور اغوستل کېږي. (غنیة الناسک ص: ۸۴)

## د احرام کپړې به څنګه وي؟

﴿۱۳۲۱﴾ وَلَا يَزُرُّهُ او (د احرام) په څادر کې دي نه تڼۍ (بټنې) اړدي وَلَا يَعْقِدُهُ او نه دي یې غوټه کوي (تړي) وَلَا يُخَلِّلُهُ او نه دي چاک پکښې جوړوي (چې په غاړه یې کړي. او یو عالم د دې معنی دا کړې ده: چې نه دي تلفې ستنې پکښې لګوي. یعني لنګ او څادر دي په تلفې ستنو سره هم نه تړي) فَإِنْ فَعَلَ او که

داسي وکړي (يعني له مذکوره کارونو څخه يو کار وکړي) كُرِهَ نو مکروه دي وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ (خو) پر ده څه شی نسته.

**لغات:** ﴿يزرّ﴾ د نصر د باب مضارع ده: زَرَّ القميصَ زرًّا: تنۍ پکښې اچول، بټنې ورکول. الزِّر: تنۍ، بټن. ﴿يعقد﴾ د ضرب د باب مضارع ده. عَقْدًا: غوټه ورکول (غوټه کول، تړل. ﴿يخلل﴾ د نصر د باب مضارع معلومه ده، د دې باب ډېري معناوي نقل سوي دي چې له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: څيرل او چاک پکښې جوړول، د دوو شيانو په مينځ کي چاک او سوری جوړول. صاحب د انوارُ الايضاح او نورو شارحينو دلته د دې معنیٰ ليکلې ده: د قميص په څېر د غاړي پر طرف چاک پکښې جوړول او اغوستل.

**تشريح:** د احرام په څادر کي دي نه بټنې لګوي او نه دي يې په تار، يا قُلفي سټن او داسې نورو سره تړي (يعني داسي دي نه کوي چې د څادر په دوو سرونو کي تنۍ يا داسي نور ولګوي او د هغه په ذريعه يې پر ځان ټينګ کړي) او نه دي د احرام کپړه څيري چې په غاړه کي يې واچوي (د کميس په څېر)، او که داسي وکړي نو مکروه دي، لېکن څرنګه چې دا د ګنډل سوي (جوړي سوي) جامې په درجه کي نه دي، نو ځکه هيڅ جرمانه او جزاء نه باندي واجبيږي.

**يادونه:** که څوک د عورت لڅېدلو له بېري څخه د لنګ يو کونج د بل کونج سره وتړي، لکه څرنګه چې بعضي خلګو ته د لنګ خلاصېدلو احساس او بېره وي بلکي د خوب په وخت کي خلاصيږي هم، نو د عورت لڅېدلو له مجبوری څخه غوټه ورکړي، نو په دې کي څه پروا نسته او هيڅ جزاء نه باندي لازميږي.

## خوشبويي لګول، دوه رکعته لمونځ او دعاء کول

﴿۱۳۲۲﴾ وَتَطَيَّبْ او (بيا) خوشبويي ولګوه!.

﴿۱۳۲۳﴾ وَصَلِّ رَكْعَتَيْنِ او دوه رکعته لمونځ وکړه!.

﴿۱۳۲۴﴾ وَقُلْ: اَللّٰهُمَّ إِنِّي أُرِيدُ الْحَجَّ فَيَسِّرْهُ لِي وَتَقَبَّلْهُ مِنِّي او (تر هغه وروسته دا دعاء) ووايه!: اللهمّ إنّي إلخ (اې الله! زه د حج اراده کوم، نو هغه زما لپاره آسانه کړه! او زما څخه يې قبول کړه!).

**لغات:** ﴿تطيّب﴾ د تفعّل له بابه د واحد مذکر امرِ حاضر صيغه ده: خوشبويي لګول (خوشبوداره شی استعمالول). ﴿اللّٰهمّ﴾ په معنیٰ سره د "يا الله" (اې الله) دی ﴿يسّر﴾ د تفعيل له بابه د امرِ حاضر صيغه ده: آسانه کول. ﴿تقبّل﴾ د تفعّل له بابه مخکنۍ صيغه ده: قبلول.

**تشریح:** له احرام ترلو څخه وروسته عطر وغیره لګول سنت دي کله چې په آساني سره ترلاسه کېدلای سي، همدارنګه دوه رکعته لمونځ اداء کول د احرام سنت دي، لیکن که څوک په مکروه وخت کې احرام وتړي، نو په هغه وخت کې دي لمونځ نه کوي، او تر لمونځ کولو وروسته دي په مذکوره الفاظو سره دعاء وکړي (کوم چې په متن کې ذکر سوه).

## اوله تلبیه به څه وخت ویل کیږي؟ او د تلبیه الفاظ

﴿۱۳۲۵﴾ وَلَبِّ دُبُرَصَلوتِكَ تَنْوِيْ بِهَا الْحَجَّ او تلبیه ووایه! تر خپل لمانځه وروسته په داسي حال کې چې نیت به وکړې په دې تلبیه سره د حج!.

﴿۱۳۲۶﴾ وَهِيَ او تلبیه دا ده لَبَّيْكَ اللّٰهُمَّ لَبَّيْكَ حاضریم اې الله! (ستا په حضور کې) زه حاضریم لَا شَرِيْكَ لَكَ لَبَّيْكَ تا لره هیڅ شریک نسته زه حاضریم إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ وَالْمُلْكَ لَكَ بېشکه ټوله حمد (تعریفونه) او نعمت او باچاهي تا لره دي (د بخاري او مسلم په روایت کې "للکوالملک" دی یعني هلته "لك" پر "والملك" مخکي دی) لَا شَرِيْكَ لَكَ تا لره هیڅ شریک نسته.

**لغات:** ﴿لبّ﴾ د تفعیل له بابه د واحد مذکر امر حاضر صیغه ده: تلبیه ویل، ﴿دُبُر﴾ د هر شي شاتنۍ حصه، جمع: أَدْبَار.

**تشریح:** له دوه رکعته لمونځ (صلاة الاحرام) کولو څخه وروسته د سلام ګرځولو سره متصلاً دي په هاغه مجلس کې د احرام په نیت سره تلبیه وویل سي، لهذا د احرام د لمانځه او د احرام د نیت او تلبیه په مینځ کې فاصله نه راتلل پکار دي، که زیاته فاصله راسي. نو په سنت طریقه سره چې کوم د احرام ترلو حکم دی، پر هغه به عمل نه وسي او د سنت طریقې له ثواب څخه به هم محرومه سي.

وهي لبّيك اللّٰهمّ إلخ: د تلبیه چې کوم الفاظ له نبي کریم ﷺ څخه نقل سوي دي (یعني مذکوره الفاظ)، د هغه ویل کافي دي، او که بعضې د تعظیم الفاظ نور پکښې اضافه کړي (لکه په راروان عبارت کې)، نو جائز دي (بلکې د ابن عمر (رض) الفاظ خو سنت دي)، خو له مذکوره الفاظو څخه یو لفظ کمول مکروه دي.



## د تلبیه پر ځای بل ذکر کول

**مسئله (۱):** د احنافو په نیز هر یو ذکر د تلبیه قائم مقام کیږي، یعني د حج یا عمرې تر نیت کولو وروسته چې هر د الله ذکر وکړي مثلاً الحمد لله ووایي یا سبحان الله ووایي، نو احرام شروع سو، دا

ذکر د تلبیه قائم مقام کیږي. یعني ګواکي هغه تلبیه ووېله. او له عربي څخه بغیر په بله ژبه د تلبیه ترجمه هم وېلای سي، خو عربي افضله ده. (شامي ج: ۲، ص: ۲۱۷)

## تلبیه په ژبه سره وېل شرط دي

**مسئله (۲)**: تلبیه په ژبه سره (په خوله) داسي وېل شرط دي چي حروف صحیح اداء سي او کم از کم خپله یې واوري، که چیري په زړه، زړه کي تلبیه ووایي، یا یې په ژبه سره داسي ووایي چي حروف خو صحیح اداء سي، لیکن خپله یې نه اوري، یعني ډېر په کراره یې ووایي، نو دا تلبیه معتبره نه ده.

**مسئله (۳)**: د ګونګي کس لپاره د تلبیه وېلو په وخت کي صرف ژبه ښورول کافي دي. (انوار الایضاح)

## د تلبیه په الفاظو کي کمي و زیاتوب کول

﴿۱۳۲۷﴾ وَلَا تَنْقُصْ مِنْ هٰذِهِ الْأَلْفَاظِ شَيْئًا او مه کموه! له دغو الفاظو څخه هیڅ څه (هم) وَ زِدْ فِيْهَا او زیات کړه! په دې کي (دغه راروان الفاظ) لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ حاضر یم او ستا عبادت نیک بختي ګڼم (اوبعضو د "سعدیك" معنیٰ کړې ده: او ستا موافقت کوم) وَالْخَيْرُ كُلُّهُ بِيَدَيْكَ او تمام خیرونه ستا په قبضه کي دي لَبَّيْكَ وَالرَّغْبٰى إِلَيْكَ حاضر یم او ټوله رغبت (مي) ستا وطرف ته دی وَالزِّيَادَةُ سُنَّةٌ او زیاتوب (یعني دغه مذکور الفاظ ور سره زیاتول) سنت دي.

**لغات**: ﴿تنقص﴾ د نصر له بابه مضارع معلومه ده: کم کول (کمول). ﴿زِدْ﴾ د ضرب له بابه د واحد مذکر امر حاضر صیغه ده: زیاتول، اضافه کول. ﴿سعديك﴾ د سَعْدٌ تثنیه ده او د کاف ضمیر د مخاطب دی. جمع: أَسْعُدٌ و سعُود: نېکبختي (دالله له طرفه د نېکۍ او ښېګڼې حاصلولو توفیق او اعانت). ﴿يد﴾ لاس، مراد څني ملکیت او قبضه ده. ﴿رُغبٰى﴾ د سمع د باب مصدر دی: په عاجزۍ سره غوښتل، التجا کول.

**تشریح**: د تلبیه په آخر کي زیاتوب کول خو مستحب دي. لیکن په مینځ کي یې زیاتوب کول یا تلبیه له خپل منقوله الفاظو څخه کمول مکروه تنزیهي دي. له عبد الله بن عمر (رض) څخه روایت دی چي نبي کریم ﷺ داسي ووېل "لَبَّيْكَ اللّٰهُمَّ لَبَّيْكَ، لَبَّيْكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ لَبَّيْكَ، إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ، لَا شَرِيْكَ لَكَ". عبد الله بن عمر (رض) به فرمایل چي دا د رسول الله ﷺ تلبیه ده. او عبد الله بن عمر (رض) به د دې سره (په آخر کي) دا الفاظ هم زیاتول: "لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ. سَعْدَيْكَ وَالْخَيْرُ بِيَدَيْكَ لَبَّيْكَ

وَالرَّغْبٰى إِلَيْكَ" (مسلم شريف باب التلبيه و صفتها و وقتها ص: ۴۸۹، حديث رقم، ۱۱۸۴، ۲۸۱۲)، معلومه سوه چي که څوک دغه جملې د تلبيه سره اضافه کړي کوم چي ابن عمر (رض) اضافه کړي دي، يا داسي نوري جملې ور سره اضافه کړي چي په هغه کي د الله تعالیٰ تعظيم وي، نو جائز دي (ثمرة النجاح، تحفة الألمعی)

## په تلبيه ويلو سره حاجي محرم ګرځي او په حالت د احرام کي د پرهېز کولو حکم

﴿۱۳۲۸﴾ فَإِذَا لَبَّيْتَ نَاوِيًا بيا کله چي ته تلبيه ووايې په داسي حال کي چي د حج نيت کونکی يې (يعني چي په تلبيه سره د حج نيت وکړې) فَقَدْ أَحْرَمْتَ نو (بس) ته محرم سوې فَاتَّقِ الرَّفَثَ وَهُوَ الْجِمَاعُ نو (تر دې وروسته) ځان ساته! له رفث څخه او هغه جماع ده وَقِيلَ: ذِكْرُهُ بِحَضْرَةِ النِّسَاءِ وَالْكَلَامُ الْفَاحِشُ او ويل سوي دي (يعني بل قول دا دی): چي (رفث) د جماع ذکر د ښځو په حضور کي کول دي (يعني د ښځو مخ ته جماع يادول) او بدي (فحش) خبري کول دي وَالْفُسُوقَ وَالْمَعَاصِيَ او (ځان ساته!) له نافرمانۍ او ګناهونو څخه وَالْجِدَالَ مَعَ الرُّفَقَاءِ وَالْخَدَمِ او (ځان ساته!) له جنګ (وجنجال) څخه د خپلو ملګرو او خدمتګارانو سره وَقَتْلَ صَيْدِ الْبَرِّ وَالْإِشَارَةَ إِلَيْهِ وَالدَّلَالَةَ عَلَيْهِ او (ځان ساته) د وچي (دښت) د ښکار له وژلو او د هغه وطرف ته له اشاره کولو او د هغه د لارښوولو (ځای وربښوولو) څخه.

**لغات:** ﴿اتق﴾ د افتعال له بابه د واحد مذکر امر حاضر صيغه ده: ځان ساتل، پرهېز کول، د الله جل جلاله له بيري څخه له ممنوعه شيانو ځان ساتل، ﴿الفاحش﴾ د نصر له بابه اسم فاعل دی: ډېر بد، د مذمت قابل. ﴿معاصي﴾ جمع د معصية ده: ګناه، خطا، ﴿رفقاء﴾ جمع د رَفِيْقٌ ده: ملګری، ﴿الخَدَم﴾ جمع د خَادِم ده: خدمتګار.

**تشريح:** کله چي د احرام په نيت سره تلبيه وويل سي، نو بس احرام شروع کيږي يعني انسان محرم (احرام تړونکی) ګرځي (ځکه په اصل کي همدغه اوله تلبيه ويلو ته احرام تړل وايي).

نو له احرام تړلو څخه وروسته به د هغه ټولو شيانو څخه پرهېز کوي چي له هغوی څخه الله تعالی منع کړې ده يعني ګنده او بندي خبري کول، معصيت او ګناه کول، جماع يا دواعي د جماع کول، له خپلو ملګرو او خدمتګارانو سره جنګ وجنجال کول، د احرام په دوران کي دي له دې ټولو شيانو څخه په کلکه ځان ساتي، همدارنګه د احرام په حالت کي به د وچي په ښکار کار نه لري او نه به

یې وژني، همداسې نه د محرم لپاره د ښکار وطرف ته اشاره کول جائز دي او نه د ښکاره په هکله لارښوونه ورته جائز ده، یعني نه دا جائز دي چې محرم د بل چا لپاره ښکار ته اشاره وکړي او ځای یې وروښیي چې هغه یې ونیسي او یا ښکار خو مخ ته حاضر نه وي لیکن محرم ته د هغه معلومات وي او دې بل چا ته ووایي چې ښکار په فلانکي ځای کې دی، نو دا لارښوونه هم جائز نه ده.

**فایده:** "والفسوق والمعاصی" د دغه عبارت په باره کې علامه طحطاوي رَحِمَهُ الله فرمایي چې دلته عطف تفسیري دی یعني د فسوق تفسیر په معاصي سره سوی دی (یعني له فسوق څخه مراد ګناهونه دي)، او محشي حضرت مولانا اعزاز علي رَحِمَهُ الله لیکلي دي چې د معاصي په شروع کې حرف واو د ناسخینو اضافه ده، اصل عبارت "الفسوق المعاصی" یعني بغیر له واو څخه دی، کما علیه عامة الکتب الفقهیة. (حاشیة نور الایضاح)



## محرم بچی به هم د احرام له ممنوعاتو څخه منع کول کیږي

**مسئله:** ولي (سرپرست) ته پکار دي چې (محرم) بچی هم د احرام له ممنوعاتو څخه وساتي، خو بیا هم که بچی د یو ممنوع شي ارتکاب وکړي، نو په دواړو کې پر یوه هم هیڅ شی نه لازمیږي. (غنیة الناسک ص: ۸۴)

﴿۱۳۲۹﴾ وَلُبْسَ الْمَخِيطِ وَالْعِمَامَةِ وَالْخُفَّيْنِ او (ځان وساته) د ګنډل سوي جامې او لنګوټې او موزو له اغوستلو څخه وَتَغْطِيَةَ الرَّأْسِ وَالْوَجْهِ وَمَسَّ الطِّيبِ او (ځان وساته!) د سر او مخ له پټولو او له خوشبويي لګولو څخه وَحَلْقَ الرَّأْسِ وَالشَّعْرِ او (ځان وساته!) د سر او وریښتانو له خرییلو څخه.

**تشریح:** د احرام په حالت کې د سړي لپاره داسې ګنډل سوې جامه اغوستل ممنوع او ناجائز دي کوم چې د بدن د هیئت او جوړ مطابق ګنډل سوې او جوړه کړل سوې وي لکه کمیس، پرتوګ، بنیین (ګنجی)، پتلون، لنګوټه او داسې نور.

همدارنګه احرام د پښو لپاره هم دی، یعني د احرام په حالت کې د سړیو لپاره داسې موزې او بوټونه په پښو کول ممنوع دي چې په هغه سره د پښې بجلکي او پاسنی هلوکی پټ سي، لهذا که محرم داسې بوټونه او څپلۍ په پښو کړي چې په هغه سره بجلکي نه پټیږي (بلکي تر دې لاندې وي)، نو څه حرج نسته (او که څپلۍ نه وي، نو موزه دې تر بجلکو لاندې پرېکړي چې د څپلیو په څېر سي، بیا هغه په

پښو کولای سي)، همدارنګه محرم دي خپل سر او مخ نه پټوي او د احرام په حالت کي دي خوشبويي نه استعمالوي، همدارنګه د خپل سر او بدن وريښتان دي هم نه خريي.



## غوږونه او څټه پټول، په غیرِ معتاد شي سره مخ پټول، پر مخ ماسک لګول

**مسئله (۱)**: د محرم لپاره خپل غوږونه، څټه او تر زنې لاندي ږيره پټول ګنجايش لري، څه حرج پکښي نسته.

**مسئله (۲)**: محرم که خپل سر يا مخ په داسي شي سره پټ کړي چي له هغه څخه عموماً د سر او مخ د پټولو کار نه اخيستل کيږي مثلاً تخته، بنيبنه، اوسپنه يا سايوان او داسي نور، نو په دې کي هم څه حرج نسته، که څه هم په دې پټولو سره له يخ يا ګرمۍ څخه ځان ساتل مقصود وي، خو که په سر باندي څادر يا دسمال وغيره وتړي، نو دا مکروه دي، او که ديوې ورځي يا يوې شپې په اندازه يې همداسي تړلی پرېږدي، نو دَم لازميږي.

**مسئله (۳)**: نن سباله جراثيمو څخه دبچ کېدو لپاره داحرام په حالت کي پر مخ او خوله ماسک لګول عام سوي دي (خصوصاً دې فرضي کرونا په مرض کي)، نو په دې باره کي شرعي حکم بنه ياد ساتئ! چي په احرام کي داسي ماسک اغوستل بلا شبه ممنوع دي. (غنية الناسک ص: ۲۵۴، ۲۵۵)

## د احرام په حالت کي د غسل کولو، يا د سايه حاصلولو حکم

﴿۱۳۲۰﴾ وَيَجُوْزُ الْاِغْتِسَالُ او جائز دي غسل کول وَالْاِسْتِظْلَالُ بِالْخَيْمَةِ وَالْمَحْمَلِ وَغَيْرِهِمَا او (جائز دي) سايه حاصلول په خېمه او کجاه او نورو شيانو سره (يعني د دوی په سايه کي کښېنستل او پاتېدل جائز دي).

**لغات**: ﴿استظلال﴾ د استفعال د باب مصدر دی: سايه حاصلول، سايه اخيستل.

**تشريح**: د احرام په حالت کي محرم غسل کولای سي، د ټولو په نيز جائز دي، د امام مالک رَحِمَهُ الله پکښي اختلاف دی، د هغه په نيز مکروه دی، همدارنګه تر يو چت يا داسي بل شي لاندي يا په خېمه کي کښېنستل او سايه حاصلول د محرم لپاره جائز دي.

## د هميانۍ او بټوه تړلو حکم

﴿۱۳۲۱﴾ وَ شَدُّ الْهِمْيَانِ فِي الْوَسَطِ او (جائز دي) هميانۍ (د پيسو بټوه) په ملا باندي تړل.

**لغات**: ﴿هميان﴾ (د هاء په کسره سره): هغه تېلۍ او بسته کوم چي په ملا باندي تړل کيږي او په هغه کي پيسې او داسي نور ايښوول کيږي، جمع: هَمَايِنُ و هَمَايِيْنُ.

**تشریح:** د محرم لپاره همیانی، بټوه، یا خلته پر ملا تړل او په هغه کي د خپلي خرچي لپاره پیسې اېښوول (یا مثلاً ټکټ او داسي نور اسناد پکښي خوندي کول) بېله کراهته جائز دي.

## د تلبیـه د زیات ویلو حکم

﴿۱۳۲۲﴾ وَأَكْثِرِ التَّلْبِيَةَ مَتَىٰ صَلَّيْتَ أَوْ عَلَوْتَ شَرَفًا أَوْ هَبَطْتَ وَادِيًا او تلبیه زیاته (په کثرت سره) وایه! (په هر حالت کي یعني) کله چي ته لمونځ کوې یا یو لوړ ځای ته خېږې یا یو کښته ځای ته شوه کیږې أَوْ لَقِيتَ رَكْبًا وَبِالْأَسْحَارِ یا چي ته دیو قافلي (کاروان والا) سره یو ځای کیږې، او د سهار په وختونو کي رَافِعًا صَوْتَكَ بِلَا جُهْدٍ مُضِرٍّ په داسي حال کي چي ته لوړونکی (پورته کونکی) یې د خپل آواز بېله ضرر ناکه کوښښ (او تکلیف) څخه (یعني دومره په زوره او په داسي انداز سره به یې وایې چي نه دي خپل ځان ته ضرر او ستړیا ورسیږي او نه بل چا ته ضرر ورسوې).

**تشریح:** د احرام په حالت کي له زیاتو څخه زیاته تلبیه ویل پکار دي، د محرم په اعمالو کي الله تعالیٰ ته تر ټولو خوښ تلبیه او قرباني ده، نو هغه دي تلبیه په کثرت سره وایي، خصوصاً د احوالو او اوقاتو د بدلون په وخت کي، مثلاً کله چي لوړ ځای، غره او داسي نورو ته خیږي یا لاندي را شوه کیږي او داسي نور (لکه مخکي چي دې تفصیل تېر سو). ښځه به تلبیه سراً (په کراره) وایي او له سر څخه مراد په زړه کي ویل نه دي، بلکي دومره کرار دي یې وایي چي حروف صحیح اداء کیږي او د هغې خپل غوږونه یې اوري او سړی به یې جهراً (په زوره) وایي، خو دومره په زوره نه چي د چیغو کیفیت ته ورسیږي او نور څني په تکلیف سي او خپل ځان او نورو ته ضرر او نقصان ورسوي.



**مسئله:** که څو خلک (حاجیان) سره یو ځای وي، نو په اجتماعي توګه دي تلبیه نه وایي (مثلاً یو کس یې ووایي. بیا نور خلک په ګډه د هغه الفاظ تکرار کړي)، بلکي هر کس دي بذات خود تلبیه ووایي. (غنیة الناسک ص: ۷۵)

**یادونه:** نن سبا په دې باره کي لا پروایي کیږي او د سفر په دوران کي په ګډ آواز سره تلبیه ویل کیږي کوم چي مناسب نه دي.

﴿۱۳۲۳﴾ وَإِذَا وَصَلْتَ إِلَىٰ مَكَّةَ او کله چي ته مکې مکرمې ته ورسیږې يُسْتَحَبُّ أَنْ تَغْتَسِلَ نو مستحب دي دا چي ته غسل وکړې وَتَدْخُلَهَا مِنْ بَابِ الْمُعَلَّىٰ او مکې مکرمې ته له "باب معلیٰ" څخه داخل سې لِتَكُونَ مُسْتَقْبِلًا فِي دُخُولِكَ بَابَ الْبَيْتِ الشَّرِيفِ تَعْظِيمًا د دې

لیاره چي ته مخامخ سې! په خپل داخلېدلو کي وکعبې شریفي ته د تعظیم په خاطر.

**لغات**: ﴿باب المعلّٰی﴾ ښکاره دي وي چي ومکې شریفي ته د داخلېدلو له آدابو څخه دا هم دي چي له ثنیة العُلیا څخه ور داخل سي او له ثنیة السُفلیٰ څخه ووځي، د ثنیة العُلیا نوم کَدَاء او حجون هم دی، او دا لاره پر جنتُ المَعَلیٰ راشوه کیږي کوم چي د مکې د خلګو هدیره ده، او نن سبا دا ځای د "معاهده" په نوم سره مشهور دی، پر همدې ځای قصر الملک هم دی. (انوار الایضاح)

**تشریح**: کله چي محرم (احرام تړونکی) ومکې شریفي ته ورسیږي، نو غسل دي وکړي، دا مستحب دي، او له نبي کریم ﷺ څخه غسل کول ثابت دي؛ "عن ابن عمر قال: اغتسل النبی ﷺ لدخول مکة بفخ". (ترمذی شریف)

**یادونه**: نن سبا چي حاجیان له جدې څخه روان سي، نو مکې شریفي ته له داخلېدلو څخه مخکي د غسل موقع نه تر لاسه کیږي، نو ځکه غوره دا ده چي که څه عذر او مشکل نه وي، نو له جدې څخه تر روانېدلو مخکي دي (په حج ترمینل کي) په همدې نیت سره غسل وکړل سي، هلته د غسل وغیره معقول انتظامات سته.

وتدخلها إلخ: د باب مُعلیٰ د لاري چي ور داخل سي، نو د کعبې شریفي استقبال راځي او په دې کي د کعبې شریفي تعظیم دی.



## مکې شریفي ته له رسېدو څخه وروسته به مسجد حرام ته کله حاضریږي؟

که څه هم افضل دا ده چي مکې شریفي ته له رسېدلو څخه وروسته حاجي تر ټولو مخکي مسجد حرام او کعبې شریفي ته حاضر سي، لېکن د نن سبا حالت ته په کتلو سره په دې باره کي د لاندینیو خبرو خیال ساتل ضروري دي: ① نن سبا هلته عموماً د بسانو د لاري سفر کیږي چي په هغه کي د ټولو حاجیانو سامان مخلوط ورخپرول کیږي او د حاجیانو پر استوګنځي یا د معلم پر دفتر باندي شوه کول کیږي، نو ځکه مکې شریفي ته له رسېدلو څخه وروسته نن سبا تر ټولو مخکي پکار دا ده چي خپل سامان سره یو ځای کړل سي او خپلي کمرې ته ورسول سي، که سامان پرېښوول سي او سملستي حرم ته تګ وسي، نو وروسته لویه ستونزه کېدلای سي، ② عموماً اوس د حاجیانو استوګنځی له حرم څخه پر ډېره فاصله وي، نو ځکه دا استوګنځي ادرس او د شا و خوا علامات پېژندل ضروري دي، که د هغوی د پېژندلو څخه بغیر حرم ته ولاړ سي، نو واپسي به ډېره سخته وي، ③ نن سبا د حکومتي نظام او د سفر د سختو او سترو پړاؤنو په وجه عموماً حاجیان مکې ته په

رسېدلو سره ډېر ستړي سوي وي او سمدستي دآرام کولو تقاضا وي، نو په داسي کیفیت کي سمدستي د مسجد حرام زیارت کولو ته ښه کار نه سي ویل کېدای، نو ځکه په داسي صورت کي له آرام کولو او ځان هوسا کولو څخه وروسته ښه په اطمینان سره حرم ته تلل پکار دي.

خو که څوک مکې شریفي ته په داسي حالت کي ورسیږي چي واقعتاً هیڅ ستړیا باندي نه وي او استوګنځی هم آسانه او معلوم وي او د سامان هم هیڅ فکر نه وي، نو هغه ته پکار دي چي مسجد حرام ته حاضر سي او بېله عذره تأخیر نه وکړي، کنې خلاف اولیٰ به وي.

## مسجد حرام ته د داخلېدلو ادب

﴿۱۳۲۴﴾ وَيَسْتَحِبُّ أَنْ تَكُوْنَ مُلَبِّيًا فِيْ دُخُوْلِكَ او مستحب دي دا چي ته تلبیه ویونکی یې! په خپل داخلېدلو کي (یعني چي د داخلېدلو په وخت کي تلبیه وایې!) حَتّٰى تَأْتِيَ بَابَ السَّلَامِ تر دې چي باب السلام ته راسې (ورسیږې!) فَتَدْخُلَ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ مِنْهُ مُتَوَاضِعًا خَاشِعًا مُلَبِّيًا نو مسجد حرام ته به له همدې (باب السلام) څخه ته داخل سې! په داسي حال کي چي تواضع کونکی، خشوع کونکی (دعاجزی ښکاره کونکی) او تلبیه ویونکی یې! مُلَاحِظًا جَلَالَةَ الْمَكَانِ (او په داسي حال کي چي ته په خپل زړه کي) لحاظ ساتونکی یې! د دې (مقدس) ځای د عظمت (ستروالي) مُكَبِّرًا مُهَلِّلًا مُصَلِّيًا عَلَى النَّبِيِّ ﷺ (او) الله اکبر ویونکی. لا إله إلا الله ویونکی (او) پر نبي کریم ﷺ درود ویونکی یې! مُتَلَطِّفًا بِالْمُزَاحِمِ او (په داسي حال کي چي ته) نرمي کونکی یې! د خنډ جوړېدونکي (مزاحمت کونکي) کس سره دَاعِيًا بِمَا أَحْبَبْتَ (او) دعاء کونکي یې! د هغه څه کوم څه چي در ته خوښ وي فَإِنَّهُ مُسْتَجَابٌ عِنْدَ رُؤْيَةِ الْبَيْتِ الْمُكَرَّمِ ځکه د کعبې شریفي د لیدلو په وخت کي دعاء قبلېدونکې ده.

**لغات:** ﴿بَابُ السَّلَامِ﴾ د مقام ابراهیم پر طرف چي کومه دروازه مخامخ پر کعبې شریفي راخلاصیږي، د هغه نوم "باب السلام" دی، نبي کریم ﷺ به په همدې دروازه باندي حرم ته داخلېدی، د دې دروازې څو نومونه ده: لکه باب بني شیبة، باب الجنائز، باب النبي ﷺ او داسي نور، د لار ښوونې لپاره په حرم شریف کي د "باب السلام" په نامه سره نښې لګول سوي دي، ﴿مسجد

حرام﴾ دا همدا د کعبې شریفې چار طرفه جوړ سوی مسجد دی، په دې کې د یوه لمانځه ثواب د یوه لک لمونځونو سره برابر دی. ﴿ملاحظًا﴾ د مفاعلې له بابه د فاعل صیغه ده: کتونکی. لحاظ کونکی. ﴿جلالة﴾ عظمت. ﴿متلطفًا﴾ د تفعل له بابه فاعل دی: نرمي او مهرباني کونکی. ﴿مُزاحِم﴾ د مفاعلې له بابه فاعل دی: خنډ جوړ ېدونکی، مقابل.

**تشریح**: فرمایي کله چې محرم و مسجد حرام ته د داخلېدلو اراده وکړي، نو افضل دا ده چې د "بابُ السَّلام" د لارې ور داخل سي (لیکن نن سبا حرم ماشاءالله دومره پراخه سوی دی چې د نوي کس لپاره د دروازو پېژندل او دننه رسېدل او بېرته په صحیح لاره واپس راتلل ډېر مشکل وي. نو ځکه اوس همدا مشوره ورکول کېږي چې د دغه مستحب حاصلولو په کوشش کې خپل ځان په نور مشکل کې نه واچوي. بلکې له خپل استوګنځي څخه د راتللو په وخت کې چې کوم ګېټ (دروازه) مخ ته راسي. د هغه نمبر دې یاد کړي او له هماغه ګېټ څخه دې ور داخل او را واپس سي)، او په ډېره تواضع او عاجزي سره او په زړه کې د دې مبارک او عظیمُ الشّان ځای عظمت ته په پام کولو سره چې هیڅ ډول بې ادبي یې ونه سي او د تکبیر و تهلیل او درود شریف په ویلو سره دې ور داخل سي او که رش او ګڼه ګوڼه وي. نو په اطمینان سره دې روان سي او که له چا څخه تکلیف ورته ورسیږي (مثلاً ځوک دیکه وکړي). نو نرمي دې کوي او هغه ته دې معافي وکړي او پر بیتُ الله (کعبې شریفې) د نظر لګېدلو سره سمدستي دې درې واره الله اکبر او درې واره لا إلٰه إلّا الله ووایي او لاس دې پورته کړي او په پوره توجّه او اهتمام سره دې دعاء وکړي؛ ځکه په دې وخت کې دعاء قبلیږي (لکه مخکې چې ذکر سوه).

## له طواف کولو څخه مخکې د حجر اسود استقبال کول

﴿۳۳۵﴾ ثُمَّ اسْتَقْبِلِ الْحَجَرَ الْأَسْوَدَ مُكَبِّرًا مُهَلِّلًا بیا حجرِ اسود ته مخ کړه! په داسې حال کې چې الله أکبر وېونکی (او) لا إله إلا الله وېونکی یې! رَافِعًا يَدَيْكَ كَمَا فِي الصَّلٰوةِ (او په داسې حال کې چې) پورته کونکی یې! د خپلو لاسونو لکه په لمانځه کې (چې د تکبیر تحریمه لپاره پورته کول کېږي) وَ ضَعْهُمَا عَلَى الْحَجَرِ وَقَبِّلْهُ بِلَا صَوْتٍ او دواړه لاسونه پر حجرِ اسود کېږده! او هغه بغیر له آواز څخه مچ کړه! فَمَنْ عَجَزَ عَنْ ذٰلِكَ إِلَّا بِالْإِيْذَاءِ او که څوک له دې څخه عاجز سي مګر (نورو ته) په تکلیف رسولو سره (یعني بغیر له ایذاء څخه پر حجر اسود لاسونه ایښودل او حجر اسود په خوله مچول مشکل وي) تَرَكَهُ وَ مَسَّ الْحَجَرَ بِشَيْءٍ وَقَبَّلَهُ نو دا دې پرېږدي او حجر اسود دې په یو شي سره مسه کړي او هغه شی دې مچ کړي أَوْ أَشَارَ إِلَيْهِ مِنْ بَعِيْدٍ یا دې له

لیري څخه د حجرِ اسود وطرف ته (په لاس) اشاره وکړي مُكَبِّرًا مُهَلِّلًا حَامِدًا مُصَلِّيًا عَلَى النَّبِيِّ ﷺ په داسي حال کي چي الله أکبر ویونکی، لا إله إلا الله ویونکی، حمد ویونکی (او) پر نبي کریم ﷺ درود ویونکی وي.

**تشریح:** له دعاء څخه تر فارغه کېدو وروسته دي د طواف کولو لپاره د حجرِ اسود وطرف ته راسي، یعني اول دي د کعبې شریفي په کوم طرف کي چي حجر اسود ده، هلته دي مخامخ کعبې ته داسي ودرېږي چي ټوله حجرِ اسود د ده وراسته طرف ته راسي او د طواف نیت دي وکړي، په زړه سره نیت کول ضروري دي او په ژبي هم ویل افضل دي، په ژبه (په خوله) دي داسي ووایي "اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أُرِيْدُ طَوَافَ بَيْتِكَ الْحَرَامِ، فَيَسِّرْهُ لِيْ وَتَقَبَّلْهُ مِنِّيْ".

د طواف تر نیت کولو وروسته دي د حجرِ اسود استقبال وکړي یعني حجر اسود ته دي مخامخ ودرېږي او څرنګه چي په لمانځه کي د تکبیرِ تحریمه لپاره لاسونه پورته کوي، هغسي دي دواړه لاسونه تر غوږو یا اُوږو پوري پورته کړي او تکبیر او لا إله إلا الله دي ووایي، صاحب د شفاء الارواح دا دعاء را نقل کړې ده چي دا دي ووایي "بِسْمِ اللهِ اللهُ أَكْبَرُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى رَسُوْلِ اللهِ"، بیا دي دواړه لاسونه ایله کړي او پر حجرِ اسود دي یې کښېږدي او د دواړو لاسونو په مینځ کي دي خپل سر او خوله پر حجرِ اسود کښېږدي او په ډېر اداب سره دي یې داسي مچ کړي چي آواز نه وکړي یعني چي د مچي آواز پکښي نه وي (همدې ته استلام وایي چي دواړه لاسونه پر حجرِ اسود کښېږدي او مخ او خوله پر حجرِ اسود کښېږدي او مچ یې کړي)، بیا دي طواف شروع کړي.

## ﴿د حجرِ اسود د استلام او مچولو پنځه طریقې﴾

① که موقع وي او رش نه وي، نو حجر اسود دي مچ کړي (په پورتنی طریقه سره). ② که یې مچ نه کړل سي، نو په لاس سره دي یې مسه کړي او بیا دي خپل لاس مچ کړي. ③ که دا هم نه سي کېدلای سي، نو که په لاس کي یې لکړه یا داسي بل شی وي، نو په هغه سره دي حجر اسود مسه کړي او بیا دي هغه لکړه مچ کړي. ④ او که په لکړه، لرګي وغیره سره هم حجرِ اسود نه سي مسه کولای. نو په لکړه وغیره سره د حجرِ اسود وطرف ته اشاره وکړي او بیا دي هغه مچ کړي. ⑤ او که په لاس کي لکړه، لرګی وغیره نه وي، نو بیا دي په لاس سره د حجرِ اسود وطرف ته د لیري څخه اشاره وکړي او لاس دي مچ کړي.

فمن عجز إلخ: يعني كه رش وي او د حجر اسود په مسه كولو كي چا ته تكليف رسيږي او په لاس كي يې لكړه يا بل شی وي، نو په هغه سره، او كه شی ورسره نه وي، نو په لاس سره دي د ليري څخه د حجرِ اسود وطرف ته اشاره وكړي او هغه شی يا خپل لاس دي مچ كړي، دا هم كافي دي (كماذكرنا).

مكبرًا مصليًا إلخ: يعني د حجرِ اسود له استلام يا اشاره كولو څخه مخكي دي الله أكبر، لا إله إلا الله، د الله حمد او په نبي ﷺ باندي درود شريف ووايي، يا پورتنی كليمه دي ووايي، يعني "بسم الله الله أكبر.. إلخ"، او په كوم وخت كي چي يې مچوي يا اشاره ورته كوي، نو په هغه وخت كي دي خاموشي اختيار كړي. (مأخوذ از شفاء الارواح، انوار الایضاح، ثمرة النجاح بتصرف).

## د طواف كولو طريقه

﴿۱۳۳۶﴾ ثُمَّ طُفْ آخِذًا عَنْ يَمِيْنِكَ بيا طواف وكړه! په داسي حال كي چي شروع كونكی يې! له خپل راسته طرفه مِمَّا يَلِيَ الْبَابَ يعني له هغه حصې څخه كوم چي (د كعبې شريفي) د دروازې سره متصل ده (ځكه د كعبې شريفي دروازه له حجرِ اسود څخه راسته طرف ته ده) مُضْطَبِعًا (او) په داسي حال كي چي اضطباع كونكی يې! (په طواف كي) وَهُوَ أَنْ تَجْعَلَ الرِّدَاءَ تَحْتَ الْإِبْطِ الْأَيْمَنِ وَتُلْقِيَ طَرَفَيْهِ عَلَى الْأَيْسَرِ او اضطباع دا ده چي ته (د احرام) څادر تر راسته بغل لاندي كړې! او د هغه دواړه طرفونه (سرونه) پر چپه اوږه واچوې! سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ (طواف وكړه!) اووه دوره (يعني اووه واره پر كعبې شريفي راوګرځه!) دَاعِيًا فِيْهَا بِمَا شِئْتَ په داسي حال كي چي دعاء كونكی يې! په دې (اووه دوره طواف) كي د هغه څه كوم چي ته وغواړې وَطُفْ وَرَاءَ الْحَطِيْمِ او طواف وكړه! له حطيم څخه شا ته (ځكه حطيم خپله د كعبې شريفي ايت الله احصه ده، لهذا د حطيم له احاطې څخه شا ته ابهرا به طواف كول كيږي!، چي پر حطيم باندي هم طواف راسي).

لغات: ﴿طُفْ﴾ د نصر له بابه د واحد مذكر امرِ حاضر صيغه ده، طَوْفًا و طَوَافًا: (په يو شي باندي) شا وخوا راګرځېدل، دور لګول، د شريعت په اصطلاح كي د طواف اطلاق لږ تر لږه له ۴ دورونو څخه تر ۷ دورونو باندي كيږي (يعني چي له ۴ څخه تر ۷ وارو پوري په كعبې شريفي باندي راوګرځيږي)، لهذا له ۴ څخه كم

دَورونه طواف کول شرعاً معتبر نه دي، ﴿مضطبعًا﴾ د افتعال له بابه فاعل دی: اضطباع کونکی. د اضطباع معنیٰ ده: له راسته بغل څخه څادر ایستل او پر چپه اُوږه اچول. څرنګه چې په اضطباع کې د سرې دواړه مُټَان او یوه اُوږه ښکاره وي، نو ځکه ورته اضطباع وایي. ﴿تُلْقِي﴾ د افعال له بابه د واحد مذکر مخاطب صیغه ده، إِلْقَاءُ: اچول، یو شی په بل شي باندې ایښوول. ﴿حطیم﴾ دا د کعبې شریفې سره متصل هغه حصه ده کوم چې کوچنی غوندې دېوال باندې راګرځېدلی دی او بله نښانې یې دا ده چې په دې طرف کې د کعبې شریفې ناوه (میزابِ رحمت) واقع ده چې په هغه کې د کعبې شریفې د بام اوبه راتوییږي (او دا د کعبې شریفې د شمال طرف دی)، کله چې د نبي کریم ﷺ عمر مبارک ۳۵ کاله وو، په هغه وخت کې قریشو د کعبې د تعمیرولو اراده وکړه؛ ځکه کعبه شریفه زړه او خرابه سوې وه، نو د کعبې د تعمیر لپاره چنده وسوه او شرط دا ولګول سو چې فقط حلال او پاک مال به په چنده کې ور کول کیږي، نو چنده او مال لږ سره جمع سو، نو ځکه قریشو کعبه کوچنی جوړه کړه او څه حصه یې له کعبې شریفې څخه بهر پرېښووله کوم ته چې اوس حطیم ویل کیږي، لنډه چې حطیم د کعبې شریفې جزء دی، او دې ته ځکه حطیم ویل کیږي چې د حطم معنیٰ ده: ماتېدل، او اوس ذکر سوه چې قریشو د مال او خرڅ د کمښت په خاطر دا حصه له کعبې څخه را ماته او جلا کړه، نو ځکه ورته حطیم وایي، او د حطیم دویم نوم حِجر هم دی، حِجر ځکه ورته وایي چې د حِجر معنیٰ ده: منع کړی سوی، لیرې کړی سوی، او حطیم هم له کعبې شریفې څخه د خرڅ د کمښت په وجه لیرې کړی سو او په کعبه شریفه کې داخل نه سو، او دریم نوم یې جدر هم دی: یعني کوچنی دېوال.

**تشریح**: د حجرِ اسود تر استقبال او استلام وروسته دې طواف له راسته طرف څخه شروع کړي، یعني له حجرِ اسود څخه راسته طرف ته چې د کعبې شریفې دروازه ور سره متصل ده. له هغه طرف څخه دې طواف شروع کړي، او که تر طواف وروسته سعی بین الصفا والمروه هم کوي، نو بیا دې له طواف شروع کولو څخه مخکې اضطباع هم وکړي (کما ذکر) یعني څادر دې تر راسته بغل لاندې را وباسي او پر چپه اُوږه دې یې واچوي او راسته اُوږه دې لڅه (ښکاره) پرېږدي، او د طواف له اول څخه تر آخره پورې اضطباع کول سنت دي، خو کله چې د طواف دوه رکعته لمونځ کوي، په هغه وخت کې دې دواړې اُوږې پټې کړي، او د طواف په دوران کې دې دعاء غواړي؛ ځکه د طواف په حالت کې دعاء قبلیږي او د دې لپاره څه خاص دعاء منقوله نه ده، بلکې کومه دعاء چې د ده زړه وغواړي او کومه دعاء چې ضروري وګڼي، هغه دې وکړي (ځیني عوامو په لاس کې کتاب اخیستی وي، او د طواف په حالت کې هغه الفاظ په مشکل سره اداء کوي، نو ځکه غوره دا ده چې کوم څه د ده په زړه او پوهه کې راسي او کوم شي ته چې ضرورت وي، په خپله ژبه دې د هغه دعاء وکړي)، خو دلته دوې دعاوې منقوله دي: یوه دا، رکنِ یماني څخه د حجرِ اسود په مینځ کې او هغه دا ده " ربّنا آتنا فی الدنیا حسنةً وفی الآخرة حسنةً وقِنا عذاب النار "،

دویمه دعاء د حجرِ اسود او حطیم په مینځ کې منقوله ده او هغه دا ده "اللّٰهم قنعني بما رزقتني وبارك لي فيه واخلف على كل غائبة لي بخير، لا إله إلا الله وحده لا شريك له، له الملك وله الحمد وهو على كل شيء قدير".

وطف وراء الحطیم: یعني طواف دې له حطیم څخه بهر (بیلدې) کول کیږي، د حطیم وضاحت په لغاتو کې وسو.

## د طواف سره متعلق څو نورې مسئلې

﴿۱۳۲۷﴾ وَإِنْ أَرَدْتَ أَنْ تَسْعٰى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ عَقْبَ الطَّوَافِ او که ته اراده وکړې چې تر طواف وروسته د صفا او مروه په مینځ کې سعی وکړې فَارْمُلْ فِي الثَّلَاثَةِ الْأَشْوَاطِ الْأُوَلِ نو رمل وکړه! په اولو دریو ګرځونو کې وَهُوَ الْمَشْيُ بِسُرْعَةٍ مَعَ هَزِّ الْكَتِفَيْنِ او رمل په تېزۍ سره تلل دي سره د ښورولو د اوږو كَالْمُبَارِزِ يَتَبَخْتَرُ بَيْنَ الصَّفَّيْنِ لکه د مقابلې لپاره را وتونکی کس چې د دواړو صفونو په مینځ کې په فخر (او خیال کولو) سره ځي فَإِنْ زَحَمَهُ النَّاسُ بیا که خلق جوړ سي د ده لپاره خلک (یعني د ده مخ ته د خلګو ګڼه ګونه سي) وَقَفَ نو ودې دریږي فَإِذَا وَجَدَ فُرْجَةً رَمَلَ بیا چې کله د رَمَل (لپاره) پراخوالی (خالي ځای) ومومي لَا بُدَّ لَهُ مِنْهُ نو چاره نسته ده ته له رمل څخه (یعني بیا د ده لپاره رمل کول ضروري دي) فَيَقِفُ حَتّٰى يُقِيْمَهُ عَلَى الْوَجْهِ الْمَسْنُوْنِ نو دومره ګړی دی ودریږي چې پر سنت طریقه رمل وکړی سي بِخِلَافِ اِسْتِلَامِ الْحَجَرِ الْأَسْوَدِ په خلاف د حجرِ اسود د مسه کولو (او مچولو) لِأَنَّ لَهُ بَدَلًا ځکه چې هغه لره بدل سته وَهُوَ اسْتِقْبَالُهُ او هغه (بدل) حجرِ اسود ته مخ کول دي (حجرِ اسود ته مخامخ کېدل دي) وَيَسْتَلِمُ الْحَجَرَ كُلَّمَا مَرَّ بِهِ او حجرِ اسود دې مسه کوي هر کله چې هم د هغې سره تېریږي وَيَخْتِمُ الطَّوَافَ بِهِ وَبِرَكْعَتَيْنِ فِيْ مَقَامِ إِبْرَاهِيْمَ عليه السلام او ختم دې کړي طواف په همدې مسه کولو (استلام) سره او په دوه رکعته لمونځ سره په مقام ابراهیم کې أَوْ حَيْثُ تَيَسَّرَ

مِنَ الْمَسْجِدِ يا چيري چي هم (ورته) آسانه وي په مسجد حرام كي ثُمَّ دَعَا فَاسْتَلَمَ الْحَجَرَ بيا دي دعاء وكړي، بيا دي حجر اسود مسه كړي وَ هٰذَا طَوَافُ الْقُدُوْمِ او دا طواف قدوم دي وَ هُوَ سُنَّةٌ لِلْآفَاقِيِّ او دا طواف دآفاقي لپاره سنت دي.

**لغات**: ﴿هَزّ﴾ دنصر دباب مصدر دی: هَزَّ يَهُزُّ هَزًّا: ښورول. ﴿كَتِف﴾ اوږه. جمع: أَكْتَاف. ﴿مُبَارِز﴾ جنګيالی مېړنی. بَارَزَ يُبَارِزُ مُبَارَزَةً: دجنګ (مقابلې) لپاره ورسره مخامخ كېدل. مخامخ جنګ كول. ددې ماده بَرَزٌ ده چي دهغه معنیٰ ده: راښكاره كېدل. څرنګه چي هغه كس كوم چي دجنګ په ميدان كي دخپل مقابل ومخ ته راځي او له صفونو څخه بهر راوځي، نو ځكه هغه ته مُبارز وايي. ﴿يتبختر﴾ دتفعلل دباب مضارع ده: په ناز او نخره سره تلل. ﴿يستلم﴾ داستفعال د باب مضارع ده. مصدر: إِسْتِلَام. دا يا له سَلَام څخه مأخوذ دی چي دهغه معنیٰ ده تحية: سلام كول. ګواكي حجرِ اسود مسه كول دهغه تعظيم او سلام كول دي. يا له سِلَام (بكسر العين) څخه مأخوذ دی چي دهغه معنیٰ الحجارة يعني مس الحجارة ده. ﴿مقام إبراهيم﴾ له دې څخه مراد هغه ډبره ده چي حضرت ابراهيم عليه السلام د كعبې شريفي دجوړولو په وخت كي پر هغې درېدلی وو. دغه ډبره نن هم پر خپل حالت پاته ده او په هغې كي دوه قدمه جوړ سوي دي، كوم چي دحضرت ابراهيم ﷺ دقدمونو نښي دي. د كعبې شريفي ددروازې ومخ ته دغه ډبره په ښيښه كي ايښوول سوې ده او بيا پر دې ښيښه دژړو او مسو جالی راګرځول سوې ده او دا دجنت له ډبرو څخه ده. الله تعالی دهغې رڼا ورختمه كړې ده. كه الله تعالیٰ د هغې رڼا ورختمه كړې نه واى، نو دمشروق او مغرب ترمينځ هر شی به يې روښانه كړي واى. ﴿آفاقی﴾ (اطرافي) هغه كس كوم چي په مكه كي نه اوسيږي بلكي له مكې او ميقات څخه بهر په اطرافو كي اوسيږي (كه څه هم له اهل مكه څخه وي). يا په بله وينا آفاقي هغه حاجي يا عمره كونكي ته وايي كوم چي له ميقات څخه بهر له نورو ملكو او ښارونو څخه حرم شريف ته راغلي وي لكه افغانی، پاكستانی. يمنی. مصری او داسي نور.

**تشريح**: مسئله دا ده چي له كوم طواف څخه وروسته سعی بين الصفا والمروه كول كيږي، نو په هغه طواف كي دسړيو لپاره دوه زائد كارونه كول هښت دي: يو اضطباع او بل رمل. درمل طريقه دا ده چي دطواف په دوران كي دواړه اوږې دي په تېزي سره ښوروي لكه څرنګه چي جنګيالی، پهلوان كس دجنګ ډګر ته ځي (لكه مخكي چي هم ددې تفصيلي معنیٰ ذكر سوه) او رمل دي صرف په درېو دورونو (شوطونو) كي وكړي، په پاته څلورو دورونو كي دي په سكون او اطمينان سره ځي.

فإن زحمه إلخ: او که د خلکو د رش په وجه رمل کول مشکل وي، نو په ولاړه دي انتظار وکړي او بغير له رمل څخه دي طواف نه کوي، کله چې څه پراخي ووینې، نو رمل دي وکړي، د دې لپاره چې د سنت مطابق طواف اداء سي، په خلاف د حجر اسود د استلام، چې که د حجر اسود استلام مشکل وي، نو انتظار دي نه کوي، بلکې د حجر اسود استقبال دي وکړي او طواف دي شروع کړي؛ ځکه د حجر اسود استقبال د حجر اسود د استلام بدل دی او د رمل هيڅ بدل نسته. (خو بيا هم کوم څوک چې قصداً رمل پرېږدي، يا يې د رش او ګڼې ګوڼې په وجه نه وکړي، نو پر هغه هيڅ شی نه واجبيږي؛ ځکه چې رمل سنت دی).

ويستلم إلخ: يعني طواف کونکی چې کله هم د حجر اسود سره نژدې تېرېږي، نو د قدرت په صورت کې دي د حجر اسود استلام کوي، يعني هغه دي مچوي او که د استلام قدرت يې نه وي، نو د حجر استقبال دي کوي او د طواف په آخر کې دي هم د حجر اسود استلام وکړي چې طواف د حجر اسود پر استلام ختم سي (نو په يوه طواف کې به اته واره استلام راسي).

ويركعتين في مقام إلخ: فرمايي چې له طواف څخه تر فراغت وروسته دي د مقام ابراهيم سره دوه رکعته لمونځ وکړي، د مقام ابراهيم وضاحت په لغاتو کې وسو، او که هلته ځای پيدا نه سي، نو په حطيم کې دي تر ميزاب رحمت لاندې يا د حطيم هسې يو حصه کې دي يې وکړي او که هلته ځای تر لاسه نه کړي، نو په ټوله مسجد حرام کې چې هر ځای تر لاسه کړي، هلته دي دوه رکعته لمونځ وکړي. له هر طواف څخه وروسته دا دوه رکعته کول واجب دي او د دې پرېښوول لوبه ګناه ده، برابره ده طواف فرض وي، واجب وي او که نفل وي، په ټولو کې د دغه لمونځ حکم برابر دی.

ثم دعا إلخ: (په بعضي نسخو کې دلته "ثم عاد" ليکل سوي دي): له دوه رکعته لمونځ کولو څخه وروسته دي کعبې شريفې ته واپس راسي، د کعبې چوکاټ دي مچ کړي، د ملتزم او د کعبې شريفې د دېوال سره دي ځان او خپل رخسار ولګوي، خپل مرادونه او دعاګانې دي وغواړي، تر دې وروسته دي د زمزم اوبه وڅښي، بيا دي په آخر کې د حجر اسود استلام وکړي (نو په دې توګه به په يوه طواف کې اته واره استلام وسي).

وروسته مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چې ودغه طواف ته طواف قدوم ويل کيږي (او بل نوم يې طواف لقاء او طواف وُرود هم دی)، او دا طواف قدوم د هغه آفاقي لپاره سنت دی کوم چې مُفرِد يا قَارِن وي (يعني چې حج إفراد يا حج قِران کوي)، او پاته سو اهل مکه او هغه کس کوم حجّ تمتع يا عمره کوي، د هغه لپاره دا طواف سنت نه دی. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

## د سعی بین الصفا والمروه کولو طریقه او وضاحت

﴿۱۳۲۸﴾ ثُمَّ تَخْرُجُ إِلَى الصَّفَا بیا به ته د صفا (غره) وطرف ته ووځې! (ولاړ سې!) فَتَصْعَدُ وَتَقُوْمُ عَلَيْهَا حَتّٰى تَرَى الْبَيْتَ نو پر هغه به وخېږې او ودرېږې! تر دې چې کعبه شریفه وویني فَتَسْتَقْبِلُهٗ مُكَبِّرًا مُهَلِّلًا مُلَبِّيًا دَاعِيًا نو د کعبې شریفې وطرف ته به مخ کړې! په داسي حال کي چي الله اکبر ویونکی. لا إله إلا الله ویونکی، تلبیه ویونکی (او) دعاء کونکی یې وَتَرْفَعُ يَدَيْكَ مَبْسُوْطَتَيْنِ اوپورته به کړې! خپل دواړه لاسونه په داسي حال کي چي دواړه دي غوړولي وي ثُمَّ تَهْبِطُ نَحْوَ الْمَرْوَةِ عَلٰى هِيْنَةٍ بیا به راشوه سې! د مَروه (غره) وطرف ته په سکون سره (په آرامه) فَإِذَا وَصَلَ بَطْنَ الْوَادِيْ بیا چي کله دئ "بطنِ وادي" (د وادي نس) ته ورسیږي سَعٰى بَيْنَ الْمِيْلَيْنِ الْأَخْضَرَيْنِ سَعْيًا حَثِيْثًا نو د دوو زرغونه میلونو تر مینځ دي په تېزي سره ولاړ سي فَإِذَا تَجَاوَزَ بَطْنَ الْوَادِيْ بیا چي کله له "بطنِ وادي" څخه تېر سي مَشٰى عَلٰى هِيْنَةٍ حَتّٰى يَأْتِيَ الْمَرْوَةَ نو په سکون (په آرامه) دي روان سي تر دې چي مَروه ته راسي فَيَصْعَدَ عَلَيْهَا نو پر هغه (مروه) دي وخېږي وَيَفْعَلَ كَمَا فَعَلَ عَلَى الصَّفَا او (پر مَروه دي) داسي وکړي څرنګه چي یې پر صفا کړي وه يَسْتَقْبِلُ الْبَيْتَ مُكَبِّرًا مُهَلِّلًا مُلَبِّيًا مُصَلِّيًا (یعني) کعبې شریفي ته دي مخ کړي په داسي حال کي چي الله أکبر ویونکی، لا أله إلا الله ویونکی، تلبیه (او) درود ویونکی وي دَاعِيًا بَاسِطًا يَدَيْهِ نَحْوَ السَّمَاءِ (او) دعاء کونکی وي په داسي حال کي چي خپل دواړه لاسونه یې د آسمان وطرف ته غوړولي (او پورته کړي) وي وَهٰذَا شَوْطٌ او دا یو دَور دی (یعني چي صفا ته وخېږي او بیا له هغه څخه ومَروه ته سعی وکړي د مذکوره افعالو سره. نو دا په سعی کي یو شوط (دور) اسو) ثُمَّ يَعُوْدُ قَاصِدَ الصَّفَا بیا دي را وګرځي په داسي حال کي چي د صَفا قصد کونکی وي (یعني بیا دي له مَروه څخه وصَفا ته د تللو په اراده له مَروه څخه واپس روان سي)

فَإِذَا وَصَلَ إِلَى الْمِيْلَيْنِ الْأَخْضَرَيْنِ بيا چي کله دوو زرغونه ميلونو ته ورسيږي سَعْيِ نو په تېزه دي ولاړ سي ثُمَّ مَشٰى عَلٰى هِيْنَةٍ حَتّٰى يَأْتِيَ الصَّفَا بيا دي په سکون (په آرامه) روان سي تر دې چي صَفا ته راسي فَيَصْعَدَ عَلَيْهَا وَ يَفْعَلَ كَمَا فَعَلَ أَوَّلًا نو پر صفا دي وخېږي او داسي دي وکړي څرنګه چي اول وار کړي وه وَهٰذَا شَوْطٌ ثَانٍ او دا دويم دَور دی فَيَطُوْفُ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ نو طواف دي وکړي (همداسي) اووه دَوره يَبْدَأُ بِالصَّفَا وَيَخْتِمُ بِالْمَرْوَةِ له صَفا څخه دي شروع کوي او پر مَروه دي ختموي وَيَسْعٰى فِيْ بَطْنِ الْوَادِيْ فِيْ كُلِّ شَوْطٍ مِنْهَا او تېز تګ دي کوي(تېز دي ځي) په نس د وَادي (شېلې) کي د دغو اُوو دَورونو په هر دَور کي.

**لغات:** ﴿مكبّرًا﴾ د تفعيل له بابه فاعل دی: الله اکبر ويونکی، د الله تعالیٰ لويي بيانونکی، ﴿مهلّلًا﴾مخکيني صيغه ده: لاإله إلّا الله ويونکی، ﴿ملبّيا﴾ د تفعيل له بابه اسم فاعل دی: تلبيه ويونکی، تلبيه مصدر دی، په حج کي لَبَّيْكَ اللّٰهُمَّ ويل، ﴿مبسوطتين﴾ د نصر له بابه تثنيه اسمِ مفعول دی، مصدر: بَسْطًا: غوړول، هوارول، ﴿هينة﴾ په دې کي څو لغات نقل سوي دي، غوره يې بکسر الهاء دی يعني هِيْنَة کوم چي له هَوْنَ بفتح الهاء څخه ماخوذ دی: په سکون او وقار سره تلل، هِيْنَة په اصل کي هِوْنَةٌ وو، واو ساکن ماقبل يې مکسور وو، نو ځکه واو يې په ياء سره بدل کړی، هِيْنَةٌ سو. ﴿بطن وادی﴾ د بَطْن معنیٰ ده: نس يعني مينځ، مينځوی حصه. وَادِی شلې (شېلې) ته وايي چي په هغه کي له غرونو وغيره څخه د باران اوبه راځي، ، نو د بطنِ وادی معنیٰ ده: د شلې مينځ، دلته ځني مراد د دوو غرونو (صفا او مروه) تر مينځ هغه حصه ده کوم چي هواره ده چي پورته او کښته پکښي نسته، خو نن سبا تقريباً ټوله حصه هواره کړل سوې ده. نو ځکه په بطنِ وادي کي يې دوې زرغوني نښي لګولي دي چي هغه ته ميلين أخضرين وايي، له بطنِ وادي څخه همدغه ځای مراد دی. ﴿حثيثًا﴾ تېز. وَلّٰى حَثِيْثًا: هغه په تېزي سره واپس ولاړی، ﴿شوط﴾ پر کعبې شريفي يو ځل راګرځېدللو ته يو شَوط او دَور ويل کيږي (يا په بله وينا: د کعبې شريفي د طواف هر دَور ته شوط وايي). همدارنګه د صفا او مروه تر مينځ يو ځل تللو ته هم شَوط ويل کيږي، دلته په عبارت کي همدا دويمه معنیٰ مرا ده.

**تشریح**: صَفا او مَروه دوه غرونه دي کوم چي مسجد حرام ته نژدې دي، د سعی لغوي معنیٰ ده: ځغستل او د شریعت په اصطلاح کي د صفا و مروه تر مینځ په مخصوصه توګه (تېز) تللو راتللو (دَور لګولو) ته وایي، دا د حضرت اسماعیل علیه السلام د مور بي بي هاجرې د یو خاص عمل یادګار دی (چي حضرت هاجرې دلته د اُوبو په تلاش کي ځغستلي وه، لکه مخکي چي یې هم یادونه وسوه. واقعه مشهوره ده)، او په حج او عمره دواړو کي دا سعی کول واجب دي.

د عبارت حاصل دا دی چي له طواف قدوم څخه تر فارغېدلو وروسته به د سعی لپاره اول صَفا ته راسي او پر صَفا به دومره وخېږي چي کعبه شریفه (بیتُ الله) په نظر ورسي، بیا دي هلته مخ پر قبله ودرېږي او الله اکبر، لا إله إلا الله دي ووایي، تلبیه او درود شریف دي ووایي او د دعاء لپاره دي لاس پورته کړي، دا د دعاء قبلېدلو ځای دی، بیا دي له صفا څخه د مَروه وطرف ته په خپل تګ سره روان سي او کله چي هغه ځای ته رانژدې سي چیري چي میلین اخضرین یعني په دېواله کي زرغونه رنګ والا دوې ستنې (تمبې) لګېدلي دي (او لوس هلته زرغونه بلپان د نښاني په توګه لګول سوي دي. نو دې ځای ته چي راورسیږي) یعني چي د ده او میلین اخضرین تر مینځ شپږ لاسه (شپږ شرعي ګزه) فاصله پاته سي، نو هغه دي ځغاسته (تېز تګ) شروع کړي او تر دویمي زرغوني ستني (تمبې) وروسته دي شپږ لاسه قدر خپله ځغاسته جاري وساتي (یعني تر دویم زرغونه میل وروسته دي هم تر شپږو ګزو پوري تېز ولاړ سي)، ښکاره دي وي چي په تېزه ځغستل پکار نه دي، بلکي ځغاستي ته نژدې تېز تلل سنت دي، او کله چي له دواړو ستنو (میلونو) څخه ووځي، نو بیرته دي د خپل تګ مطابق روان سي تر دې چي مَروه ته ورسیږي، بیا دي پر مَروه وخیږي او د کعبې شریفي پر طرف مخامخ دي ودرېږي او څرنګه چي یې پر صفا غره د دعاء لپاره لاس پورته کړی وو، تکبیر او تهلیل او دعاء یې کړې وه، هغسې عمل به دلته هم وکړي، دلته هم دعاء قبلیږي، دا یو دَور (شَوط اچکرا) سو، بیا دي همداسي له مَروه څخه صفا ته راسي، نو دویم دَور (دویم شوط) به پوره سي، او په دې توګه به اُووم دَور پر مَروه پوره سي، او په آخر کي دي مخ پر قبله سي او له الله تعالیٰ څخه دي خپل مرادونه وغواړي او تکبیر او تهلیل دي ووایي.

**فایده**: علامه طحطاوي رَحِمَهُ الله فرمایي چي په عبارت کي چي کوم دا ذکر سوي دي چي پر مَروه به مخ پر قبله ودرېږي (تر دې چي کعبه شریفه په نظر ورسي)، دا د هغه زمانې خبره ده کله چي د مَروه او کعبې شریفي (بیتُ الله) تر مینځ هیڅ پرده او تعمیر نه وو، او له مَروه غره څخه کعبه شریفه صفا لیدل کېدله، خو په اوس وخت کي صورت حال مختلف دی، په مینځ کي عمارتونه راغلي دي، خو اوس هم حکم دا دی چي د کعبې شریفي و طرف ته به مخ کوي، که څه هم هغه په نظر نه ورځي. (طحطاوي ص ۴۰۰)

**یادونه**: په اوس وخت کي د سعودي حکومت له طرفه دا د صَفا او مرو د سعی ځای د مخکي په مقابله کي څو چنده پراخه کړل سوی دی او هغه څو چته (څو منزله) جوړ کړل سوی دی او د تنګ راتنګ لاري سره جلا کړل سوي دي، نو د حکومت د تحقیق مطابق دا ټوله ځای د صفا او مروه غرونو په مینځ کي واقع دی، نو ځکه هلته پر هر چت (منزل) کي سعی بلا تردّده صحیح ده.

## له طواف او سعی کولو څخه وروسته په مکه کي د پاتېدلو حکم

﴿۱۳۳۹﴾ ثُمَّ يُقِيمُ بِمَكَّةَ مُحْرِمًا بیا دي په مکه کي پاته سي د محرم والي په حالت کي (چي احرام يې تړلی وي) وَيَطُوفُ بِالْبَيْتِ كُلَّمَا بَدَا لَهُ او طواف دي کوي پر کعبې شریفي هر کله چي هم د ده خیال سي (یا په بله وینا: هر کله چي هم د ده طبیعت ازړه او غواړي).

﴿۱۳۴۰﴾ وَهُوَ أَفْضَلُ مِنَ الصَّلٰوةِ نَفْلًا لِلْآفَاقِيِّ او طواف افضل دی له نفلي لمانځه څخه د آفاقي (اطرافي ابهرني) کس لپاره.

**لغات**: ﴿یقیم﴾ د افعال د باب مضارع معلومه ده: په یو ځای کي پاتېدل، استوګنه اختیارول.

﴿بدا﴾ یو بَدَأَ دی (په همزه سره) کوم چي د فتح د باب ماضي ده چي د هغه معنیٰ ده: شروع کول، او بل بَدَا (بغیر له همزې) دی کوم چي د نصر د باب ماضي ده چي د هغه معنیٰ ده: ښکاره کېدل، یو شي ته خیال کېدل، چي د انسان یو شي ته خیال او طبیعت سي (مصباح اللغات، معجم الوسیط)، دلته بَدَا (بغیر له همزې) منقول دی. ﴿آفاقيّ﴾ مخکي يې تعریف ذکر سو چي هغه کس کوم چي په مکّه کي نه اوسیږي بلکي له مکې او میقات څخه بهر په اطرافو کي اوسیږي، یا په بله وینا کوم چي له بل ملک او بل ښار څخه حرم شریف ته راغلی وي لکه افغانی، پاکستانی او داسي نور.

**تشریح**: له طوافِ قدوم او سعی څخه تر فراغت وروسته دي د احرام په حالت کي په مکه مکرمه کي پاته سي؛ ځکه چي هغه د حج کولو په اراده سره احرام تړلی دی، نو د حج د افعالو له پوره کولو څخه بغیر دي له احرامه څخه نه وځي یعني داسي څه کار دي نه کوي چي په هغه سره له احرامه څخه ووځي، او په دې دوران کي دي د مسجدِ حرام حاضري او زیات نفلي طوافونه کول لوی سعادت وګڼي، په بازارونو او مجلسونو کي دي بېله ضرورته دا قیمتي وخت نه ضایع کوي.

## ﴿ نفلي طواف له نفلي لمانځه غوره افضل دی ﴾

په حرم شریف کي تر ټولو افضل عبادت طواف دی، نوافل، اذکار، د قرآن تلاوت او داسي نور پر دویم نمبر دي، او له بهر څخه د راتلونکو مسافرانو (آفاقیانو) لپاره په هر وخت کي نفلي طواف له نفلي لمانځه څخه افضل دی (یعني برابره ده د حج موسم وي او که بل وخت وي)، او پاته سو مکّي کس یعني کوم چي په مکه کي اوسیږي، د هغه لپاره د حج په موسم کي نفلي لمونځ له نفلي طواف څخه افضل دی، او د مکي او غیر مکي تر مینځ دا فرق په دې وجه دی چي د مکې اوسېدونکو ته ټوله کال د نفلي طواف لپاره موقع حاصله ده او د لیري څخه راتلونکو مسافرانو ته صرف د حج په موسم کي دا موقع حاصلیږي، اوس که د حج په موسم کي د مکې اوسېدونکي هم د نفلي طواف لپاره راسي، نو د رش او ګڼي ګوڼي په وجه به دغو سترو مسافرانو ته پوره د حج موقع حاصله نه سي، نو په دې وجه د دوی تر مینځ دا فرق وکړی سو.

## د ذو الحجې په اتمه (یوم الترویه) باندي د حج افعال

﴿۱۳۲۱﴾ فَإِذَا صَلَّى الْفَجْرَ بِمَكَّةَ ثَامِنَ ذِي الْحِجَّةِ بیا کله چي د ذو الحجې په اتمه د سهار لمونځ په مکه مکرّمه کي وکړي تَأَهَّبَ لِلْخُرُوجِ إِلَى مِنًى نو منیٰ ته دي د وتلو تیاري وکړي فَيَخْرُجُ مِنْهَا بَعْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ نو له مکې څخه دي تر لمر لوېدو وروسته ووځي وَيَسْتَحِبُّ أَنْ يُّصَلِّيَ الظُّهْرَ بِمِنًى او مستحب دا ده چي د ماپښین لمونځ په منیٰ کي وکړي وَلَا يَتْرُكُ التَّلْبِيَةَ فِيْ أَحْوَالِهِ كُلِّهَا او تلبیه دي په خپل ټولو حالاتو کي نه پرېږدي إِلَّا فِي الطَّوَافِ مګر په طواف کي وَيَمْكُثُ بِمِنًى إِلَى أَنْ يُّصَلِّيَ الْفَجْرَ بِهَا بِغَلَسٍ او په منیٰ کي به پاته سي تر دې چي د سهار لمونځ په تیاره (تاریکه) کي وکړي وَيَنْزِلُ بِقُرْبِ مَسْجِدِ الْخَيْفِ او مسجد خیف ته به نژدې کښېنته سي (یعني د هغه سره دي نژدې قیام او پړاؤ وکړي).

**لغات:** ﴿تأهّب﴾ د تفعّل د باب ماضي ده، مصدر: تأهُّبا: تیارېدل، چمتو کېدل. ﴿یمکث﴾ د نصر له بابه مضارع معلومه ده، مصدر: مَكْثًا و مُكُوْثًا: پاتېدل، قیام کول، درنګ کول. ﴿غَلَس﴾ (بفتحتین) د شپې د آخر تاریکي کله چي د سهار څه رڼا ور سره ګډه وي، ظلمة آخر اللّيل إذا اختلطت بضوء الصّباح وفي

الحَدِيث "أَنّ النَّبِي صلى الله عليه وسلم كَانَ يُصَلِّ الصُّبْح بِغَلَس". ﴿مسجد خيف﴾ نا په منیٰ کي جمراتو ته نژدې يو لوی مسجد دی.

**تشريح**: د ذو الحجې په اتمه د سهار د لمونځ کولو څخه وروسته دي منیٰ ته د تللو تياري وکړي، کله چي لمر را وخېږي، نو منیٰ ته دي روان سي (منیٰ شريفه له مکې مکرّمې څخه د دريو ميلو پر فاصله واقع ده. منیٰ د غرونو په مينځ کي يو ډېر لوی ميدان دی)، په منیٰ کي د اتمي ورځي له ماپښين څخه د نهمي ورځي (يعني د عرفات دورځي) تر سهاره پوري پنځه لمنځونه کول او دا شپه په منیٰ کي پاتېدل سنت دي، او منیٰ ته د تللو او هلته د پاتېدلو په وخت کي دي تلبيه وايي. په منیٰ کي د "مسجد خيف" سره نژدې پاتېدل (پړاو کول) مستحب دي، دا ډېر لوی مسجد دی او د منیٰ په جنوبي حصه کي د غره سره متصل واقع دی. (شفاء الارواح)

ولا يترك التلبية إلخ: ....د تلبيه ويلو حکم تر کومه وخته پوري دی؟ د دې جواب دا دی چي د احرام تړلو له وخت څخه د تلبيه سلسله شروع کيږي او په عمره کي د طواف شروع کولو تر وخته او په حج کي د ذو الحجې تر لسمي د جمرهٔ عقبه تر ويشتلو (رمی) پوري جاري پاتيږي، له دغه اوقاتو څخه وروسته د تلبيه ويلو حکم نسته. (انوار الايضاح)

**يادونه**: بعضي خلک هر وخت مسلسله تلبيه وايي، برابره ده په احرام کي وي او که نه وي، همدارنګه بعضي خلک د عمرې د طواف او د طواف زيارت په دوران کي د تلبيې ورد کوي، دا طريقه خلاف سنت ده. (انوار الايضاح)

## عرفات ته د روانېدلو بيان او د عرفات د افعالو تفصيل

﴿۱۳۲۲﴾ ثُمَّ بَعْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ يَذْهَبُ إِلَى عَرَفَاتٍ بيا تر لمر راختلو وروسته به عرفات ته ولاړ سي فَيُقِيْمُ بِهَا نو په عرفات کي به قيام وکړي (يعني هلته دي پاته سي) فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ بيا کله چي لمر زائل سي (د آسمان له مينځ څخه واوړي، زوال سي) يَأْتِي مَسْجِدَ نَمِرَةَ نو مسجد نمره ته به راسي فَيُصَلِّي مَعَ الْإِمَامِ الْأَعْظَمِ أَوْ نَائِبِهِ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ نو د لوی امام (امام الحج) يا د هغه د نائب سره به د ماپښين او مازيګر لمنځونه (دواړه يو ځای) وکړي (چي دې ته جمع تقديم وايي) بَعْدَ مَا يَخْطُبُ خُطْبَتَيْنِ يَجْلِسُ بَيْنَهُمَا وروسته تر دې چي امام دوې خطبې ووايي چي د هغوی دواړو په مينځ کي به کښېني.

﴿۱۳۴۲﴾ وَيُصَلِّي الْفَرْضَيْنِ بِأَذَانٍ وَإِقَامَتَيْنِ او دواړه فرضونه (د ماپښین او مازیګر) به په یوه اذان او دوو اقامتونو سره وکړي وَلَا يَجْمَعُ بَيْنَهُمَا إِلَّا بِشَرْطَيْنِ او د دې دواړو (ماپښین او مازیګر) تر مینځ به جمع نه کوي مګر په دوو شرطونو سره الْإِحْرَامِ وَالْإِمَامِ الْأَعْظَمِ ① احرام (چې په احرام کې به وي) ② او لوی امام (چې د حج په امام پسې به لمونځ کوي) وَلَا يَفْصِلُ بَيْنَ الصَّلٰوتَيْنِ بِنَافِلَةٍ او د دې دواړو لمنځونو تر مینځ دې په نفلي لمانځه سره فصل (جلاوالی) نه راوالي وَإِنْ لَمْ يُدْرِكِ الْإِمَامَ الْأَعْظَمَ او که چیرې لوی امام (امامُ الحج) نه ونیسي (نه وموندي) صَلَّى كُلَّ وَاحِدَةٍ فِي وَقْتِهَا الْمُعْتَادِ نو د اهر لمونځ دې په خپل مقرر (ټاکلي) وخت کې وکړي.

**لغات:** ﴿مسجدة نمرة﴾ دا یو ډېر پراخ لوی مسجد دی کوم چې د عرفات بالکل پر څنډه دی، نبي کریم ﷺ په عرفات کې د ماپښین او مازیګر لمونځ یو ځای اداء کړی وو، چیرې چې نبي کریم ﷺ لمونځ اداء کړی وو، پر هغه ځای دا مسجد نمره جوړ دی، د دې مسجد د مغربي دېوال لاندېنی حصه له عرفات څخه خارج ده، هغهٔ حصې ته بطن عُرنه ویل کیږي کوم چې په عرفات کې داخله نه ده. دلته وقوف معتبر نه دی، ﴿یخطب﴾ د نصر له بابه مضارع معلومه ده، مصدر: خُطْبَةٌ: تقریر کول، خطبه ویل، ﴿یفصل﴾ د ضرب د باب مضارع ده، مصدر: فَصْلًا و فُصُوْلًا: دوه شیان سره جلا کول، بیلتون پکښې راوستل، ﴿لم یدرك﴾ د افعال له بابه د جحد صیغه ده، مصدر: إدراکًا: نیول، موندل، ﴿معتاد﴾ د افتعال د باب اسمِ مفعول دی، او اسمِ فاعل یې هم پر دغه وزن راځي، دلته مراد مفعولي معنیٰ ده: عادت کړی سوی شی، د عادت مطابق، د معمول مطابق، هغه څه چې عرفاً مقرر وي. (انوار الایضاح)

**تشریح:** د ذو الحجې په نهمه (یعني د عرفات په ورځ) د سهار د لمونځ کولو څخه وروسته چې کله لمر راوخیږي او رڼا څه وغوړیږي، نو له منیٰ څخه دې د عرفات لپاره روان سي (عرفات له مکې څخه د نهو میلو پر فاصله د حرم له حدودو څخه بهر ډېر پراخ، عظیم الشان میدان دی، په دې ټوله میدان کي هر ځای وقوف کېدلای سي)، د عرفات حدود څلور سره طرفونو ته متعيّن دي، اوس د سعودي حکومت پر هغه حدودو نښې لګولي دي، د دې لپاره چې وقوف عرفه کوم چې د حج رکنِ اعظم دی د عرفات له حدودو څخه بهر واقع نه سي، عرفات ته چې ورسیږي، نو هلته دې پاته سي، بیا چې کله لمر زوال

سي، نو مسجد نمره ته دي راسي (د مسجد نمره وضاحت په لفاتو کي وسو)، په مسجد کي دي امامُ المسلين (امام الحج) يا د هغه نائب خلکو ته د ماپښين او مازيګر دواړو لمځونه د ماپښين په وخت کي ورکړي، ترتيب به يې دا وي چي کله امام په منبر باندي کښېني، نو په دې وخت کي دي مؤذن اذان وکړي، تر دې وروسته دي امام د جمعې په څېر دوې خطبي ووايي چي په هغه کي به خلکو ته د حج افعال وښيي او د دواړو خطبو په مينځ کي دي په ناسته سره فصل وکړي (لکه څرنګه چي د جمعې په خطبو کي کيږي)، له خطبو څخه تر فراغت وروسته چي کله امام له منبر څخه را شوه سي، نو مؤذن دي اقامت وکړي او امام دي د ماپښين لمونځ ورکړي، تر دې وروسته دي مؤذن دويم وار اقامت وکړي او امام دي د مازيګر لمونځ ورکړي (يعني د ماپښين تر لمانځه وروسته دي په همدې د ماپښين په وخت کي سمدستي بيا د مازيګر لمونځ ورکړي. همدې ته "جمع تقديم" وايي)، او د ماپښين تر فرضو وروسته دي امام او مقتديان دواړه د ماپښين سنت مؤکده يا نفل نه کوي او د مازيګر تر لمانځه وروسته دي هم د ماپښين سنت يا نفل نه کوي. او د دغي جمع بين الصلاتين لپاره شرط دا ده چي د حج احرام به يې تړلی وي او د امامُ المسلمين (امامُ الحج) يا د هغه د نائب په اقتداء کي به يې اداء کوي. (شفاء الارواح)

ولا يجمع بينهما إلخ: د دې څه وضاحت پورته وسو، دلته به يې نور وضاحت کړو: د "جمع تقديم" لپاره يعني په عرفات کي د ماپښين په وخت کي د ماپښين او مازيګر د لمانځه جمع کولو (جمع بين الصلاتين) لپاره بالاتفاق احرام شرط دی، او د امامُ الحج (اميرُ الموسم) په اقتداء کي لمونځ کول شرط دي، که نه؟ په دې کي اختلاف دی، د احنافو په نيز دا هم شرط دي، لهذا کوم کس چي په مسجد نمره کي په امام پسي لمونځ اداء کوي، صرف هاغه دا جمع بين الصلاتين کولای سي، او کوم سړی او ښځه چي په خپل خېمه کي لمونځ کوي، برابره ده په جماعت سره يې کوي او که تنها يې کوي، د هغو لپاره جمع بين الصلاتين کول جائز نه دي؛ ځکه د هغو لپاره دا هر لمونځ په خپل وخت کي کول مشکل نه دی، حال دا چي په مسجد نمره کي د جمع بين الصلاتين حکم په همدې وجه دی چي هلته مجبوري ده؛ ځکه که چيري خلک د ماپښين د لمونځ کولو څخه وروسته يو وار د وقوف لپاره جبلِ رحمت ته ځي (چي د هغه سره وقوف کول افضل دي)، بيا د مازيګر په وخت کي بيرته مسجد ته راځي او د مازيګر لمونځ کوي او بيرته جبلِ رحمت ته ځي او وقوف کوي، نو ټوله وخت به په تګ راتګ کي خرچ سي، نو ځکه شريعت په مسجد نمره کي د جمع بين الصلاتين اجازه ورکړې ده او کوم کسان چي په خپله خېمه کي لمونځ کوي (او په امامُ الحج پسي يې په مسجد کي نه کوي)، د هغو لپاره څه مجبوري ده!، نو ځکه د هغو لپاره د جمع کولو اجازه نسته. (انوار الايضاح بحوالة تحفة الألمعي ج: ۳، ص: ۲۸۹)

## په عرفات کي د وقوف (درېدلو) ځای، طريقه او تفصيل

﴿۱۳۲۴﴾ فَإِذَا صَلَّىٰ مَعَ الْإِمَامِ بيا كله چي دامام سره لمونځ وكړي يَتَوَجَّهُ إِلَى الْمَوْقِفِ نو موقف (ځای د درېدلو) ته دي متوجّه سي (روان سي) وَعَرَفَاتٌ كُلُّهَا مَوْقِفٌ إِلَّا بَطْنَ عُرَنَةَ او عرفات ټوله موقف (ځای د درېدلو) دی، مګر "بطن عُرنه" (د "عُرنه" شېلې مېنځ).

﴿۱۳۲۵﴾ وَيَغْتَسِلُ بَعْدَ الزَّوَالِ فِيْ عَرَفَاتٍ لِلْوُقُوْفِ او غسل دي وكړي تر زوال وروسته په عرفات کي د وقوف (درېدلو) لپاره.

﴿۱۳۲۶﴾ وَيَقِفُ بِقُرْبِ جَبَلِ الرَّحْمَةِ مُسْتَقْبِلًا مُكَبِّرًا مُهَلِّلًا مُلَبِّيًا او د "جبلِ رحمت" سره دي نږدې ودرېږي په داسي حال کي چي مخ پر قبله وي (او) الله أكبر وېونكی، لا إله إلا الله وېونكی او تلبيه وېونكی وي دَاعِيًا مَادًّا يَدَيْهِ كَالْمُسْتَطْعِمِ (او په داسي حال کي چي) دعاء كونكی (او) د خپل دواړو لاسو غوړونكی (غځونكی) وي لکه ډوډۍ غوښتونكي كس وَيَجْتَهِدُ فِي الدُّعَاءِ لِنَفْسِهِ وَوَالِدَيْهِ وَإِخْوَانِهِ او (پوره) كوشش دي وكړي په دعاء کي د خپل ځان او د خپل مور وپلار او د خپل (تمام) ورونو لپاره وَيَجْتَهِدُ عَلَىٰ أَنْ يَّخْرُجَ مِنْ عَيْنَيْهِ قَطَرَاتٌ مِنَ الدَّمْعِ او كوشش دي وكړي پر دې خبره (هم) چي د ده له سترګو څخه يو څو قطرې د اوښكو ووځي فَإِنَّهُ دَلِيْلُ الْقَبُوْلِ ځكه دا د قبلېدلو (قبوليت) نښه ده وَيُلِحُّ فِي الدُّعَاءِ مَعَ قُوَّةِ رَجَاءِ الْإِجَابَةِ او په دعاء کي دي پوره ټينګار (او زاري) وكړي، د (دعاء) قبلېدلو د پوره اُميد سره (يعني دا به يې قوي اُميد وي چي دعاء مي قبلېدونكې ده او په همدې اُميد سره دي په دعاء کي ښه ټينګار او زاري وكړي)

وَلَا يُقَصِّرُ فِيْ هٰذَا الْيَوْمِ او په دې ورځ کي دي كوتاهي (او غفلت) نه كوي إِذْ لَا يُمْكِنُهُ تَدَارُكُهُ ځكه چي د ده لپاره د دې ورځي تدارک (بيرته مونډل) ممكن نه دي سِيَّمَا إِذَا كَانَ مِنَ الْآفَاقِ خصوصاً كله چي هغه له اطرافو (بهرني وطنو) څخه وي.

﴿۱۳۲۷﴾ وَالْوُقُوْفُ عَلَى الرَّاحِلَةِ أَفْضَلُ او (په عرفات کي) په سپارلي باندي وقوف كول افضل

دي وَالْقَائِمُ عَلَى الْأَرْضِ أَفْضَلُ مِنَ الْقَاعِدِ او پر ځمکه درېدونکی (ولاړ) کس له کښېناستونکي څخه افضل دی.

**لغات**: ﴿الموقف﴾ د ضرب له بابه د اسمِ ظرف صیغه ده: د درېدلو ځای، د وقوف کولو ځای. ﴿جبل الرحمة﴾ دا د عرفات میدان په مینځ کي واقع یو مشهوره غوره دی، هلته تلل او دوه رکعته لمونځ کول او دعاګاني کول قبولیت ته نژدې دي، د عرفات په ورځ پر دغه غره ډېر رش وي، نو ځکه کمزورو خلګو ته پکار دي چي پر هغه د ختلو کوښښ نه وکړي، هسي نه چي د رش په وجه ځاني تاوان ورته پېښ نه سي. ﴿مادًّا﴾ د نصر له بابه فاعل دی، مصدر: مَدًّا: اوږدول، کشول. ﴿مستطعم﴾ د استفعال له بابه فاعل دی، مصدر: اسْتِطْعَامًا: د خوراک طلب کول، ډوډۍ غوښتل. ﴿يُلِحّ﴾ د افعال د باب مضارع معلومه ده، مصدر: إِلْحَاح: په خواست او غوښتنه کي ټینګار کول. ﴿لا يُقَصِّر﴾ د تفعیل له بابه د نفي معلوم صیغه ده، مصدر: تقصيرًا: په یو کار کي سُستي کول، لا پروایي او کمي کول. ﴿تدارك﴾ د تفعل د باب مصدر دی: تېر سوی شی بېرته موندل، نیول، د واقع سوي نقصان تلافي کول، واقع سوې کمي پوره کول. ﴿سيّما﴾ خصوصاً (په خصوصي توګه)، په ځانګړې توګه. ﴿راحلة﴾ سپارلي، د سپر تیا قابل اوښ یا اوښه، د مذکر او مؤنث دواړو لپاره راځي، تاء د مبالغې ده، جمع: رَوَاحِل.

**تشریح**: په عرفات کي له جمع بین الصلاتین څخه تر فارغېدلو وروسته دي امام او خلک ټوله وقوف وکړي، له زوال څخه تر لمر لوېدلو پوري په ټوله عرفات میدان کي چي چیري وغواړي وقوف کولای سي (درېدلای سي)، د وقوف لپاره څه خاص ځای لازم نه دی (خو د جبل رحمت سره وقوف کول افضل دی)، او پاته سو په بطنِ عُرنه کي وقوف جائز نه دی، دا د مزدلفې له طرف څخه چي کله د عرفات میدان ته را داخلیږي، نو اول یوه باراني شله (شېله) راځي، همدې ته بطن عرنه ویل کیږي او دا حصه په عرفات کي داخله نه ده، تر دې وروسته د عرفات میدان شروع کیږي (او مخکي موږ ذکر کړه چي د مسجد نمره د مغربي دېوال لاندیني حصه په همدې بطن عرنه کي واقع ده کوم چي له عرفات څخه خارج ده). په بطنِ عرنه کي وقوف کول معتبر نه دی، که څوک هلته وقوف وکړي، نو حج یې نه کیږي.

**ويغتسل إلخ**: د حج له سنتونو څخه دا هم ده چي په عرفات کي تر زوال وروسته غسل وکړي، بیا وقوف وکړي.

ویقف بقرب جبل إلخ: د عرفات میدان ډېر پراخ دی او ټوله میدان د درېدلو ځای دی، خو افضل دا ده چي د جبلِ رحمت سره نژدې پر کوم ځای چي رسول الله ﷺ وقوف کړی وو، هلته دي وقوف وکړي (د جبلِ رحمت سره نژدې څه پر لوړ ځای چي د غټو تورو ډبرو فرش دی، همدا د رسول الله ﷺ د وقوف ځای وو، که په آسانۍ سره ممکنه وي، نو دلته درېدل افضل دي)، لیکن که جبلِ رحمت ته رسېدل مشکل وي، یا د واپسۍ په وخت کي خپله خېمه پیدا کول مشکل وي، لکه نن سبا چي عموماً همداسي کېږي، نو بیا دي په خېمه کي وقوف وکړي.

او افضل او اعلیٰ خو دا ده چي مخ پر قبله ودرېږي او تر مابنامه پوري وقوف عرفه وکړي او که په دې ټوله وخت کي نه سي درېدلای، نو څومره چي یې وس وي او تر کومه وخته چي یې پښې وچي سوي نه وي، هغومره دي ولاړ اووسي، بیا دي کښېني او کله چي قوت پکښې راسي، نو بیا دي ودرېږي، او په دې ټوله وخت کي دي په خشوع و خضوع سره بار بار تلبیه وایي، په ژړا او زارۍ سره دي د الله په ذکر، تلاوت، درود شریف او استغفار کي مشغول اووسي، د دیني او دنیاوي مقاصدو لپاره او د خپل مور و پلار، ملګرو او دوستانو او ټولو مسلمانانو لپاره دي دعاګاني غواړي، دا د دعاء قبلېدلو خاص وقت دی، دا خصوصاً آفاقي ته بار بار نه نصیب کېږي، په دې وخت کي دي بېله ضرورته په خپل مینځ کي له جائزو خبرو څخه هم پرهېز وکړي، ټوله وخت دي په دعاء او ذکر الله کي صرف کړي، او پر سپارلي (یعني د سپرتیا په حالت کي) وقوف کول افضل دي؛ ځکه د نبي کریم ﷺ سنت همدا وو. (انوار الایضاح، شفاء الارواح، هدایه)

**فایده:** د عرفات په میدان کي تر ټولو افضله او غوره دعاء "دعاء توحید" یعني څلورمه کلمه ده، په روایت کي راځي چي نبي کریم ﷺ وفرمایل: چي ما او زما څخه مخکي نبیانو چي د عرفات په میدان کي کومي دعاګاني کړي دي، په هغوی کي تر ټولو افضله دعاء "دعاء توحید" یعني څلورمه کمه ده، د دغه کلمې تر ویلو وروسته چي کوم مرادونه او دعاګاني وغوښتل سي، ان شاء الله قبولي به سي، او که ممکنه وي، نو څلورمه کلمه دي سل (۱۰۰) واره ووایي.

## له عرفات څخه مزدلفې ته د روانېدلو بیان او د مزدلفې د افعالو تفصیل

﴿۱۳۲۸﴾ فَإِذَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ بیا چي کله لمر ولوېږي أَفَاضَ الْإِمَامُ وَالنَّاسَ مَعَهُ عَلَى هِينَتِهِمْ نو را واپس دي سي امام او د هغه سره ټوله خلک په سکون (اطمینان) سره (پ خپل طبعي تګ) وَإِذَا وَجَدَ فُرْجَةً او کله چي پراخوالی (د ځای خالي والی) ومومي يُسْرِعُ مِنْ غَيْرِ أَنْ يُؤْذِيَ أَحَدًا نو تېز دي روان سي بغیر له دې چي یو چا ته تکلیف ورسوي وَيَتَحَرَّزُ عَمَّا يَفْعَلُهُ

الْجَهَلَةُ مِنَ الْاِشْتِدَادِ فِی السَّیْرِ وَالْاِزْدِحَامِ وَالْاِیْذَاءِ او ځان دي بچ ساتي له هغه شیانو څخه کوم چي يې ناپوه (ناخبره) کسان کوي يعني په تګ کي تېزي کول (خفستل) او يو بل دیکه کول او (نورو ته) تکلیف رسول فَاِنَّهٗ حَرَامٌ ځکه دا حرام دي حَتّٰی یَاْتِیَ مُزْدَلِفَةَ تر دې چي مزدلفې شریفي ته راسي فَیَنْزِلُ بِقُرْبِ جَبَلِ قُزَحَ نو (هلته) دي د "جبل قزح" سره نژدې کښته سي (تیام دي وکړي) وَیَرْتَفِعُ عَنْ بَطْنِ الْوَادِیْ او له "بطن وادي" (مینځ د شېلې) څخه دي څه پورته سي (يعني جبل قزح نژدې له بطن وادي څخه دي څه لوړي خوا ته پورته سي) تَوْسِعَةً لِلْمَارِّیْنَ د پراخی را وستلو په خاطر د تېرېدونکو کسانو لپاره (يعني چي د تېرېدونکو لپاره د بطن وادي اشېلې لاره پراخه او ایله سي).

﴿۱۳۴۹﴾ وَیُصَلِّیْ بِهَا الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ بِاَذَانٍ وَاحِدٍ وَاِقَامَةٍ وَاحِدَةٍ او په مزدلفه کي دي د ماښام او ماخوستن لمنځونه (دواړه يو ځای) وکړي په يوه اذان او يوه اقامت سره (چي دې ته "جمع تأخیر" وايي).

﴿۱۳۵۰﴾ وَلَوْ تَطَوَّعَ بَيْنَهُمَا اَوْ تَشَاغَلَ او که نفل وکړي د دې دواړو (ماښام او ماخوستن د جمع) په مینځ کي يا (په يو کار) مشغوله سي أَعَادَ الْإِقَامَةَ نو اقامت دي راوګرځوي.

﴿۱۳۵۱﴾ وَلَمْ تَجُزِ الْمَغْرِبُ فِیْ طَرِیْقِ الْمُزْدَلِفَةِ او جائز نه دی د ماښام لمونځ د مزدلفې په لاره کي وَعَلَيْهِ اِعَادَتُهَا مَا لَمْ يَطْلُعِ الْفَجْرُ او پر ده يې راګرځول واجب دي (که يې وکړي) تر څو چي صبح صادق (سپېدې) راختلي نه وي.

**لغات:** ﴿افاض﴾ د افعال د باب مصدر دی، مصدر: إفاضةً: د دې لغوي معنیٰ ده: واپس کېدل، راګرځېدل، او اصطلاحي معنیٰ يې ده: له عرفات څخه واپس کېدل (بېرته تلل). ﴿یتحرز﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: بچ کېدل، ځان ساتل. ﴿جهلة﴾ جمع د جاهل ده: نا خبره، نا پوه. ﴿سَیْر﴾ تګ، رفتار، چال. ﴿ازدحام﴾ د افتعال له بابه اسم مصدر دی: د زیات شمېر (رش) په وجه يو بل ته دیکه ورکول (په رش کي يو د بل سره دیکه کول)، د زیات شمېر په وجه ځای تنګېدل، يعني زيات ګڼه ګونه (رش) جوړېدل. ﴿مارین﴾ د نصر له بابه د جمع مذکر فاعل صیغه ده: تېرېدونکي. ﴿تطوّع﴾ د

**تشریح**: د ذو الحجې په نهمه (یعني دعرفات په ورځ) چې کله لمر ولوېږي، نو د ماښام لمونځ دې نه کوي، بلکې امام او خلک دې په ډېر سکون او اطمینان سره له عرفات څخه ووځي او مزدلفې ته دې روان سي (تر لمر لوېدو مخکې د عرفات له حدودو څخه وتل جائز نه دي، لهذا که څوک ووځي، نو عرفات ته واپس کېدل واجب دي)، کله چې مزدلفې ته روان سي، نو که په لاره کې رش نه وي او پراخه وي، نو څه تېز دي روان سي، کنې په احتیاط سره دې ځي، چا ته تکلیف رسول حرام دي. کله چې مزدلفې ته ورسیږي، نو د جبلِ قزح په لمن کې دې وقوف وکړي، دا مستحب دي، خو په لاره کې دې نه درېږي، بلکې د لارې راسته یا چپه طرف ته دې ودرېږي؛ ځکه په لاره کې د وقوف کولو په صورت کې خلک په تکلیف کیږي، او په مزدلفه کې به د ماښام او ماخوستن دواړه لمنځونه د ماخوستن په وخت کې په یوه اذان او یوه اقامت سره وکړي، یعني اول دې اذان او اقامت وکړي او د ماښام لمونځ دې وکړي، بیا تر هغه وروسته دې بغیر له اذان او اقامت څخه د ماخوستن لمونځ وکړي. او دغه جمع بین الصلاتین واجب ده، په خلاف د عرفات د جمع بین الصلاتین، هغه سنت ده. (چې هلته د ماپښین او مازیگر لمونځ د ماپښین په وخت کې سره جمع کول کیږي)، او په مزدلفه کې د جمع بین الصلاتین لپاره امامُ المسلمین (امامُ الحج) یا د هغه نائب شرط نه دی او جماعت هم شرط نه دی او تر لمانځه مخکې خطبه ویل هم سنت نه دي، لنډه دا چې د هر حاجي (کوم چې د حج احرام تړلی وي) لپاره په مزدلفه کې د ماښام او ماخوستن لمونځ سره جمع کول (جمع بین الصلاتین) جائز ده، برابره ده هغه د امامُ المسلمین په اقتداء کې لمونځ کوي، یا د خپل پړاو په ځای کې په جماعت سره لمونځ کوي، یا یوازې لمونځ کوي.

ولوتطوع إلخ: یعني په مزدلفه کې دې هم د ماښام د لمانځه او د ماخوستن د لمانځه تر مینځ سنت یا نفل نه کوي، او که په مینځ کې نفل وکړي، یا یو بل کار وکړي، نو اقامت به راګرځول کیږي (یعني د ماخوستن د لمانځه لپاره به دوباره اقامت کول کیږي)، او د ماښام او د ماخوستن سنتونه او وتر دې د ماخوستن تر لمانځه وروسته وکړي.

ولم تجز إلخ: یعني د عرفات په ورځ د ماښام لمونځ په عرفات کې یا د مزدلفې په لاره کې کول جائز نه دي، او که څوک د ماښام لمونځ په عرفات کې یا په لاره کې وکړي، نو مزدلفې ته له رسېدو څخه وروسته تر صبح صادق (طلوع الفجر) مخکې د هغه راګرځول واجب دي (که څه هم هغه په دې وجه د ماښام لمونځ کړی وي چې د جمع بین الصلاتین په مسئله خبر نه وي، او د ماښام د وخت وتلو له ډېرې څخه یې لمونځ په عرفات یا لاره کې کړی وي)، خو بیا هم که لمونځ نه راوګرځوي تر دې چې صبح صادق سي (د سهار

سپېدې وچاودي)، نو هغه مخکينۍ لمونځ يې معتبر او کافي دی، تر صبح صادق وروسته يې نه سي راګرځولای، يعني تر دې وروسته يې قضاء نه واجبيږي. (انوار الايضاح، شفاء الارواح، معلم الحجاج بتصرّف)

## په مزدلفه کي شپه تېرول، د وقوفِ مزدلفه بيان او تفصيل

﴿۱۳۵۲﴾ وَيُسَنُّ الْمَبِيْتُ بِالْمُزْدَلِفَةِ او سنت دي شپه تېرول په مزدلفه کي.

﴿۱۳۵۳﴾ فَإِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ بيا کله چي صبح صادق سي (يعني د سهار سپېدې وچاودي) صَلَّى الْإِمَامُ بِالنَّاسِ الْفَجْرَ بِغَلَسٍ نو امام دي وخلکو ته د سهار لمونځ په تياره (تاريکه) کي ورکړي ثُمَّ يَقِفُ وَالنَّاسُ مَعَهُ بيا دي ودرېږي (يعني په مزدلفه کي دي وقوف وکړي) امام او (ټوله) خلګ د هغه سره.

﴿۱۳۵۴﴾ وَالْمُزْدَلِفَةُ كُلُّهَا مَوْقِفٌ إِلَّا بَطْنَ مُحَسِّرٍ او مزدلفه ټوله د وقوف (درېدلو) ځای دی، مګر بطنِ مُحسّر (وادئ مُحسّر).

﴿۱۳۵۵﴾ وَيَقِفُ مُجْتَهِدًا فِيْ دُعَائِهِ او ودي درېږي (وقوف دي وکړي) په داسي حال کي چي په خپل دعاء کي (پوره) کوشش کونکی وي وَيَدْعُوا اللهَ أَنْ يُتِمَّ مُرَادَهُ وَسُؤَالَهُ فِيْ هٰذَا الْمَوْقِفِ كَمَا أَتَمَّهُ لِسَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ ﷺ او دعاء دي وغواړي له الله تعالیٰ څخه چي د ده مراد او د ده سوال (داسي) پوره کړي لکه څرنګه چي يې زموږ د سردار حضرت محمد ﷺ لپاره پوره کړی وو.

**لغات:** ﴿مبيت﴾ د ضرب له بابه مصدرِ ميمي دی، بَاتَ يَبِيْتُ بَيْتُوْتَةً وبَيْتًا وبَيَاتًا ومَبِيْتًا: شپه تېرول. ﴿مُحَسِّر﴾ (د ميم په ضمه، د حاء په فتحه او د مشدد سين په کسره سره): له مزدلفې څخه د منیٰ وطرف ته د راتللو په لاره کي يو ميدان دی، د هغه نوم وادیِ محسر دی، په هغه کي وقوف کول جائز نه دي او دلته په تېزي سره تېرېدل پکار دي.

**تشريح:** په مزدلفه کي شپه تېرول سنت دي، د دې شپې فضيلت له شب قدر څخه کم نه دی، په دې شپه کي وربنېدل، په تلاوت، نوافلو او دعاګانو مشغولېدل مستحب او لويه نېکبختي ده، بيا چي کله صبح صادق سي (يعني د لوی اختر د ورځي [يومُ النحر] د سهار سپېدې وچاودي)، نو امام دي وخلکو ته د سهار لمونځ په تياره کي ورکړي (دلته په تياره کي يعني په خپل اول وخت کي لمونځ کول سنت دي)، او که د امام سره يو ځای لمونځ کول ممکن نه وي، نو خپله دي جماعت وکړي او يوازې (تنها) لمونځ کول هم جائز دي، خو جماعت افضله دی، بيا دي امام او نور حاجيان وقوف وکړي (د وقوفِ مزدلفه وخت له

صبح صادق څخه تر لمر راختلو پوري دی. لهذا له هغه څخه یا وروسته وقوف نه صحیح کیږي)، او د مزدلفې په ټوله میدان کي چي چیري هم وغواړي، وقوف کولای سي ماسوا له وادي محسر څخه. دا د منیٰ وطرف ته له مزدلفې څخه بهر هغه مقام دی چیري چي پر اصحاب فیل عذاب راغلی وو، هغه ته اوس وادیُ النار هم وایي (د سعودي حکومت د هغه په شروع کي تختې لګولي دي چي څوک په غلطي سره په وادی محسر کي وقوف نه وکړي (رفیق حج ا)، او د مزدلفې په وقوف کي دي هم په دعاء کي ډېر کوشش وکړي؛ ځکه دا د دعاګانو د قبلېدلو مقام دی، د الله رسول ﷺ په دې ځای کي څو دعاګاني کړي وې او د ابن عباس رَضِی اللهُ عَنْهُمَا د روایت مطابق ټولي دعاګاني قبولي سوې تر دې چي د ناحقه قتل کونکو او ظلم کونکو د معاف کولو په حق کي هم. (شفاء الارواح، هدایه، انوار الایضاح)

## له مزدلفې څخه ومنیٰ ته د روانېدلو بیان او تفصیل

﴿۱۳۵۶﴾ فَإِذَا أَسْفَرَ جِدًّا بیا چي کله ښه رڼا سي أَفَاضَ الْإِمَامُ وَالنَّاسُ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ نو واپس دي سي (روان دي سي) امام او خلګ تر لمر لوېدلو مخکي.

﴿۱۳۵۷﴾ فَيَأْتِيْ إِلٰى مِنًى وَيَنْزِلُ بِهَا نو منیٰ ته دي راسي او هلته دي کښته سي (پاته سي) ثُمَّ يَأْتِيْ جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ. بیا دي جمرهٔ عقبه ته راسي فَيَرْمِيْهَا مِنْ بَطْنِ الْوَادِيْ بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ نو هغه دي وویلي له بطنِ وادي (د شېلې له مینځ) څخه په اُوو (کوچني) کاڼو سره مِثْلَ حَصَى الْخَذْفِ لکه د ویشتلو (کوچني) کاڼي (یعني په دومره کوچني کاڼو سره چي په دوو ګوتو سره ویشتل (غورځول) کېدای سي لکه مردکه).

﴿۱۳۵۸﴾ وَيَسْتَحِبُّ أَخْذُ الْجِمَارِ مِنَ الْمُزْدَلِفَةِ أَوْ مِنَ الطَّرِيْقِ او مستحب دي د کاڼو را اخیستل له مزدلفې څخه یا له لاري څخه.

﴿۱۳۵۹﴾ وَيُكْرَهُ مِنَ الَّذِيْ عِنْدَ الْجَمْرَةِ او مکروه دي را اخیستل له هغه (کاڼو) څخه کوم چي د ځلي (شیطان) سره (پراته) وي.

﴿۱۳۶۰﴾ وَيُكْرَهُ الرَّمْيُ مِنْ أَعْلَى الْعَقَبَةِ او مکروه دي رمی کول (کاڼي ویشتل) د جمرهٔ عقبې د لوړي خوا څخه لِإِيْذَائِهِ النَّاسَ د تکلیف رسولو په وجه د دې رمي وخلکو ته (یعني دا د لوړي خوا

ځخه ویشتل خلګو ته ضرر رسوي).

﴿۱۳۶۱﴾ وَيَلْتَقِطُهَا الْتِقَاطًا او هغه کاڼي دي (له یو ځای ځخه) را واخلي (یعني د جمرې اشیطان او ویشتو کاڼي دي هسې له یو ځایه را پورته کړي. که څه هم له لارې ځخه وي) وَلَا يَكْسِرُ حَجَرًا جِمَارًا او نه دي ماتوي یو ډبره د جمرې د کاڼو لپاره وَيَغْسِلُهَا لِيَتَيَقَّنَ طَهَارَتَهَا او هغوی دي پرېولي، د دې لپاره چې د هغوی د پاکوالي (په هکله) یې یقین سي فَإِنَّهَا يُقَامُ بِهَا قُرْبَةٌ ځکه په دې کاڼو سره یو عبادت (د ثواب کار) اداء کول کیږي وَلَوْ رَمٰى بِنَجِسَةٍ او که په مردار کاڼي سره ویشتل وکړي أَجْزَاهُ وَكُرِهَ نو (هم) ور لره کافي دي، خو مکروه دي.

﴿۱۳۶۲﴾ وَيَقْطَعُ التَّلْبِيَةَ مَعَ أَوَّلِ حَصَاةٍ يَرْمِيهَا او تلبیه دي ختمه کړي (پرېږدي) د اول کاڼي سره چې (کله) هغه وویلي (یعني کله چې اول کاڼی وغورځوي، نو تلبیه ویل دي پرېږدي).

**لغات:** ﴿أسفر﴾ د افعال د باب ماضي ده: رڼا کېدل، روښانه کېدل، ځرګندېدل. ﴿جِدًّا﴾ ډېر ښه، د مصدریت په وجه منصوب دی، ﴿حصیات﴾ جمع د حصاة ده: کاڼی، کوچنۍ ډبره، شګه، ﴿حَصَى﴾ اسم جنس دی: پریوه او ډېرو ټولو یې اطلاق کیږي، ﴿الخذف﴾ دا په اصل کې د ضرب د باب مصدر دی: مراد ځني په دوو ګوتو سره د کاڼي غورځول (ویشتل) دي، د شهادت والا ګوتې او بټې ګوته په واسطه سره کاڼی ویشتل، او له حصی الخذف ځخه مراد د ویشتلو (غورځولو) کاڼي دي، یعني هغه کوچنی کاڼي او کوچنۍ ډبرې ځني مراد دي چې په دوو ګوتو سره نیول کېدای او غورځول کېدای سي [یعني چې نه ډېر لوی کاڼي وي او نه ډېر کوچني وي بلکې د مردکې په څېر یا تر دې څه غټ کاڼي وي] (القاموس الفقهي. فتح الهدایه)، او خزف په "زاء" سره کودي ته وایي یعني د مات خاورین لوښي ټوټه. واحد: خَزَفَةٌ. ﴿الجمار﴾ جمع د جَمْرَةٌ ده: د دې لفظ له معناوو ځخه یوه معنیٰ ده: کوچني کاڼي، خصوصاً د جمرې کاڼي یعني هغه کاڼي چې په منیٰ کې جمرات (شیطانان) په ویشتل کیږي. (معجم الوسیط)، ﴿یلتقط﴾ د افتعال له بابه مضارع معلومه ده، مصدر: اِلْتِقَاطًا: له ځمکې ځخه را پورته کول، را اخیستل. ﴿یکسر﴾ د ضرب له بابه مضارع ده، مصدر: کَسْرًا: ماتول.

**تشريح:** د ذو الحجې په لسمه (يعني دلوی اختر په ورځ) تر لمر لوېدلو مخکې کله چې رڼا ښه وغوړېږي امام او حاجيان دي له مزدلفې څخه و منیٰ ته روان سي، کله چې منیٰ ته ورسيږي، نو تر ټولو اول کار د جمرهٔ عقبه رمی (ويشتل دي). په منیٰ کې درې ځايونه دي چې هلته د ډبرو درې ستنې (تمبې) جوړې سوي دي چې هغوی ته جمرات (يا په بله ورنا: شيطانان ورته) ويل کيږي او هغوی هر يو اُووه اُووه کاڼي ويشتل کيږي، اوله جمره (اول شيطان) د منیٰ د لوی مسجد يعني د مسجد خيف سره نژدې دی چې هغه ته "جمرهٔ اولیٰ" وايي، دويمه جمره تر هغه وروسته ده چې هغه ته "جمرهٔ وُسطیٰ" وايي، درېيمه جمره بالکل په آخر کې ده چې هغه ته "جمرهٔ عقبه" وايي، نو د ذو الحجې په لسمه (يعني دلوی اختر په ورځ) به صرف جمرهٔ عقبه اُووه کاڼي ويشتل کيږي، د "رَمْي" معنیٰ د کاڼي ويشتلو ده (چې شيطان په وويشتل سي)، دا رمی د حضرت ابراهيم عليه السلام د هغه مقبول عمل يادګار دی چې کله هغه د الهي حکم په عملي کولو کې خپل ګران ځوی حضرت اسماعيل عليه السلام د ذبح لپاره روان کړی وو، او په دې دوران کې شيطان ملعون درې واره هغه ته را ښکاره سو چې هغه د الهي حکم له عملي کولو څخه منع کړي، خو هر وار حضرت ابراهيم عليه السلام د کاڼي په ويشتلو سره هغه معلون وتر ټی (نو الله تعالیٰ ته د هغه دا عمل دومره محبوب سو چې د قيامت تر ورځې پورې يې دا عمل پر بندګانو لازم وګرځوی).

ويستحب إلخ: په اوله (دلوی اختر په) ورځ اُووه کاڼي له مزدلفې څخه راوړل مستحب دي، که له لارې ياله يو بل ځای څخه يې را واخلي، نو هم جائز دي، خو د جمره (شيطان) سره پراته کاڼي دې نه را اخلي؛ ځکه د جمراتو سره چې کوم کاڼي پراته وي، د هغوی په هکله په حديث شريف کې راغلي دي چې "دا کاڼي د الله تعالیٰ په نيز مردود دي، د کومو کسانو حج چې قبول سي، د هغوی کاڼي پورته کول کيږي او د کومو حج چې قبول نه سي، د هغوی کاڼي پرېښوول کيږي"، او پاته سو د نورو ورځو د رمی لپاره له مزدلفې څخه کاڼي راوړل مستحب نه دي، د هر ځای کاڼي سره برابر دي، خو له جمراتو څخه دې يې نه را اخلي.

ويكره الرمي من أعلى إلخ: فرمايي چې د جمرهٔ عقبه رمی د لوړې خوا څخه کول (دلوړ طرف څخه په کاڼي ويشتل) مکروه دي؛ ځکه په دې کې خلکو ته تکليف رسېدلای سي.

صاحب د ثمرةُ النجاح د دې تشريح داسې کړې ده چې: يو تر جمرهٔ عقبه وروسته چې کومه ځمکه ده، هغه څه لاندې ده کوم ته چې "بطنِ وادي" وايي، رمی له هغه ځايه کول پکار دي چې خلکو ته تکليف نه ورسيږي، لېکن که د زيات رَش (ګڼې ګوڼې) په وجه يا په بله وجه د جمرهٔ عقبه سره چې کومه لوړه (پورته) ځمکه ده، له هغه څخه رمی وکړي، نو هم جائز دي (خو بېله عذره داسې کول مکروه دي).

خو نن سبا صورت حال مختلف دی، پر جمراتو څو منزله عمارت جوړ سوی دی او د هر منزل والا لپاره د تګ راتګ لاره جلا ده، پر يوه منزل د رمی کولو په صورت کي بل منزل والا ته هيڅ دقت او ستونزه نه وي.

ويلتقطها ولايكسر إلخ: يعني د رمی لپاره خو مستحب او افضل همدا ده چي له مزدلفه څخه کاڼي راوړي، لېکن که يې له لاري څخه را پورته کړي، نو هم څه حرج نسته، خو د جمراتو د ويشتلو لپاره لويه ډبره ماتول او کوچني، کوچني کاڼي ځني جوړول مکروه دي.

ويغسلها إلخ: کوم کاڼي چي يې د ويشتلو (رمی) لپاره را اخيستي وي، د هغوی پرېولل او پاکول مستحب دي، که څه هم له پاک ځای څخه يې را اخيستي وي، او کوم کاڼي چي يقيناً ناپاکه وي، په هغوی سره رمی کول مکروه دي.

ويقطع التلبية إلخ: د حج تلبيه به حاجي د جمرهٔ عقبه تر رمي پوري مسلسله وايي، خو د جمرهٔ عقبه د رمی د شروع کولو سره به سمدستي تلبيه ويل پرېږدي، بيا تر دې وروسته به هم تلبيه نه ويل کيږي. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

## د رمي کولو طريقه

﴿۱۳۳﴾ وَكَيْفِيَّةُ الرَّمْيِ أَنْ يَأْخُذَ الْحَصَاةَ بِطَرَفِ إِبْهَامِهِ وَسَبَّابَتِهِ او د ويشتلو (کاڼي غورځولو) طريقه دا ده چي کاڼی دی ونيسي په سر د خپل بټي ګوتي او د شهادت ګوتي فِي الْأَصَحِّ په صحيح ترين قول کي لِأَنَّهُ أَيْسَرُ وَأَكْثَرُ إِهَانَةً لِلشَّيْطَانِ ځکه چي دا ډېر آسانه او ډېر زيات سپکونکي (د زيات توهين باعث) دي د شيطان لپاره وَالْمَسْنُوْنُ الرَّمْيُ بِالْيَدِ الْيُمْنٰى او سنت په خپل راسته لاس سره ويشتل دي (چي کاڼي په راسته لاس وغورځوي) وَيَضَعُ الْحَصَاةَ عَلٰى ظَهْرِ إِبْهَامِهِ وَيَسْتَعِيْنُ بِالْمُسَبِّحَةِ او کاڼی دي د خپلي بټي ګوتي پر شا کښېږدي او د شهادت په ګوته سره دي مدد واخلي (يعني په هغه سره دي يې ونيسي) وَيَكُوْنُ بَيْنَ الرَّامِيْ وَمَوْضِعِ السُّقُوْطِ خَمْسَةُ أَذْرُعٍ او د ويشتونکي او د (کاڼي) لوېدلو په مينځ کي دي پنځه (شرعي) ګزه فاصله وي وَلَوْ وَقَعَتْ عَلٰى رَجُلٍ أَوْ مَحْمَلٍ وَثَبَتَتْ او که کاڼی پر يو

سړي یا پر یو کجاوه باندې ولوېږي او (هلته. بند) پاتې سي (ودرېږي) أَعَادَهَا نو دغه رمی دي را وګرځوي (یعني دغه پر ځای دي بل کاڼی وغورځوي) وَإِنْ سَقَطَتْ عَلَىٰ سُنَنِهَا ذٰلِكَ او که هغه کاڼی د خپل رفتار مطابق روان ولوېږي (یعني که هغه کاڼی هلته بند پاتې نه سي، بلکې له هغه ځایه د خپل رفتار مطابق ولاړ سي او پر جمره ولګېږي) أَجْزَاهُ نو ورلره کافي دي (فلا یُعیدها).

﴿۳۶۴﴾ وَكَبَّرَ بِكُلِّ حَصَاةٍ او د هر کاڼي (ویشتلو) سره دي الله أکبر وایي.

**لغات**: ﴿إبهام، سبّابة﴾ بټې ګوتې ته په عربي کې "إِبْهَام" وایي او د هغې څنګ والا یعنې د شهادت ګوتې ته "سَبَّابَة" وایي او "مُسَبِّحَة" هم ورته وایي او د هغې څنګ والا یعنې مینځوې ګوتې ته "وُسْطىٰ" او د هغې څنګ والا یعنې د ګوتمې ګوتې ته "بِنْصَر" وایي او تر ټولو کوچنۍ یعنې خچې ګوتې ته "خِنْصَر" وایي، نو د شهادت والا ګوتې دوه نومان دي: سبّابة او مسبّحة، صاحب د معجم یې وجهٔ تسمیه داسې نقل کړې ده: قیل سمیت بالسبّابة لأنهم کانوا یشیرون بها بالسبّ والمخاصمة، وسمیت بالمسبّحة لانه یعم بها تحریك حبات المسبحة حین التسبیح،

﴿اهانة﴾ د افعال د باب مصدر دی: سپکاوی، ذلالت، تحقیر وتذلیل، ﴿شیطان﴾ ګمراه کوونکی شریر او خبیث روح، له پېریانو څخه هر سرکښه او کافر پېری، ﴿محمل﴾ کجاوه، یعنې د لښتو او لرګیو څخه جوړ سوی هغه ځای کوم چې به پر اوښ د سپرېدلو او کښېنستلو لپاره ایښوول کېدی، همدا رنګه هغه خورجین یا د خورجین غوندې لویه خلته کوم چې د چارپای دواړو طرفونو ته را ځړول سوې وي چې په هغه کې سامان ایښوول کېږي، جمع: مَحَامِل.

**تشریح**: د رمي طریقه دا ده چې کاڼی دي د راسته لاس په بټه ګوته او د شهادت (کلمې) په ګوته سره ونیسي یعنې د دې دواړو ګوتو په سر دي یې ونیسي او د بِسْمِ اللهِ اَللهُ أَكْبَر په ویلو سره دي یو، یو کاڼی پر جمره (شیطان) ور غورځوي، او که دا دعاء یاده ولای سي نو دا دي هم وایي " رغمًا للشیطان و رِضًی للرحمٰن اللّٰهم اجعلهُ حجًّا مبرورًا وسعیًا مشکورًا وذنبًا مغفورًا"، همدا طریقه اصح ده؛ ځکه چې په دې کې آسانې ده او په دې کې د شیطان زیات توهین دی (ګواکې ویشتونکی دا هم نه خوښوي چې د دې کار لپاره خپل پوره لاس استعمال کړي).

ویضع الحصاة علی ظهر إلخ: دا (په اصل کې) د رمي کولو دویمه طریقه ده چې کاڼی دي د خپل راسته بټې ګوتې پر شا (یعنې د نوک پر طرف) کېږدي او د شهادت والا ګوتې په مرسته سره دي یې وغورځوي،

خو اصح اوله طريقه ده؛ ځکه عادتاً هغه آسانه ده، او دا طريقه څه مشکله ده او بل دا چې په دې سره کاڼی تر ليرې پورې نه ځي. او له جمره (شيطان) څخه دې کم از کم د پنځو لاسو (شرعي ګزو) په فاصله ودريږي، که زياته فاصله وي نو حرج نسته، خو تر دې کمه فاصله مکروه ده. (ثمرة النجاح، عون الفتاح)

ولو وقعت..إلخ: په هرې جمرې (هر شيطان) باندې چاپېره د دېوال ګردې دائره (احاطه) جوړه سوې ده او کاڼی په هغه کې لوېدل پکار دي، که په دائره (احاطه) کې کاڼی ولوېږي، نو رمی اداء کېږي او کوم کاڼي چې په دائره کې (يا په بله وينا په جمره باندې) نه ولوېږي، نو د هغه پر ځای به بل کاڼی ويشتل کېږي، اوس دلته دا فرمايي چې که کاڼی پر يو انسان يا کجاوه وغيره باندې ولګېږي او د څه ګړي لپاره هلته ودرېږي (يعني په سړي يا کجاوه باندې بند پاته سي) بيا د سړي او کجاوې يا د بل شي د حرکت په وجه هغه کاڼی په جمره کې ولوېږي، نو د دې کاڼي پر ځای به بل کاڼی ويشتل کېږي، ځکه چې دا کاڼی د ويشتونکي په فعل (ويشتلو) سره په جمره کې نه دی لوېدلی (بلکې د بل څه د حرکت په وجه ور لوېدلی دی)، او که پر سړي يا کجاوه باندې د کاڼي تر لوېدلو وروسته هغه کاڼی هلته نه ودرېږي بلکې د خپل رفتار مطابق روان وي او په جمره کې ولوېږي، نو دا رمی شمېرل کېږي او د را اګر ځولو ضرورت يې نسته؛ ځکه چې دا هغه په فعل (ويشتولو) سره په جمره باندې لګېدلی دی. (شفاء الارواح، ثمرة النجاح)

وكبّر بكل حصاة: يعني د هر کاڼي ويشتلو (غورځولو) په وخت کې دې الله اکبر وايي، تکبير ويل سنت دي، او که څوک په رش (ګڼه ګوڼه) کې سر ګردانه سي او تکبير ځني هېر سي، نو څه حرج نسته. (انوار الايضاح)

## قرباني به کله کول کېږي؟

﴿۱۳۶۵﴾ ثُمَّ يَذْبَحُ الْمُفْرِدُ بِالْحَجِّ إِنْ أَحَبَّهُ بيا دې ذبح (قرباني) وکړي حج إفراد کونکی، که يې خوښه وه ثُمَّ يَحْلِقُ أَوْ يُقَصِّرُ بيا دې سر وخريي يا دې وړېښتان کوچني کړي (لنډي کړي) وَالْحَلْقُ أَفْضَلُ او سر خرېيل افضل دي وَيَكْفِيْ فِيْهِ رُبُعُ الرَّأْسِ او کافي دي په دې (سر خرېيلو) کې څلورمه حصه وَالتَّقْصِيرُ أَنْ يَأْخُذَ مِنْ رُؤُوسِ شَعْرِهِ مِقْدَارَ الْأَنْمُلَةِ او قصر کول (وړېښتان کوچني کول) دا دي چې د خپل وړېښتانو له سرو څخه د ګوتي د سر په اندازه واخلي

وَقَدْ حَلَّ لَهُ كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا النِّسَاءَ او (وس) د ده لپاره هر شی حلال (روا) سو (کوم چې د احرام په وجه ورته حرام وه)، مګر ښځې (یعني د ځېل ښځو سره جماع اوس هم ورته روا نه ده).

**لغات:** ﴿يحلق﴾ د ضرب د باب مضارع معلومه ده: سر خرېیل، ورېښتان لیري کول. ﴿يقصر﴾ د تفعیل د باب مضارع معلومه ده: ورېښتیان کوچني کول، لنډول. ﴿الأنملة﴾ په دې لفظ کي څو لغات دي: الأُنْمُلَةُ، الأَنْمِلَةُ، الأَنْمَلَةُ، الأُنْمِلَةُ، الإِنْمَلَةِ: د ګوتي سر، جمع: أَنَامِل، أنملات.

**تشریح:** د جمرهٔ عقبه تر رمی وروسته دي مُفرِد بِالحَجّ (حج افراد کونکي) د حج د شکرانې په توګه قرباني وکړي، دا قرباني د مُفرِد لپاره مستحب ده او د قارن او متمتع لپاره واجب ده، ځرنګه چې دلته کلام د مُفرِد بالحج په باره کي دی، نو ځکه یې إِنْ أَحَبَّه فرمایلي دي (د قرباني لپاره په منیٰ کي د سعودي حکومت د حاجیانو د آسانتي لپاره یو د پېر لوی ځای مقرر کړی دی، چې هلته څارویان، قصابان او غوښه ورونکي حضرات په آسانتي سره تر لاسه کیږي)، له ذبح څخه تر فارغېدو وروسته دي د سر ورېښتان وخربي یا کوچني کړي، لېکن حَلق افضل دی او د سر د څلورمي حصې ورېښتان خرېیل یا کوچني کول واجب دي، او که تر دې کم مقدار وخربې، یا یې کوچني کړي، نو محرم نه حلال کیږي.

والتقصیرالخ: د ورېښتانو د کوچني کولو مطلب دا دی چې د سر ورېښتان د ګوتي د سر په اندازه پرېکړي (غچي کړي).

او د احرام په وجه چې کوم شیان د حاجي لپاره حرام او ممنوع وه، اوس په حلق یا قصر کولو سره هغه حلال ګرځي، مثلاً خوشبویي لګول، ګنډل سوې جامه اغوستل او داسې نور، خو د ښځي سره جماع او دواعي د جماع تر هغه وخته پوري حرام پاتیږي، تر څو چې له طواف زیارت څخه فارغ نه سي.

## مکې شریفي ته د راتګ او د طواف زیارت بیان

﴿۱۲۶۶﴾ ثُمَّ يَأْتِي مَكَّةَ مِنْ يَوْمِهِ ذٰلِكَ أَوْ مِنَ الْغَدِ أَوْ بَعْدَهُ بیا دي راسي ومکې مکرمې ته له هاغه ورځي څخه (یعني د ذو الحجې په لسمه کوم چې دلوی اختر ورځ ده) یا له سبا څخه یا تر هغه وروسته (بل سبا) فَيَطُوفُ بِالْبَيْتِ طَوَافَ الزِّيَارَةِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ نو پر کعبې شریفي دي طواف زیارت وکړي اووه دوره وَحَلَّتْ لَهُ النِّسَاءُ او (اوس) د ده لپاره ښځي حلالي سوې.

﴿۱۳۶۷﴾ وَأَفْضَلُ هٰذِهِ الْأَيَّامِ أَوَّلُهَا او افضل د دغو ورځو اوله ورځ د دوی ده وَإِنْ أَخَّرَهُ عَنْهَا او که وځنډوي (وروسته کړي) طواف زيارت له دې ورځو څخه لَزِمَهُ شَاةٌ نو پر ده يو پسه لازميږي لِتَأْخِيرِ الْوَاجِبِ د واجب (طواف زيارت) د ځنډولو په وجه.

**تشريح**: فرمايي چي په منیٰ کي له رمی او له ذبح او حلق څخه وروسته دي په هاغه ورځ يعني د ذو الحجې په لسمه (دلوی اختر په ورځ) که وخت وو، نو مکې مکرّمې ته دي راسي، کنې په يوولسمه يا دوولسمه دي راسي او طواف زيارت دي (کوم چي د حج رکن دی) وکړي.

وأفضل إلخ: د طواف زيارت لپاره تر ټولو افضل وخت لسمه د ذو الحجې ده. لېکن که تأخير پکښې وکړي او د ذو الحجې په دوولسمه (کوم چي دلوی اختر دريمه ده) يې تر لمر لوېدو مخکي وکړي، نو هم جائز دي، او که دوولسمه هم تېره سي او طواف زيارت نه وکړي، نو پر هغه په جرمانه کي يو دَم (قرباني) لازميږي، خو بيا هم طواف زيارت واجب پاتيږي چي هغه به وروسته اداء کوي، او له طواف زيارت څخه وروسته د ښځي سره جماع وغيره حلاليږي.

## د ذو الحجې په دوولسمه او يوولسمه د رمی کولو وخت او طريقه

﴿۱۳۶۸﴾ ثُمَّ يَعُودُ إِلَىٰ مِنًى فَيُقِيمُ بِهَا بيا دي منیٰ ته واپس (ولاړ) سي نو هلته دي پاته سي فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ مِنَ الْيَوْمِ الثَّانِي مِنْ أَيَّامِ النَّحْرِ بيا کله چي لمر زائل سي په دويمه ورځ د قرباني (لوی اختر) له ورځو څخه رَمَى الْجِمَارَ الثَّلَاثَ نو دري سره جمرې (شيطانان) دي وويلي يَبْدَأُ بِالْجَمْرَةِ الَّتِي تَلِي مَسْجِدَ الْخَيْفِ شروع دي په هغه جمره سره وکړي کوم چي د مسجد خيف سره متصل ده (چي هغه ته "جمرهٔ اُولیٰ" وايي) فَيَرْمِيهَا بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ مَاشِيًا نو هغه دي اُووه کاڼي وويلي په داسي حال کي چي پياده (په پښو) وي (نه د سپرتيا په حالت کي) يُكَبِّرُ بِكُلِّ حَصَاةٍ د هر کاڼي (وېشتلو) سره دي الله أكبر وايي ثُمَّ يَقِفُ عِنْدَهَا دَاعِيًا بِمَا أَحَبَّ حَامِدًا لِلّٰهِ تَعَالَىٰ مُصَلِّيًا عَلَى النَّبِيِّ ﷺ بيا دي د هغې (جمرهٔ اُولیٰ) سره ودريږي په داسي حال کي چي دعاء کونکی وي د هغه څه کوم چي ده ته خوښ وي (او) الله تعالیٰ لره حمد ويونکی (او) او پر

نبي كريم ﷺ درود ويونكى وي وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي الدُّعَاءِ وَيَسْتَغْفِرُ لِوَالِدَيْهِ وَإِخْوَانِهِ الْمُؤْمِنِيْنَ او په دعاء كي دي خپل دواړه لاسونه پورته كړي او مغفرت (بخښنه) دي وغواړي د خپل مور وپلار او د خپل مؤمنانو ورونو لپاره ثُمَّ يَرْمِي الثَّانِيَةَ الَّتِيْ تَلِيْهَا مِثْلَ ذٰلِكَ بيا دي دويمه جمره وويلي كوم چي د هغې (جمرهٔ اولیٰ) سره متصل ده، د هغې په څېر (يعني څرنګه چي يې اوله جمره ويشتلې وه، هغسي دي د دويمي جمرې سره هم وكړي) وَيَقِفُ عِنْدَهَا دَاعِيًا او د دې (دويمي جمري) سره دي (هم) ودريږي په داسي حال كي چي دعاء كونكى وي ثُمَّ يَرْمِيْ جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ رَاكِبًا بيا دي (په آخر كي) جمرهٔ عقبه وويلي د سپرتيا په حالت كي وَلَايَقِفُ عِنْدَهَا او د جمرهٔ عقبه سره دي نه دريږي فَإِذَا كَانَ الْيَوْمُ الثَّالِثُ مِنْ أَيَّامِ النَّحْرِ بيا چي كله دريمه ورځ سي د قرباني (لوی اختر) له ورځو څخه رَمَى الْجِمَارَ الثَّلَاثَ بَعْدَ الزَّوَالِ كَذٰلِكَ نو درې سره جمرې دي تر زوال وروسته هغسي وويلي.

**تشريح**: د ذو الحجې په لسمه له طواف زيارت كولو څخه وروسته دي حاجي ومنیٰ ته واپس راسي او د شپې په منیٰ كي پاتېدل سنت دي، بيا دي د ذو الحجې په يوولسمه د ما پښين د لمونځ كولو څخه وروسته د دريو سره جمراتو رمی وكړي (يعني درې سره شيطانان دي وويلي)؛ ځكه د ذو الحجې په يوولسمه او دوولسمه د دريو سره جمراتو رمی واجب ده او د دې دواړو رمي وخت له زوال څخه شروع كيږي او تر صبح صادقه پوري پاتيږي (خو بېله عذره تر لمر لوېدلو وروسته رمی كول مكروه دي)، كه تر زوال مخكي رمی وكړي، نو د راجح قول مطابق هغه رمی نه صحيح كيږي، او تر ټولو مخكي به هغه جمره (شيطان) په اُوو كانو سره وويلي كوم چي د مسجدِ خيف سره نژدې ده چي هغه ته "جمرهٔ اولیٰ" وايي، د هر كاڼي ويشتلو سره دي الله اكبر وايي، له رمی څخه تر فارغېدلو وروسته دي له مجمعې څخه څه ګوښه مخ پر قبله ودريږي او د دعاء لپاره دي لاس پورته كړي، د الله تعالیٰ حمد او ثناء او درود شريف دي ووايي او د خپل مور وپلار، همدارنګه د ټولو مسلمانانو لپاره د مغفرت دعاء وكړي، تر دې وروسته دي "جمرهٔ وسطیٰ" ته راسي كوم چي د "جمرهٔ اولیٰ" څنګ ته ده او د "جمرهٔ اولیٰ" په څېر دي دلته هم هغسي رمی وكړي، تر رمی وروسته دي له مجمعې څخه څه ګوښه مخ پر

قبله سي، دعاء او استغفار دي وکړي. بیا دي "جمرۀ عقبه" ته راسي او پر هغې دي هم په اُوو کاڼو سره رمی وکړي او تر دې وروسته دي د دعاء لپاره نه دریږي، بلکي له رمی څخه تر فارغېدلو وروسته دي خپل استوګنځي ته واپس ولاړ سي او د شپې دي په منیٰ کي پاته سي. بیا دي را روانه ورځ یعني د ذو الحجې په دوولسمه بالکل په هغه طریقه درې سره جمرات وویلي څرنګه چي یې په یوولسمه ویشتلي وه.

## د ذو الحجې په دوولسمه له منیٰ څخه د روانېدلو یا د تأخیر کولو بیان

﴿۱۳۶۹﴾ وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَتَعَجَّلَ او کله چي اراده وکړي چي ژر روان سي (له منیٰ څخه ومکې ته) نَفَرَ إِلَى مَكَّةَ قَبْلَ غُرُوْبِ الشَّمْسِ نو تر لمر لوېدلو مخکي دي و مکې ته واپس سي وَإِنْ أَقَامَ إِلَى الْغُرُوْبِ او که تر لمر لوېدلو پوري (په منیٰ کي) پاته سي كُرِهَ نو مکروه دي وَلَيْسَ عَلَيْهِ شَيْءٌ او پر ده هیڅ شی واجب نه دی.

﴿۱۳۷۰﴾ وَإِنْ طَلَعَ الْفَجْرُ وَهُوَ بِمِنًى فِي الرَّابِعِ او که سهار (صبح صادق) را وخېږي (یعني د سهار سپېده وچاودي) حال دا چي دئ (تر لوسه) په څلورمه ورځ (هم) په منیٰ کي وي لَزِمَهُ الرَّمْيُ نو پر ده (د دریو ورځې هم) رمی لازم سوه وَجَازَ قَبْلَ الزَّوَالِ او جائز دي (دا رمي) تر زوال مخکي وَالْأَفْضَلُ بَعْدَهُ او افضل تر زوال وروسته دي.

﴿۱۳۷۱﴾ وَكُرِهَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ او تر لمر راختلو مخکي مکروه دي.

**لغات:** ﴿یتعجل﴾ د تفعل د باب مضارع ده، مصدر: تَعَجُّلًا: تلوار کول، تېزي کول. ﴿نفر﴾ د ضرب له بابه ماضي ده: یو ځای پرېښول او بل ځای ته تلل، کوچ کول (کوچېدل)، مراد ځني له منیٰ څخه ومکې شریفې ته واپس راتلل دي.

**تشریح:** د ذو الحجې په دوولسمه له رمی څخه تر فارغېدلو وروسته که د حاجي تلوار وي چي مکې شریفې ته ژر ولاړ سي، نو تر لمر لوېدلو مخکي دي له منیٰ څخه ووځي، که چیري لمر ولوېږي. نو بیا له منیٰ څخه وتل مکروه دي، په داسي صورت کي پکار ده چي نن شپه هم په منیٰ کي پاته سي او د ذو الحجې په دیارلسمه له رمی کولو څخه وروسته ومکې شریفې ته ولاړ سي، او که

بغیر له رمی څخه تر صبح صادق مخکي ولاړ سي، نو د کراهت سره جائز دي او د دې کراهت په وجه هیڅ جرمانه نه باندې واجبیږي، او که پر هغه صبح صادق سي یعني هغه په منیٰ کي وي او هلته باندې سهار سي (د سهار سپیدي وچاودي)، نو اوس پر هغه د دې ورځي رمي واجب سوه. بغیر له رمی څخه تلل جائز نه دي، که بغیر له رمی څخه ولاړ سي، نو دَم واجبیږي، خو د دې ورځي په رمی کي دا آساني هم سته چي هغه تر زوال مخکي هم جائز ده دامام صاحب رَحِمَهُ الله د یوه روایت مطابق او افضل دا ده چي تر زوال وروسته رمی وکړي، خو تر لمر راختلو مخکي مکروه ده، او صاحب د نور الایضاح لیکلي دي چي مفتیٰ بِهٖ قول دا دی چي په دې ورځ هم تر زوال مخکي جائز نه ده. که یې وکړي، نو اعاده یې لازم ده. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

## کومه رمی به پیاده (په پښو) کول کیږي او شپې به په منیٰ کي تېرول کیږي

﴿۱۲۷۲﴾ وَكُلُّ رَمْيٍ بَعْدَهٗ رَمْيٌ او هره هغه رمی چي تر هغه وروسته رمی وي (یعني تر هغه وروسته بیا رمی کول کیږي) تَرْمِيْهِ مَاشِيًا نو هغه رمی به ته پیاده کوې لِتَدْعُوَ بَعْدَهٗ د دې لپاره چي تر هغه وروسته ته (پیاده) دعاء وکړل سې (ځکه تر هغه وروسته دعاء کول کیږي او پیاده دعاء کول افضل دي چي تضرع ته اقرب دي) وَإِلَّا رَاكِبًا کنې (یعني تر کومي رمی وروسته چي بیا رمی نه کول کیږي نو) په سپر تیا به یې کوې لِتَذْهَبَ عَقِبَهٗ بِلَا دُعَاءٍ د دې لپاره چي تر هغه وروسته ته بېله دعاء کولو ولاړ سې (ځکه تر هغه وروسته دعاء نه کول کیږي، نو تر رمی وروسته به پر سپارلي روان سې).

﴿۱۲۷۳﴾ وَكُرِهَ الْمَبِيْتُ بِغَيْرِ مِنًى لَيَالِيَ الرَّمْيِ او مکروه دي شپه تېرول له منیٰ څخه په غیر (بل ځای) کي د رمی په شپو کي.

**لغات:** ﴿عقب﴾ پسي شاته، وروسته.

**تشریح:** احنافو دا قاعده بیان کړې ده چي تر کومي رمی وروسته رمی وي، هغه پیاده کول افضل دي او چي تر کومي رمی وروسته رمی نه وي، هغه د سپرتیا په حالت کي کول افضل دي (مثلاً د دریمي جمرې اجمرۀ عقبۀ څخه وروسته رمی نسته، نو هغه دي د سپرتیا په حالت کي کوي).

**فایده:** دا صرف بیان د افضلیت دی، نور جائز هر ډول دي که یې پیاده (په پښو) کوي او که یې په سپرتیا کوي، دا مسئله له امام ابویوسف رَحِمَهُ الله څخه د هغه د نزع په وخت کي روایت سوې ده (سبحان الله!)، هغه دا چي ابن جراح (کوم چي د عطاء بن ابی رباح رَحِمَهُ الله ستر شاګرد او عالم وو، هغه) وایي چي زه امام ابویوسف رَحِمَهُ الله ته راغلم، او هغه په هوښ کي نه وو، کله چي هغه را بیدار سو، نو ما

ته یې وویل: اې ابراهیمه! په "رمی الجمار" کې ستا څه رایه ده چې هغه به حاجي په سپرتیا کوي او که پیاده؟، ما ورته وویل: چې پیاده به یې کوي، نو هغه وویل: خطا وتلې!. بیا ما ورته وویل: چې په سپرتیا به یې کوي، نو هغه بیا وویل: خطا وتلې!، نو ما وویل: چې د امام څه رایه ده؟، نو ده را ته وویل: چې تر کومې رمی وروسته رمی وي، نو هغه به پیاده کوي او تر کومې رمی وروسته چې رمی نه وي، هغه به په سپرتیا کوي، ابن جراح رَحِمَهُ الله وايي چې تر دې وروسته زه له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه رخصت سوم، کله چې ووتلم، نو د ده په کور کې مې د خلکو ژړوي واورېدلې، یو چا راته وویل چې امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله وفات سو، نو زه حیران سوم د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله پر دومره علمي حرص په داسې پېښه کې (چې په دې آخري حالت کې یې هم فکر او زه په دیني مسئله کې وو، سبحان الله!). (حاشیة نور الایضاح بتصرّف)

**وجه**: تر کومې رمی وروسته چې بله رمی وي، نو هغه به ځکه پیاده (په پښو) کول کیږي ځکه چې تر هغه رمی وروسته دعاء کول کیږي، نو که د سپرتیا په حالت کې دعاء کوي، نو په توجّه سره دعاء کول او تر ډېره وخته (اوږده) دعاء کول به ورته مشکله وي چې سپارلي (ښاروی) به زور وهي او د تللو کوښښ به کوي (ځکه کله چې پر سپارلي [ښاروي] ښوک سپور سي، نو هغه تګ ته زورونه وهي او د تګ لپاره آماده کیږي، نو دعاء به مختصره او بېله توجه سي) حال دا چې پر دې موقع ښه په توجه، تضرّع او اطمینان سره دعاء کول پکار دي، او هغه پیاده کېدلای سي، او تر کومې رمی وروسته چې بله رمی نه وي یعني آخري رمی وي، نو تر هغه وروسته خو حاجي ځي او دعاءنه کول کیږي، نو ځکه هغه که په سپرتیا وکړي، نو څه حرج نسته. (ثمرة النجاح و شفاء الارواح بتصرّف)

خو نن سبا ټوله پیاده رمی کوي؛ ځکه پر ښاروي د سپرتیا په حالت کې اوس د رمی کولو هیڅ صورت نسته. (دا ټوله تفصیل مو صرف د عبارت د حلّ لپاره پېش کړی).

وکره المبیت إلخ: یعني د رمی په شپو کې له منیٰ څخه بغیر بل ځای بېله عذره شپه تېرول مکروه دي.

**فایده**: مخکې ذکر سوه چې د منیٰ درې ورځې دي چې په هغه کې به رمی کول کیږي او هغه دا دي: ۱۰، ۱۱، ۱۲ یعني د ذو الحجې لسمه، یوولسمه او دوولسمه، او مخکې دا قاعده هم ذکر سوه چې په اسلامي تاریخ کې شپه همېشه د مابعد یعني د را رواني ورځې تابع وي، خو څلور شپې د مابعد تابع نه دي بلکې د ماقبل تابع دي، یعني د ذو الحجې ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲ له دغه قاعدې څخه جلا دي، مثلاً د ذو الحجې په نهمه د عرفات ورځ ده، نو د قاعدې په لحاظ سره خو تېره شپه د عرفات شپه کېدل پکار دي، خو دلته د ذو الحجې د لسمي یعني را روانه د لوی اختر شپه د عرفات شپه کیږي، همدغه ډول را رواني درې ورځې یعني ۱۰، ۱۱ او ۱۲ کوم چې د رمی ورځې دي، هغوی مخکې دي او بیا د دوی شپه راځي.

## په محصّب کي پړاو کول او د طواف وداع کولو بيان

﴿۱۳۷۴﴾ ثُمَّ إِذَا رَحَلَ إِلَى مَكَّةَ بيا چي کله ومکې ته روان سي نَزَلَ بِالْمُحَصَّبِ سَاعَةً نو د څه ګړي لپاره دي په محصّب کي کښېنه سي (پاته سي).

﴿۱۳۷۵﴾ ثُمَّ يَدْخُلُ مَكَّةَ بيا دي مکې ته داخل سي وَيَطُوفُ بِالْبَيْتِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ او طواف دي وکړي پر کعبې شريفي اُووه دَوره بِلَا رَمَلٍ وَسَعْيٍ إِنْ قَدَّمَهُمَا بغير له رمل کولو او سعی کولو څخه (يعني په دې طواف کي دي نه رمل کوي او نه دي تر طواف وروسته سعی کوي) که چيري يې دواړه مخکي (اداء) کړي وي وَهٰذَا طَوَافُ الْوَدَاعِ او دا طواف وداع دی وَيُسَمّٰى أَيْضًا طَوَافَ الصَّدْرِ او دا په طواف صدر سره هم نومول کيږي وَهٰذَا وَاجِبٌ إِلَّا عَلٰى أَهْلِ مَكَّةَ وَمَنْ أَقَامَ بِهَا او دا واجب دی مګر (نه) پر مکې والا وو او پر هغه کسانو چي په مکه کي پاته سوي (استوګن) وي.

﴿۱۳۷۶﴾ وَيُصَلِّيْ بَعْدَهٗ رَكْعَتَيْنِ او تر طواف وروسته دي دوه رکعته لمونځ وکړي.

**لغات**: ﴿رحل﴾ د فتح د باب ماضي ده، مصدر: رَحْلًا و رَحِيْلًا و رِحْلَةً: سفر کول او روانېدل، کوچېدل.

**تشريح**: له منیٰ څخه ومکې ته د تللو پر مهال په لاره کي مُحصّب نومي ځای راځي کوم چي د منیٰ او مکې شريف په مينځ کي دی، په دې ځای کي د څه وخت لپاره پاتېدل سنت دي (مخکي په ﴿۱۳۱۰﴾ نمبر مسئله کي د دې تفصيل تېر سو)، خو اوس هلته ځايونه جوړ سوي دي او هلته د پاتېدلو څه صورت او ځای نسته او نه يې اوس رواج سته (همدارنګه نن سبا په بسانو او موټرانو کي سفر کيږي کوم چي د حاجيانو په اختيار کي نه دي. نو ځکه هلته درېدل مشکل دي که څه هم څه ځای پيدا سي، نو ځکه اوس د دې په پرېښوولو کي څه حرج نسته).

ثم يدخل مكة إلخ: اوس د حج له کارو څخه صرف طواف وداع (درخصتی طواف) پاته سو کوم چي پر آفاقي حاجيانو د واپسی په وخت کي واجب دی (آفاقي يعني هغه حاجيان کوم چي له ميقات څخه بهر او سيږي يا په بله ويـنا: هغه حاجيان کوم چي له بل وطن او بهر ملک څخه راغلي وي)، هغوی چي کله خپل وطن ته واپس کيږي، نو مسجد حرام ته دي ولاړ سي او يو طواف دي وکړي چي په هغه کي به نه رمل کوي او نه به تر هغه وروسته د صفا او مروه سعی کوي، او دې طواف ته طواف صدر هم وايي، د "صدر" معنیٰ ده "صادر ېدل" (روانېدل)، څرنګه چي په دې طواف سره حاجيان له مکې شريفي څخه روانيږي او خپل وطن ته واپس کيږي، نو ځکه ورته "طواف صدر" وايي، او "طواف آخر عهد" ځکه ورته وايي چي همدا د حاجيانو آخري عهد او کار دی او تر دې وروسته له کعبې څخه روانيږي، او "طواف وداع"

ځکه ورته وايي چي تر دې طواف وروسته حاجیان له کعبې څخه رخصتیږي او کعبې ته خدای په امان وايي. (شفاء الارواح، فتح الهدایه)

ویصلی بعده إلخ: له هر طواف څخه وروسته دوه رکعته شکرانه نفل کول واجب دي، د هغه پرېښوول ګناه ده. طواف برابره ده فرض وي او که واجب وي او که نفلي طواف وي، په ټولو کي د دې لمانځه حکم برابر دی (کماذکر). (انوار الایضاح)

## له طواف څخه وروسته د ماء زمزم څېښلو بیان او تفصیل

﴿۱۳۷۷﴾ ثُمَّ يَأْتِي زَمْزَمَ فَيَشْرَبُ مِنْ مَائِهَا بیا دې د زمزم (څاه) ته راسي او د هغه اوبه دې وڅېښي وَيَسْتَخْرِجُ الْمَاءَ مِنْهَا بِنَفْسِهِ إِنْ قَدَرَ او له هغه څخه دې خپله اوبه راوباسي، که یې قدرت وو (یعني که پر اوبو را ایستلو قادر وو) وَيَسْتَقْبِلُ الْبَيْتَ او مخ دې د کعبې و طرف ته کړي (یعني کعبې شریفې ته دې مخامخ سي) وَيَتَضَلَّعُ مِنْهُ او هغه دې تر ډک (ماړه نس) پوري وڅېښي (یعني بنه ډېري اوبه دې ور څخه وڅېښي او ځان دې پوره په اوبه کړي) وَيَتَنَفَّسُ فِيهِ مِرَارًا او په هغه کي (یعني د زمزم څېښلو په دوران) کي دې څو واره ساه واخلي وَيَرْفَعُ بَصَرَهُ كُلَّ مَرَّةٍ يَنْظُرُ إِلَى الْبَيْتِ او هر وار دې خپل نظر (سترګي) پورته کوي، کعبې شریفې ته دې ګوري وَيَصُبُّ عَلَى جَسَدِهِ إِنْ تَيَسَّرَ او پر خپل بدن دې یې واچوي، که آسانه (ممکنه) وي وَإِلَّا يَمْسَحُ بِهِ وَجْهَهُ وَرَأْسَهُ کنې په هغوی سره دې خپل مخ او سر مسح کړي (یعني که یې پر بدن نه واچوي، نو پر مخ دې یې تیري کړي) وَيَنْوِي بِشُرْبِهِ مَا شَاءَ او نیت دې وکړي د زمزم د څېښلو په وخت کي د هغه څه (مقصد) کوم څه چي یې خوښه وي وَكَانَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما إِذَا شَرِبَ يَقُولُ او عبدالله ابن عباس (رض) چي به کله (د زمزم اوبه) څېښلې نو ویل به یې (یعني دا دعاء به یې کول) اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ عِلْمًا نَافِعًا اې الله! زه سوال (خواست) کوم ستا څخه د نفع رسونکي (نفع مند) علم وَرِزْقًا وَاسِعًا او د پراخه روزی وَشِفَاءً مِنْ كُلِّ دَاءٍ او له هري ناروغی څخه د شفاء وَ

قَالَ ﷺ: مَاءُ زَمْزَمَ لِمَا شُرِبَ لَهٗ او نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: چي د زمزم اوبه د (هر) هغه څه (مقصد) لپاره دي، د کوم څه (مقصد) لپاره چي وچیښل سي.

**لغات:** ﴿یتضلّع﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: تر ماړه نسه خوړل یا چیښل، دومره خوړل یا چیښل چي نس ډک سي، ځان پوره په اُوبول. ﴿یتنفس﴾ دا د تفعّل د باب مضارع ده: ساه کښل، ساه اخیستل. ﴿مرارًا﴾ جمع د مَرَّةً ده: څو واره. ﴿بصر﴾ نظر، نګاه، جمع: أَبْصَار. ﴿تیسّر﴾ د تفعّل د باب ماضي ده، د دې باب دوې معناوې نقل سوي دي: ① آسانه کېدل (قدرت باندي راتلل، ترلاسه کېدل). ② یو کار ته تیارېدل (چمتو کېدل).

**تشریح:** له طواف وداع او صلاة طواف څخه وروسته دي د زمزم اوبه وچیښي او ښه دي ځان په اُوبه کړي، او د چیښلو طریقه یې دا ده چي مخ پر قبله دي هغه په ولاړي وچیښي، په دریو ساه ګانو دي یې وچیښي او هر وار دي له لوښي څخه خوله جلا کوي او هر وار دي کعبې شریفې ته ګوري، فرمایي چي د زمزم اوبه دي پر خپل بدن، مخ او سر باندي هم واچوي (توی کړي)، دا د خیر او برکت باعث دي، او د چیښلو په وخت کي دي خپل مرادونه په زړه کي لري او په دغه اوبو کي الله تعالیٰ غذائیت ایښی دی او د هر مرض او ناروغۍ لپاره یې شفاء ګرځولې ده. (انوار الایضاح)

﴿۱۲۸﴾ وَيُسْتَحَبُّ بَعْدَ شُرْبِهٖ أَنْ يَّأْتِيَ بَابَ الْكَعْبَةِ او د زمزم له چیښلو څخه وروسته مستحب دي چي د کعبې شریفې دروازې ته راسي وَيُقَبِّلَ الْعَتَبَةَ او (د دروازې) چوکاټ مچ کړي ثُمَّ يَأْتِيَ إِلَى الْمُلْتَزَمِ بیا دي ملتزم ته راسي وَهُوَ مَا بَيْنَ الْحَجَرِ الْأَسْوَدِ وَالْبَابِ او ملتزم هغه دی کوم چي د حجر اسود او (د کعبې شریفې) د دروازې تر مینځ دی فَيَضَعُ صَدْرَهٗ وَوَجْهَهٗ عَلَيْهِ نو پر هغه دي خپله سینه او مخ کښېږدي وَيَتَشَبَّثُ بِأَسْتَارِ الْكَعْبَةِ سَاعَةً او د څه ګړي لپاره دي د کعبې شریفې پردې ونیسي يَتَضَرَّعُ إِلَى اللهِ تَعَالٰى بِالدُّعَاءِ بِمَا أَحَبَّ مِنْ أُمُوْرِ الدَّارَيْنِ عاجزي دي وکړي (د خپل بې وسۍ او لاچارۍ اظهار دي وکړي) د الله تعالیٰ مخ ته په (وخت د) دعاء کولو کي د هغه څه کوم چي یې خوښه وي د دنیا او آخرت له کارونو (مقاصدو) څخه وَيَقُوْلُ او دي وایي (یعني دا دعاء دي هم وکړي) اَللّٰهُمَّ إِنَّ هٰذَا بَيْتُكَ الَّذِيْ جَعَلْتَهٗ مُبَارَكًا وَهُدًى

لِلْعَالَمِيْنَ اې الله! دا ستا هغه كور دى كوم چې تا مبارک (برکت والا) او د ټوله جهان والا لپاره (ذريعه د) هدايت ګرځولى دى اَللّٰهُمَّ كَمَا هَدَيْتَنِيْ لَهٗ اې الله! څرنګه چې تا ما ته ددې کور (د حج) هدايت وكړى (د حج توفيق دې ما ته راکړى) فَتَقَبَّلْ مِنِّيْ نو (همدا سې يې او س) زما له طرفه قبول (هم) كړه! وَلَا تَجْعَلْ هٰذَا آخِرَ الْعَهْدِ مِنْ بَيْتِكَ او مه ګرځوه دا (زما) آخري ملاقات (آخري سفر) ستا د کور (کعبې شريفې) وَارْزُقْنِي الْعَوْدَ إِلَيْهِ او را روزي كړه! (توفيق راكړه د) بيرته راتګ و دې کور (کعبې) ته حَتّٰى تَرْضٰى عَنِّيْ بِرَحْمَتِكَ يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ تر دې چې ته زما څخه راضي سې، ستا په خپل رحمت سره اې د ټولو رحم کونکو څخه زيات رحم کونکې!.

**لغات**: ﴿العتبة﴾ د دروازې چوکاټ (کوم چې تر پښو لاندې راځي)، درشل، ﴿يتشبّث﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: يو شى نيول (په لاسو سره نيول)، ﴿يتضرّع﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: د خپل عاجزۍ او بې وسۍ اظهار كول، ځان ټيټ ښکاره كول، په عاجزۍ او سر ټيټۍ سره يو څه غوښتل.

**تشريح**: فرمايي چې د زمزم تر څښلو وروسته دې كعبې شريفې ته راسي او د كعبې شريفې چوکاټ دې مچ کړي او د ملتزم سره دې مخ او سينه ومښلوي (ولګوي) او د كعبې شريفې پر دېوال دې خپل رُخسار ولګوي، دعاء دې وكړي او خپل مرادونه دې وغواړي (لکه مخکې چې ددې پوره تفصيل تېر سو).

**يادونه**: مصنف رَحِمَهُ الله له طواف وداع او صلاة طواف څخه تر فراغت سره دا طريقه ليکلې ده چې تر هغه وروسته دې د زمزم اوبه وڅيښي او بيا دې راسي، دعاء دې وكړي او دسې نور (لکه اوس چې ذکر سوه)، اصل طريقه خو همدا ده، ليکن نن سبا هلته پر داسې موقع ډېر رش او ګڼه ګونه وي، لهذا كه داسې وکړي چې له صلاة طواف څخه تر فراغت وروسته اولاً د كعبې شريفې چوکاټ مچ کړي او د ملتزم سره ځان ولګوي او دعاء وکړي او د كعبې پر دېوال خپل مخ ولګوي او مرادونه دې وغواړي، تر دې وروسته په آخر کې د زمزم اوبه وڅيښي، نو هم څه حرج نسته، او د ضعيفه خلګو او سپين ږيرو لپاره په دې کې آساني ده، لکه څرنګه چې په بعضې كتابو کې همدا ترتيب ليکل سوى دى.

## د دعاء قبلېدلو ځایونه

﴿۱۳۶۹﴾ وَالْمُلْتَزَمُ مِنَ الْأَمَاكِنِ الَّتِيْ يُسْتَجَابُ فِيْهَا الدُّعَاءُ بِمَكَّةَ الْمُشَرَّفَةِ او ملتزم په مکه شريفه کي له هغه ځايو څخه دی چی په هغوی کي دعاء قبليږي وَهِيَ خَمْسَةَ عَشَرَ مَوْضِعًا او هغه پنځلس ځايونه دي نَقَلَهَا الْكَمَالُ بْنُ الْهَمَّامِ عَنْ رِسَالَةِ الْحَسَنِ الْبَصْرِيِّ رَحِمَهُ اللهُ کوم چي نقل کړي دي کمال بن الهمام د حضرت حسن بصري رَحِمَهُ الله له رسالې څخه بِقَوْلِهِ: فِي الطَّوَافِ وَعِنْدَ الْمُلْتَزَمِ وَتَحْتَ الْمِيْزَابِ په خپل دې قول سره چي (دعاء تبليږي): (۱) په طواف کي (۲) او د ملتزم سره (۳) او تر ميزاب رحمت لاندي وَفِي الْبَيْتِ وَعِنْدَ زَمْزَمَ وَخَلْفَ الْمَقَامِ (۴) او په کعبه شريفه کي (دننه) (۵) او د زمزم سره (۶) او د مقام ابراهيم وشا ته وَعَلَى الصَّفَا وَعَلَى الْمَرْوَةِ وَفِي السَّعْيِ (۷) او پر صفا (۸) او پر مروه (۹) او په سعی کي وَفِيْ عَرَفَاتٍ وَفِيْ مِنًى (۱۰) او په عرفات کي (۱۱) او په منیٰ کي وَعِنْدَ الْجَمَرَاتِ (۱۲، ۱۳، ۱۴) او د (دريو سره وو) جمراتو سره. (او پنځلسم (۱۵) د ځلورمي ورځي د رمی په وخت کي. که په منیٰ کي پاته سوی وو).

**لغات:** ﴿المشرّفة﴾ د تفعيل له بابه اسم مفعول دی: شرف ورکول سوی، شرافت او عزت والا.

**تشريح:** په مکه شريفه کي څو ځايونه داسي دي چي په هغوی کي د دعاګانو قبلېدل له سلفو او له فقهي کتابونو څخه ثابت دي، دلته مصنف رَحِمَهُ الله پنځلس (۱۵) ځايونه ذکر کړي دي (او بعضو يو ويشت [۲۱] مقامات ذکر کړي دي): ① د طواف په حالت کي، ② د ملتزم سره (متلزم د کعبې شريفې د دروازې او د حجرِ اسود تر مينځ حصه ده)، ③ تر ميزاب رحمت يعني د کعبې شريفې تر ناوې لاندي هم دعاء زياته قبليږي، ④ په کعبه شريفه کي دننه، ⑤ د زمزم داوبو سره د زمزم د څښلو په وخت کي. ⑥ د مقام ابراهيم وشا ته، ⑦ پر صفا غره، ⑧ همدارنګه پر مروه غره، ⑨ د سعی په حالت کي، ⑩ د عرفات په ميدان کي، ⑪ په منیٰ کي، ⑫ د جمرهٔ اولیٰ، ⑬ جمرهٔ ثانيه، ⑭ جمرهٔ ثالثه. د هري جمرې له رمی څخه وروسته دعاء غوښتل ډېره قبليږي، ⑮ د ځلورمي ورځي د رمی په وخت کي (يعني که د ذو الحجې په ديارلسمه هم په منیٰ کي پاته سي. نو بيا خو په هاغه ورځ هم د دريو سره جمراتو رمی کول پر هغه لازميږي لکه مخکي ذکر سوه. نو په دې ورځ هم له رمی کولو څخه وروسته دعاء مقبوله ده. د هري جمرې له رمی څخه وروسته دي دعاء وغواړي).

﴿۱۳۸۰﴾ وَالْجَمَرَاتُ تُرْمٰى فِىْ أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ او جمرات (د شيطانانو ځلي) څلور ورځي ويشتل كيږي يَوْمِ النَّحْرِ وَثَلَاثَةٍ بَعْدَهٗ د قرباني (لوى اختر) په ورځ او درې ورځي تر هغه وروسته كَمَا تَقَدَّمَ لكه مخكي چي تېر سوه.

﴿۱۳۸۱﴾ وَذَكَرْنَا اِسْتِجَابَتَهٗ أَيْضًا عِنْدَ رُؤْيَةِ الْبَيْتِ الْمُكَرَّمِ او موږ (مخكي) د كعبي شريفي د ليدلو په وخت كي د دعاء قبلېدلو يادونه هم وكړه (چي په دې وخت كي دعاء قبلېږي).

**لغات**: ﴿استجابة﴾ د استفعال د باب مصدر دى، كله چي د دې باب په صله كي دعاء ذكر سي، نو معنىٰ يې ده: دعاء قبلېدل، دعاء او حاجت ور پوره كول.

**تشريح**: (شيطانان) په څلور ورځي ويشتل كيږي: ① يعني د ذو الحجې په لسمه (كوم چي د لوى اختر ورځ ده)، ② او په يوولسمه، ③ دوولسمه، ④ او ديارلسمه، يعني كله چي په ديارلسمه ورځ هم په منىٰ كي پاته سوى وي، دا مسئله مخكي په تفصيل سره تېره سوه، وګورئ! له مسئله نمبر ﴿۱۳۶۸﴾ څخه تر مسئله نمبر ﴿۱۳۷۰﴾ پوري.

وذكرنا استجابته إلخ: كله چي مسجد حرام ته داخل سي او پر كعبه شريفه يې اول نظر پرېوځي، نو په دې وخت كي هم دعاء قبلېږي، لكه مخكي چي ذكر سوه، لهذا په دې وخت كي هم په پوره توجه سره دعاء غوښتل پكار دي.

## كعبي شريفي ته د داخلېدلو بيان

﴿۱۳۸۲﴾ وَيُسْتَحَبُّ دُخُوْلُ الْبَيْتِ الشَّرِيْفِ الْمُبَارَكِ إِنْ لَمْ يُؤْذِ أَحَدًا او مستحب دي كعبې شريفي مباركي ته داخلېدل، كه چيري چا ته يې تكليف نه رسوى.

﴿۱۳۸۳﴾ وَيَنْبَغِيْ أَنْ يَّقْصِدَ مُصَلَّى النَّبِيِّ ﷺ فِيْهِ او پكاره ده چي قصد وكړي د نبي كريم ﷺ د لمونځ كولو د ځاى په كعبه شريفه كي (يعني په كعبه كي دننه چي نبي ﷺ پر كوم ځاى لمونځ كړى دى، پر هغه ځاى لمونځ كول پكار دي) وَهُوَ قِبَلَ وَجْهِهٖ وَقَدْ جَعَلَ الْبَابَ قِبَلَ ظَهْرِهٖ حَتّٰى يَكُوْنَ بَيْنَهٗ وَبَيْنَ الْجِدَارِ الَّذِىْ قِبَلَ وَجْهِهٖ قُرْبُ ثَلَاثَةِ أَذْرُعٍ او هغه ځاى د ده (يعني د داخلېدونكي كس) د مخ وطرف ته دى په داسي حال كي چي كله ده (د كعبې شريفې) دروازه خپل شا ته ګرځولې وي (يعني مخ يې شا وي او مخ ته ولاړ وي) تر دې چي د ده او د هغه دېوال تر مېنځ كوم چي د ده

وبخ ته دى دري (شرعي) ګزه فاصله پاته وي (يعني دروازې ته مخامخ چې کوم دېوال دی. له هغه څخه تقريباً دري ګزه شاته هغه دېوال دی چیرې چې رسول الله ﷺ لمونځ کړی وو) ثُمَّ يُصَلِّيْ بيا دي (هلته) لمونځ وکړي فَإِذَا صَلَّى إِلَى الْجِدَارِ بيا چې کله د دېوال وطرف ته (دېوال ته بخامخ) لمونځ وکړي يَضَعُ خَدَّهُ عَلَيْهِ وَيَسْتَغْفِرُ اللهَ وَيَحْمَدُهُ نو (تر هغه وروسته) دي خپل رُخسار (باړخو) پر هغه دېوال کښېږدي او له الله تعالىٰ څخه دي مغفرت (بخښنه) وغواړي او د هغه حمد (او ثناء) دي ووايي.

**لغات**: ﴿لم يؤذ﴾ د افعال له بابه د نفي جحد بلم صيغه ده: تکليف رسول، ضرر رسول. ﴿الجدار﴾ دېوال، جمع: جُدُرٌ. ﴿خَدّ﴾ رخسار، باړخو، جمع: أَخِدَّةٌ و خِدَادٌ.

**تشريح**: د مذاهبِ اربعه وو له کتابو څخه دا ثابت دي چې کعبې شريفي (بيتُ الله) ته داخلېدل او لمونځ پکښې کول مستحب دي، خو دا د حج په مناسکو کي داخل نه دي.

که یو خوش نصيبه کس ته دا نېکبختي حاصله سي، نو هغه ته پکار دي چې په زياته خشوع وخضوع او انتهايي ادب سره په ټيټ نظر کعبې شريفي ته داخل سي په داسي حال کي چې د الله تبارک وتعالىٰ لويي او جلال يې په زړه کي حاضره وي او هلته دي په کامله توجه سره په لمانځه او دعاء کي مشغوله سي او دغه څه ګړی دي غنيمت وګڼي. (ښکاره دي وي چې اوس مهال په بعضي مخصوصه ورځو کي کعبې شريفي ته د غسل ورکولو پر موقع د هغې دروازه خلاصيږي او د حکومت يا د هغه خاندان چې هغو ته د کعبې شريفي د مبارکي چابي داخيستلو شرف حاصل دی، د هغو له طرفه چې په انتظام کي د شرکت لپاره کومو خلکو ته دعوت ورکول کيږي، صرف هغوی کعبې شريفي ته د داخلېدلو نېکبختيا حاصلولای سي).

وينبغي أن يقصد إلخ: يعني په کعبه شريفه کي چې پر کوم ځای نبي کريم ﷺ لمونځ کړی دی، پر هغه ځای لمونځ کول پکار دي، که يې بل ځای وکړي، نو هم صحيح دي، د کعبې شريفي په دراوزه کي چې کله ور داخل سي، نو د مخامخ دېوال وطرف ته دي ولاړ سي او له دېوال څخه دي دري شرعي ګزه (کوم چې شلورنيم فټه کيږي) شاته ودرېږي، پر دې ځای نبي کريم ﷺ لمونځ کړی دی. (په حقيقيت کي دا خبره د مشاهدې سره تعلق لري، په زياتره رواياتو کي دا خبره راغلې ده چې نبي کريم ﷺ په کعبه شريفه کي داسي ځای لمونځ وکړی چې د کعبې شريفي يو ستن [پايه] د نبي کريم ﷺ چپه طرف ته وه او دوې ستني يې راسته طرف ته وې كما في رواية البخاري وأبي داؤد، او درې ستني يې شاته وې، په هغه وخت کي په کعبه شريفه کي شپږ ستني (پايې) وې، ملا علي قاري رَحِمَهُ الله فرمايي چې اوس په کعبه شريفه کي صرف درې ستني دي. او حضرت بلال رضي الله عنه به په تعيين سره دا ښوولې چې نبي کريم ﷺ د فلانی او فلانی ستني تر مينځ دوه رکعته لمونځ وکړی). (انوار الايضاح. ثمرة النجاح)

## له ارکان کعبه څخه څه مراد دي؟

﴿۱۳۸۴﴾ ثُمَّ يَأْتِي الْأَرْكَانَ بیا دي ارکانو ته راسي فَيَحْمَدُ وَيُهَلِّلُ وَيُسَبِّحُ وَيُكَبِّرُ نو حمد دي ووايي او لا إله إلا الله او سُبحان الله او الله أكبر دي ووايي وَيَسْأَلُ اللهَ تَعَالَى مَا شَاءَ او له الله تعالیٰ څخه دي سوال (او دعاء) وکړي د څه چې يې خوښه وي وَيَلْزَمُ الْأَدَبَ مَا اسْتَطَاعَ بِظَاهِرِهِ وَبَاطِنِهِ او ادب دي لازم ونیسي څومره چې د ده وس وي په خپل ظاهر او باطن (دواړو) سره.

**تشریح**: له ارکان څخه مراد ارکان اربعه یعنې د کعبې شریفې څلور کونجان دي، په یوه کونج کې یې حجرِ اسود لګېدلې ده، له هماغه څخه د طواف شروع کیږي، د کعبې شریفې په شمالي مشرقي کونج کې رکنِ عراقي دی او په شمالي مغربي کونج کې یې رکنِ شامي دی او د کعبې شریفې چې کوم جنوبي مغربي کونج دی، هلته رکنِ یماني دی او د کعبې شریفې دروازه مشرقي طرف ته ده، فرمايي چې په مذکوره څلور سره مبارکو ځايو کې په پوره توجّه سره د دنيا او آخرت مرادونه غوښتل پکار دي، په دې ټولو ځايو کې دعاګانې قبليږي (صاحب د شفاء الارواح ليکلي دي چې له ارکان څخه د کعبې شریفې ستنې مراد دي. یعنې د هرې ستنې سره دې لا إله إلا الله، سبحان الله او الله أكبر وايي او دعاء دې وکړي). (انوار الايضاح، شفاء الارواح)

﴿۱۳۸۵﴾ وَلَيْسَتِ الْبَلَاطَةُ الْخَضْرَاءُ الَّتِي بَيْنَ الْعَمُودَيْنِ مُصَلَّى النَّبِيِّ ﷺ او هغه زرغون ښېرين فرش کوم چې د دوو ستنو (پايو) په مينځ کې دی (هغه) د نبي کريم ﷺ د لمونځ ځای نه دی وَمَا تَقُولُهُ الْعَامَّةُ مِنْ أَنَّهُ الْعُرْوَةُ الْوُثْقَى وَهُوَ مَوْضِعٌ عَالٍ فِي جِدَارِ الْبَيْتِ او کوم چې عام خلک (عوام) دا وايي چې دا عروهٔ وثقیٰ" ده کوم چې د کعبې شریفې په دېوال کې یو لوړ ځای دی بِدْعَةٌ بَاطِلَةٌ لَا أَصْلَ لَهَا (دا وينا) بدعت باطله ده (يعنې دا خبره له ځانه جوړه سوې ده کوم چې بالکل غلطه ده) چې هغه لره هيڅ اصل نسته وَالْمِسْمَارُ الَّذِي فِي وَسْطِ الْبَيْتِ يُسَمُّونَهُ سُرَّةَ الدُّنْيَا او هغه مېخ کوم چې د کعبې شریفې په مينځ کې دی چې خلک هغه ته د دنيا نُو (مينځ) وايي يَكْشِفُ أَحَدُهُمْ عَوْرَتَهُ وَسُرَّتَهُ وَيَضَعُهَا عَلَيْهِ چې یو د دوی خپل عورت او نُو لڅوي او پر هغه یې اږدي فِعْلُ مَنْ لَا عَقْلَ لَهُ فَضْلًا عَنْ عِلْمٍ دا د هغه چا کار دی چې هيڅ عقل نه لري،

زیات تر دې چې علم ولري (یعني علم خو هلته پرېږده!، یوه ذره عقل لا هم نه لري) کَمَا قَالَهُ الْكَمَالُ لکه څرنګه چې ویلي دي علامه کمال (ابن الهمام صاحب د فتح القدیر رَحِمَهُ الله).

**لغات**: ﴿بلاطة﴾ هغه ډبري (ټائل) کوم چې په فرش کي استعمال کړل سي (انوار الایضاح)، ﴿العروة الوثقٰی﴾ مضبوطه حلقه. ﴿مسمار﴾ مېخ، جمع: مَسَامِيْرُ.

**تشریح**: په کعبه شریفه کي د دوو ستنو (پایو اتمبوا) تر مینځ د زرغونو ډبرو فرش دی، خلک وایي چې نبي کریم ﷺ دلته لمونځ کړی دی، دا غلطه وینا ده.

وما تقوله إلخ: په کعبه شریفه کي د مخ په دېوال کي را پورته سوی (حلقه غوندي) ځای دی، عام خلک هغه ته عُروة الوثقٰی وایي، د دې هم په شریعت کي هیڅ اصل نسته او د عوامو له خپل ځانه جوړه سوې خبره ده (او په قرآن کریم کي چې کوم د العروة الوثقٰی ذکر سوی دی، هغه اسلام ته د دې سره تشبیه ورکول سوې ده یعني چا چې اسلام قبول کړی، ګواکي هغه مضبوطه حلقه ونیوله).

والمسمار إلخ: د کعبې شریفي په مینځ کي یو مېخ دی، عوام خلک وایي چې دا د نیا نُو (ناف) دی او د دنیا بالکل د مینځ حصه ده، پر دې به د پخوانی زمانې بعضي خلکو خپلې شرمګاوي او خپل نُوګان (نافونه) اینښودله (صاحب د انوار الایضاح لیکلي دي چې داسي به د جاهلیت په زمانه کي کفارو او مشرکینو کوله)، دا جاهلانه رسم دی او د هغه چا کار دی چې ذره غوندي عقل هم نه لري، شریعت د داسي بې عقلۍ او بې حیائۍ اجازه نه ورکوي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح، ثمرة النجاح)

## له مکې شریفي څخه د واپس تللو بیان

﴿۱۳۸۲﴾ وَإِذَا أَرَادَ الْعَوْدَ إِلٰى أَهْلِهِ او کله چې خپل کورنۍ (او وطن) ته د واپس تللو اراده وکړي يَنْبَغِيْ أَنْ يَّنْصَرِفَ بَعْدَ طَوَافِهِ لِلْوَدَاعِ وَهُوَ يَمْشِيْ إِلٰى وَرَائِهِ وَوَجْهُهُ إِلَى الْبَيْتِ نو پکار ده (مناسب ده) چې له خپل طواف وداع کولو څخه وروسته په داسي حال کي وګرځي (ولاړ سي) چې دئ د شا پر طرف روان وي او د ده مخ د کعبې شریفي وطرف ته وي بَاكِيًا أَوْ مُتَبَاكِيًا مُتَحَسِّرًا عَلٰى فِرَاقِ الْبَيْتِ حَتّٰى يَخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ (او) په داسي حال کي چې دئ ژړېدونکی یا د ژړا غوندي شکل جوړونکی وي، افسوس (او غم) کونکی وي د کعبې شریفي پر جلایی باندي تر دې چې له مسجدِ حرام څخه ووځي وَيَخْرُجُ مِنْ مَكَّةَ مِنْ بَابِ بَنِيْ شَيْبَةَ

مِنَ الثَّنِيَّةِ السُّفْلٰى او له مکې مکرّمې ځخه دي په "باب بني شيبه" باندې د ثنيۀ السفلیٰ له طرف ځخه ووځي.

**لغات**: ﴿أهل﴾ کورنی، ښځه او داسې نور. ﴿ينصرف﴾ د انفعال د باب مضارع ده: واپس کېدل راګرځېدل. ﴿متباكيًا﴾ د تفاعل له بابه فاعل دی: په تکلف سره ژړېدونکی، دژړا غونډې شکل جوړونکی. ﴿متحسرًا﴾ د تفعّل له بابه فاعل دی: افسوس (افسوز) کونکی.

**تشريح**: له طواف وداع او صلاة طواف ځخه وروسته چې کله حاجي رخصتيږي او خپل ځای ته واپس کيږي، نو کعبه شريفه دې مخ کړي او له کعبې ځخه دې په داسې حال کې روان سي چې مخ يې د کعبې شريفې طرف ته وي يعني د شا پر طرف دې روان سي، او د کعبې شريفې پر فراق چې يې ځومره وس وي، هغومره دې وژاړي او که ژړا نه ورځي، نو دژړا په ځېر صورت دې جوړ کړي او د همدې حسرت او افسوس په حالت کې دې د کعبې شريفې وطرف ته کتونکی، ژړېدونکی له مسجدِ حرام ځخه ووځي.

ويخرج من الخ: "باب بني شيبة" د "ثنية السفلیٰ" وطرف ته ده، او مخکې ذکر سوه چې له مکې شريفې ځخه وتل به د ثنيۀ السُفلیٰ له طرفه (يعني د لاندې خوا ځخه) کيږي (او داخلېدل به د ثنيۀ العُليا له طرفه کيږي)، نو ځکه اوس به په باب بنی شيبه باندې د ثنيۀ السُفلیٰ د لاري له مکې شريفې ځخه ووځي. (ثمرة النجاح، انوار الايضاح)

## ښځه د حج په کومو احکامو کې له سړي ځخه جلا ده؟

﴿۳۸۷﴾ وَالْمَرْأَةُ فِيْ جَمِيْعِ أَفْعَالِ الْحَجِّ كَالرَّجُلِ او ښځه د حج په ټولو افعالو کې د سړي په ځېر ده غَيْرَ أَنَّهَا لَا تَكْشِفُ رَأْسَهَا ماسوا له دې چې ښځه به نه لڅوي (نه ښکاره کوي) خپل سر.

﴿۳۸۸﴾ وَ تَسْدُلُ عَلٰى وَجْهِهَا شَيْئًا تَحْتَهُ عِيْدَانٌ او ځړوي به ښځه پر خپل مخ يو شی (پرده) چې تر هغه به (يې) لرګيان لاندې (کړي) وي (يعني چې د سر يا تندي پر طرف نري لرګيان تر هغه لاندې درول سوي وي چې پرده د مخ سره نه ولګيږي) كَالْقُبَّةِ د ګومبتې په ځېر تَمْنَعُ مَسَّهُ [illegible] هغه (لرګيان) منع کړي د مخ مسه کېدل د پردې (نقاب) سره (يعني چې [illegible]

**لغات:** ﴿تسدل﴾ د نصر له بابه مضارع معلومه ده: راځړول. ﴿عیدان﴾ جمع د عَوْدٌ ده: لرګی، پړیکړی سوی ښاخ. ﴿قبة﴾ ګومبته، ګردی ودانی، همدارنګه هغه کوچنی خیمه چې سریې (د ګومبتې په شان) ګردی وي، جمع: قِبَاب. ﴿غطاء﴾ پرده، نقاب. جمع: أَغْطِيَة.

**تشریح:** مصنف رَحِمَهُ الله فرمایي چې ښځه د حج په ټولو افعالو کې د سړي په شان ده، لېکن په یو څو مسئلو کې د ښځې حکم جلا دی چې د هغوی تفصیل دلته بیانوي، مصنف رَحِمَهُ الله اُووه مسئلې ذکر کړي دي: ①... د احرام په حالت کې سړی خپل سر نه سي پټولای، لېکن ښځه به یې پټوي، د ښځې لپاره خپل سر لڅول جائز نه دي؛ ځکه دا د ستر خلاف دي.

وتسدل إلخ: ها! ښځه به خپل مخ لڅ ساتي، خو د پردې لپاره پر مخ کپړه (نقاب وغیره) داسې اچوي چې د مخ سره نه ولګېږي، مثلاً تر هغه لاندې دې یو څو لرګي داسې وتړي چې کپړه له مخ څخه لیرې سي او پرده هم راسي (او بله طریقه یې دا ده چې ښځه دې پر خپل سر داسې خولۍ [رخچینه] کښېږدي کوم چې چار طرفه څوکې او څنډې لري [کوم ته چې هیټ خولۍ هم ویل کېږي] او پر هغه د پاسه دې کپړه واچوي. نو د خولۍ د څوکو [ژاغو] په وجه به کپړه له مخ څخه لیرې سي او په دې توګه به د سر د وربښتیاتو حفاظت هم وسي او د مخ سره د کپړې د نه لګېدلو تر څنګ به له پردیو خلکو څخه پرده هم وسي [ایضاح المناسک ص: ۷۳، ۷۴])

﴿۱۳۸۹﴾ وَلَا تَرْفَعُ صَوْتَهَا بِالتَّلْبِيَةِ او نه به پورته کوي ښځه خپل آواز په تلبیه کې.

﴿۱۳۹۰﴾ وَلَا تَرْمَلُ او نه به ښځه (د سړي په شان) رمل کوي (یعني په طواف کې به تېز تګ او خپلې اوږې نه ښوروي الکه مخکې چې د رمل وضاحت تېر سوا).

﴿۱۳۹۱﴾ وَلَا تُهَرْوِلُ فِي السَّعْيِ بَيْنَ الْمِيْلَيْنِ الْأَخْضَرَيْنِ او (همدارنګه) نه به تېزه ځي ښځه (د سړي په شان) د سعی کولو پر مهال د میلین اخضرین (دوه زرغونه میلونو) په مینځ کې بَلْ تَمْشِيْ عَلَى هِيْنَتِهَا فِيْ جَمِيْعِ السَّعْيِ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ بلکې ځي به په سکون (په آرامه. د خپل عادي رفتار مطابق) په ټوله سعی کې د صفا او مروه تر مینځ.

**تشریح:** په دې عبارت کې د دویمې، درېیمې او څلورمې مسئلې بیان دی:

②... دویمه مسئله دا ده چې ښځه به تلبیه په زوره (جهراً) نه وایي، بلکې په کراره (سراً) به وایي، او له دې څخه په زره کې ویل مراد نه دي، بلکې دومره کرار ویل مقصود دي چې حروف صحیح اداء کېږي او ښځه یې خپله اوري او نور پردي خلک یې نه سي اورېدلای.

③... دریمه مسئله دا ده چي ښځه به په طواف کي رمل نه کوي، لکه څرنګه چي سړی د طواف په اولو دریو ګورنو (شوطونو) کي رمل کوي، رمل صرف د سړیو لپاره سنت دی.

④... څلورمه مسئله دا ده چي ښځه به د سعی بین الصفا والمروه په دوران کي د میلین اخضرین تر مینځ تېزه نه ځي، دلته تګ تېزول صرف د سړیو لپاره سنت دي او ښځي له دې حکم څخه مستثنیٰ دي.

| |
|---|
| ﴿۱۳۹۲﴾ وَلَا تَحْلِقُ وَتُقَصِّرُ او (همدارنګه) ښځه به سر نه خریي او قصر به کوي (یعني صرف وریښتان به کوچني کوي اېچي کوي اد ګوتي د سر په اندازه). |
| ﴿۱۳۹۳﴾ وَتَلْبِسُ الْمَخِيْطَ او ښځه به ګنډل سوي (جوړه) جامه اغوندي. |
| ﴿۱۳۹۴﴾ وَلَا تُزَاحِمُ الرِّجَالَ فِي اسْتِلَامِ الْحَجَرِ او (همدارنګه) ښځه به په سړیو نه ننوځي (د سړیو لپاره به خنډ نه جوړېږي، نه به یې ډیکه کوي) د حجرِ اسود په مسه کولو کي. |

**لغات:** ﴿مخیط﴾ د ضرب له بابه مفعول دی: ګنډل سوې جامه، ﴿لا تُزاحِم﴾ د مفاعلې له بابه د نفي معلوم صیغه ده، مصدر: مُزَاحَمَةً و زِحَامًا: د زیات شمېر (رش) په وجه یو بل ډیکه کول (په رش کي یو د بل سره ډیکه کول)، خنډ جوړېدل، مقابل کېدل، د زیات شمېر په وجه ځای تنګېدل.

**تشریح:** ⑤... پنځمه مسئله دا ده چي ښځه به سر نه خریي؛ ځکه دا د ښځي د زینت خلاف دي (چي په دې سره هغه پکه ګرځي)، نو ځکه صرف قصر به کوي.

⑥... شپږمه مسئله دا ده چي ښځه به د احرام په حالت کي ګنډل سوي او جوړه سوي کپړه اغوندي؛ ځکه که هغه هم د سړیو په څېر ناګنډل سوي کپړه په تن کړي، نو د هغې د عورت ښکاره کېدلو خطره سته.

⑦... اُوومه مسئله دا ده چي که په حجرِ اسود باندي د خلکو رش او ګڼه ګونه وي، نو ښځه به د حجرِ اسود د مسه کولو او مچولو په کوښښ کي په سړیو نه ننوځي، ځکه په پردیو سړو کي تلل او د هغو سره خپل بدن مسه کول ممنوع او حرام دي، حال دا چي حجرِ اسود مچول صرف سنت دي، ها! که ځای خالي وي، نو ښځي لره د حجرِ اسود د مچولو اجازه سته.

## د حج کوم قسم افضل دی

﴿۱۲۹۵﴾ وَهٰذَا اِتْمَامُ حَجِّ الْمُفْرِدِ او دا د حجِ افراد کونکي (د بیان) بشپړ تیا ده (یعني په دې سره د حجِ افراد بیان پوره او پای ته ورسېدی. یا په بله وینا: دا پوره [ټوله] بیان د حجِ مُفرد دی) وَهُوَ دُوْنَ الْمُتَمَتِّعِ فِي الْفَضْلِ او هغه په فضیلت کې له (حجِ) تمتع کونکي څخه کم دی وَالْقِرَانُ أَفْضَلُ مِنَ التَّمَتُّعِ او (حجِ) قِران بیا له (حجِ) تمتّع څخه افضل دی.

**لغات:** ﴿الْمُفْرِد﴾ حجِ افراد کونکی، مخکې ذکر سوه چې حج پر درې قسمه دی: ① حَجِّ إِفْـرَاد. دې ته وايي چې حاجي له میقات څخه یوازي د حج احرام وتړي (یعني فقط د حج لپاره احرام وتړي. نه د عمرې لپاره)او چې کله د حج ارکان اداء کړي او حج ختم کړي، نو احرام خلاص کړي، داسې حاجي ته مُفْرِد وايي، ② حَجِّ قِـرَان، دې ته وايي چې له میقات څخه د حج او عُمرې دواړو احرام یو ځای وتړي، داسې حاجي ته قَارِن وايي، ③ حَجِّ تَمَتُّع، دې ته وايي چې د حج په میاشتو کې صرف د عمرې احرام وتړي او چې کله عمره ختمه کړي، نو احرام خلاص کړي، بیا د ذو الحجې په اتمه ورځ بالبلې د حج احرام وتړي، داسې حاجي ته مُتَمَتِّع وايي.

**تشریح:** دا مخکیني مسائل د حجِ افراد ول، لېکن د هغوی زیاتره مسائل په حجِ تمتّع او حجِ قران کې هم دي (یعني په تمتّع او قِران کې هم زیاتره داغه مسئلې دي). په را روان فصل کې مصنف رَحِمَهُ الله حجِ قران او حجِ تمتّع بیان کړي دي. بیا فرمايي چې حجِ قران تر ټولو افضل دی؛ ځکه په هغه کې حج او عمره دواړه یو ځای کول کېږي، تر هغه وروسته حجِ تمتع افضل دی؛ ځکه په هغه کې حج او عمره په یوه سفر کې اداء کېږي، که څه هم یو ځای نه کول کېږي، تر هغه وروسته حجِ افراد دی: ځکه په هغه کې یوازي حج اداء کېږي (او صاحب د انوارُ الایضاح لیکلي دي چې متأخرینو فقهاؤ حجِ تمتّع افضل ګرځولی دی، ځکه په حجِ قران کې د احرام موده د حجِ تمتّع په مقابله کې اوږده وي، چې په دې اوږده موده کې د اِحرام د ممنوعاتو او پابندیو رعایت کول او د علمو خلګو لپاره مشکل دي، نو ځکه متأخرینو تمتّع افضل ګڼلی دی. د دې لپاره چې حج او حاجي له کوتاهیو او نیمګړتیاوو څخه په آسانه محفوظ پاته سي). (ثمرة النجاح. انوار الایضاح بتصرفٍ)



# فَصْلٌ

## حج قِران او د هغه طريقه

﴿۱۳۹۶﴾ اَلْقِرَانُ هُوَ أَنْ يَّجْمَعَ بَيْنَ إِحْرَامِ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ قِران دا دی چې (حج کونکی) د حج او عمرې دا احرام تر مينځ جمع راولي (يعني چې د حج او عمرې دواړو احرام يو ځای وتړي).

﴿۱۳۹۷﴾ فَيَقُوْلُ بَعْدَ صَلَاةِ رَكْعَتَي الْإِحْرَامِ نو هغه دې د احرام له دوه رکعته لمونځ کولو څخه وروسته (داسې) وايي اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أُرِيْدُ الْعُمْرَةَ وَالْحَجَّ اې الله! زه د حج او عمرې (دواړو) اراده کوم فَيَسِّرْهُمَا لِيْ وَتَقَبَّلْهُمَا مِنِّيْ نو هغوی دواړه زما لپاره آسانه کړه! او زما څخه يې قبول کړه! ثُمَّ يُلَبِّيْ بيا دې تلبيه ووايي.

**لغات**: ﴿قِران﴾ په يوه احرام کې حج او عمره دواړه اداء کول.

**تشريح**: قِران (د قاف په کسره سره) د ضرب د باب قَرَنَ يَقْرِنُ مصدر دی. لغوي معنی يې ده: يو ځای کول (متصل کول)، جمع کول. او د شريعت په اصطلاح کې قِران دا دی چې د حج او عمرې دواړو احرام يو ځای وتړي، يا په بله وينا چې په يوه احرام سره حج او عمره دواړه اداء کړي (څرنګه چې دلته احرام تړونکي حج او عمره سره يو ځای کړل، نو ځکه دې حج ته حجِ قِران وايي).

د حجِ قِران طريقه دا ده چې د حج په مياشتو کې دې ميقات ته ورسيږي، له غسل يا اودس کولو څخه وروسته دې احرام وتړي او دوه رکعته لمونځ دې په پټ سر وکړي، تر سلام وروسته دې سر خلاص کړي او مخ پر قبله دې کښيني او په زړه کې دې د حج او عمرې دواړو د احرام نيت وکړي او په ژبه سره دې داسې ووايي "اللّٰهم إني أريد... إلخ"، يا په پښتو دې يې ووايي: "اې الله! زه د حج او عمرې اراده لرم، ته زما لپاره دواړه آسانه کړه! او زما څخه يې قبول کړه!"، بيا دې تلبيه ووايي، نو په تلبيه ويلو سره هغه محرم ګرځي.

﴿۱۳۹۸﴾ فَإِذَا دَخَلَ مَكَّةَ بیا چي کله مکې مکرّمې ته داخل سي بَدَأَ بِطَوَافِ الْعُمْرَةِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ نو شروع دي د عمرې په طواف سره وکړي، اُووه دَوره (دي ولګوي) يَرْمُلُ فِي الثَّلَاثَةِ الْأُوَلِ فَقَطْ رمل به فقط په اولو دريو دَورونو (شوطونو) کي کوي ثُمَّ يُصَلِّي رَكْعَتَي الطَّوَافِ بیا دي د طواف دوه رکعته لمونځ وکړي ثُمَّ يَخْرُجُ إِلَى الصَّفَا بیا دي د صفا (غره) وطرف ته ووځي (روان سي) وَيَقُومُ عَلَيْهِ دَاعِيًا مُكَبِّرًا مُهَلِّلًا مُلَبِّيًا مُصَلِّيًا عَلَى النَّبِيِّ ﷺ او پر صفا دي ودرېږي په داسي حال کي چي دئ دعاء کونکی (او) الله أکبر ويونکی، لا إله إلا الله ويونکی، تلبيه ويونکی (او) پر نبي کريم ﷺ درود ويونکی وي ثُمَّ يَهْبِطُ نَحْوَ الْمَرْوَةِ بیا دي د مروه (غره) وطرف ته شوه سي وَيَسْعَىٰ بَيْنَ الْمِيلَيْنِ او د ميلين اخضرين تر مينځ دي سعی وکړي فَيُتِمُّ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ نو اُووه دَوره دي پوره کړي وَهٰذِهِ أَفْعَالُ الْعُمْرَةِ او دغه د عمرې افعال دي وَالْعُمْرَةُ سُنَّةٌ او عمره سنت ده ثُمَّ يَطُوفُ طَوَافَ الْقُدُومِ لِلْحَجِّ بیا دي د حج لپاره طوافِ قدوم وکړي ثُمَّ يُتِمُّ أَفْعَالَ الْحَجِّ بیا دي د حج افعال پوره کړي كَمَا تَقَدَّمَ لکه مخکي چي تېره سوه فَإِذَا رَمَىٰ يَوْمَ النَّحْرِ جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ بیا چي کله د قربانۍ (لوی اختر) په ورځ جمرۀ عقبه وويشتي وَجَبَ عَلَيْهِ ذَبْحُ شَاةٍ أَوْ سُبْعُ بُدْنَةٍ نو پر هغه ديوه پسه يا د يوې بُدنې (اوښ يا غويي) داُوومي حصې ذبح (قرباني) واجبېږي فَإِذَا لَمْ يَجِدْ (لیکن) کله چي (د قربانۍ قدرت) نه ومونډي (يعني که د پسه يا د بُدنې داُوومي حصې قرباني نه سي کولای) فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ قَبْلَ مَجِيءِ يَوْمِ النَّحْرِ مِنْ أَشْهُرِ الْحَجِّ نو د دريو ورځو روژې (پر هغه لازم) دي د يومُ النحر له راتګ څخه مخکي د حج په مياشتو کي دننه وَسَبْعَةِ أَيَّامٍ بَعْدَ الْفَرَاغِ مِنَ الْحَجِّ وَلَوْ بِمَكَّةَ بَعْدَ مُضِيِّ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ او د اُوو ورځو روژې له حج څخه تر فارغېدلو وروسته (پر هغه لازم) دي، که څه هم په مکه کي (پاته) وي. د أيامِ تشريق له تېرېدلو څخه وروسته وَلَوْ فَرَّقَهَا او که جلا، جلا ونيسي هغه (اُووه روژې) جَازَ نو (هم) جائز دي.

**لغات:** ﴿يهبط﴾ د ضرب د باب مضارع معلومه ده: راکښته کېدل، راشوه کېدل، لاندي راتلل، ﴿شاة﴾ اسم جنس دی پُسه، مېږه، وزگری، وزه (بزه) ټولو لره شامل دی، جمع: شِيَاه، همدارنگه الغَنَم یې جمع من غیرِ لفظهٖ ده، مورږ د آسانی لپاره د دې معنیٰ په "پُسه" سره کوو. ﴿سُبْع﴾ او سُبُع: اُوومه حصه، لکه ثُلْث او ثُلُث: درېیمه حصه.

**تشریح:** اوس له دې ځایه د حجِ قران مکمل تفصیل بیانوي، فرمايي چې کله قارن ومکې شریفې ته داخل سي نو اول دي طواف قدوم نه کوي، بلکي د عمرې افعال دي شروع کړي، نو اول دي د عمرې طواف وکړي او دا طواف عمره فرض او رکن دی، او په دې طواف کي اضطباع او مل هم سنت دي او تر دې طواف وروسته د صفا و مروه په مينځ کي سعی کول هم واجب دي، بیا دي د حج افعال شروع کړي، نو اول دي طواف قدوم وکړي او تر هغه وروسته دي سعی وکړي، بیا قارن چې کله د ذو الحجې په لسمه (دلوی اختر په ورځ) د جمرهٔ عقبه رمی وکړي، نو یوه قرباني دي وکړي؛ ځکه چې هغه ته په یوه سفر کي د حج او عمرې دواړو د کولو موقع تر لاسه سوه، نو ځکه په شکرانه کي یوه قرباني کول پر هغه واجبیږي، او په قربانی کي ورته دا اختیار دی چې یو پُسه یا داسي نور ذبح کوي (یعني یو وزگری، یا یوه مېږه، یا یوه بزه)، او که یو پوره غویی یا اوبښ ذبح کوي، او که د غویي یا اوبښ اُوومه حصه قرباني کوي، تر دې وروسته دي سر وخریي او احرام دي خلاص کړي.

وروسته فرمايي چې که قارن پر قرباني کولو قدرت نه لري، نو پر هغه لس روژې واجبیږي، په دې طریقه سره چې درې روژې دي د ذو الحجې د لسمي (یومُ النحر) څخه مخکي د حج په میاشتو (یعني شوال، ذو القعده او لس ورځي د ذو الحجې، په دې دوران) کي ونیسي او اُووه روژې چې کله کور ته واپس راسي بیا دي یې ونیسي، افضل او مستحب دا ده چې هغه درې روژې له یومُ النحر څخه درې ورځي مخکي یعني د ذو الحجې په ۷، ۸ او ۹ ونیسي، که قارن هغه درې روژې نه ونیسي تر دې چې یومُ النحر یعني د ذو الحجې لسمه راسي، نو بیا دَم باندي واجبیږي.

او که پاته اُووه روژې له حج څخه تر فراغت وروسته په مکه شریفه کي نیول غواړي، نو شرط دا دی چې د ایامِ تشریق له تېرېدلو څخه وروسته به یې نیسي (ایام تشریق یعني د ذو الحجې له ۱۱ څخه تر ۱۳ پوري)، او دا اُووه روژې پرلپسې نیول هم ضروري نه دي، بلکي که یې جلا، جلا ونیسي، نو هم جائز دي. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)



# فَصْلٌ

## حجِ تمتّع او د هغه طريقه او د حج تمتّع اقسام

﴿۱۳۹۹﴾ اَلتَّمَتُّعُ هُوَأَنْ يُحْرِمَ بِالْعُمْرَةِ فَقَطْ مِنَ الْمِيْقَاتِ (حجِ) تمتّع دا دی چي له ميقات څخه فقط (يوازي) د عمرې احرام وتړي.

﴿۱۴۰۰﴾ فَيَقُوْلُ بَعْدَ صَلَاةِ رَكْعَتَيِ الْإِحْرَامِ نو هغه دي د احرام له دوه رکعته لمونځ کولو څخه وروسته (داسي) وايي اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أُرِيْدُ الْعُمْرَةَ اې الله! زه د عمرې اراده کوم فَيَسِّرْهَا لِيْ وَتَقَبَّلْهَا مِنِّيْ نو هغه زما لپاره آسانه کړه! او زما څخه يې قبوله کړه! ثُمَّ يُلَبِّيْ بيا دي تلبيه ووايي.

﴿۱۴۰۱﴾ حَتّٰى يَدْخُلَ مَكَّةَ تر دې چي مکې ته داخل سي (يعني مکې ته تر داخلېدلو پوري دي تلبيه وايي) فَيَطُوْفُ لَهَا بيا دي د عمرې لپاره طواف وکړي وَيَقْطَعُ التَّلْبِيَةَ بِأَوَّلِ طَوَافِهِ او تلبيه دي په خپل اول (شروع) د طواف کي ختمه کړي (پرېږدي) وَيَرْمُلُ فِيْهِ او په دې طواف کي دي رمل وکړي ثُمَّ يُصَلِّيْ رَكْعَتَيِ الطَّوَافِ بيا دي د طواف دوه رکعته لمونځ وکړي ثُمَّ يَسْعٰى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ بَعْدَ الْوُقُوْفِ عَلَى الصَّفَا بيا دي د صفا او مروه تر مينځ سعي وکړي، پر صفا له درېدلو څخه وروسته كَمَا تَقَدَّمَ لکه مخکي چي تېر سوه (يعني لکه مخکي چي د دې بيان تېر سو) سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ اووه دوره (يعني اووه شوطه دي د صفا او مروه تر مينځ سعي وکړي) ثُمَّ يَحْلِقُ رَأْسَهُ أَوْ يُقَصِّرُ إِذَا لَمْ يَسُقِ الْهَدْيَ بيا دي سر وخريي يا دي يې کوچنی کړي (په دې شرط) کله چي ده هدی نه وي بېولې (يعني که چيري ده د هدی څاروی د ځان سره راوستلی نه وي) وَحَلَّ لَهُ كُلُّ شَيْءٍ مِنَ

الْجِمَاعِ وَغَيْرِهٖ او د ده لپاره هر شی (کوم چي د احرام په وجه حرام سوی وو) یعني جماع او نور شیان حلال سوه وَيَسْتَمِرُّ حَلَالًا او حلال کېدونکی (بغیر له احرامه) دي پاته سي (یعني تر دې وروسته دي د حلالو کسانو په څېر بغیر له احرام تر لو څخه هلته پاته سي).

**لغات:** ﴿تمتّع﴾ په لنډه وینا دا چي په یوه احرام کي عمره کول او تر هغه وروسته په حرم کي پاتېدل او بیا د حج په موسم کي په بل احرام کي حج کول. ﴿لَمْ يَسُقْ﴾ د نصر له بابه د جحد صیغه ده. سَاقَ يَسُوْقُ سَوْقًا و سِيَاقًا: بېول (هڅه کول)، روانول، چلول. ﴿یستمرّ﴾ د استفعال د باب مضارع ده. اِسْتَمَرَ يَسْتَمِرُّ اِسْتِمْرَارًا: پر یوه حالت باقي پاتېدل، برابر جاري پاتېدل.

**تشریح:** د تمتّع لغوي معنیٰ ده: نفع اخیستل، او د شریعت په اصطلاح کي تمتّع دا دی چي د حج په میاشتو کي له میقات څخه یوازي د عمرې احرام وتړي او د عمرې له پوره کولو څخه وروسته احرام خلاص کړي او په میقات کي پاته سي (یعني خپل وطن ته واپس ولاړ نه سي بلکي په هاغه سفر کي) بیا د حج په میاشتو کي د حج احرام وتړي او حج پوره کړي، دې ته حجِ تمتّع وایي. (تمتّع ځکه ورته وایي چي هغه له عمرې څخه وروسته د احرام خلاصولو نفع واخیستله؛ ځکه کوم شیان چي د احرام په وجه ورته ممنوع وه. هغه د حج او عمرې په مینځ کي ورته حلال سوه او س دئ په پوره توګه نفع ځني اخیستلای سي. همدارنګه په یوه سفر کي یې د عُمرې او حج دواړو عبادتونو د اداء کولو نفع واخیستله، نو ځکه دې حج ته حجِ تمتّع وایي. په خلاف د قارن چي هغه له عمرې څخه تر فراغت وروسته هم محرم پاتیږي او له ممنوعه شیانو څخه نفع نه سي اخیستلای).

د حجِ تمتّع طریقه دا ده چي له میقات څخه دي اول د عمرې احرام وتړي او د صلاةُ الإحرام (دوه رکعته لمونځ کولو) څخه وروسته دي هغه دعاء ووایي کوم چي په متن کي ذکر سوه، یا په خپله ژبه دي یې ووایي چي "اې الله! زه د عمرې اراده لرم، هغه زما لپاره آسانه کړه!..."، بیا دي تلبیه ویل شروع کړي، په تلبیه ویلو سره هغه محرم ګرځي، پاته طریقه به په راروان عبارت کي ذکر سي.

حتّٰی یدخل مکة إلخ: د حجِ تمتّع دوه صورتونه دي: ① یو دا چي حجِ تمتّع کونکی د هدی ځاروی د ځان سره نه بوځي (حرم ته)، ② او دویم صورت دا چي د هدی ځاروی د ځان سره بوځي (په اول صورت کي تر عمره کولو وروسته حلالیږي، بیا دي د ذو الحجې پر اتمه د حج احرام تړي. او په دویم صورت کي تر عمره کولو وروسته نه حلالیږي بلکي د حج تر پوره کولو وروسته له دواړو احرامونو څخه یو ځای حلالیږي). د هر یوه حکم جلا دی. مصنف رَحِمَهُ الله اولاً د اول صورت بیان کوي، نو فرمایي چي حجِ تمتّع کونکی چي کله و مکې شریفې ته داخل سي، نو اول دي طوافِ قدوم نه کوي، بلکي د عمرې افعال دي وکړي، یعني اول دي د عمرې طواف وکړي، او تلبیه کوم چي یې تر اوسه ویله، هغه دي پرېږدي. په دې

طواف کې دې اضطباع او رمل هم وکړي، بیا دې دوه رکعته صلاة طواف وکړي او د صفا او مروه تر مینځ دې سعی هم وکړي او بیا دې سر وخریي یا دې ورېښتان کوچني کړي او احرام دې خلاص کړي، تر دې وروسته دې د مکې د اوسېدونکو په شان بغیر له احرام ترلو څخه هلته پاته سي. او دویم صورت یعني که چیري یې د هدی څاروی (د قرباني څاروی) د ځان سره بېولی وي، نو د هغه بیان به په را روان عبارت کې وسي.

﴿۱۴۰۲﴾ وَإِنْ سَاقَ الْهَدْيَ او که هدی یې (د ځان سره) بېولې وي لَا يَتَحَلَّلُ مِنْ عُمْرَتِهِ نو له عمرې څخه نه حلالیږي (یعني په دې صورت کې په عمره کولو سره نه حلالیږي، بلکې محرم پاتیږي) فَإِذَا جَاءَ يَوْمُ التَّرْوِيَةِ بیا چې کله چې یومُ الترویه (د ذو الحجې اتمه ورځ) راسي يُحْرِمُ بِالْحَجِّ مِنَ الْحَرَمِ نو د حج احرام دې وتړي له (همدې) حرم شریف څخه وَيَخْرُجُ إِلَى مِنًى او منیٰ شریفې ته دې ووځي فَإِذَا رَمَى جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ يَوْمَ النَّحْرِ بیا چې کله په یومُ النحر (د لوی اختر په ورځ) جمرهٔ عقبه وویلي (د جمرهٔ عقبه له رمی څخه فارغ سي) لَزِمَهُ ذَبْحُ شَاةٍ أَوْ سُبْعُ بَدَنَةٍ نو پر هغه دیوه پسه یا د بُلني (اوښ یا غویي) د اُوومي حصې ذبح (قرباني) لازمیږي فَإِنْ لَمْ يَجِدْ بیا که (د قربانۍ قدرت) نه ومونډي فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ قَبْلَ مَجِيءِ يَوْمِ النَّحْرِ نو د دریو ورځو روژې (پر هغه لازم) دي د یومُ النحر له راتګ څخه مخکې وَسَبْعَةٍ إِذَا رَجَعَ كَالْقَارِنِ او اُووه روژې (تر هغه وروسته بلندي لازم) دي کله چې را واپس سي (یعني له حج څخه فارغ سي) د قارن په شان فَإِنْ لَمْ يَصُمِ الثَّلَاثَةَ حَتَّى جَاءَ يَوْمُ النَّحْرِ بیا که (مخکینی) دری روژې نه ونیسي تر دې چې یومُ النحر (د لوی اختر ورځ) راسي تَعَيَّنَ عَلَيْهِ ذَبْحُ شَاةٍ نو پر هغه د پسه ذبح کول متعیّن کیږي وَلَا يُجْزِئُهُ صَوْمٌ وَلَا صَدَقَةٌ او (اوس) نه کافي کیږي د هغه لپاره روژه او نه صدقه.

**تشریح:** فرمایي چې که حج تمتع کونکی د هدی څاروی د ځان سره بېولی وي، نو بیا هغه په عمره کولو سره حلال نه ګرځي، بلکې محرم پاتیږي، نو ځکه تر عمره کولو وروسته دې سر نه خریي، همداسې دې په احرام کې پاته سي (او که تر عمرې وروسته یو جنایت وکړي، نو دَم واجبیږي)، بیا چې کله د ذوالحجې اتمه ورځ راسي، نو په دې ورځ دې سهار د حرم په حدودو کې له خپل ځای

څخه د حج احرام وتړي او منیٰ ته دي روان سي او مستحب دا ده چي مسجدِ حرام ته راسي. طواف او صلاة طواف (دوه رکعته) وکړي بیا احرام وتړي او منیٰ ته ولاړ سي، بیا دي د ذو الحجې په لسمه د جمرهٔ عقبه تر رمي وروسته د تمتّع قرباني وکړي (ځکه ده په یوه سفر کي عمره او حج دواړه اداء کړل. نو ځکه د شکرانې په توګه به قرباني کوي چي هغه یو شاة دی یا د بدنې اوومه حصه ده) او بیا دي حلق یا قصر وکړي او احرام دي خلاص کړي، اوس هغه د حج او عمرې دواړو له احرام څخه حلال سو. د پاته عبارت تفصیل د حجِ قِران په فصل کي د «۱۳۹۸» نمبر مسئلې د تشریح په آخر کي تېر سو.



## د عمرې حکم او وخت

«۱۴۰۲» اَلْعُمْرَةُ سُنَّةٌ عمره سنت ده.

«۱۴۰۳» وَتَصِحُّ فِیْ جَمِیْعِ السَّنَةِ او عمره په ټوله کال کي صحیح کېږي وَتُكْرَهُ یَوْمَ عَرَفَةَ وَیَوْمَ النَّحْرِ وَأَیَّامَ التَّشْرِیْقِ او د عرفات په ورځ او د قربانۍ (لوی اختر) په ورځ او د تشریق په ورځو کي مکروه ده.

**تشریح**: عمره کول فرض یا واجب نه ده، بلکي د صحیح قول مطابق د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز سنتِ مؤکده ده.

وتصح فی جمیع إلخ: عمره د کال په هره میاشته کي کول صحیح دي، خو څرنګه چي د رژوې مبارکي په میاشته کي د اعمالو ثواب څو چنده زیاتېږي، د بخاري شریف په حدیث کي دي چي نبي کریم ﷺ وفرمایل چي د رمضان عمره د پوره حج برابره ده. لهذا که موقع وي، نو د روژې په میاشته کي د عمرې کوشش کول پکار دي، او د حج په ورځو (یعني له نهمي ذو الحجې څخه تر دیارلسمي ذو الحجې پوري په دې ورځو) کي د عمرې احرام تړل او عمره کول ښه نه دي او مکروه دي.

او صاحب د انوار الایضاح د "ایضاح المسالک" په حواله سره لیکلي دي چي په دې ورځو کي د عمرې احرام تړل ناجائز او ممنوع دي؛ ځکه چي دغه ورځي الله تعالیٰ د حج د ارکانو لپاره خاص

کړي دي، لهذا که په دې ورځو کې عمره وکړل سي، نو د حج مناسک به په صحيح طريقه سره اداء نه سي، نو ځکه په دې ورځو کې عمره کول ممنوع او ګناه ده (دا حکم به د حاجي لپاره وي). (انوار الايضاح)

## د عمرې کولو طريقه

﴿۱۴۰۵﴾ وَكَيْفِيَّتُهَا أَنْ يُّحْرِمَ لَهَا مِنْ مَكَّةَ مِنَ الْحِلِّ او د عمرې طريقه دا ده چي احرام وتړي د عمرې لپاره له مکې څخه (يعني څوک چي په مکه کي وي) له حلّ څخه بِخِلَافِ إِحْرَامِهِ لِلْحَجِّ په خلاف د ده د احرام تړلو د حج لپاره فَإِنَّهُ مِنَ الْحَرَمِ ځکه چي هغه له حرم څخه دی (يعني له حرم شريف څخه تړل کيږي، نه له حلّ څخه).

**لغات:** ﴿حِلّ﴾ د حرم او ميقات په مينځ کي واقع حصې ته او دننه ميقات ته حلّ ويل کيږي، يعني کومه سيمه او علاقه چي د ميقات او حرم شريف تر مينځ واقع ده، هغه ته حلّ وايي، همدارنګه ميقات هم په حلّ کي راځي، ﴿حرم﴾ د کعبې شريفې څلور سره طرفونو ته مخصوص علاقه ده او هغه د حکومت له طرفه نښاني کړل سوې ده.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي کوم خلک په مکه شريفه کي اوسيږي، د هغو لپاره د عمرې د احرام تړلو ميقات حل دی، يعني دوی به له حرم يا له مسجد حرام څخ د عمرې احرام نه تړي، بلکي حلّ ته به ځي او هلته چي له کومه ځايه وغواړي، احرام دي وتړي، لېکن افضل دا ده چي له تنعيم څخه احرام وتړي کوم چي تر ټولو نژدې حلّ دی. او آفاقي (بهرنی کس) که د عمرې په نيت سره مکې شريفې ته راځي، نو له خپل ميقات څخه به د عمرې احرام وتړي، او تر دې وروسته به مکې ته راسي، طواف او سعي بين صفا والمروه به وکړي، بيا به حلق وکړي او احرام به خلاص کړي. نو عمره وسوه.

او پاته سو حج، نو په هغه کي چي کوم څوک د مکې شريفې وي، هغه به له حرم يا مسجد حرم څخه احرام تړي، او کوم کس چي له بهر څخه راځي (يعني آفاقي)، هغه به له خپل ميقات څخه احرام تړي. (انوار الايضاح، ثمرة النجاح)

## د عمرې افعال

﴿۱۴۰۶﴾ وَأَمَّا الْآفَاقِيُّ الَّذِيْ لَمْ يَدْخُلْ مَكَّةَ او کوم چي هغه اطرافي (بهرنی) کس دی کوم چي مکې ته نه وي داخل سوی فَيُحْرِمُ إِذَا قَصَدَهَا مِنَ الْمِيْقَاتِ نو هغه دي (د عمرې) احرام له ميقات څخه وتړي کله چي د مکې قصد وکړي ثُمَّ يَطُوْفُ وَيَسْعٰى لَهَا بيا دي طواف وکړي او

سعی دي وکړي د عمرې لپاره ثُمَّ يَحْلِقُ بيا دي سر وخريي وَقَدْ حَلَّ مِنْهَا او (اوس) هغه له عمرې څخه حلال سو كَمَا بَيَّنَّاهُ بِحَمْدِ اللهِ لكه (مخكي چي) مونږ الحمد لله دا بیان کړه.

**لغات**: ﴿آفاقي﴾ مخکي يې څو ځله تعريف تېر سوی دی چي هغه حاجي يا عمره کونکي ته وايي کوم چي له ميقات څخه بهر له بل وطن او بل ملک څخه حرم شريف ته راغلی وي، مثلاً افغاني، پاکستاني، يمني، مصري او داسي نور، له آفاق څخه مراد دلته د دنيا هر هغه ملک او علاقه ده کوم چي له ميقات څخه بهر وي، د هغه اوسېدونکي ته آفاقي ويل کيږي او د هغه لپاره له احرام څخه بغير له ميقات څخه تېرېدل ممنوع دي، کله چي يې حرم ته د تللو اراده وي.

**تشريح**: عمره کونکی که آفاقي وي، نو هغه دي له خپل ميقات څخه د عمرې په نيت احرام وتړي او تر احرام تړلو وروسته دي راسي، طواف دي وکړي يعني اُووه دَوره (اووه شوطه) دي پر کعبې شريفې راوګرځي، بيا دي همداسي سعی بين الصّفا والمره وکړي، بيا دي سر وخريي، يا دي وړېښتان کوچني کړي او له عمرې څخه دي حلال سي، دا د عمرې افعال دي.

خلاصه دا چي د عمرې دا پنځه (۵) اعمال دي: ① احرام تړل، ② تر هغه وروسته د احرام دوه رکعته لمونځ کول، ③ بيا په کعبه شريفه باندي اُووه دَوره طواف کول (په طواف کي رمل او اضطباع کول)، ④ تر هغه وروسته د طواف دوه رکعته لمونځ کول، ⑤ بيا د صفا او مروه تر مينځ اُووه دَوره سعی کول، ⑥ بيا حلق يا قصر کول.

## په حج کي د عرفات او جمعې ورځ سره يو ځای کېدل
## (کوم ته چي د عوامو په اصطلاح حج اکبر ويل کيږي)

﴿۱۲۰۷﴾ وَأَفْضَلُ الْأَيَّامِ يَوْمُ عَرَفَةَ إِذَا وَافَقَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ او افضل د ورځو د عرفات ورځ ده، کله چي موافقه (برابره) سي د جمعې د ورځي سره (يعني کله چي په حج کي عرفات د جمعې په ورځ وي) وَهُوَ أَفْضَلُ مِنْ سَبْعِينَ حَجَّةً فِي غَيْرِ جُمُعَةٍ او دا افضل دي له اويا (۷۰) هغه حجونو څخه کوم چي په جمعه کي نه وي (يعني چي په هغه کي عرفات د جمعې په ورځ نه وي) رَوَاهُ صَاحِبُ مِعْرَاجِ الدِّرَايَةِ بِقَوْلِهِ: دا (خبره) صاحب د معراج الدّراية رَحِمَهُ الله نقل کړې ده په خپل دې قول سره: (وقد صحّ...) وَقَدْ صَحَّ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ أَنَّهُ قَالَ: چي له رسول الله ﷺ څخه په صحيح توګه (په صحيح روايت سره) ثابت دي چي هغوی ﷺ وفرمايل: أَفْضَلُ الْأَيَّامِ يَوْمُ عَرَفَةَ

إِذَا وَافَقَ جُمُعَةً وَهُوَ أَفْضَلُ مِنْ سَبْعِيْنَ حَجَّةً چې افضله دورځو د عرفات ورځ ده کله چې موافقه (برابره) سي د جمعې د ورځې سره او دا له اويا (۷۰) حجونو څخه افضل دي ذَكَرَهُ فِي تَجْرِيْدِ الصِّحَاحِ بِعَلَامَةِ الْمُوَطَّا دا يې په "تجريد الصحاح" کي د مؤطا په علامت (په حواله) سره ذکر کړي دي وَكَذَا قَالَ الزَّيْلَعِيُّ شَارِحُ الْكَنْزِ او همداسي د کنز الدقائق شارح علامه زيلعي رَحِمَهُ الله فرمايلي دي.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې که عرفات د جمعې په ورځ وي، نو د دې حج فضيلت ډېر زيات دی چې دا حج د نورو ورځو له اويا (۷۰) حجونو څخه افضل دی؛ ځکه د عرفات ورځ هم افضله ده او د جمعې ورځ هم افضله ده، نو د دواړو د يو ځای کېدلو په صورت کي فضيلت ډېر زياتيږي، لکه څرنګه چې په حديث کي دي چې "افضله دورځو ورځ د عرفات ده او کله چې عرفات او د جمعې ورځ سره يو ځای سي نو هغه حج له اويا حجونو څخه افضل دی"، همدارنګه کله چې عرفات د جمعې په ورځ سي، نو د عرفات په ميدان کي وقوف کونکو ټولو حاجيانو ته مغفرت کول کيږي. (زيلعي ج: ۲، ص: ۲۶، طحطاوی علی مراقی الفلاح ص: ۴۰۳، ايضاح المناسک ص: ۵۲)

**فايده**: په عوامو کي مشهوره ده چې کوم حج د جمعې په ورځ واقع سي، هغه حجِ اکبر دی، د حديثو په کتابو کي د دې ثبوت نه ترلاسه کيږي او نه د فقهي په کتابو او د مجتهدينو په اقوالو کي د دې ثبوت سته، خو په حديث او فقه کي د دې صراحت سته چې حجِ اصغر عمره ته وايي او حجِ اکبر خپله حج ته وايي "الحج الأكبر يوم النحر والحج الأصغر العمرة" (ترمذی شريف ج: ۱، ص: ۱۸۶) قال الزهری والشعبی وعطاء: الأكبر الحجّ والأصغر العمرة. (شامي ج: ۲، ص: ۶۲۲، ط: کراچي)

## په مکه شريفه کي استوګنه اختيارول

﴿۱۲۰۸﴾ وَالْمُجَاوَرَةُ بِمَكَّةَ مَكْرُوْهَةٌ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَىٰ او په مکه کي اوسېدل (اړول) مکروه دي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز لِعَدَمِ الْقِيَامِ بِحُقُوْقِ الْبَيْتِ وَالْحَرَمِ د بيتُ الله (کعبې شريفې) او حرم شريف د حقوقو د نه اداء کېدلو په وجه (يعني دا توان نه لري چې د کعبې او حرم شريف حقوق همېشه اداء او ترسره کړل سي) وَنَفَى الْكَرَاهَةَ صَاحِبَاهُ رَحِمَهُمَا اللهُ تَعَالَىٰ او نفي

کړې يې دی (دا) کراهت د امام صاحب رَحِمَهُ الله دوو ملګرو (يارانو) الله تعالى دې پر دوی رحم وکړي (يعني امام محمد او امام ابو يوسف رَحِمَهُمَا الله د دې نفي کړې دې).

**لغات**: ﴿مجاورة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی، جَاوَرَهُ مُجَاوَرَةً و جِوَارًا : نږدې اوسېدل، په څنګ کې جوخت ور سره اوسېدل، که په صله کې يې مسجد ذکر سي، نو معنىٰ يې ده : اعتکاف پکښې کول.

**تشريح**: امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چي مکّه يو معزّز او محترم ځای دی، چي د هغه فضائل په قرآن او حديث کي بې شمېره دي، په قرآن شريف کي د "بلد أمين" په نوم سره قسم په اخيستل سوی دی، نو که څوک هلته زيات وخت پاته سي، نو ممکنه ده چي د هغې کما حقهٗ احترام او د هغې د حقوقو رعايت نه وکړل سي او په زړه کي د دې مقدّس ځای د عظمت او لوړي مرتبې کمي راسي، لکه څرنګه چي ښکاره همدا ده چي تر ډېره وخته د يو ځای يا يو کس د حقوقو رعايت کول او کما حقهٗ احترام يې کول مشکل دي (خصوصاً د عوامو لپاره)، نو پر دې بنياد هلته د بهرني خلګو لپاره مستقل پاتېدل او استوګنه اختيارول مکروه دي (او په عمدةُ الفقه کي دي چي امام صاحب رَحِمَهُ الله د دې کراهت حکم د خپلې زمانې په اعتبار سره ورکړی دی، که چيري هغه زموږ د زمانې مجاورين ليدلي وای. نو بېله شکه به يې هلته مستقل قيام حرام ګرځولی وای)، ليکن بيا هم که يو څوک هلته د استېدلو په صورت کي د دې مقدّس ځای پوره ادب او احترام کولای سي او هلته د زړه په زيات رغبت سره د حقوقو رعايت کولای سي (او له ګناهونو او ممنوعاتو څخه په کلکه ځان ساتلای سي، کوم چي ډېر مشکل دي)، نو د هغه لپاره په مکه مکرّمه کي مستقل پاتېدل بلا نزاع افضل دي.

او صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د کراهت نفي په دې وجه کړې دي چي په دې مقدّس او مبارک ځای کي وخت تېرول او د عبادت موقع تر لاسه کېدل يو غنيمت دی، په دې کي چي څومره وخت هم تېر سي او د عبادت موقع تر لاسه سي، نو هم کم دی. او صاحب د ثمرةُ النجاح د دې وجه دا هم ليکلې ده چي حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام د مکې مکرّمې د استوګنې لپاره دعاء کړې ده لکه څرنګه چي په دې آيت کي دي: ﴿رَبَّنَا إِنِّي أَسْكَنتُ مِن ذُرِّيَّتِي بِوَادٍ غَيْرِ ذِي زَرْعٍ عِندَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ رَبَّنَا لِيُقِيمُوا الصَّلَاةَ فَاجْعَلْ أَفْئِدَةً مِّنَ النَّاسِ تَهْوِي إِلَيْهِمْ وَارْزُقْهُم مِّنَ الثَّمَرَاتِ لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُونَ﴾ [سورة ابراهيم: ۳۷]، په دې آيت کي حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام کعبې شريفې ته د نږدې اوسېدلو دعاء کړې ده، همدارنګه په حديث شريف کي له حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه روايت دی فرمايي: کله چي موږ مديني شريفې ته راغلو، نو حضرت ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او داسې نورو صحابه وو نبي کريم ﷺ ته شکايت وکړی، نبي کريم ﷺ چي د دوی شکايت (او ديغت) وليدی، نو دا دعاء يې وکړه "اَللّٰهُمَّ حَبِّبْ إِلَيْنَا الْمَدِينَةَ كَمَا حَبَّبْتَ مَكَّةَ أَوْ

أشَدّ...." (مسلم شریف، باب الترغیب فی سکن المدینة... ص: ۵۷۶، حدیث رقم: ۱۳۷۶، ۳۳۴۲)، له دې حدیث څخه دا هم معلومیږي چې د مکې مکرّمې سره محبت ساتل پکار دي، چې په دې سره (د صاحبینو د تائید لپاره) استدلال کېدلای سي چې په مکه مکرّمه کې قیام کول مکروه نه دي (خو د هغه کس لپاره چې په ځان یې پوره باور وي). (انوار الایضاح، ثمرة النجاح)



**فایده:** د حج د دریو سره قسمونو او د عمرې هغه ټوله افعال کوم چې فرض یا واجب او داسې نور دي، هغوی ټوله د آسانۍ لپاره په جلا، جلا نقشه کې پېشول کیږي، چې په ټولو افعالو باندې یو ځای معلومات راسي.

## د حج افراد افعال او د هغوی حکم

| ۱ | د حج احرام | شرط |
|---|---|---|
| ۲ | طوافِ قدوم | سنّت |
| ۳ | د منیٰ قیام (یعني په منیٰ کې پاتېدل او شپه تېرول) د اتم (۸) ذو الحجې له ماپښین څخه د نهم (۹) ذو الحجې تر سهاره | سنّت |
| ۴ | وقوفِ عرفات پر (۹) د ذو الحجې | رکن |
| ۵ | وقوفِ مزدلفه پر (۱۰) د ذوالحجې | واجب |
| ۶ | د جمرۂ عقبه (آخري شیطان) ویشتل پر (۱۰) د ذوالحجې | واجب |
| ۷ | د سرو ښتان خرییل یا کوچني کول (لنډول) | واجب |
| ۸ | طوافِ زیارت د (۱۰) ذو الحجې څخه بیا تر (۱۲) ذوالحجې پورې | رکن |
| ۹ | رمل او اضطباع | سنّت |
| ۱۰ | سعی | واجب |
| ۱۱ | د دریو سره جمراتو رمی (درې سره شیطانان ویشتل) پر ۱۱، ۱۲ د ذو الحجې | واجب |
| ۱۲ | په منیٰ کې د رمی شپې تېرول | سنّت |
| ۱۳ | طوافِ وداع (خپل وطن ته د واپسۍ په وخت کې) | واجب |

## د حج قران افعال او د هغوی حکم

| | | |
|---|---|---|
| ۱ | د حج او عمرې احرام | شرط |
| ۲ | طواف عمره (۴ شوطه) | رکن |
| ۳ | رمل او اضطباع | سنت |
| ۴ | د عمرې سعی | واجب |
| ۵ | طواف قدوم سره د رمل او اضطباع | سنت |
| ۶ | د حج سعی | واجب |
| ۷ | د منیٰ قیام د اتم (۸) ذو الحجې له ماپښین څخه د نهم (۹) ذو الحجې تر سهاره | سنت |
| ۸ | وقوف عرفات (۹ ذو الحجة) | رکن |
| ۹ | وقوف مزدلفه (۱۰ ذو الحجة) | واجب |
| ۱۰ | د جمرهٔ عقبه (آخري شیطان) ویشتل (۱۰ ذو الحجة) | واجب |
| ۱۱ | قرباني د ۱۰ ذو الحجې څخه بیا تر ۱۲ ذو الحجې پورې | واجب |
| ۱۲ | د سر وېښتان کوچني کول | واجب |
| ۱۳ | طواف زیارت کول | رکن |
| ۱۴ | د درېو سره جمراتو رمی (درې سره شیطانان ویشتل) پر ۱۱، ۱۲ د ذو الحجې | واجب |
| ۱۵ | په منیٰ کې د رمی شپې تېرول | سنت |
| ۱۶ | طواف وداع (د واپسۍ په وخت کې) | واجب |

## د حج تمتع افعال او د هغوی حکم

| | | |
|---|---|---|
| ۱ | د حج او عمرې احرام | شرط |
| ۲ | طواف عمره | رکن |
| ۳ | رمل او اضطباع | سنت |
| ۴ | د عمرې سعی | واجب |
| ۵ | د سر وېښتان خرېیل یا کوچني کول | واجب |

| ۶ | د حج احرام تړل | شرط |
|---|---|---|
| ۷ | د منیٰ قیام داتـم (۸) ذو الحجې لـه ماپښـین څخـه د نهـم (۹) ذو الحجې تر سهاره | سنّت |
| ۸ | وقوفِ عرفات (۹ ذوالحجة) | رکن |
| ۹ | وقوفِ مزدلفه (۱۰ ذوالحجة) | واجب |
| ۱۰ | د جمرهٔ عقبه (آخري شیطان) ویشتل (۱۰ذوالحجة) | واجب |
| ۱۱ | قرباني | واجب |
| ۱۲ | طوافِ زیارت کول | رکن |
| ۱۳ | دحج سعي | واجب |
| ۱۴ | د دریو سره جمراتو رمی (درې سره شیطانان ویشتل) پر ۱۱، ۱۲ د ذو الحجې | واجب |
| ۱۵ | په منیٰ کې د رمی شپې تېرول | سنّت |
| ۱۶ | طوافِ وداع | واجب |

## د عمرې افعال او د هغوی حکم

| ۱ | احرام تړل | شرط |
|---|---|---|
| ۲ | طواف | رکن |
| ۳ | رمل | سنّت |
| ۴ | اضطباع | سنّت |
| ۵ | سعی | واجب |
| ۶ | دسرو ښتان خرییل یا کوچني کول (لنډول) | واجب |



# بَابُ الْجِنَايَاتِ

(دا) باب د جنایتونو (په بیان کې) دی

د حج او احرام له بیان څخه تر فراغت وروسته اوس هغه عوارض ذکر کوي کوم چې احرام ته عارضیږي، او معلومه خبره ده چې عوارض وروسته پیښیږي، نو ځکه یې بَابُ الْجِنَايَات وروسته ذکر کړی؛ جنایات جمع د جنایةٌ ده، لغوي معنیٰ یې ده: جرم، او اصطلاحي معنیٰ یې ده: هغه کار چې په حالت د احرام کې یا په بله وینا د حج او عمرې په دوران کې شرعاً ممنوع وي او په جنایاتو کې د بعضو تعلق د احرام سره دی او د بعضو تعلق د حرم د حدودو سره دی، پر دغه جنایاتو په شریعت کې څه جزاګانې مقرّره دي کوم چې پر جنایت کونکي (جنایتکاره) باندي لازمیږي، برابره ده هغه قصداً جنایت کړی وي او که په غلطي سره، په مسئله خبر وي او که نه وي، مالدار وي او که فقیر وي، د ټولو حکم برابر دی. (عمدة الفقه)

**د بعضي اصطلاحاتو وضاحت:** د جنایاتو په باب کې څه خاص اصطلاحات مستعمل دي، د هغوی وضاحت په لاندي ډول دی:

دَم: له دې څخه مراد یو پسه، وزګری او داسي نور (یعني مېږه او بزه) دي، یا د لوی څاروي (یعني د اوښ، غویي او داسي نورو) اُوومه حصه ده، بدنة: له دې څخه مراد اُوښه، غویی، ګامېښه او داسي نور څاروبان دي، صدقة: عموماً له دې څخه مراد د یوه صدقهٔ فطر (سرسایې) مقدار وي، یعني یو صاع اُوربشي، یا یو صاع خرماوي یا کشمش او داسي نور یا نیم صاع غنم یا د هغه قیمت، خو بعضي وخت د صدقه مقدار له دې څخه کم یا زیات هم کیږي چې د هغه تفصیل به د مسئلو په ضمن کې درج سي، جزاء، کفارة، فدیة: د دې الفاظو اطلاق د موقع مطابق پر دَم او صدقه دواړه باندي کیږي، لهذا چیري چې دا الفاظ استعمال وي، هلته د نورو شرائطو په خیال ساتلو سره به حکم متعیّنول کیږي.

## د جنایت قسمونه

﴿۱۳۰۹﴾ هِيَ عَلٰى قِسْمَيْنِ جنایات پر دوه قسمه دي جِنَايَةٌ عَلَى الْإِحْرَامِ (۱) (یو) جنایت (جرم) پر احرام دی (یعني داسي فعل کول کوم چې د احرام په حالت کې ممنوع وي) وَ جِنَايَةٌ عَلٰى

الْحَرَمِ (۲) او (دويم) جنايت پر حرم دی (يعني داسي فعل کول کوم چي په حرم کي ممنوع وي) وَالثَّانِيَةُ لَاتَخْتَصُّ بِالْمُحْرِمِ او دويم (قسم) جنايت د محرم سره خاص نه دی (بلکي هر څوک چي هم دا جنايت وکړي، برابره ده محرم وي او که غيرِ محرم، نو هغه جنايتکار او مجرم دی).

**لغات**: ﴿مُحْرِم﴾ د افعال د باب فاعل دی: احرام تړونکی، احرام والا.

**تشريح**: جنايت پر دوه قسمه دی: ① يو جنايت دا دی چي د حلال والي په حالت کي (يعني چي انسان احرام نه وي تړلی) د هغه کول جائز وي، لېکن د احرام په حالت کي د هغه کار کول ناجائز او جرم سي، لکه ګنډل سوي (جوړه، تياره) کپړه اغوستل جائز دي، لېکن کله چي احرام وتړي (نو محرم سو)، نو تر دې وروسته د ګنډل سوي جامې اغوستل ناجائز سوه، دا د احرام جنايت (جنايت على الإحرام) سو. دا جنايت برابره ده محرم يې په حرم کي وکړي او که يې له حرم څخه دباندي (بهر) وکړي، په هر وخت کي جنايت دی، په دې شرط چي په احرام کي وي يعني محرم وي، ② دويم قسم د حرم جنايت دی، مثلاً ښکار کول جائز دي، لېکن په حرم کي ښکار کول جنايت دي، دا قسم جنايت (جنايت على الحرم) برابره ده احرام والا (محرم) يې وکړي او که بغير له احرام والا (غيرِ محرم) وکړي، په هر صورت کي جنايت دی، په دې شرط چي په حرم کي وي. (ثمرة النجاح)

﴿۱۳۱۰﴾ وَجِنَايَةُ الْمُحْرِمِ عَلٰى أَقْسَامٍ او د محرم جنايت پر څو قسمه دی مِنْهَا مَا يُوْجِبُ دَمًا له هغوی څخه بعضي خو هغه دي کوم چي دَم (پسه وغيره) واجبوي وَمِنْهَا مَا يُوْجِبُ صَدَقَةً او بعضي هغه دي کوم چي صدقه واجبوي وَهِيَ نِصْفُ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ او هغه (د صدقې مقدار) نيم صاع دی له غنمو څخه وَمِنْهَا مَا يُوْجِبُ دُوْنَ ذٰلِكَ او بعضي هغه دي کوم چي له دې څخه هم کم (مقدار) واجبوي وَمِنْهَا مَا يُوْجِبُ الْقِيْمَةَ او بعضي هغه دي کوم چي قيمت واجبوي (يعني چي د هغه په وجه قيمت واجبيږي) وَهِيَ جَزَاءُ الصَّيْدِ او هغه د ښکار جزاء ده (يعني که څوک په حرم کي ښکار وکړي، نو دې جنايت په جزاء (بدله) کي د ښکار قيمت واجبيږي) وَيَتَعَدَّدُ الْجَزَاءُ بِتَعَدُّدِ الْقَاتِلِيْنَ الْمُحْرِمِيْنَ او جزاء (بدله) متعدده (مکرره) کيږي د (احرام تړونکو) قاتلانو (ښکار کونکو) په تعدّد (تکرر) سره (يعني که احرام تړونکي قاتلان څو عدده وي، نو جزاء هم د هغه مطابق څو عدده لازميږي).

**لغات:** ﴿جنایة﴾ جرم (د سزا قابل جرم)، د ګناه کار، ﴿دَم، صدقة﴾ د باب په شروع کي د دې وضاحت وسو، ﴿صید﴾ ښکار، ښکار کړی سوی څاروی، ﴿یتعدد﴾ د تفعّل د باب مضارع ده، مصدر: تَعَدّدًا: څو دانې کېدل (یعني له یوه څخه زیات کېدل)، څو واره کېدل (له یوه څخه زیات واره یو کار یا یو شی کېدل)، شمېر والا کېدل (عدد والا کېدل).

**تشریح:** د محرم جنایت پر څلور قسمه دی (یعني که څوک د احرام په حالت کي جنایت او جرم وکړي. نو د هغه څلور قسمه دي)، د هر یوه تفصیل خپله مصنف رَحِمَهُ الله په را روانو عباراتو کي بیان کړی دی، خو د آسانی په خاطر به یې مونږ دلته هم مختصراً ذکر کړو: ① یو قسم جنایت دا دی چي د هغه په جزاء (بدله) کي دَم لازمیږي، مثلاً که رمی (د شیطانانو ویشتل) پرېږدي، نو دَم لازمیږي (د دَم وضاحت مخکي وسو چي مراد څني پسه او داسي نور دي)، ② او بل قسم جنایت دا دی چي د هغه په جزاء کي صدقه لازمیږي، مثلاً د احرام په حالت کي که تر یوه اندام (عضو) کم خوشبویي ولګوي، نو صدقه لازمیږي، دلته له صدقه څخه مراد نیم صاع غنم دي، ③ دریم قسم جنایت دا دی چي د هغه په وجه له نیم صاع غنمو څخه کمه صدقه لازمیږي، مثلاً د احرام په حالت کي که سپږه مړه کړي، نو له نیم صاع غنمو څخه کم لازمیږي، ④ څلورم قسم جنایت دا دی چي قیمت لازمیږي، مثلاً که د حرم شریف ښکار قتل کړي، نو د هغه په جزاء (بدله) کي د ښکار قیمت لازمیږي.

داحرام په حالت کي د جنایت کولو دغه څلور قسمونه دي.

ویتعدد الجزاء الخ: په دې سره یو قاعده بیانوي، هغه دا ده چي د جنایتکاره په متعدد کېدلو (مکرر کېدلو) سره جزاء هم متعدده کیږي (مکرره کیږي) یعني چي څومره مجرمان وي، هغومره جزاګاني (بدلې) هم واجبیږي، مثلاً دوه محرم (احرام تړونکي) کسان په ګډه یو ښکار قتل کړي، نو څرنګه چي د دې جنایت (ښکار کولو) تعلق د دوو محرمو (یا په بله وینا د دوو احرامونو) سره دی، نو ځکه جزاء هم دوې کیږي یعني دوې بدلې لازمیږي (چي هر یو به خپله جزاء ورکوي)، او که دوه غیر محرم کسان یعني چي هغو احرام نه وي تړلی، د حرم شریف یو ښکار په ګډه قتل کړي، نو څرنګه چي دلته د جنایت تعلق د حرم شریف سره دی (ځکه چي ښکار کونکي محرم نه دي، بلکي غیرِ محرم دي)، او حرم شریف یو دی او ښکار هم هغو یو کړی دی (نو ګواکي جنایت متعدد نه سو)، لهذا په یوه جنایت کي د دواړو شرکت راغلی، نو ځکه یوه جزاء واجبیږي.

## د کومو جنایاتو په وجه دَم واجبیږي؟ (د احرام په حالت کې خوشبویي لګول)

﴿۱۳۱۱﴾ فَالَّتِي تُوْجِبُ دَمًا نو هغه جنایت کوم چې دم واجبوي هِيَ مَالَوْ طَيَّبَ مُحْرِمٌ بَالِغٌ عُضْوًا هغه (دا) دي چې یو بالغ محرم (احرام تړونکی) پر یو اندام خوشبویي ولګوي.

**لغات:** ﴿طَيَّبَ﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: خوشبوداره کول، خوشبویي باندې لګول.

**تشریح:** اوس له دې ځایه هغه جنایات (جرمونه) بیانوي چې د هغوی په کولو سره دَم واجبیږي. مونږ د آسانۍ لپاره هر یو پر نمبر جلا، جلا بیانوو (مصنف رَحِمَهُ الله تقریباً دوولس (۱۲) جنایات ذکر کړي دي):

① ... که محرم د خپل جسم پر یوه پوره غړي (اندام) هسې یو ډول خوشبویي ولګوي، نو پر هغه دَم واجبیږي، د پوره غړي مثال لکه سر یا مخ یا ږیره او داسې نور، او د خوشبویۍ مثال لکه مشک، عنبر، د ګلاب عطر، د چنبېلي او داسې نور عطرونه.



## قاعدهٔ کلیه

کوم شیان چې پر بدن لګول کیږي، هغه پر درې قسمه دي: ① خالص خوشبویي لکه مشک او عنبر، د ګلاب او داسې نورو عطرونه، دا قسم خوشبویي د احرام په حالت کې استعمالول هر ډول مُوجِب د جزاء ده، تر دې چې که دا شیان د دواء په توګه استعمال کړي، نو بیا هم جزاء لازمیږي، ②دویم قسم هغه شیان دي کوم چې خپله خو خوشبویي نه وي، لېکن له هغوی څخه خوشبویي جوړول کیږي، لکه د زیتون تېل (روغن) او د کونجتو تېل او داسې نور تېل، په دا قسم شیانو کې نیت لره اعتبار دی، که د خوشبویي په نیت سره یې دا استعمال کړي وي، نو جزاء لازمیږي، او که محض د غذا یا دواء په توګه یې استعمال کړي وي، نو جزاء نه لازمیږي، ③ درېیم قسم هغه شیان دي کوم چې نه خو خپله خوشبویي وي او نه له هغوی څخه خوشبویي جوړول کیږي، لکه وازګه، غوړزګي، واسلین، نا خوشبویه کریم او داسې نور، نو د هغوی په استعمال سره هیڅ جزاء نه لازمیږي. (انوار الایضاح بحوالهٔ زبدة المناسک ص: ۳۴۷- ۳۴۹)

## د احرام په حالت کې نکریزي یا خوشبوداره روغن لګول، یا ګنډل سوې جامه اغوستل

﴿۱۳۱۲﴾ أَوْ خَضَبَ رَأْسَهُ بِحِنَّاءٍ یا خپل سر په نکریزو ورنګوي (سُور کړي).

﴿۱۳۱۳﴾ أَوِ ادَّهَنَ بِزَيْتٍ وَنَحْوِهِ یا د زیتون تېل او (یا) داسې نور ا تېل (روغن) او لګوي.

﴿۱۳۱۴﴾ أَوْ لَبِسَ مَخِيْطًا یا ګنډل سوې جامه واغوندي (یوه پوره ورځ).

﴿۱۳۱۵﴾ أَوْ سَتَرَ رَأْسَهُ يَوْمًا كَامِلًا یا یوه پوره ورځ خپل سر پټ کړي.

**لغات:** ﴿خضب﴾ د ضرب د باب ماضي ده: رنګول، د یو شي رنګ وربدلول. ﴿حِنَاء﴾ نکریزي، ﴿زیت﴾ په اصل کي د زیتون تېل ته وایي، همدارنګه په مطلق تېلو او روغنو باندي یې هم اطلاق کیږي.

**تشریح:** ②... نکریزي هم په خوشبویي کي شمېرل کیږي، لهذا که په ټوله سر باندي یا په ټوله ږیره باندي یا د سر یا ږیري په څلورمه حصه باندي یا په ورغوي باندي نکریزي ولګوي، نو دَم واجبیږي، ځکه نکریزي هم د خوشبویۍ شی دی، او بله خبره دا ده چي په سر باندي د نکریزو د اینبوولو په صورت کي سر هم پټیږي، نو په دې وجه هم دَم لازمیږي.

### سر یا ږیره تورول

**مسئله:** د احرام په حالت کي په تور رنګ (خضاب) باندي د سر یا ږیري په تورولو سره هیڅ کفاره نه واجبیږي، لېکن که هغه ګاټه (خند) وي او د هغه د اینبوولو په وجه سر ۱۲ ساعته یا تر دې زیات وخت پټ وي، نو پر محرم یو دَم واجبیږي، کنې صدقه ضروري ده. (غنية الناسک ص: ۲۵۰)

أو ادّهن بزیت إلخ: ③... که د زیتونو روغن (تېل) یا د کونجتو روغن یا یو بل خوشبوداره روغن پر پوره عضو باندي د خوشبویۍ په نیت سره ولګوي، نو یو دَم واجبیږي، او که د دواء په غرض سره یې ولګوي، نو هیڅ هم نه واجبیږي. (عمدة الفقه)

أو لبس إلخ: ④... که محرم ګنډل سوې جامه یوه پوره ورځ، یا یوه پوره شپه واغوندي، یا یې څو ورځي مسلسل واغوندي، یا یوه ورځ یا یوه شپه خپل سر پټ وساتي، یا یې څو ورځي مسلسل پټ وساتي، نو په دواړو صورتونو کي یو دَم لازمیږي.

**یادونه:** که محرم کس سدری یا کرتی د څادر (پټو) په ډول پر ځان وپېچي، یا پر توګ د څادر په ډول پر بدن وپېچي، نو هیڅ نه واجبیږي؛ ځکه په ګنډل سوې جامه باندي جزاء هغه وخت واجبیږي، کله چي د عادت مطابق واغوستل سي، یعني د هغې د اغوستلو چي کومه طریقه عادت او رواج وي، په هغه طریقه سره محرم ګنډل سوې جامه واغوندي، برابره ده قصداً وي او که په هېره، یا یې بل څوک په زوره (جبراً) ور واغوندي، په هر صورت کي جزاء واجبیږي. (غنية الناسک. ص: ۲۵۰ - ۲۵۳)

أو ستر رأسه کاملًا: ⑤... که محرم کس یوه پوره ورځ یا شپه خپل سر یا مخ پټ کړي، نو دَم لازمیږي، او د احرام په حالت کي د ښځي لپاره خپل سر پټول بېله کراهته جائز دي (لکه مخکي چي ذکر سوه)، بلکي لازم دي، او د سړي لپاره نه سر پټول جائز دي او نه مخ پټول جائز دي. ښکاره دي وي چي دَم هغه وخت واجبیږي، کله چي یې خپل سر په داسې شي سره پټ کړی وي چي په هغه سره عموماً

سر پټول کېږي مثلاً خولۍ، یا لنګوټه او داسې نور، برابره ده خپله یې پټ کړی وي، یا بل چا ورپټ کړی وي او برابره ده په هېره وي او که قصداً وي، د ټولو حکم برابر دی.

همدارنګه پر مخ او پر خوله ماسک لګول ممنوع دي، دا مسئله مخکې هم تېره سوه. او د جزاء په باره کې یې تفصیل دا دی چې که ماسک دومره پراخ وي چې په هغه سره د مخ څلورمه حصه پټه سي (لکه داوس وخت ماسکونه چې تر دې هم پراخ دي) او دا ماسک مسلسل دوولس ساعته ولګوي، نو دَم واجبیږي، کنې صدقۀ فطر واجبیږي. (انوار الایضاح بحوالۀ غنیة الناسک ص: ۱۳۶ و ص: ۲۵۴)

## د احرام په حالت کې سر خریل، یا د ښکر لګولو ځای یا یو بغل یا سپوخته خریل

| |
|---|
| ﴿۱۳۱۶﴾ أَوْ حَلَقَ رُبُعَ رَأْسِهِ یا وخریي څلورمه حصه د خپل سر. |
| ﴿۱۳۱۷﴾ أَوْ مَحْجَمَهُ یا (وخریي) د ښکر لګولو ځای. |
| ﴿۱۳۱۸﴾ أَوْ أَحَدَ إِبْطَيْهِ یا (وخریي) له خپل دواړو بغلو څخه یو بغل (تخرګ). |
| ﴿۱۳۱۹﴾ أَوْ عَانَتَهُ یا (وخریي) خپله سپوخځه (تر نامه لاندي وربېښتان). |
| ﴿۱۳۲۰﴾ أَوْ رَقَبَتَهُ یا (وخریي) خپله غاړه (یعني د څټ وربېښتان وخریي). |

**لغات:** ﴿محجم﴾ موضع الحجامة، د ښکر لګولو ځای، ﴿إبط﴾ بغل، تخرګ، جمع: آباط. ﴿عانة﴾ سپخوځه (مراد: تر نامه لاندي وربېښتان)، ﴿الرقبة﴾ غاړه، څټ، ورمېږ.

**تشریح:** ⑥... که محرم د خپل سر څلورمه حصه وربېښتان یا تر دې زیات وخریي، یا یې کوچني کړي، نو په جرمانه کې دَم لازمیږي، برابره ده خپله یې وخریي، یا یې بل څوک د ده په اجازه سره یا بېله اجازې ور خریي.

⑦... که محرم په سر کې د ښکر لګولو ځای وخریي، نو هم دَم لازمیږي، لېکن که ښکر لګولو ته سخت ضرورت وي مثلاً پر سر یې سخت درد وي، یا داسې بله وجه وي چې له ښکر لګولو څخه چاره نه وي، نو جائز دي، او کوم وربېښتان چې وخریي، د هغه فدیه به ورکوي او فدیه دا ده: درې روژې نیول، یا شپږو غریبانو ته خوراک ورکول، یا یوه قرباني کول.

⑧... او که محرم خپل یو ټوله بغل (تخرګ) وخریي، نو په دې صورت کې هم دَم لازمیږي.

⑨... همدارنه که محرم تر نامه لاندي وربېښتان (د سپوخځې وربېښتان) وخریي، نو هم دَم لازمیږي.

⑩... همدارنګه که محرم د ټولې غاړې وربېښتان وخریي، نو هم پر هغه دَم لازمیږي. (انوار الایضاح)



## په پوړر یا داسي بل شي سره وربښتان لیري کول

**مسئله**: که په پوړر یا کریم او داسي نورو سره وربښتان صفا کړي، یا یې په نوسي وکاږي، نو د دې حکم هم د خرېیلو په څیر دی، نو کومه جزاء چې د خرېیلو په صورت کې یا په غچې سره د کوچني کولو په صورت کې ده، هاغه جزاء دلته هم د تفصیل مطابق واجبیږي. (غنیة الناسک ص:۲۵۷. فتاویٰ هندیه ج:۱، ص:۲۴۴)

## د احرام په حالت کې نوکان پرېکول یا واجب کار پرېښوول

﴿۱۳۲۱﴾ أَوْ قَصَّ أَظْفَارَ يَدَيْهِ وَ رِجْلَيْهِ بِمَجْلِسٍ یا پرېکړي (واخلي) نوکان د خپل دواړو لاسونو او دواړو پښو په یوه مجلس کې أَوْ يَدًا أَوْ رِجْلًا یا (پرېکړي نوکان) د یوه لاس یا د یوې پښې.

﴿۱۳۲۲﴾ أَوْ تَرَكَ وَاجِبًا مِمَّا تَقَدَّمَ بِيَانُهُ یا یو واجب پرېږدي له هغه واجباتو څخه چې بیان یې مخکې تېر سو.

**تشریح**: ⑪... که محرم د دواړو پښو او دواړو لاسو نوکان په یوه مجلس کې پرېکړي، یعني په یوه وخت کې پر یو ځای یې پرېکړي، نو یو دَم واجبیږي؛ یو مجلس یې ځکه ویلي دي چې که د پښو او لاسو نوکان په څلورو مجلس کې پرېکړي، په دې توګه چې د یوه لاس نوکان پر یوه ځای پرېکړي بیا وروسته د دویم لاس نوکان پر بل ځای پرېکړي او همداسي د دواړو پښو نوکان په جلا. جلا مجلسو کې پرېکړي، نو څلور دَمه لازمیږي. همدارنګه که فقط د یوه لاس یا د یوې پښې نوکان پرېکړي، نو هم پر هغه دَم لازمیږي. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

أو ترك واجبًا إلخ: ⑫... یعني د حج له واجباتو څخه د یو واجب په پرېښوولو سره هم دَم لازمیږي، د حج واجبات مخکې بیان سول (کوم چې څه مخکې هم په نقشو کې بیان سول)، خو اُووه افعال داسي دي چې که هغوی د یو معقول عذر په وجه پرېږدي، نو دَم نه واجبیږي: ① یو دا چې د سخت رش (ګڼي ګوڼي) یا د کمزورۍ په وجه وقوف نه وکړل سي، ② د حیض، نفاس، قید یا مرض په وجه طواف زیارت له ایام النحر (یعني له ۱۰، ۱۱، ۱۲ د ذوالحجې) څخه وځنډول سي، ③ د حیض یا نفاس په وجه طواف وداع پرېښوول سي، ④ د یو مرض یا د بوډا والي په وجه طواف یا سعی پیاده نه وکړل سي، بلکي د سپرتیا په حالت کې (پر چلېدونکې کُرسۍ یا داسي بل شي باندي) طواف او سعی وکړي ⑤ سعی ځنې هېره سي، ⑥ د سفر له ملګرو څخه د ورکېدلو (نا درکه کېدلو) په وجه سعی نه وکړل سي. ⑦ په سر کې د زخم او دانې په وجه حلق نه وکړل سي. (انوار الایضاح والتفصیل فی غنیة الناسک ص:۲۳۹. زبدة المناسک ص:۳۴۶)

## د احرام په حالت کې برېتونه خرېيل يا کوچني کول

﴿۱۳۲۳﴾ وَفِيْ أَخْذِ شَارِبِهِ حُكُومَةٌ او د خپل برېت په اخيستلو (کوچني کولو) کې د يوه عادل کس فيصله ده (يعني د هغه د جزاء په هکله چې يو عاد کس کومه فيصله وکړي، د هاغه مطابق پر محرم جزاء واجبيږي).

**لغات:** ﴿حکومة﴾ حُكُومَةُ عَدْلٍ: د عادل کس فيصله، دا يو اصطلاح ده چې که عادل کس څنګه فيصله وکړي، نو د هغه مطابق به حکم کول کيږي.

**تشريح:** که محرم کس خپل برېتونه کوچني کړي يا يې وخريي، نو يو عادل کس چې کومه فيصله وکړي، د هاغه مطابق پر محرم جزاء واجبيږي. او عادل کس به د ږيرې څلورمه حصه (رُبع اللحية) معيار جوړوي، يعني دا کوچني کړل سوي يا خرېيل سوي برېتونه به د ږيرې د څلورمي حصې (رُبع اللحية) سره اندازه کوي، نو که چيرې يې د برېتو ورېښتان دومره پرېکړي وي کوم چې د ږيرې د څلورمي سره برابر وي، نو يو دَم يعني يو پُسه (يا يوه بزه يا داسي نور) لازميږي، او که چيري پرېکړل سوي ورېښتان د ږيرې د څلورمي څلورمه وي، نو د يوه پسه د قيمت څلورمه لازميږي. (شفاء الارواح. ثمرة النجاح)

### د کومو جناياتو په وجه صرف صدقه لازميږي؟ (پر کم د عضو خوشبويي لګول، له يوې ورځي څخه کم وخت جامه اغوستل يا سر پټول)

﴿۱۳۲۴﴾ وَالَّتِيْ تُوْجِبُ الصَّدَقَةَ بِنِصْفِ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ أَوْ قِيْمَتِهِ او هغه جنايت کوم چې د نيم صاع غنمو يا د هغه د قيمت صدقه واجبوي هِيَ مَا لَوْ طَيَّبَ أَقَلَّ مِنْ عُضْوٍ هغه دا دي چې که خوشبويي ولګوي پر کم تر يوه اندام (يعني تر يوه اندام پر کمه حصه خوشبويي ولګوي).

﴿۱۳۲۵﴾ أَوْ لَبِسَ مَخِيْطًا يا ګنډل سوې جامه واغوندي (کم تر يوې ورځي).

﴿۱۳۲۶﴾ أَوْ غَطّٰى رَأْسَهٗ أَقَلَّ مِنْ يَوْمٍ يا خپل سر پټ کړي کم تر يوې ورځي.

**تشريح:** اوس له دې ځايه هغه جنايات بيانوي چې د هغوی په جزاء کې فقط صدقهٔ فطر واجبيږي (مصنف رحمه الله تقريباً يوولس (۱۱) داسې جنايات بيان کړي دي چې، د هغوی په وجه صدقه واجبيږي):

①... مخکي ذکر سوه چې په يوه پوره عضو باندي يو دَم لازميږي، لېکن که محرم له يوه عضو څخه پر کمه حصه خوشبويي ولګوي، نو يوه صدقهٔ فطر يعني نيم صاع غنم يا د هغه قيمت لازميږي.

او صاحب د انوارُ الایضاح د غنیة الناسک په حواله سره لیکلي دي چې که محرم پر ځېل کوچني عضو مثلاً پر پزه، غوږ، سترګه، ګوته او داسي نورو باندي خوشبويي ولګوي، نو يوه صدقهٔ فطر لازميږي. (غنية الناسک ص: ۲۴۴)

**یادونه**: که محرم پر یوه ګوته خوشبويي ولګوي، خو هغه دومره (ډېره) وي کوم چې په يوه کامل عضو باندي د خوشبويي لګولو د مقدار سره برابر وي، نو دَم واجبيږي. (غنية الناسک ص: ۲۴۴)

أو لبس مخيطًا: ②... که محرم له يوې ورځي څخه کم او له يوه ساعت (ګېنټې) څخه زيات ګنډل سوې جامه واغوندي، نو يوه صدقهٔ فطر لازميږي، او که له يوه ساعت څخه يې کم واغوندي، نو دوه موټه غنم يا د هغه قيمت صدقه کول کافي دي. (غنية الناسک ص: ۱۳۴)

أو غطّى رأسه إلخ: ③... همدارنګه که محرم سرې له يوې ورځي يا له يوې شپې څخه کم وخت سر پټ کړي، نو صدقهٔ فطر لازميږي.

که څه هم د لږ ګړي لپاره وي، قصداً وي او که په هېره وي، جرمانه په هره صورت کي لازميږي، يعني که له يوه ساعت (ګېنټې) څخه کم وي، نو يو موټ غنم يا د هغه قيمت دي صدقه کړي، همدارنګه که د خوب په حالت کي يو بل چا سر ور پټ کړی وي، يا يې په بې فکرۍ کي پټ کړی وي، په هر صورت کي د مذکوره تفصيل مطابق صدقه يا دَم لازميږي. (انوار الايضاح)

**یادونه**: په دې مسئله کي له حاجيانو څخه ډېري غلطۍ کيږي چې په منیٰ کي اکثره حاجيان د خوب په حالت کي په سر يا مخ باندي کپړه اچوونکي ليدل کيږي، نو ځکه د دې خيال ساتل ضروري دي. (انوار الايضاح)

**له څلورمي حصې څخه کم سر خرېيل، په متفرقه توګه (جلا، جلا) نوکان پرېکول**

| |
|---|
| ﴿۱۳۲۷﴾ أَوْ حَلَقَ أَقَلَّ مِنْ رُبْعِ رَأْسِهِ يا وخريي کم تر څلورمي حصې د ځېل سر. |
| ﴿۱۳۲۸﴾ أَوْ قَصَّ ظُفُرًا يا يو نوک پرېکړي وَكَذَا لِكُلِّ ظُفُرٍ نِصْفُ صَاعٍ او همدارنګه د هر نوک لپاره نيم صاع دی إِلَّا أَنْ يَبْلُغَ الْمَجْمُوعُ دَمًا مګر دا چي مجموعه (ټوله پرېکړل سوي نوکان د) يوه دَم (مقدار) ته ورسيږي فَيَنْقُصُ مَا شَاءَ مِنْهُ نو کم دي کړي له هغه څخه څومره چي وغواړي كَخَمْسَةٍ مُتَفَرِّقَةٍ لکه پنځه جلا، جلا (پرېکړل سوي) نوکان. |

**لغات**: ﴿قصّ﴾ د نصر د باب ماضي ده: نوکان وغيره پرېکول، کاټول. ﴿المجموع﴾ د فتح له بابه اسم مفعول دی: ټوله يو ځای، ټوټل.

**تشریح**: (۴)... که محرم د خپل سر له څلورمې حصې څخه کم ورېښتان وخربي، یا یې کوچني کړي، نو یوه صدقۀ فطر یعني نیم صاع غنم په جرمانه کي لازمیږي.

أو قصّ ظفرًا: (۵)... همدانګه که محرم یو نوک پرېکړي، نو یوه صدقۀ فطر یعني نیم صاع غنم لازمیږي.

وکذا لکلّ إلخ: یعني د هر نوک په پرېکولو باندي یوه صدقۀ فطر یعني نیم صاغ غنم لازمیږي، هغه که هر څومره نوکان پرېکول سي، د هر یوه په جرمانه کي یوه صدقۀ فطر لازمیږي، خو شرط دا دی چي په متفرّقه توګه به وي، یعني د یوه لاس یا یوې پښې ټوله (پنځه سره) نوکان به نه وي، ځکه که د یوه لاس یا یوې پښې ټوله نوکان پرېکړي، نو یو دَم لازمیږي (لکه مخکي چي ذکر سوه)، لهذا که لس نوکان په متفرّقه (جلا) توګه پرېکړي (مثلاله هر لاس او پښې څخه دوه، دوه نوکان پرېکړي)، نو لس صدقۀ فطر لازمیږي، یا مثلاً که شپاړس نوکان په متفرّقه توګه پرېکړي (یعني له هر لاس څخه څلور نوکان پرېکړي)، نو شپاړس صدقۀ فطر لازمیږي، إلّا أن یبلغ إلخ: یعني کوم نوکان چي په متفرّقه توګه(جلا، جلا) پرېکړل سوي دي، که د هغوی قیمت یوه دَم ته ورسیږي، مثلاً پنځه نوکان په متفرّقه توګه پرېکړي لکه دوه نوکان د یوه لاس او درې نوکان د بل لاس څخه پرېکړي، چي د هغه په وجه پنځه صدقۀ فطر لازمیږي، یا مثلاً په متفرقه توګه شپږ، یا اُووه یا داسي نور مثلاً لس یا پنځلس یا شپاړس نوکان پرېکړي، چي د هغه په وجه شپږ صدقې یا اُووه صدقې یا لس یا پنځلس یا شپاړس صدقې لازمیږي، نو اوس که د دغه پنځو صدقو، یا شپږو صدقو یا د اُوو، یا لسو یا پنځلسو یا شپاړسو صدقو قیمت یوه دَم ته رسیږي، نو د یوه دَم له قیمت څخه به څه کمول کیږي، یعني د پنځو صدقو قیمت که مثلاً دوه زره کلداري وي او یو پسه هم په دوه زره کلداري پیدا کیږي، نو له دوه زره کلدارو څخه به څه کم صدقه کول کیږي، یا مثلاً د شپاړسو صدقو قیمت پنځه زره کلداري وي او د پسه قیمت هم پنځه زره کلدار وي، نو په دې صورت کي به له پنځو زرو څخه څه کمه صدقه ورکول کیږي، د دې لپاره چي یو دَم (کوم چي دلته له مفروض مقدار څخه خارج دی) لازم نه سي (دلته مصنف رَحِمَهُ الله د پنځو متفرّقو نوکانو مثال بیان کړی دی، او موږ ستاسي د آسانۍ لپاره د هغه تر څنګ نور مثالونه هم بیان کړل، نور مثالونه تاسي هم پېښولای سئ!).

## د بې اودسیا په حالت کي طواف کول

﴿۱۳۲۹﴾ أَوْ طَافَ لِلْقُدُومِ أَوْ لِلصَّدْرِ مُحْدِثًا یا طواف قدوم یا طواف صدر وکړي د بې اودسیا په حالت کي (نو صدقه انیم صاع غنم... لازمیږي).

﴿۱۳۳۰﴾ وَتَجِبُ شَاةٌ وَلَوْ طَافَ جُنُبًا او واجبیږي یو پسه که چیري د جنابت په حالت کي

طواف وکړي (یعني دبې اودسیا په حالت کې خو صدقه لازمیږي. لېکن د جنابت په حالت کې دم (پسه) لازمیږي).

﴿۱۳۳۱﴾ أَوْ تَرَكَ شَوْطًا مِنْ طَوَافِ الصَّدْرِ یا پرېږدي د طواف صدر یو دور (نو هم یوه صدقه یعني نیم صاع غنم لازمیږي) وَكَذَا لِكُلِّ شَوْطٍ مِنْ أَقَلِّهِ او همدارنګه د هر دور لپاره د طواف له کمو (دریو) دورونو څخه (د طواف أقل یعني کمه حصه درې دورونه اشوطونه) دي. نو فرمایي چې د طواف له دریو دورونو څخه د هر دور د پرېښوولو په عوض کې نیم صاع غنم لازمیږي، او که اکثر یعني څلورو ته ورسیږي. یعني څلور دوره پرېږدي. نو بیا یو دم لازمیږي. په تشریح کې به یې هم پوره وضاحت وسي).

**لغات:** ﴿طوافِ قدوم، طوافِ صدر﴾ د دې تعریف مخکې ذکر سو چې آفاقي کس (کوم چې له بهر وطن څخه مکې شریفې ته راغلی وي) د هغه لپاره طواف کول سنت دي، دغه طواف ته طواف قدوم وایي، نو طوافِ قدوم سنت دی، همدارنګه پر آفاقي کس وطن ته د روانېدلو په وخت کې طواف کول واجب دي، کوم ته چې طوافِ صدر او طوافِ وداع وایي، نو طوافِ صدر واجب دی. ﴿أقلّه﴾ د هاء ضمیر طوافِ صدر ته راجع دی، یعني أقل الطواف (د طواف کمه حصه. یا په بله وینا د طواف کم شوطونه). په یوه طواف کې أووه شوطه (دوره) وي: له هغوی څخه درې یې أقلّ دي او څلور یا تر هغه زیات أکثر دي، ﴿محدث﴾ د افعال له بابه اسم فاعل دی: بې اودسه، هغه کس چې اودس یې نه وي.

**تشریح:** ⑥... که طواف قدوم یا طواف صدر (طوافِ وداع) د بې اودسیا په حالت کې وکړي، نو دا طواف خو معتبر دی، لېکن پر هغه صدقه لازمیږي، د هر شوط په عوض کې یوه صدقهٔ فطر لازمیږي. (انوار الایضاح بحوالهٔ غنیة الناسک ص: ۱۴۷)

وتجب شاة إلخ: ⑦... او که طوافِ صدر د جنابت په حالت کې وکړي، نو په جرمانه کې یو دَم (یو پسه) لازمیږي، ځکه طواف صدر واجب دی (ثمرة النجاح)، او که طواف بیرته د پاکۍ په حالت کې راوګرځوي، نو جرمانه معاف کیږي. (غنیة الناسک ص: ۱۴۷، ایضاح المناسک ص: ۱۰۹)

أو ترك شوطًا إلخ: ⑧... که د طوافِ صدر یو شَوط (یو دور) پرېږدي کوم چې واجب طواف دی، نو یوه صدقهٔ فطر (نیم صاع غنم) لازمیږي.

وكذا لكل شوط من أقلّه: یعني له أقلّ طواف صدر (دریو شوطونو) څخه د هر شوط په عوض کې یوه صدقهٔ فطر لازمیږي، اقلِ طواف یعني د طواف کمه حصه درې شوطه ده او اکثر طواف څلور شوطه ده. لهذا که درې شوطونه یا تر دې کم پرېږدي، نو د هر یوه په عوض کې یوه صدقهٔ فطر (نیم صاع غنم) لازمیږي، او که له درې څخه زیات شوطونه پرېږدي، نو اوس پر هغه یو دَم (یو پسه) لازمیږي؛ ځکه "اکثرِ طواف" یعني د طوافِ صدر اکثره حصه یې پرېښووله، نو ګواکې طوافِ صدر (واجب) یې

پرېښووی. او که درې شوطه پرېږدي خو د دريو صدقو قيمت يوه دَم ته رسيږي، نو له هغه څخه به څه کمول کيږي، د دې لپاره چې دَم لازم نه سي (لکه په تېر عبارت کي چې دا قاعده ذکر سوه). (ثمرة النجاح، انوار الايضاح)

## له رمي څخه يو کاڼی يا ډېر کاڼي پرېښوول

﴿۱۳۳۲﴾ أَوْ حَصَاةً مِنْ إِحْدَى الْجِمَارِ يا (پرېږدي) يو کاڼی له يوې جمرې (يوه شيطان) څخه وَكَذَا لِكُلِّ حَصَاةٍ فِيمَا لَمْ يَبْلُغْ رَمْيَ يَوْمٍ او همداسي د هر کاڼي لپاره. په هغه مقدار کي چې د يوې ورځي رمي ته نه رسيږي إِلَّا أَنْ يَبْلُغَ دَمًا مګر دا چې ورسيږي (د) يوه دَم (مقدار) ته فَيَنْقُصَ مَا شَاءَ نو کم دي کړي څومره چې وغواړي.

**تشريح:** ⑨... که يو څوک د رمي له کاڼو څخه يو کاڼی پرېږدي، نو هم يوه صدقهٔ فطر لازميږي، پوره تفصيل يې دا دی چې هره جمره (هر شيطان) اُووه ګاڼي ويشتل کيږي او درې سره جمرات يوويشت (۲۱) کاڼي ويشتل کيږي، او اُصول دا دی چې که د يوې ورځي رمي يعني ټوله جمرات (ټوله شيطانان) پرېږدي، نو يو دم لازميږي، او که تر هغه کم پرېږدي، نو د هر کاڼي په عوض کي يوه صدقه لازميږي، اوس د ذو الحجې په لسمه (يعني دلوی اختر په ورځ) صرف جمرهٔ عقبه ويشتل کيږي، لهذا که څوک جمرهٔ عقبه يو کاڼی هم نه ويشتلي، نو دَم لازميږي، او که يو کاڼی يې وويشتلي او پاته شپږ کاڼي پرېږدي، نو شپږ (۶) صدقې لازميږي، او که د دغه صدقو قيمت يوه دَم ته ورسيږي. نو له هغه څخه به څه کمول کيږي، د دې لپاره چې دَم لازم نه سي. د ذو الحجې په يوولسمه (يعني دلوی اختر په دوېمه) ټوله جمرات اُووه، اُووه کاڼي ويشتل کيږي کوم چې ټوله يو ويشت کاڼي کيږي. لهذا که ټوله پرېږدي. نو يو دَم لازميږي، او که يو کاڼی وويشتلي او شل کاڼي پرېږدي، نو شل (۲۰) صدقې لازميږي. او که د دې شلو صدقو قيمت يوه دَم ته رسيږي، نو له هغه څخه به څه کمول کيږي. او که څوک د دريو سره ورځو رمي پرېږدي، نو د اُصول مطابق درې دمه لازميدل پکار دي، لېکن په داسي صورت کي تداخل کيږي او صرف يو دَم لازميږي. (ثمرة النجاح)

كذا لكل حصاة... فيما لم يبلغ رمي يوم: وضاحت يې وسو چې د هر کاڼي په عوض کي يوه صدقه لازميږي تر څو چې د يوې ورځي رمي ته نه ورسيږي، لهذا که د يوې ورځي رمي پرېږدي مثلاً يوويشت کاڼي ټوله پرېږدي، نو دَم لازميږي. او که د صدقو قيمت يوه دَم ته رسيږي، نو له هغه څخه به څه کمول کيږي لکه څرنګه چې مخکي د دې پوره وضاحت تېر سو.

## د بل چا سر ورخرېيل، یا نوکان ور پرېکول

﴿۱۳۳۳﴾ أَوْ حَلَقَ رَأْسَ غَيْرِهِ یا د بل چا سر وخریي.

﴿۱۳۳۴﴾ أَوْ قَصَّ أَظْفَارَهُ یا د بل چا نوکان ور پرېکړي.

**تشریح**: (۱۰)... که محرم د احرام په حالت کې د بل چا سر ورخریي، نو پر دې سر خریونکي محرم صدقه واجبیږي (برابره ده هغه بل څوک [محلوق] حلال وي او که محرم وي، او که محلوق هم محرم وي، نو پر هغه [محلوق] یو دَم لازمیږي ازبدة المناسک ص:۱۱۷۶)

(۱۱)... همدارنګه که محرم د بل چا نوکان ور پرېکړي، نو پر هغه صدقه لازمیږي (برابره ده هغه بل څوک محرم وي او که حلال وي).

﴿۱۳۳۵﴾ وَإِنْ تَطَيَّبَ أَوْ لَبِسَ أَوْ حَلَقَ بِعُذْرٍ او که چیري دیو عذر په وجه خوشبویي ولګوي یا اغوستل وکړي یا خرېيل وکړي (یعني یا د عذر په وجه ګنډل سوې جامه واغوندي یا سر وخریي) تَخَيَّرَ بَيْنَ الذَّبْحِ أَوِ التَّصَدُّقِ بِثَلَاثَةِ أَصْوُعٍ عَلَى سِتَّةِ مَسَاكِيْنَ أَوْ صِيَامِ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ نو اختیارمن کیږي (اختیار ورته حاصلیږي) په مینځ کي د ذبح کولو یا پر شپږو مسکینانو د دریو صاعو د صدقه کولو یا د دریو ورځو د روژو نیولو (یعني په دې صورت کي ده ته درې اختیاره سته: (۱) که یوه پُسه ذبح کوي (۲) یا که شپږو مسکینانو ته درې صاعه غنم ورکوي (۳) یا که درې روژې نیسي).

**لغات**: ﴿تطیّب﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: خوشبوداره کېدل، خوشبویي مږل او لګول. ﴿تخیّر﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: اختیار من کېدل، (د څو شیانو تر مینځ) اختیار ورته حاصلېدل.

**تشریح**: او که محرم د یو عذر په وجه خوشبویي ولګوي، یا ګنډل سوې جامه واغوندي، یا سر وخریي، نو هغه ته د دریو شیانو اختیار دی: (۱) که خوښه یې وي، نو یو پُسه دي ذبح کړي، (۲) کنې پر شپږو مسکینانو دي درې صاعه غنم صدقه کړي، (۳) یا دي درې روژې ونیسي. (شفاء الارواح)



## عذر کوم معتبر دی؟

عذر صرف هغه عذر معتبر او مانع جزاء دی، کوم چي من جانب الله وي، مثلاً مرض، حیض او نفاس او داسي نور، او که هغه عذر د بندګانو له طرفه وي مثلاً یو څوک محرم کس پر جنایت کولو مجبوره کړي (جبراً جنایت په وکړي)، نو داسي عذر معتبر نه شمېرل کیږي، د مثال په توګه یو څوک محرم پر خوشبویي لګولو یا د ګنډل سوي جامې په اغوستلو باندي مجبوره کړي، نو په داسي صورت

کې محرم ته هیڅ قسم اختیار نه حاصلیږي، بلکې د قاعدې مطابق جزاء بانـدي واجبیږي. (غنیة الناسک ص: ۲۳۹)

## د کومو جنایاتو په جه له صدقه (نیم صاع) څخه کم مقدار واجبیږي؟(سپږه یا ملخ وژل)

﴿۱۳۳۶﴾ وَالَّتِیْ تُوْجِبُ أَقَلَّ مِنْ نِصْفِ صَاعٍ او هغه جنایت کوم چې تر نیم صاع کم (مقدار) واجبوي فَهِیَ مَا لَوْقَتَلَ قُمْلَةً أَوْ جَرَادَةً نو هغه (دا) دی چې یوه سپږه (شپږه) یا یو ملخ ووژني فَیَتَصَدَّقُ بِمَا شَاءَ نو صدقه (خیرات) دې کړي څه چې د ده خوښه وي (یعني کوم څه او څومره مقدار چې دئ وغواړي، هغه دې خیرات کړي، نو غاړه یې خلاصیږي).

**لغات:** ﴿قملة﴾ سپږه، شپږه، جمع: قَمْلٌ، ﴿جرادة﴾ ملخ، جمع: جَرَادٌ. (انوار الایضاح)

**تشریح:** که محرم د احرام په حالت کې یوه سپږه مړه کړي، یا یو ملخ مړ کړي، نو له نیم صاع څخه کم صدقه لازمیږي، لهذا کوم مقدار چې د ده خوښه وي، هغه دې صدقه کړي، مثلاً یو څو خرماوې، یا یو موټ غله، یا صرف یوه خرما او داسې نور (او که محرم د بل چا سپږه ورمړه کړي، نو پر محرم هیڅ جزاء نه واجبیږي). (شفاء الارواح، انوار الایضاح)



## د حرم شریف ملخان تر پښو لاندې کېدل

**مسئله:** ډېر ځله داسې کیږي چې په حرم شریف کې ملخان دومره زیات وي چې تېرولو لارې له هغوی څخه ډکې وي، نو په داسې حالت کې که ملخان تر پښو لاندې سي او مړه سي، نو که څه هم ډېر وي، په هغوی کې هیڅ جزاء نه لازمیږي، خو بیا هم احتیاط لازم دی. (غنیة الناسک ص: ۲۹۰)

## د کومو جنایاتو په وجه قیمت واجبیږي؟

﴿۱۳۳۷﴾ وَالَّتِیْ تُوْجِبُ الْقِیْمَةَ او هغه جنایت کوم چې قیمت واجبوي فَهِیَ مَا لَوْقَتَلَ صَیْدًا نو هغه (دا) دی چې یو ښکار ووژني فَیُقَوِّمُهُ عَدْلَانِ فِیْ مَقْتَلِهٖ أَوْ قَرِیْبٍ مِنْهُ نو دوه عادل سړي به د هغه قیمت ټاکي (لګوي) د هغه دوژل کېدلو په ځای کې یا هغه ته په نژدې ځای کې فَإِنْ بَلَغَتْ هَدْیًا نو که ورسیږي د هغه قیمت یوه هدي (د قربانۍ قابل څاروي) ته فَلَهُ الْخِیَارُ نو ده ته اختیار دی (یعني په دې صورت کې ده ته دري اختیاره حاصلیږي) إِنْ شَاءَ اِشْتَرَاهُ وَ ذَبَحَهُ ① که وغواړي، هغه (څاروی) دې رانیسي او ذبح دې یې کړي أَوِ اشْتَرٰی طَعَامًا وَ تَصَدَّقَ بِهٖ لِکُلِّ

فَقِيرٍ نِصْفُ صَاعٍ یا دي غله رانیسي او هغه دي پر هر فقیر نیم صاع صدقه کړي أَوْ صَامَ عَنْ طَعَامِ كُلِّ مِسْكِينٍ يَوْمًا یا دي د هر مسکین د غلې (صدقې) په عوض کې یوه روژه ونیسي وَ إِنْ فَضَلَ أَقَلُّ مِنْ نِصْفِ صَاعٍ او (تر دې تقسیم وروسته) که له نیم صاع څخه کم پاته سي تَصَدَّقَ بِهِ أَوْ صَامَ يَوْمًا نو هغه دي صدقه کړي یا دي یوه ورځ روژه ونیسي.

**لغات**: ﴿يُقَوِّمُ﴾ د تفعیل له بابه مضارع معلومه ده: قیمت ټاکل (قیمت لګول)، قیمت اندازه کول، ﴿عدلان﴾ تثنیه د عَدْلٌ ده په معنیٰ سره د عَادِلٌ دی: عادل او انصاف کونکی (انصاف داره)، ﴿مقتل﴾ د نصر له بابه اسم ظرف دی: د قتل کېدلو ځای، ﴿هدی﴾ د قربانۍ څاروی، هغه څاروی (یعني پسه یا غويی یا اوښ، یا د دوی مؤنث) کوم چې حرم ته د قربانۍ لپاره را وستل کیږي، "مَا يهدى إلَى الْحرم من النعم"، ﴿تصدّق﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: صدقه کول، خیراتول، ﴿طعام﴾ کله چې دا لفظ مطلق ذکر سي نو معنیٰ یې ده: غله، لکه غنم، اوربشې، وریجې او داسې نور، او اهل حجاز او عراق خاص پر غنمو د دې اطلاق کوي. (معجم الوسیط)

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې که محرم د ښکار څاروی قتل کړي، نو پر هغه جزاء واجبیږي، او جزاء دا ده چې په کوم ځای کې هغه ښکار قتل سوی وي، د هغه ځای قیمت ته به کتل کیږي. مثلاً که په دښت کې یې ښکار قتل کړی وي، نو دوه عادل کسان به په هاغه ځای کې د هغه قیمت اندازه کړي، او که په دښت کې یې قیمت نه معلومیږي، نو هغه ته چې کومه آبادي نژدې وي، هلته دي یې قیمت اندازه کړي، بیا چې کله قیمت متعیّن سي، نو که په هغه قیمت څاروی مثلاً پسه یا غويی یا داسې بل څاروی رانیول کېدلای سي، نو بیا قاتل (ښکار کونکي) ته دا درې اختیاره دي:
① اول دا چې په هغه قیمت سره هغه څاروی (پسه یا غويی...) رانیسي او په حرم کې یې ذبح کړي او هلته یې پر مسکینانو تقسیم کړي، ② دویم دا چې په هغه قیمت سره غنم رانیسي او هر مسکین ته نیم، نیم صاع غنم ورکړي. ③ دریم اختیار دا دی چې په هغه قیمت سره چې څومره غنم رانیول کېدای سي. له هغوی څخه د هر نیم صاع غنمو په بدله کې یوه روژه ونیسي، مثلاً شل نیم صاعه په رانیول کېدای سي (یا په بله وینا هغه قیمت د لس صاعه غنمو سره برابر وي)، نو شل روژې دي ونیسي.

وإن فضل إلخ: یعني د نیم، نیم صاع غنمو تر تقسیمولو وروسته که په آخر کې تر نیم صاع کم غنم پاته سي، نو د ده خوښه ده، که هغه خیراتوي او که د هغه په بدله کې یوه روژه نیسي (ځکه غنم که څه

هم له نیم صاع څخه کم دي خو روژه نه نیمایي کیږي، نو ځکه که روژه نیول اختیار کړي. نو یوه پوره روژه به نیسي). (شفاء الارواح، ثمرة النجاح)

﴿۱۳۳۸﴾ وَتَجِبُ قِيْمَةُ مَا نَقَصَ بِنَتْفِ رِيْشِهِ الَّذِيْ لَايَطِيْرُ بِهٖ وَشَعْرِهٖ او واجبیږي هغه قیمت (یعني هغومره قیمت څومره) چي کم سوی وی د مرغه د هغه وزر (بڼي) په کښلو سره چي په هغه سره مرغه نه الوزي او د هغه (دبدن) د بڼو (په کښلو سره) وَقَطْعِ عُضْوٍ لَايَمْنَعُهُ الْاِمْتِنَاعَ بِهٖ او (د مرغه یا بل حیوان) د داسي اندام په پرېکولو سره چي هغه (مرغه یا حیوان) منع نه کړي له امتناع (د ځان دفاع کولو) په هغه سره (یا په بله وینا: د داسي اندام په پرېکولو سره چي هغه د ځان له حفاظت کولو څخه محرومه نه کړي. یعني چي د هغه تر پرېکېدلو وروسته بیا هم هغه د ځان حفاظت کولای سي او الوتلای یا ځغستلای سي).

﴿۱۳۳۹﴾ وَتَجِبُ الْقِيْمَةُ بِقَطْعِ بَعْضِ قَوَائِمِهٖ او قیمت واجبیږي د هغه (ښکاروي) له پښو څخه دیوې پښې په پرېکولو سره وَنَتْفِ رِيْشِهٖ او د هغه (مرغه) د وزر په کښلو سره وَكَسْرِ بَيْضِهٖ او د هغه د هګۍ په ماتولو سره.

**لغات:** ﴿نتف﴾ د ضرب د باب مصدر دی: (وربېښته، بڼه او داسي نور) کښل. کاږل. ﴿ریش﴾ د مرغه وزر، د وزر بڼکي، واحد: رِيْشَةٌ، جمع: رِيَاشٌ، ﴿امتناع﴾ د افتعال د باب مصدر دی، د دې باب په صله کي چي باء ذکر سي لکه دلته "به"، نو معنیٰ یې ده: په یو شي سره ځان ساتل (د ځان حفاظت په کول. له ځانه دفاع کول)، په نوي کېدل، د لا یمنعه الامتناع به مطلب دا دی چي په کوم عضو سره د هغه حفاظت کیږي، له هغه څخه محروم نه سي، ﴿قوائم﴾ جمع د قائمة ده: د سپارلي پښې او لاسونه. چي اصطلاحاً ټولو ته پښې وایي.

**تشریح:** که محرم د ښکار والا مرغه د وزر هغه بڼي وکاږي چي په هغوی سره مرغه الوتل نه کوي (یا بله وینا: د وزر هغه بڼي یې وکاږي کوم چي مرغه ته تاوان نه کوي)، یا د مرغه د بدن بڼي (وربېښته) وکاږي، یا د مرغه داسي اندام مات کړي چي تر دې وروسته هم هغه الوتلای او ځان خلاصولای سي، نو په دې صورتونو کي چي د مرغه په قیمت (مالیت) کي کوم نقصان او کمي راغلې ده، صرف د هغه ضمان (تاوان) پر محرم لازمیږي، مثلاً که د دا ډول صحیح سالم مرغه قیمت زر (۱۰۰۰) افغانۍ وي، او اوس د وزر یا بڼو د کښلو، یا د اندام ماتولو څخه وروسته د هغه قیمت پنځه سوه روپۍ سو، نو پر محرم پنځه سوه (۵۰۰) افغانۍ ضمان لازمیږي.

وتجب القیمة إلخ: د دې حاصل دا دی چې که محرم د ښکار له ښځو څخه یوه ښځه پرېکړي چې تر دې وروسته ښکار خپل حفاظت نه سي کولای او له خلکو څخه نه سي تښتېدلای. یا د مرغه هغه وزري و کاږي چې په هغوی سره مرغه الوتل کوي چې تر دې وروسته هغه نه سي الوتلای او ځان نه سي خلاصولای. نو اوس د هغه پوره قیمت لازمیږي؛ ځکه چې محرم د هغه د حفاظت آله ور ضایع کړه. نو ګواکي د هغه امن یې ور ختم کړی او امن ور ختمونکی د قاتل په درجه کې دی. نو ځکه پر هغه د مقتول پوره قیمت واجبیږي.

و کسر إلخ: او که محرم د ښکار د مرغه هګۍ ماته کړي، حال دا چې هغه صحیح سالمه وي، نو په تاوان کې د هګۍ قیمت واجبیږي. (شفاء الارواح، ثمرة النجاح)

| |
|---|
| ﴿۱۳۲۰﴾ وَلَا يُجَاوَزُ عَنْ شَاةٍ بِقَتْلِ السَّبُعِ او تېری به نه کول کیږي تر یوه پسه د یو درنده د وژلو په عوض کې (یعني د یو شیرونکي حیوان د وژلو په بدله کې به د یوه پسه له قیمت څخه تجاوز نه کول کیږي). |
| ﴿۱۳۲۱﴾ وَإِنْ صَالَ او که درنده (خپله) حمله کړې وي لَا شَيْءَ بِقَتْلِهِ نو (بیا) د هغه پر وژلو هیڅ شی نسته. |

**لغات**: ﴿لا یجاوز﴾ د مفاعلې له بابه مضارع مجهوله ده، مجاوزةً: تېرېدل (تېری کول)، مخ ته تلل، ﴿سَبُع﴾ درنده، شیرونکی حیوان. ﴿صال﴾ د نصر د باب ماضي ده، صَوْلًا: حمله کول.

**تشریح**: که محرم یو درنده (شیرونکي حیوان) وژلی وي، مثلاً زمری، پړانګ یا داسي بل درنده یې وژلی وي، نو پر هغه هم جزاء واجبیږي، خو دومره قدر جزاء به واجبول کیږي چې هغه د یوه پسه له قیمت څخه تجاوز نه وکړي، مثلاً که د زمري قیمت لس زره افغانۍ وي او د پسه قیمت صرف درې زره افغانۍ وي، نو لس زره جزاء به نه واجبیږي، بلکي صرف درې زره به واجبیږي.

وإن صال إلخ: او که درنده خپله پر محرم حمله وکړي، نو د هغه له حملې څخه د ځان ساتلو په خاطر محرم پر هغه وار وکړي او قتل یې کړي، نو په دې صورت کې پر هغه هیڅ شی نه واجبیږي.

## د غیرِ محرم (حلال کس) ښکار کول، د حرم د حدودو واښه او بوټي پرېکول

| |
|---|
| ﴿۱۳۲۲﴾ وَلَا يُجْزِئُ الصَّوْمُ بِقَتْلِ الْحَلَالِ صَيْدَ الْحَرَمِ او روژه نه کافي کیږي د حلال کس (له طرفه) د حرم د ښکار په وژلو سره (یعني که حلال کس کوم چې احرام نه وي تړلی د حرم ښکار قتل کړي، نو روژه نیول ورلره کافي نه دي، بلکي قیمت به یې ور کوي) وَلَا بِقَطْعِ حَشِيشِ الْحَرَمِ وَشَجَرَةٍ |

النَّابِتِ بِنَفْسِهٖ وَلَيْسَ مِمَّا يُنْبِتُهُ النَّاسُ او نه (روژه کافي کيږي د هغه لپاره) دوبنو په پرېکولو سره او د خپله شنه کېدونکي درختي په پرېکولو سره (يعني) چې له هغه درختو څخه نه وي کوم چې يې خلک شنه کوي بَلِ الْقِيْمَةُ بلکي قيمت (واجب) دی.

﴿۱۳۴۳﴾ وَحَرُمَ رَعْيُ حَشِيْشِ الْحَرَمِ او حرام دي د حرم وابنه څرول (يعني د حرم پر وبنو څارويان کرځول او پوول) وَقَطْعُهُ او (حرام دي) د حرم وابنه پرېکول اِلَّا الْاِذْخِرَ وَالْكَمْأَةَ نه اذخر وابنه او پوڅکي.

**لغات**: ﴿حشيش﴾ وابنه، ﴿رعی﴾ پوول، څرول (رمه د څر لپاره څرځای [چراګاه] ته بېول). څرل.

﴿إذخر﴾ يو قسم شين خوشبوداره وابنه دی، واحد: إِذْخِرَةٌ، ﴿كمأة﴾ پوڅکی، مشهوره بوټی دی کوم چې د باران په موسم کي خپله پر ځمکه راپورته کيږي، په شکل ګردی (د ټوپۍ په شېر) او په رنګ خړ وزمه دی.

**تشريح**: که غيرِ محرم (حلال) کس د حرم ښکار قتل کړي، نو پر هغه د ښکار قيمت واجبيږي، او که هغه وغواړي چې د ښکار د قيمت په عوض کي روژې ونيسي، نو نه ورلره کافي کيږي لکه څرنګه چې د محرم کس د ښکار قتل کولو په صورت کي هغه لره روژې کافي کيږي.

ولا بقطع إلخ: يعني که څوک د حرم وابنه پرېکړي، يا يې داسي درخته (ونه) پرېکړي کوم چې په خپله راشنه سوې وي، يعني داسي درخته کوم چې يې خلک نه راشنه کوي، بلکي خپله راشنه کيږي لکه د کيکر درخته، نو د دې د پرېکولو په صورت کي پر هغه قيمت واجبيږي، روژه نيول نه کافي کيږي.

وحرم رعی إلخ: يعني په حرم کي څارويان پوول (څرول) او د حرم وابنه پرېکول دواړه حرام دي. په خلاف د اذخر وبنو او په خلاف د پوڅکي چې په حرم کي دننه د هغوی پرېکول جائز دي. (شفاء الارواح بتصرفٍ)



# فَصْلٌ

## د احرام په حالت یا د حرم په حدودو کې د کومو حیوانانو قتلول جائز دي؟

﴿۱۳۳۳﴾ وَلَاشَيْءَ بِقَتْلِ غُرَابٍ وَحِدَأَةٍ وَعَقْرَبٍ او څه شی نسته (یعني هیڅ نه واجبیږي) په وژلو سره د کارګه او ټپوس او لړم وَفَأْرَةٍ وَحَيَّةٍ وَكَلْبٍ عَقُوْرٍ او (په وژلو سره) د موږک او مار او د خروړي (داړونکي) سپي وَبَعُوْضٍ وَنَمْلٍ وَبُرْغُوْثٍ او (په وژلو سره) د غوماشي او مېږي او کیکي وَقُرَادٍ وَسُلَحْفَاةٍ او (په وژلو سره) د منګوږ او کیشپ وَمَالَيْسَ بِصَيْدٍ او (په وژلو سره) د هغه څه (حیوان) کوم چې ښکار نه وي.

**لغات**: ﴿غُراب﴾ کارګه، کارغه. جمع: غَرَابِیْب. ﴿حِدَاءة﴾ ټپوس. جمع: حِدَاء. ﴿عقرب﴾ لړم. جمع: عَقَارِب. ﴿کلب عقور﴾ خروړی (خوړونکی اداړونکی) سپی کوم چې هر چا ته خوله اچوي. ﴿بعوض﴾ غوماشه (مچر). ﴿بُرْغوث﴾ کیکه، مشهوره خزنده ده، جمع: بَرَاغِيْث. ﴿قُرَاد﴾ منګوږ، مشهوره خزنده ده کوم چې د سپړو په څېر د څاروي په بدن کې پیدا کیږي. جمع: قِرْدَانٌ. ﴿سلحفاة﴾ کیشپ (کیشو). جمع: سَلَاحِفُ.

**تشریح**: د احرام په حالت کې د محرم لپاره او د حرم په حُدودو کې د حلال کس لپاره د لاندینې حیوانانو وژل جائز دي او په دې سلسله کې امام صاحب رَحِمَهُ الله د موذي (ضرر رسونکو) او د ځمکې د خزندو قاعده پېش کړې ده، نو کوم حیوانان او خزندې چې ضرر رسوي، همداسې د ځمکې خزندې دي، هغوی وژلای سي: ① ګندګي (مرداري) خوړونکي کارګه وژلای سي، ② ټپوس (ځکه هغه هم مؤذي حیوان دی چې د چرګې په چچیو او داسې نورو باندې حمله کوي او وړي یې، نو ځکه د هغه وژل هم جائز دي)، ③ لړم، ④ داړونکی سپی، ⑤ موږک (د هغه اذیت ښکاره دی چې د کور غله خوري، شیدې چیښي او کپړې څیرې)، ⑥ مار، ⑦ غوماشه، ⑧ چیچونکی (موذی) مېږی، ⑨ کیکه، ⑩ منګوږ، ⑪ کیشپ (کیشو)، هر هغه موذي حیوان کوم چې د انسان له بدن څخه نه پیدا کیږي، هغه هم د احرام په حالت کې وژل جائز دي. لکه غوماشه (مچر) او داسې نور.

و مـا لـیس بصـید: او کوم چي د ښکار حیوان نه وي، د هغه په وژلو سره هم شی نه لازمیږي، ښکار (صَید) هغه حیوان ته وایي کوم چي له انسانانو څخه متوحّش او ترهېدونکی وي، لهذا کوم حیوان چي له انسانانو څخه متوحّش نه وي یعني د انسان په لیدلو سره نه ترهیږي او له هغه څخه ځان نه پټوي، بلکي عموماً اموخته او د انسان وطرف ته راغب وي لکه پُسه، غوا، اوښ، چرګه او داسي نور، د هغوی په وژلو سره هم هیڅ جزاء نه واجبیږي، لیکن د دوی وژل جائز نه دي، او د قاعدې مطابق د هغوی په ذبح کولو کي څه حرج نسته.



فَصْلٌ

## د هدی تعریف، اقسام او وضاحت

﴿۱۳۳۵﴾ اَلْـهَـدْیُ أَدْنَاهُ شَاةٌ هدی (د حرم قرباني) د هغه کمه درجه (کمترین مقدار) یو پُسه دی وَهُوَ مِنَ الْإِبِلِ وَالْبَقَرِ وَالْغَنَمِ او هدی به له اوښانو، غواګانو او پسونو څخه وي.

﴿۱۳۳۶﴾ وَ مَا جَازَ فِي الضَّحَايَا او کوم څاروی چي په قربانیو کي جائز دی جَازَ فِي الْهَدَايَا هغه په هدیو کي (هم) جائز دی.

**لغات**: ﴿هَدْیٌ﴾ او هَدِيٌّ (دواړه لغات منقول دي): د قرباني څاروی کوم چي حرم ته اُستول کیږي، هغه څاروی (یعني پسه یا غویی یا اوښ، یا د دوی مؤنث) کوم چي حرم ته د قرباني لپاره را وستل کیږي، "مَا یهدی إِلَی الحرم من النعم"، ﴿الإبل﴾ اسم جنس دی، پر واحد او جمع تولو یې اطلاق کیږي، واحد له خپل لفظ څخه نه لري، او کله چي د جمع په صیغه سره "آبَالٌ" ذکر سي، نو مراد ځني څو رمې وي (مصباح)، ﴿البقر﴾ دا هم اسم جنس دی، همدارنګه پر مؤنث او مذکر (غوا، غویی) دواړو باندي یې اطلاق کیږي، واحد یې بَقَرَةٌ راځي (مصباح)، ﴿الغنم﴾ دا هم اسم جنس دی: پسه، بزه، سېرلي او میږې ټولو ته وایي، واحد له خپل لفظ څخه نه لري، واحد ته یې "شاة" وایي (مصباح، معجم لغة الفقهاء)، ﴿ضحایا﴾ جمع د ضَحِیَّة: د قرباني څاروی.

**تشریح:** هدی هغه څاروي ته وایي کوم چي یې حاجي د قرباني په نیت د ذبح کولو لپاره حرم ته (د هدیه په توګه) بوځي د الله تعالیٰ د قُرب حاصلولو لپاره، هدی صرف درې قسمه څارویان کېدلای سي: اوښ، غویی، پسه، په دې کي نر او ماده دواړه مراد دي، اوښ یې اعلیٰ درجه ده، غویی اوسط دی او پسه ادنیٰ درجه ده، په دوی کي تر ټولو افضل اوښ دی، بیا غویی، بیا پسه، له دغه درېو قسمونو څخه بغیر بل قسم څاروی هدی نه سي کېدلای.

وما جاز في الضحايا إلخ: د کوم څاروي چي قرباني جائزه ده، د هغه هدی هم جائز ده، یعني د قرباني د جواز چي کوم شرطونه دي، هاغه شرطونه په هدی کي هم دي، مثلاً په قرباني کي ① د عیبداره څاروي قرباني جائز نه ده، لکه غوږ پرېکړل سوی (یعني چي د غوږ درېمه حصه یې یا تر هغه زیاته پرې سوې وي، یا لکۍ یې همداسي پرې سوې وي)، یا یې لاس یا پښه پرې سوې وي، یا یې سترګه ختلې وي (یا یې درېیمه حصه یا تر هغه زیاته رڼا ایډا ختم سوې وي) نو داسي څاروی هدی جوړول هم جائز نه دي، ② کوم څاروی چي ډېر ډنګر وي (چي په هډوکو کي یې ماغزه پاته نه وي)، یا ګوډ وي یعني څلورمه پښه نه سي ایښوولای صرف پر درېو پښو ځي، د هغه قرباني جائز نه ده، نو هغه هدی ګرځول هم صحیح نه دي، ③ همدارنګه بل شرط دا دی چي د قرباني څاروی به ثني وي ثني دا دی چي د څاروي د ځوانۍ دوه غاښه راغلي وي (تر دې وروسته هغه ته ثني ویل کیږي)، نو همداسي به د هدی څاروی هم ثني وي. (انوار الایضاح، ثمرة النجاح)

## په جرمانه کي بدنه کله لازمیږي؟

﴿۱۳۲۷﴾ وَالشَّاةُ تَجُوْزُ فِي كُلِّ شَيْءٍ إِلَّا فِيْ طَوَافِ الرُّكْنِ جُنُبًا او پسه جائز دی په هر ځای کي، مګر (یو) د جنابت په حالت کي د طوافِ رکن (طوافِ زیارت) په کولو کي وَوَطْءٍ بَعْدَ الْوُقُوْفِ قَبْلَ الْحَلْقِ او (بل، پر عرفات) له وقوف کولو څخه وروسته تر سر خرېیلو مخکي په وطي کولو کي فَفِي كُلٍّ مِنْهُمَا بَدَنَةٌ نو د دې دواړو په هر یوه کي یوه بدنه (لازم) ده (یعني لوی څاروی "اوښ یا غویی" به ذبح کول کیږي).

**اللغات:** ﴿بدنة﴾ دا لفظ بَدَنَةٌ دی، لوی څاروي یعني اوښ او غویي ته ویل کیږي (کوم چي په مکه کي د حج پر موقع قربانول کیږي)، پر مذکر او مؤنث دواړو یې اطلاق کیږي، یا په بله وینا: بدنه هر هغه لوی څاروي ته وایي کوم چي اووه حصې کول کیږي، لکه غویی، غوا، اوښ، او بعضو ویلي دي چي خاص پر اوښ د دې اطلاق کیږي.

**تشريح**: پسه (او ميږه، وزګرې، بزه) په ټولو ځايو کي جائز دي، خو په دې دوو صورتونو کي جائز نه دي: ① که څوک د جنابت په حالت کي طواف رکن (طواف زيارت) وکړي، نو پسه نه کافي کيږي، بلنه يعني غويې يا اُوښ به ذبح کول کيږي، ② او دويم صورت دا چي که تر وقوف عرفه وروسته له سر خرييلو څخه مخکي جماع وکړي، نو هم به بلنه ذبح کول کيږي. (شفاء الارواح، انوار الايضاح)

## د قرباني وخت

﴿۱۳۴۸﴾ وَخُصَّ هَدْيُ الْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ بِيَوْمِ النَّحْرِ فَقَطْ او خاص کړل سوي دي د (حج) تمتع او قِران هدي صرف د قرباني د ورځي سره (يعني د حجِ تمتع او حجِ قران هدي اقرباني ايوازي په ايام النحر پوري مخصوص ده).

**تشريح**: په حجِ قران او حجِ تمتع کي پر حاجي د شکرانې په توګه يو دَم يعني قرباني کول واجب دي، د هغه لپاره وخت هم متعين وخت دی او هغه د قرباني ورځې دي (يعني د ذو الحجې د لسمي څخه تر دوولسمي پوري، يا په بله وينا د لوی اختر له اولي څخه تر دريمي پوري، په دې ورځو کي ذبح کول واجب دي) او له دې ورځو څخه مخکي ذبح کول جائز او معتبر نه دي، او د قرباني له ورځو څخه وروسته ذبح کول جائز دي، لېکن د تأخير په وجه پر هغه يو بل دَم واجبيږي. (شفاء الاراح)

## د هدي د ذبح کولو ځای

﴿۱۳۴۹﴾ وَخُصَّ ذَبْحُ كُلِّ هَدْيٍ بِالْحَرَمِ او خاص کړل سوې ده د هري هدي ذبح د حرم سره (چي هلته به ذبح کول کيږي) إِلَّا أَنْ يَّكُوْنَ تَطَوُّعًا مګر دا چي هغه نفلي هدي وي وَ تَعَيَّبَ فِي الطَّرِيْقِ او هغه په لاره کي عيبداره سوې وي فَيَنْحَرُ فِيْ مَحَلِّهٖ نو هغه دې ذبح کړي په هاغه ځای کي.

﴿۱۳۵۰﴾ وَلَا يَأْكُلُهٗ غَنِيٌّ او مالدار دې هغه نه خوري.

﴿۱۳۵۱﴾ وَ فَقِيْرُ الْحَرَمِ وَغَيْرِهٖ سَوَاءٌ او د حرم فقير او له حرم څخه بغير (د بل ځای) فقير سره برابر دي.

**اللغات**: ﴿فينحر﴾ د فتح له بابه مضارع معلومه ده، نَحَرَ يَنْحَرُ نَحْرًا: ذبح کول. په اصل کي د نحر معنیٰ ده: اوښ پر سينه وهل (کوم چي د اوښ د ذبح شروع ده او بيا ذبح احلال اکيږي).

**تشريح**: هدي (يا په بله وينا د حاجيانو قرباني) د حرم په حدود کي ذبح کول ضروري دي، له حرم څخه بهر (په حِل کي) ذبح کول جائز نه دي، خو که مجبوري پېښه سي، نو بل ځای يې هم ذبح کولای سي، مثلاً نفلي هدي وي او په لاره کي په يو مرض مبتلا سي او تر کعبې شريفي پوري نه سي رسېدلای، نو چيري چي په مرض مبتلا سوې ده، هلته دې ذبح کړل سي.

ولا یأکله إلخ: یعني نفلي هدی کوم چي حرم ته نه وي رسېدلې، بلکي په لاره کي ذبح کړل سوې وي، د هغه غوښې دي نه خپله خوري او نه دي یې مالدارانو ته ورکوي. بلکي د هدی غوښې دي صرف پر مسکینانو تقسیم کړي، او د حرم مساکینو ته ورکول ضروري نه دي، له دوی څخه بغیر نورو ته ورکول هم جائز دي. په دې کي د حدودِ حرم قید نسته. لېکن د حرم مساکینو ته ورکول افضل دي. (شفاء الارواح، ثمرة النجاح، انوار الایضاح)

**د هدی کوم څاروي ته به قلاده ور اچول کیږي؟ او د هدی د زل، رسۍ او د شیدو حکم**

﴿۱۳۵۲﴾ وَ تُقَلَّدُ بَدَنَةُ التَّطَوُّعِ وَالْمُتْعَةِ وَالْقِرَآنِ فَقَطْ او قلاده (علامتي هار) به ور اغوستل کیږي فقط ونفلي بدنې او د تمتع او قران و بدنې ته.

﴿۱۳۵۳﴾ وَيَتَصَدَّقُ بِجِلَالِهِ وَ خِطَامِهِ او صدقه دي کړي د هدی د څاروي زَل او پېزوان (مهار او تناو) وَلَا يُعْطٰى أَجْرُ الْجَزَّارِ مِنْهُ او د قصاب اُجرت (مزدوري) به له هغه څخه نه ورکول کیږي.

﴿۱۳۵۴﴾ وَلَا يَرْكَبُهُ بِلَا ضَرُوْرَةٍ او نه به پر سپرېږي پر هغه بېله ضرورته.

﴿۱۳۵۵﴾ وَلَا يُحْلَبُ لَبَنُهٗ او نه به د هغه شیدې لوښل کیږي إِلَّا أَنْ بَعُدَ الْمَحَلُّ مګر دا چي ځای (ذبح) لیري وي فَيَتَصَدَّقُ بِهٖ نو د هغه شیدې به صدقه کوي وَيَنْضَحُ ضَرْعَهٗ إِنْ قَرُبَ الْمَحَلُّ بِالنُّقَاخِ او چړکاؤ به کوي د هغه پر غولانځه که ځای نژدې وي په یخو اوبو سره (یعني پر تیو به یې یخې اوبه واچوي).

**لغات:** ﴿تقلّد﴾ د تفعّل له بابه مضارع مجهوله ده. تقلیدًا: د دې باب له معناوو څخه یوه معنیٰ ده: غاړګی ور په غاړه کول، طوق ور اچول، د څپلی یا څرمني توټه په غاړه ور ځړول، یا د څرمني یا داسي بل شي له ټوټو څخه هار جوړول او غاړي ته ور اچول، دا ټوله په تقلید الهدی کي راځي. ﴿جِلَال﴾ جمع د جُلّ ده: زَل. ﴿خطام﴾ پېزوان (د څاروي په پوزه کي اچول کېدونکی تناو [پړی])، مهار. ﴿جزار﴾ د څاروبو ذبح کونکی قصاب. ﴿لا یحلب﴾ د نصر له بابه د نفي مجهول صیغه ده. حَلْبًا: لوښل. ﴿يَنْضَحُ﴾ د فتح له بابه مضارع معلومه ده او د ضرب له بابه (يَنْضِحُ) هم راځي: اوبه (عشکي، عشکي) پاشل، چړکاوول (د اوبو شیندل)، او پاشي کول. ﴿ضرع﴾ غولانځه. جمع: ضُرُوْع. ﴿نقاخ﴾ (بضم النون وفتح القاف). د دې لفظ له معناوو څخه یوه معنیٰ ده: یخي صفا اوبه. (معجم الوسیط)

**تشریح**: نفلي هدی کوم چي بدنه (اوښ یا غویی) وي یا د حجِ قِران یا حجِ تمتُّع هدی کوم چي بدنه وي، صرف د دوی غاړي ته به قلاده (هار) یعني د څپلۍ یا څرمني (چمړې) یو ټوټه یا د درختي د پوستکي یو ټوټه ور اچول کیږي، دا افضل دي؛ ځکه نفلي هدی او د قِران او تمتُّع هدی دَم نُسک (عبادت) او د نعمت هدی دي، او د قلاده په ور اچولو سره د دې اظهار کیږي چي دا دَم نُسک او د نعمت هدی دي، او پاته سوه د جنایت هدی یعني په حج کي د یو جرم کولو په وجه چي کومه قرباني لازمه سي، د هغه اظهار کول معیوب دي او په قلاده ور اچولو سره د دې اظهار کیږي، نو ځکه د جنایت د هدي غاړي ته دي قلاده نه اچوي (همدا حکم دإحصار د هدی دی).

**ویتصدّق إلخ**: د هدی زل (جُل)، رسی او داسي نور شیان دي صدقه او خیرات کړي (ځکه د هدی څاروی د قُربت په توګه ذبح کول کیږي، نو د هغه سره متعلق ټوله شیان قُربت دي، نو ځکه به یې خیراتوي)، همدارنګه د ذبح کونکي (قصاب) په اُجرت کي دي د هدی غوښي، څرمن، رسی او داسي نور نه ورکوي، بلکي د هغه اُجرت (مزدوري) به له خپل جیبه څخه جلا ورکوي.

**ولا یرکبه إلخ**: او بېله ضرورته د هدي پر څاروي سپرتیا جائز نه ده، خو که مجبوري وي او بله سپارلي نه وي، نو سپرتیا جائز ده،او که په پیاده تللو باندي قدرت لري، نو په دې صورت کي به نه پر سپریږي تر څو چي له پیاده تګ څخه عاجزه او مجبوره نه سي.

**ولا یحلب إلخ**: که هدی ماده څاروی وي او شیدې لري، نو محرم دي د هغه شیدې نه لوښي، خو که د ذبح وخت یې لیري وي او شیدې که یې نه را ویستل سي، نقصان ورته کوي، نو بیا دي یې شیدې ولوښي، غریبانو او مسکینانو ته دي یې ورکړي، او که د ذبح وخت یې نږدې وي او شیدې یې څخیږي، نو د هغې پر غولانځه دي یخي اوبه پاشي، چي شیدې کلکي سي او څڅوب یې بند سي.

## د پیاده حج کولو نذر کول او د پیاده حج کولو فضیلت

﴿۱۴۵۶﴾ وَلَوْ نَذَرَ حَجًّا مَاشِيًا او که نذر ومني د پیاده حج کولو (په پښو حج کول پر ځان نذر کړي) لَزِمَهُ نو پیاده حج کول پر هغه لازمیږي وَلَا يَرْكَبُ حَتّٰى يَطُوْفَ لِلرُّكْنِ او نه به سپریږي تر دې چي طوافِ رکن (طوافِ زیارت) وکړي فَإِنْ رَكِبَ بیا که چیري سپور سي أَرَاقَ دَمًا نو وینه به بهوي (یعني دَم به ذبح کوي).

﴿۱۴۵۷﴾ وَفُضِّلَ الْمَشْيُ عَلَى الرُّكُوْبِ لِلْقَادِرِ عَلَيْهِ او فضیلت ورکړل سوی دی (افضل ګرځول سوی دی) پیاده تګ پر سپرتیا، د هغه کس لپاره چي په پیاده تګ باندي قدرت لرونکی

وي (یعني هغه لپاره پیاده حج کول افضل دي) وَ فَّقَـنَا اللهُ تَعَالىٰ بِفَضْلِهِ الله تعالیٰ دي موږ ته توفیق راکړي په خپل فضل (مهرباني) سره وَ مَنَّ عَلَيْنَا بِالْعَوْدِ عَلىٰ أَحْسَنِ حَالٍ إِلَيْهِ او احسان دي وکړي پر موږ په واپس تللو (دوباره حج کولو) سره په ډېر ښه حالت کي د هغه وطرف ته (چي په بهترین حالت کي دوباره حج وکړی سو) بِجَاهِ سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ ﷺ په وسیله (واسطه) سره زموږ د سردار محمد ﷺ.

**لغات**: ﴿فُضِّل﴾ د تفعیل له بابه ماضي مجهوله ده. تَفْضِيْلًا: فضیلت ورکول. افضل ګرځول. ﴿وفّقنا﴾ د تفعیل له بابه د جمع متکلم صیغه ده. تَوْفِيْقًا: توفیق ورکول. د الله له طرفه د بنده لپاره د خیر لاره خلاصېدل او د شر لاره بندېدل. د مقصد پوره کېدو لپاره د خیر اسباب برابرول او خنډونه لیري کول. الهي مرسته.

**تشریح**: مسئله دا ده چي که څوک پیاده حج کول پر ځان نذر کړي، مثلاً داسي ووایي چي د الله تعالیٰ لپاره پر ما پیاده حج کول واجب دي، یا مثلاً: چي که الله تعالیٰ زما مریض ته شفا ورکړي، نو زه به یو پیاده حج کوم، او مریض ته شفاء حاصله سي، نو پر هغه واجب دي چي د طوات زیارت کولو تر وخته پوري سپور نه سي؛ ځکه له طواف زیارت څخه وروسته د حج ارکان او افعال پوره کیږي، او که هغه تر دغه نذر کولو وروسته سپور سي، مکې شریفي ته ولاړ سي، نو د واجب پرېښوولو په وجه پر هغه دَم لازمیږي.

وفُضِّل المشي إلخ: یعني څوک چي په پیاده تګ باندي قدرت لري، د هغه لپاره پیاده حج کول افضل دي.
امام ابو بکر هیثمي رَحِمَهُ الله په مجمع الزوائد کي له عبد الله ابن عباس (رض) څخه یو حدیث شریف نقل کړی دی چي نبي کریم ﷺ وفرمایل: کوم څوک چي په سپرتیا حج کوي. د هغه لپاره د سپارلی پر هر قدم اویا (۷۰) نېکی لیکل کیږي، او کوم څوک چي پیاده حج کوي، د هغه لپاره پر هر قدم اُووه سوه (۷۰۰) نېکی لیکل کیږي، او له نبي کریم ﷺ څخه پوښتنه وسوه چي د حرم شریف د عبادت نېکی (نېکیتي) څومره دي؟ نو نبي ﷺ وفرمایل: چي د حرم د حدودو یوه نېکي دیوه لک نېکیو سره برابره ده (مجمع الزوائد ج:۳. ص:۲۰۹).

دا د الله تعالیٰ ستر احسان او لوی انعام دی چي دیوه عبادت په عوض کي د زرهاوو او لکونو عبادتونو سره برابر نېکی ورکوي. الله تعالیٰ دي موږ ته بار بار د خپل حرم شریف د حاضری او د خپل ګران حبیب ﷺ زیارت مبارک رانصیب کړي. يَا رَبِّ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا أَبَدًا عَلىٰ حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمْ. (ایضاح المناسک ص:۲۴، ۲۵)

احقر حبیب الرحمٰن "مدني"

غفر الله له ولوالدیه

۹/ ذو الحجه/ ۱۴۴۲هـ

# فَصْلٌ

## فِیْ زِیَارَةِ النَّبِیِّ ﷺ عَلٰی سَبِیْلِ الْاِخْتِصَارِ تَبْعًا لِمَا قَالَ فِی الْاِخْتِیَارِ

(دا فصل د نبي کريم ﷺ د زيارت په بيان کې دی په مختصره توګه، په اتباع کولو سره د هغه مطابق کوم چې يې په "اختيار" کې ويلي دي ايعني څرنګه چې کتابُ الاختيار والا ليکلي دي. زه يې هم هغسې ذکر کوم ا)

**تشریح:** "اختیار" د کتاب نوم دی، په هغه کې د نبي کريم ﷺ د قبر د زيارت مبارک تذکره ده. مصنف رَحِمَهُ الله د هغه په اتباع کې په مختصره توګه د روژې مبارکې د زيارت بيان کړی دی.

**د مدینې شریفې فضیلت:** په ټوله روی زمين کې افضله د ځمکې هغه حصه ده کوم چې د مبارک ﷺ د سپېڅلي بدن سره متصله ده، او دغه نېکبختي ومدينې شريفې ته حاصله ده، تر هغه وروسته کعبةُ الله او حرم شريف دی او تر هغه وروسته بيا د مدينې شريفې حُدود دي (شامي ج: ۲، ص: ۶۲۶، ط: کراچي). او له حضرت علي ﷺ څخه نقل سوي دي چې نبي کريم ﷺ دا دعاء وکړه چې "اې الله حضرت ابراهيم ﷺ ستا بنده او ستا خليل وو، هغه د اهلِ مکې د برکت لپاره دعاء کړې وه او زه ستا بنده او ستا رسول يم، زه د اهلِ مدينې لپاره د برکت دعاء کوم، اې الله تعالیٰ اهلِ مدينې ته له اهلِ مکې څخه دوچنده برکت ورکړه!" (سبحان الله!)، لکه څرنګه چې نن سبا د مدينې شريفې برکت د خلکو مخ ته څرګنده دی. (ترمذی شريفي ج: ۲، ص: ۲۲۹ بحوالهٔ انوار الايضاح)

زړګیه سترګي لګوه د قدم لاره نه ده   حضرت په اینبي قدمونه دومره خواره نه ده

**د مدینې شریفې حُرمت:** له حضرت ابو هريره ﷺ او حضرت انس ﷺ څخه نقل سوي دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل: "اې الله څرنګه چې حضرت ابراهيم ﷺ د مکې مکرّمې حدود محترم ګرځولي دي، همداسي زه د مدينې منوّرې حدود محترم ګرځوم". (ترمذي ج: ۲، ص: ۲۳۰، ايضاح المناسک ص: ۱۹۰)

**د مدینې شریفې سفر:** کله چې له مکې شريفې څخه ومدينې شريفې ته روان سي، نو په لاره کې دي په کثرت سره دورد شريف ويل کيږي او تر څو چې ممکنه وي، په همدې کې دي مستغرق اووسي، او په لاره کې له مسجدِ حرام څخه پر شپاړس (۱۶) کيلو متره فاصله باندې "مقام سَرِف" پروت دی، په همدې ځای کې دأم المؤمنين حضرت ميمونه رضی الله عنها قبر دی، که ممکنه وي، نو هلته دي ودريږي، فاتحه او ايصالِ ثواب دي وکړي. (غنية الناسک ص: ۲۰۲، ايضاح المناسک ص: ۱۸۸)

## د روضې مبارکې د زیارت فضیلت

﴿۱۴۵۸﴾ لَمَّا كَانَتْ زِيَارَةُ النَّبِيِّ ﷺ مِنْ أَفْضَلِ الْقُرَبِ وَأَحْسَنِ الْمُسْتَحَبَّاتِ کله چې د نبي کريم ﷺ زيارت له افضله (زيات فضيلت لرونکو) عبادتونو څخه دی او له غوره مستحباتو څخه دی (يعني يو افضل عبادت دی او يو غوره مستحب دی) بَلْ تَقْرُبُ مِنْ دَرَجَةِ مَا لَزِمَ مِنَ الْوَاجِبَاتِ بلکې د هغه واجب عبادتونو ودرجې ته نژدې دی کوم چې لازم (ضروري) دي فَإِنَّهُ ﷺ حَرَّضَ عَلَيْهَا ځکه نبي کريم ﷺ د زيارت رغبت (تشويق) ورکړی دی وَبَالَغَ فِي النَّدْبِ إِلَيْهَا او زياتوب (زيات فضيلت) يې بيان کړی دی د زيارت وطرف ته په رابللو (دعوتولو) کې فَقَالَ: مَنْ وَجَدَ سَعَةً وَلَمْ يَزُرْنِي نو فرمايلي يې دي: څوک چې وس (قدرت) پيدا کړي او (بيا هم) زيارت نه وکړي فَقَدْ جَفَانِي نو هغه زما سره جفا (جفاکاري) وکړه (زما څخه يې اعراض وکړی. يا په بله وينا دا چې: زما په حق کې يې ګستاخي وکړه) وَقَالَ ﷺ: مَنْ زَارَ قَبْرِي او نبي ﷺ فرمايلي دي: څوک چې زما د قبر زيارت وکړي وَجَبَتْ لَهُ شَفَاعَتِي نو د هغه لپاره زما شفاعت واجب سو وَقَالَ ﷺ: مَنْ زَارَنِي بَعْدَ مَمَاتِي او (همدارنګه) نبي ﷺ فرمايلي دي: څوک چې زما تر وفات وروسته زما زيارت وکړي فَكَأَنَّمَا زَارَنِي فِي حَيَاتِي نو ګواکې هغه زما په ژوند کې زما زيارت وکړی إِلَى غَيْرِ ذٰلِكَ مِنَ الْأَحَادِيثِ (او) له دې څخه بغير نور حديثونه (هم سته چې په هغه کې د نبي کريم ﷺ د زيارت زيات فضيلت بيان سوی دی او زيات رغبت يې ورکول سوی دی) وَمِمَّا هُوَ مُقَرَّرٌ عِنْدَ الْمُحَقِّقِينَ أَنَّهُ ﷺ حَيٌّ يُرْزَقُ او له هغه خبرو څخه کوم چې د تحقيق کونکو علماؤ په نيز ثابت کړل سوي (تحقيق شده) دي (يو دا دي) چې نبي کريم ﷺ ژوندی دی (او) رزق ورکول کيږي (څرنګه چې د هغه د شان سره لائق دي) مُمَتَّعٌ بِجَمِيعِ الْمَلَاذِّ وَالْعِبَادَاتِ نفع اخيستونکی دی په ټولو لذتونو او عباداتو سره غَيْرَ أَنَّهُ حُجِبَ عَنْ أَبْصَارِ الْقَاصِرِينَ عَنْ شَرِيفِ الْمَقَامَاتِ خو دا (بيا جلا خبره ده) چې هغه پټ (پوشيده) دی د هغه خلګو له نظرو څخه کوم چې د لوړو مقاماتو (له ليدو څخه) عاجزه دي.

**لغات:** ﴿تَقْرُبُ﴾ د كرُم لـه بابـه مضـارع معلومـه ده، قُـرْبًا و قُـرْبَةً: نـږدې كېدل، قريـب كېـدل. ﴿حرّض﴾ د تفعيـل لـه بابـه ماضـي معلومه ده، تَحْرِيضًا: هڅول، آماده كـول، تشـويقول. ﴿بـالغ﴾ د مفاعلې له بابه ماضي ماضي معلومه ده، مُبَالَغَةً، پـه عربي كي د دې باب څو معناوي نقل سوي دي: پوره هڅه (او ټينګار) كـول (كوشـش كـول)، پـه يـو شـي كـي زيـاتوب كـول، د يـو شـي آخـري حـد تـه رسېدل (معجم الوسيط، معجم لغة الفقهاء) مُبَالَغَةٌ: مبالغه او زياتوب كول، آخري حد ته رسېدل. ﴿النَّدْب﴾ (بفتح النون وسكون الدال)، د نصر د باب مصدر دى، نَدَبَ يَنْدُبُ نَدْبًا: د دې باب پـه صـله كـي چـي "إلى" راسـي لكه دلته، نو معنىٰ يې ده: رابلل، د يو شي وطرف ته دعوتول. په ترغيب او تشويق سره رابلل (يعني په داسي توګه رابلل او دعوتول چي ترغيب او تشويقول هم ور سره وي). (معجم الوسيط. معجم لغة الفقهاء). ﴿سعة﴾ (بفتح السين وكسره): وس، ګنجايش. ﴿جفا﴾ د نصر له بابه ماضي معلومه ده، جَفَاءً و جَفْوًا. د دې باب څو معناوي دي چي له هغوى څخه يوه معنىٰ ده: جفا كـول (جفا كاري، بې وفائي كول)، اعراض كـول او تعلق قطع كـول. ﴿مقرّر﴾ د تفعّل لـه بابه مفعول دى: متعيّن كړى سوى، ټاكل سوى، ثابت كړى سوى. ﴿مُمَتَّع﴾ بفتح التاء د تفعيل له بابه مفعول دى او بكسر التاء فاعل دى: مَتَّعَ يُمَتِّعُ تَمْتِيْعًا، كله چي د دې باب په صله كي باء ذكر سي لكه دلته نو معنىٰ يې ده" نفع اخيسـتل، د نفع اخيسـتو لپاره باقي پرېښوول، فايـده ور رسـول يُقَـال متّعـه الله بكـذا، أي أبقـاه ليتنـفع بـه (معجم الوسيط. انوار الايضاح). ﴿ملاذ﴾ جمع د مَلَذَّةٌ ده: خواهش، خوند. ﴿حجب﴾ د نصر له بابه ماضي مجهوله ده: پټول، منع كول، محروموول. ﴿قاصرين﴾ د نصر له بابه د جمع مذكر فاعل صيغه ده، قَصَرَ يَقْصُرُ قُصُوْرًا: له يو شي څخه عاجز كېدل، د عاجزۍ او كمزورۍ په وجه يو شي پرېښوول.

**تشريح:** له حج څخه تر فراغت وروسته تر ټولو افضل او تر ټولو لويه نېكبختي د سيدُ الانبياء، رحمة للعالمين رسول مقبول ﷺ د روضې مبارکي زيارت دى، د رسول الله ﷺ محبت او عظمت هغه شى دى چي له هغه څخه بغير ايمان نه صحيح كيږي، او په فطري توګه هم د دې تقاضا كېدل پكار دي چي مكې شريفي ته له رسېدو څخه وروسته د روضې مباركي له زيارت څخه بغير را وا پس نه سي، په همدې وجه د مسلمانانو پر دې خبره اجماع ده چي د روضې مباركي زيارت افضل عبادت او د درجاتو حاصلولو لپاره تر ټولو كامیابه كوشش دى، او بعضي علماؤ د قدرت لرونكو حضراتو لپاره واجب ته نږدې ليكلى دى؛ ځكه خپله نبي كريم ﷺ د زيارت ترغيب وركړى دى لكه څرنګه چي په دې هكله په عبارت كي څو احاديث ذكر سول او نبي كريم ﷺ د قدرت باوجود زيارت نه كونكى

جفاکاره شمېرلی دی، لهذا خوش نصیبه هغه کس دی کوم چې په دې دولت سره ونازول سي او بدبخته هغه کس دی کوم چې دوس او قدرت باوجود له دې نعمت عُظمیٰ څخه محرم پاته سي.

**ومما هو مقرر عند المحققين إلخ:** محقیقین فرمایي چې نبي کریم ﷺ په خپل مبارک قبر کي ژوندی دی او له ټولو مفاد حیات او عباداتو څخه نفع او لذت اخلي، همدارنګه په یو حدیث کي دي چې د الله نبي ژوندي وي، رزق ور کول کیږي، له دې حدیث څخه هم معلومه سوه چې هر نبی په خپل قبر کي ژوندی وي، ها! دا بیا جلا خبره ده چې د کم نظره خلګو او د هغه خلګو له نظره او سترګو څخه کوم چې له مقامات عالیه څخه لیري دي هغومره نبي کریم ﷺ څني نیام دی، څومره چې هغوی لیري دي په هغومره اندازه نبي کریم ﷺ څني پټ دی، د نبي کریم ﷺ د وفات تر صحنې وروسته د نبي کریم ﷺ مثال د هغه څراغ په څېر دی کوم چې په یو بنده خونه (کمره) کي پرَوت وي او د هغه دروازه بنده کړل سوې وي، نو کوم خلګ چې بهر وي، له دوی څخه هغه رڼا پټه وي، خو په خونه کي چې څرنګه مخکي وي، بالکل هغسي دی، بلکي تر هغه هم زیات دی. (انوار الایضاح بحوالهٔ مراقی الفلاح مع الطحاوي ص:۴۰۵)

همدارنګه په روایاتو سره د نبي کریم ﷺ دا مشاغل ثابت دي: ① د اُمت اعمال ور ته ښکاره کول کېدل، ② لمونځ کول، ③ مناسبه غذا د دې عالَم خوړل، ④ د سلام اورېدل له نژدې څخه او له لیري څخه د ملائکو په ذریعه او د سلام جواب اورېدل، دا خو دائماً ثابت دي او احیاناً له بعضي خواصِ اُمت سره په ویښه د نبي کریم ﷺ کلام او هغو ته لارښوونه هم په آثارو او اخبارو کي مذکوره ده، لکه څرنګه چې منصف رَحِمَهُ الله په "غیرأنّه" سره اشاره کړې ده، او د خوب او کشف په حالاتو کي خو داسي واقعات بې شمېره دي. (شفاء الارواح بحوالهٔ العطور المجموعة فی ذکر النبی الحبیب ﷺ)

﴿۱۲۵۹﴾ وَلَمَّا رَأَيْنَا أَكْثَرَ النَّاسِ غَافِلِيْنَ عَنْ أَدَاءِ حَقِّ زِيَارَتِهِ او کله چې موږ ولیدل زیاتره خلګ غافله د روضې مبارکي له حق اداء کولو څخه وَمَا يُسَنُّ لِلزَّائِرِيْنَ مِنَ الْكُلِّيَاتِ وَالْجُزْئِيَاتِ او (غافله) له هغه څه څخه کوم چې سنت دي د زیارت کونکو لپاره له کُلي او جزئي أمورو څخه (یعني له هغه کلي او جزئي کارونو څخه کوم چې د زیارت کونکو لپاره مسنون دي. له کلیاتو څخه مراد هغه شیان او هغه کارونه دي کوم چې د زیارت او غیرِ زیارت دواړو سره متعلق دي مثلاً تحیة المسجد اَچې دا د مسجد نبوي او ټولو مسجدونو سره تعلق لري او له جزئیاتو څخه مراد هغه شیان دي کوم چې صرف د زیارت سره خاص دي، مثلاً د زیارت په وخت کي د درېدلو طریقه او داسي نور احتیا) أَحْبَبْنَا أَنْ نَذْكُرَ بَعْدَ الْمَنَاسِكِ وَأَدَائِهَا مَا فِيْهِ نُبْذَةٌ مِنَ الْآدَابِ نو موږ وغوښتل چې ذکر کړو د حج له مناسکو (افعالو او عباداتو) او د هغوی د اداء کولو (له ذکر) څخه وروسته څه حصه

آداب (يا په بله وينا: چي ذكر ذكر و داسي بيان چي په هغه كي د آدابو څه حصه وي) تَتْمِيْمًا لِفَائِدَةِ الْكِتَابِ د كتاب د فايدې د پوره كولو په غرض سره (چي كتاب په بشپړه توګه مفيد وګرځي ادفقه العبادات د طالبانو لپاره).

**لغات:** ﴿غافلين﴾ جمع د غَافِلٌ ده، د نصر له بابه اسم فاعل دی: غفلت كونكي، د بې توجهي او كم احتياطي په وجه هېرونكي، ﴿زائرين﴾ جمع د زَائِرٌ ده، دا هم د نصر له بابه فاعل دی، زيارت كونكی، د ملاقات لپاره راتلونكي، ﴿كليات، جزئيات﴾ له كليات څخه مراد هغه اُمور كوم چي د دې ځای او نورو ځايونو تر مينځ مشترک دي لكه تحيّة المسجد (چي په هر مسجد كي سنت دي)، او له جزئيات څخه مراد هغه خاص اُمور دي چي د هغوی تعلق د زيارت سره دی، لكه زيارت ته د ورتللو ادب او طريقه (چي وروسته به يې بيان راسي)، ﴿مناسك﴾ جمع د مَنْسَكٌ ده: د حج عبادات (افعال او اركان)، ﴿نُبذة﴾ ديو شي ټوټه، قطعة من الشيء، جمع: نَبَذَات، ﴿تتميمًا﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: بشپړول (پوره كول)، بشپړتيا.

**تشريح:** مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي زياتره خلک داسي دي چي هغو ته د روضې مباركي د زيارت طريقه او آداب معلوم نه دي، په كومه طريقه سره د ربلل، درود او سلام ويل پكار دي، كوم، كوم شيان سنت دي، د دې مبارک ځای كوم حقوق دي، نو ځكه موږ د مناسکُ الحج له فراغت څخه وروسته د مدينې شريفي او مسجد نبوي ته د داخلېدلو آداب، په رياضُ الجنه كي د عبادت فضيلت، پر روضه مباركه د سلام ويلو آداب او طريقه، جنتُ البقيع ته د تللو طريقه او داسي نور تمام شيان په تفصيل سره بيانوو، د دې لپاره چي زموږ دا كتاب بشپړ مفيد وګرځي او پر يو مبارک بيان ختم سي.

## د درو شريف فضيلتونه

﴿۱۲۶۰﴾ فَنَقُوْلُ: يَنْبَغِيْ لِمَنْ قَصَدَ زِيَارَةَ النَّبِيِّ ﷺ نو موږ وايو چي: پكار ده (مناسب ده) د هغه كس لپاره چي د نبي كريم ﷺ د زيارت اراده وكړي أَنْ يُكْثِرَ مِنَ الصَّلٰوةِ عَلَيْهِ چي پر نبي كريم ﷺ زيات (په كثرت سره) درود شريف وايي فَإِنَّهٗ يَسْمَعُهَا ځكه نبي كريم ﷺ هغه اوري (كه چيري د نبي كريم ﷺ د روضې سره نژدې ويل كيږي) وَتُبَلَّغُ إِلَيْهِ او نبي كريم ﷺ ته رسول كيږي (كه چيري د ليري څخه ويل كيږي) وَفَضْلُهَا أَشْهَرُ مِنْ أَنْ يُذْكَرَ او د درود شريف

فضیلت زیات مشهور دی له دې څخه چې ذکر کړل سي (یعني د درود شریف فضائل له ذکر (بیان) څخه زیات مشهوره دي، بیان ته یې ضرورت نسته).

**لغات:** ﴿ینبغي﴾ د انفعال د باب مضارع ده: پکار ده، مناسب او لایق ده، ښه ده، ﴿تُبلّغ﴾ د تفعیل له بابه د واحد مذکر مخاطب صیغه ده: رسول.

**تشریح:** کله چې یو کس د نبي کریم ﷺ د زیارت اراده وکړي او د مدینې وطرف ته روان سي، نو په لاره کې دې په کثرت سره درود شریف وایي، بلکې له فرائضو او ضروریاتو څخه چې کوم وخت پاته سي، ټول دې په همدې کې صرف کړي او ښه ذوق او شوق دې پیدا کړي او د محبت په اظهار کې دې هیڅ کمي نه کوي، او په کثرت سره درود شریف ویل د محبت له علاماتو څخه دي، علامه سخاوي رَحِمَهُ الله له امام زین العابدین رَحِمَهُ الله څخه نقل کړي دي چې په رسول الله ﷺ باندې په کثرت سره درود ویل د اهلِ سنت والجماعت کېدلو علامت دی.

تر دې وروسته مصنف رَحِمَهُ الله فرمایي چې کوم څوک یې له نژدې څخه وایي، نو نبي کریم ﷺ هغه خپله اوري او څوک چې یې له لیرې څخه وایي، هغه نبي کریم ﷺ ته رسول کیږي (یعني پر هغه فرښتې ټاکل سوي دي)، لکه څرنګه چې دا مضمون په یو حدیث کې هم بیان سوی دی کوم چې له حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه نقل سوی دی چې نبي ﷺ وفرمایل: څوک چې زما د قبر سره نژدې پر ما درود وایي، زه هغه خپله اورم او څوک چې له لیرې څخه پر ما درود وایي، هغه ما ته رسول کیږي، نو چا ته چې د روضې مبارکې زیارت نصیب سي، هغه ته دا شرافت حاصلیږي چې خپله سیدُ الکونین، رحمة للعالمین ﷺ د هغه درود شریف اوري، ډېره د فخر او لذت خبره ده.

وفضلها أشهرالخ: د درود شریف فضیلتونه له بیان څخه زیات او له احاطې څخه بهر دي، تر دې چې خپله الله تعالیٰ او د هغه فرښتې درود وایي (لېږي) او بندګانو ته هم د درود ویلو حکم کوي (ثمرة النجاح)، همدارنګه په حدیث کې راځي چې کوم څوک پر ما یو ځل درود ووایي، الله تعالیٰ پر هغه لس واره رحمت استوي، د الله له طرفه خو صرف یو رحمت هم د ټوله دنیا لپاره کافي دی، نو تر دې به زیات فضیلت څه وي چې پر یوه ځل درود ویلو د الله له طرفه لس رحمتونه نازلیږي، د فضائلو په هکله څو روایات په حاشیه کې هم لیکل سوي دي.

## مدینې شریفې ته د نژدې رسېدلو دعاء

﴿۱۳۶۱﴾ فَإِذَا عَايَنَ حِيْطَانَ الْمَدِيْنَةِ الْمُنَوَّرَةِ بیا چې کله د مدینې شریفې دېوالونه ووېني يُصَلِّيْ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ نو پر نبي کریم ﷺ دې درود ووایي ثُمَّ يَقُوْلُ: اَللّٰهُمَّ هٰذَا حَرَمُ

نَبِيِّكَ وَمَهْبَطُ وَحْيِكَ بيا دي (دا دعاء) ووايي: اې الله! دا ستا د نبي حرم دی او ستا د وحیو د نازلېدلو (مبارک) ځای دی فَامْنُنْ عَلَيَّ بِالدُّخُولِ فِيهِ نو پر ما احسان وکړه! په دې (مبارک ښار) کي د داخلېدلو وَاجْعَلْهُ وِقَايَةً لِّيْ مِنَ النَّارِ وَأَمَانًا مِنَ الْعَذَابِ او وګرځوه هغه! زما لپاره له اُور (دوږخ) څخه د حفاظت (خلاصون) ذریعه او له عذاب څخه د امن (په امان کېدلو) ذریعه وَاجْعَلْنِيْ مِنَ الْفَائِزِيْنَ بِشَفَاعَةِ الْمُصْطَفٰى يَوْمَ الْمَآبِ او وګرځوه! ما له هغه کسانو څخه چي د مصطفیٰ ﷺ په شفاعت سره کامیابېدونکي (نجات ترلاسه کونکي) وي د را واپس کېدلو په ورځ (یعني د قیامت په ورځ).

**لغات**: ﴿عاین﴾ د مفاعلې له بابه ماضي معلومه ده: په سترګو سره لیدل، مخامخ لېدل، مشاهده کول. ﴿حیطان﴾ جمع د حَائِط ده: دېوال، ﴿حَرَم﴾ د حُرمت ځای، حَرَمُ النَّبِي ﷺ: مدینه شریفه، حَرَمَان: مکه او مدینه، ﴿مهبط﴾ د ضرب له بابه اسم ظرف دی: د شوه کېدلو ځای، د نازلېدلو ځای، ﴿اُمْنُنْ﴾ د نصر له بابه د واحد مذکر امر حاضر صیغه ده، مصدر "مَنًّا: احسان کول، کرم کول، ﴿وقایة﴾ د ضرب د باب مصدر دی: حفاظت کول، ساتل، همدارنګه هغه څه کوم چي د یو شي د حفاظت ذریعه وي، ﴿أمان﴾ د سمع د باب مصدر دی: په امن کېدل، محفوظ او مطمئن کېدل، ﴿فائزین﴾ جمع د فَائِزٌ ده، د نصر له بابه اسم فاعل دی" کامیاب، بریالی، ﴿شفاعة﴾ د فتح له بابه اسم مصدر دی: سفارش کول، د بل چا د معافي او بخښني خواست کول، یا د بل چا د عذاب کمېدلو خواست کول.

**تشریح**: علامه سخاوي رَحِمَهُ الله په قول بدیع کي لیکلي دي چي مستحب دا ده چي کله د مدیني شریفي پر ودانیو او درختو او داسي نورو باندي د ده نظر پرېوځي، نو په خشوع وخضوع سره دي په کثرت سره درود شریف وایي او څومره چي ور نږدې کیږي، هغومره دي په درود شریف کي اضافه کوي؛ ځکه دا ځایونه په وحی او د قرآن شریف په نزول سره آباد سوي دي او دلته بار، بار د حضرت جبرئیل علیه السلام او حضرت میکائیل علیه السلام راتګ سوی دی او د دې خاوره پر سیِّدُ البشر ﷺ مشتمله ده، له همدې ځایه د الله تعالیٰ دین او د هغه د پاک رسول ﷺ سنتونه خپاره سوي او شائع سوي دي، او بیا دي په متن کي ذکر سوې دعاء ووایي. (انوار الایضاح)

## مدیني شریفې ته د داخلېدلو آداب

﴿۱۳۶۳﴾ وَيَغْتَسِلُ قَبْلَ الدُّخُوْلِ أَوْ بَعْدَهٗ قَبْلَ التَّوَجُّهِ لِلزِّيَارَةِ إِنْ أَمْكَنَهٗ او (مدینې منورې ته) تر داخلېدلو مخکې یا وروسته دې غسل وکړي، مخکې له متوجه کېدلو (ورتللو) څخه وزیارت ته، که چېرې د ده لپاره (غسل کول) ممکن وه (یعني دغسل موقع ېې ترلاسه کړه) وَيَتَطَيَّبُ وَيَلْبَسُ أَحْسَنَ ثِيَابِهٖ او خوشبویي دې ولګوي او خپل تر ټولو ښه جامې دې واغوندي تَعْظِيْمًا لِلْقُدُوْمِ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ نبي کریم ﷺ ته د ورتګ د تعظیم کولو په خاطر ثُمَّ يَدْخُلُ الْمَدِيْنَةَ الْمُنَوَّرَةَ مَاشِيًا بیا دې مدینې منورې ته پیاده (په پښو) داخل سي إِنْ أَمْكَنَهٗ بِلَا ضَرُوْرَةٍ که چېرې له څه مشقت (تکلیف) څخه بغیر د ده لپاره (پیاده تلل) ممکن وه بَعْدَ وَضْعِ رَكْبِهٖ وروسته له اېښوولو (کښته کولو) څخه د خپل قافلې (مثلاً که ښځه او کورنۍ ورسره وه، نو د حفاظت ځای ته د هغو له رسولو څخه وروسته) وَاطْمِئْنَانِهٖ عَلَى حَشَمِهٖ أَوْ أَمْتِعَتِهٖ او (وروسته) له اطمینان حاصلولو څخه پر خپلو خادمانو (یا متعلقینو) او خپل سامان (یعني محفوظه ځای ته د هغوی له رسولو څخه وروسته) مُتَوَاضِعًا بِالسَّكِيْنَةِ وَالْوَقَارِ (داخل دې سي) په داسې حال کې چې تواضع کوونکی وي، په سکون او درنښت (درناوي او زغم) سره مُلَاحِظًا جَلَالَةَ الْمَكَانِ (او چې) لحاظ کوونکی (خیال ساتونکی) وي د دې (مقدس) ځای د عظمت (ستروالي) قَائِلًا بِسْمِ اللهِ وَعَلٰى مِلَّةِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ (او چې) ویونکی وي (دې دعاء) د الله په نامه سره او د رسول الله ﷺ پر ملت (داخلېږم)، یعني د الله تعالیٰ په نامه سره دې مبارک ښار ته داخلېږم په داسې حال کې چې د رسول الله ﷺ د دین پېروي کوم رَبِّ أَدْخِلْنِيْ مُدْخَلَ صِدْقٍ اې زما ربه! ما رښتوني مقام ته داخل کړه! (او بعضو د مُدخل او مُخرج مصدري معنیٰ کړې ده: یعني رښتوني داخلېده او رښتوني را ایستل کېده) وَأَخْرِجْنِيْ مُخْرَجَ صِدْقٍ او ما رښتوني مقام (لارې) ته را وباسه! وَاجْعَلْ لِيْ مِنْ لَّدُنْكَ سُلْطَانًا نَصِيْرًا (سورة بني اسرائل: ۸۰) او وګرځوه (را نصیب کړه)! زما لپاره له خپل طرفه څخه سرپرست (یا حکومت) مدد کوونکی (یعني داسې غلبه او تسلط را کړه! چې د هغه سره ستا مدد او نصرت شامل وي. چې حقه وېنا لوړه او غالبه پاته سي او معاندین

ذلیله او تیټ سي) اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ وَعَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ إِلٰى آخِرِهٖ اې الله! (کامل) رحمت نازل کړه! زموږ په سردار محمد ﷺ باندي او د ده په آل (او اولاد) باندي، تر آخره پوري (یعني تر آخره دي تول درود ابراهیمي او التحیات درود اووایي) وَاغْفِرْلِيْ ذُنُوْبِيْ او زما ګناهونه را ته وبخښه (را معاف کړه)! وَافْتَحْ لِيْ أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ وَفَضْلِكَ او زما لپاره د خپل رحمت او فضل دروازې خلاصي کړه!.

**لغات:** ﴿الرَّكْب﴾ قافله، سپاره کسان (کوم چي په خپل مینځ کي یو مشر لري. چي د هغه په حکم سره روانیږي او کښته کیږي. یعني پر یو څو سپارلیو سپاره کسان چي په خپل مینځ کي یې مشر هم ټاکلی وي) (معجم لغة الفقهاء). ﴿حشم﴾ د سړي خادمان، متعلقین (یعني د سړي هغه تعلق والا او نږدې کسان چي په هغو د ده خوا بدیږي)، قال صاحب المعجم: حشم الرجل خاصته الّذين يغضبون لغضبه ولما يُصيبه من مكروه من عبيد أو أهل أو جيرة جمع: أحشام. ﴿جلالة﴾ عظمت، یعني په ډېر عظمت او تعظیم سره دي د دغو مبارکو ځایونو مشاهده کوي. ﴿ضرورة﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه یې یوه معنیٰ ده: مشقت (تکلیف)، سختي. (معجم الوسیط، معجم لغة الفقهاء)

**تشریح:** کله چي ومدینې شریفې ته ورسیږي، نو ښار ته تر داخلېدلو مخکي که ممکنه وي، نو غسل دي وکړي او که تر داخلېدلو مخکي غسل نه وسي، نو تر داخلېدلو وروسته دي غسل وکړي او که غسل ممکن نه وي، نو اودس دي وکړي، بیا دي پاکه، صفا او خپل ښه جامه واغوندي، نوې او سپینه جامه اغوستل افضل دي، بیا دي پر خپل بدن او جامو خوشبویي ولګوي او که ممکنه وي، نو پیاده دي ولاړ سي او د دې مقدس ښار د عظمت په لحاظ کولو سره دي په ډېره خشوع رخضوع سره ښار ته راسي (او که د مدینې منورې په سفر کي د داسي موټر انتظام وسي نو غوره ده کوم چي د آدابو په رعایت کولو کي موټر والا خنډ نه جوړیږي) او کله چي د سیّدُ الکونین رسول الله ﷺ وښار ته داخل سي، نو د داخلېدلو په وخت کي دي مذکوره دعاء ووایي (کوم چي په متن کي ذکر سوه)، او په خپل مینځ کي دي له جنګ و جنجال او له فضول خبرو څخه ځان ساتي، او د دې دعاء ویلو په دوران کي دي د ډېري عاجزۍ او خضوع پیدا کولو کوښښ وکړي. (شفاء الارواح، انوار الایضاح)

﴿۱۴۳﴾ ثُمَّ يَدْخُلُ الْمَسْجِدَ الشَّرِيْفَ بیا دي مسجد شریف (مسجد نبوي) ته داخل سي فَيُصَلِّيْ تَحِيَّتَهٗ عِنْدَ مِنْبَرِهٖ رَكْعَتَيْنِ نو د نبي کریم ﷺ د منبر سره دي د تحیة المسجد دوه رکعته وکړي وَيَقِفُ بِحَيْثُ يَكُوْنُ عَمُوْدُ الْمِنْبَرِ الشَّرِيْفِ بِحِذَاءِ مَنْكِبِهِ الْأَيْمَنِ او په داسي توګه دي ودریږي چي د منبر شریف ستن (پایه امیل!) د ده د راسته اوږې په برابرۍ کي سي (یعني د

راسته اوږي سره يې برابر سي) فَهُوَ مَوْقِفُ النَّبِيِّ ﷺ ځکه همدا دنبي کريم ﷺ د درېدلو ځاى دى وَ مَا بَيْنَ قَبْرِهٖ وَ مِنْبَرِهٖ رَوْضَةٌ مِنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ او هغه ځاى کوم چي دنبي کريم ﷺ د قبر (روضې مبارک) او د منبر شريف تر مينځ دى هغه د جنت له باغچو څخه يوه باغچه ده كَمَا أَخْبَرَ بِهٖ ﷺ لکه څرنګه چي نبي کريم ﷺ د دې خبر ورکړى دى وَ قَالَ: مِنْبَرِيْ عَلٰى حَوْضِيْ او فرمايلي يې دي: چي زما منبر زما پر حوض دى فَتَسْجُدُ شُكْرًا لِلّٰهِ تَعَالٰى بِأَدَاءِ رَكْعَتَيْنِ غَيْرَ تَحِيَّةِ الْمَسْجِدِ نو ته به سجده وکړې د الله تعالیٰ د شکر اداء کولو لپاره د دوو رکعتو په اداء کولو سره بغير له تحية المسجد څخه شُكْرًا لِمَا وَفَّقَكَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَ مَنَّ عَلَيْكَ بِالْوُصُوْلِ إِلَيْهِ د دې شکر اداء کولو لپاره چي توفيق يې درکړى الله تعالیٰ و تا ته او احسان يې وکړى پر تا و دغه (مبارک) ځاى ته په رسولو سره (په بله وينا دا چي: کله الله تعالیٰ ته د ګران پېغمبر ﷺ مبارک ښار او مسجد او زيارت ته راورسولې او د دې توفيق يې درکړى، نو ځکه له تحية المسجد څخه بغير د الله تعالیٰ د شکر پر ځاى کولو (شکرانې) لپاره به هم دوه رکعته لمونځ وکړې) ثُمَّ تَدْعُوْ بِمَا شِئْتَ بيا به دعاء وکړې د هغه څه، چي ته يې غواړې (څه چي ستا خوښه وي).

**لغات**: ﴿عمود﴾ ستنه (ستون)، پايه، تمبه، جمع: أَعْمِدَةٌ. ﴿روضة﴾ ښايسته باغ، شنه زرغونه ځمکه، جمع: رِيَاضٌ.

**تشريح**: کله چي ومدينې شريفې ته راسي، نو ژر تر ژره دې مسجد نبوي ته د حاضرېدلو فکر وکړي او کله چي مسجد نبوي ته د داخلېدلو اراده وکړي، نو اول دې غسل يا اودس وکړي او پاکه صفا جامه دې واغوندي او خوشبويي دې ولګوي که چيري هغه مدينې ته د داخلېدلو په وخت کي دا کارونه نه وي کړي، تر دې وروسته دي په ادب او د زړه په حضور سره د مسجد و طرف ته روان سي او کله چي مسجد ته داخل سي، نو اول دي راسته پښه ور دننه کړي او دا دعاء دي وکړي "بِسْمِ اللّٰهِ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ، اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ ذُنُوْبِيْ وَافْتَحْ لِيْ أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ"، تر دې وروسته که نورو ته له تکليف رسولو څخه بغير ځاى تر لاسه کېږي نو اول دي د منبر و طرف ته ولاړ سي، د منبر او قبر مبارک تر مينځه چي کومه حصه ده، دغه حصې ته رياض الجنة وايي، هسي خو د مسجد نبوي هر ځاى په انوارو او برکاتو سره معمور دى، لېکن دا حصه د خاص رحمت او برکت اهم مرکز دى،

بعضي علماؤ ليکلي دي چي دا ټوټه د جنت حصه ده، د قيامت په ورځ به په جنت کي شامله کړل سي، لهذا چي کله رياضُ الجنة ته راسي او مکروه وخت نه وي، نو په رياض الجنة کي دي د نبي کريم ﷺ د لمونځ کولو پر ځای دوه رکعته تحيةُ المسجد وکړي، دا ځای (يعني موقف النبي ﷺ) د محرابُ النبی ﷺ له مينځ څخه څه غونډي راسته طرف ته د محراب د هغه ستني (پايې) ومخ ته دی

کوم چي د منبر وطرف ته ده، د محراب پر دغه ستنه (پايه) باندي "هٰذا مصلّى النبي ﷺ" ليکل سوي دي، که چيري هلته ځای تر لاسه نه سي، نو منبر ته نژدې يا په رياض الجنة کي چي چيري هم ځای تر لاسه سي، لمونځ دي وکړي (که مسجدِ نبوي ته تر داخلېدو وروسته د فرض لمونځ جماعت ودرېږي، نو په هغه کي دي شرکت وکړي او دا فرض د تحية المسجد قائم مقام کيږي)، تر دې وروسته دي دوه رکعته لمونځ د شکرانې په نيت وکړي چي الله تعالىٰ هغه په دې نعمت عظمىٰ سره ونازوی، بيا دي د خپل حاجاتو او مرادونو لپاره دعاء وغواړي. (شفاء الارواح)

**فايده:** مسجدِ نبوي ته د "باب جبرئيل" د لاري څخه داخلېدل غوره دي، لهذا کله چي مسجدِ نبوي ته داخليږي، نو د "باب جبرئيل" د لاري څخه دي ور داخل سي، دا د مسجد نبوي هغه دروازه ده چي له هغه څخه به حضرت جبرئيل عليه السلام و نبي کريم ﷺ ته راتلی، له دې دروازې څخه بهر په وتلو سره و مخ ته جنت البقيع راځي او په دې دروازه باندي چي را داخل سي نو راسته لاس ته د شمال په طرف کي د اصحابه صفه وو ځای دی او چپه لاس ته د جنوب په طرف کي يعني د قبلې په خوا کي د حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حجره ده او لږ څه مخ ته د دې حجرې پر ختمېدلو وچپه طرف ته د رياضُ الجنة حصه شروع کيږي. (ايضاح المناسک ص:۲۹)

## د روضې مبارکي د زيارت کولو ادب او طريقه

﴿۱۳۶۴﴾ ثُمَّ تَنْهَضُ مُتَوَجِّهًا إِلَى الْقَبْرِ الشَّرِيفِ بيا به ته ولاړ (پورته) سې په داسي حال کي چي مخ کونکی (او تلونکی) يې و قبر شريف (روضې مبارکي) ته فَتَقِفُ بِمِقْدَارِ أَرْبَعَةِ أَذْرُعٍ بَعِيدًا عَنِ الْمَقْصُورَةِ الشَّرِيفَةِ بِغَايَةِ الْأَدَبِ بيا به ودرېږې له حجرې شريفې څخه د څلورو گزو پر اندازه (فاصله) په انتهائي (زيات) ادب سره مُسْتَدْبِرَ الْقِبْلَةِ مُحَاذِيًا لِرَأْسِ النَّبِيِّ ﷺ وَوَجْهِهِ الْأَكْرَمِ په داسي حال کي چي شا کونکی يې و قبلې ته او برابرېدونکی يې د نبي کريم ﷺ و سر مبارک او مخ مبارک ته (يعني د نبي کريم د ﷺ د مخ او سر مبارک پر برابرۍ به

وډيرېږي، چي قبلې ته دې شاوي) مُلَاحِظًا نَظْرَهُ السَّعِيْدُ إِلَيْكَ وَ سَمَاعَهُ كَـلَامَكَ (او په داسي حال کي چي ته) لحاظ کونکی (تصور کونکی) يې وخپل ځان ته د نبي کريم ﷺ د نظرمبارک او د نبي کريم ﷺ د اوريدلو ستا د کلام (يعني تصور به دي داوي چي د نبي کريم ﷺ نظر مبارک تا وينې او تا ته ګوري او ستا کلام اوري) وَ رَدُّهُ عَلَيْكَ سَلَامَكَ وَ تَأْمِيْـنُهُ عَـلٰى دُعَائِكَ او (تصور کونکی به يې) د نبي کريم ﷺ د جواب درکولو ستا و سلام ته او د هغه دآمين ويلو ستا پر دعاء (يعني چي نبي کريم ﷺ ستا د سلام جواب درکوي او ستا پر دعاء آمين وايي).

**لغات:** ﴿تـنهض﴾ د فـتح د بـاب لـه د واحـد مـذکر مخاطـب صـيغه ده: ولاړيـدل (پاڅيـدل)، جـګ ولاړيدل، ديو شي لپاره په چټيـاندي سره ولاړيدل. ﴿أذرع﴾ جمع د ذِرَاع ده: شرعي ګز، کوم چي يو لاس کيږي، ﴿مقصورة﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: ځانګړې خونه او حجره کوم چي د کور له نورو خونو څخه جلا او لوړه وي، غرفة خاصة معزولة (مفصولة) عن باقي غُرَف الدار و أعلی منها (معجم الوسيط) جمع " مَقَاصِيْر و مَقَاصِر، ﴿مُحاذيًا﴾ د مفاعلې له بابه فاعل دی: ديو شي سره برابريدونکی (برابر درېدونکی)، بالمقابل کېدونکی.

**تشريح:** کله چي هغه په رياضُ الجنة کي له دوه رکعته لمونځ، دعاء او داسي نورو څخه فارغ سي، نو بيـا دي په انتهائي زيات ادب سره د رسول الله ﷺ و قبر مبارک ته راسي، دلته دا خبره ياده ساتئ! چي د رسول الله ﷺ د قبر مبارک سره درې جالۍ (جاليانې) دي، په مينځوې جالۍ کي د رسول الله ﷺ او د حضرت ابو بکر او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا مبارک قبرونه دي، په دغه مينځوې جالۍ کي يو ګول سوری دی کوم چي بالکل د نبي کريم ﷺ پر مخ مبارک ور خلاص دی، همدارنګه له دې سوري څخه څه هاخوا ته د نبي کريم ﷺ د سينه مبارک پر برابر هم په جالۍ کي يو سوری دی کوم چي د حضرت ابو بکر ﷛ پر مخ مبارک ور خلاص دی او د حضرت ابو بکر ﷛ د سينه مبارک پر برابر يو بل سوری هم سته کوم چي د حضرت عمر ﷛ پر مخ مبارک ور برابر دی، نو تر ټولو مخکي دي د نبي کريم ﷺ د مخ مبارک پر برابر و جالۍ ته مخامخ د څلورو ګزو (څلورو لاسو) پر فاصله داسي ودرېږي چي شا يې د قبلې و طرف ته وي او مخ يې د رسول الله ﷺ د مخ او سر مبارک پر برابر وي او دا تصور دي وکړي چي د رسول الله ﷺ نظر مبارک زما و طرف ته دی (يا په بله وينا دا تصور دي وکړي چي زما په حاضريدلو واقف دی) او زما سلام او کلام اوري (مخکي د حديث په حواله سره دا خبره تېره سوه چي د الله نبي ژوندي وي، رزق ور کول کيږي او بل دا حديث چي کوم څوک زما د قبر سره نږدې پر ما درود وايي، زه هغه خپله اورم...)، بيا دي د زړه په حضور سره، په ډېره توجه او د نظر په ټيټ ساتلو او په ډېر ادب او احترام

سره په هغه الفاظو درود او سلام پیش کړي کوم چې په را روان عبارت کې ذکر سوي دي. (انوار الایضاح، شفاء الارواح)

## د روضې مبارکې سره د درود او سلام ویلو الفاظ او دعاء

﴿۱۲۶۵﴾ وَتَقُوْلُ: اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا سَيِّدِىْ يَا رَسُوْلَ اللهِ او ته به ووایې: سلام دي پر تا اې زما سرداره! اې د الله رسوله! اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا نَبِيَّ اللهِ سلام دي وي پر تا اې د الله نبي! اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا حَبِيْبَ اللهِ سلام دي وي پر تا اې د الله حبیبه! (الله ته ګرانه!) اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا نَبِيَّ الرَّحْمَةِ سلام دي وي پر تا اې د رحمت نبي! اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا شَفِيْعَ الْأُمَّةِ سلام دي وي پر تا اې د اُمت شفاعت کونکې! اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا سَيِّدَ الْمُرْسَلِيْنَ سلام دي وي پر تا اې د رسولانو سرداره! اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا خَاتَمَ النَّبِيِّيْنَ سلام دي وي پر تا اې د ټولو نبیانو آخره! اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا مُزَّمِّلُ سلام دي وي پر تا اې نغښتونکیه (پېچونکې) د ځان په جامه کې (له هیبته د وحي)! اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا مُدَّثِّرُ سلام دي وي پر تا اې پټونکې د ځان په جامه (کمبله اشرىٰ) کې! اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ وَعَلٰى أُصُوْلِكَ الطَّيِّبِيْنَ سلام دي وي پرتا او ستا پر سپېڅلو اُصولو (مشرانو) وَأَهْلِ بَيْتِكَ الطَّاهِرِيْنَ الَّذِيْنَ أَذْهَبَ اللهُ عَنْهُمُ الرِّجْسَ وَطَهَّرَهُمْ تَطْهِيْرًا او ستا پر پاکې کورنۍ چې له هغوی څخه الله تعالیٰ ناپاکي (د بتلو ګند) لیرې کړی او پاک صفایې کړل (په هره توګه) جَزَاكَ اللهُ عَنَّا أَفْضَلَ مَا جَزٰى نَبِيًّا عَنْ قَوْمِهٖ وَرَسُوْلًا عَنْ أُمَّتِهٖ بدله دي درکړي الله تعالیٰ وتا ته زموږ له طرفه افضله (بهترینه) بدله له هغه (بدلې) څخه کوم چې یې ورکړې وي یو نبي ته د هغه د قوم له طرفه او یو رسول ته د هغه د اُمت له طرفه (یعني دسې بدله کوم چې له هغه بدلې څخه زیاته وي کوم چې یو نبي او رسول ته د هغه د قوم او اُمت له طرفه ورکول سوې وي) أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُوْلُ اللهِ زه ګواهي ورکوم چې ته د الله رسول (پېغمبر) یې! قَدْ بَلَّغْتَ الرِّسَالَةَ وَأَدَّيْتَ الْأَمَانَةَ په تحقیق سره تا (دین) پیغام پوره ورسوی او تا (مقدس) امانت پوره اداء کړی (یعني کوم ستر امانت الهي احکام او الهي امانت چې تا ته درکول سوی وو. هغه ته اداء کړی) وَنَصَحْتَ الْأُمَّةَ او تا خیر خواهي (خیر غوښتنه) وکړه د

أُمت (يا په بله ترجمه: او تا د خير او صلاح لاربنوونه وکړه وامت ته) وَ أَوْضَحْتَ الْحُجَّةَ او تا ښه واضح (پوره څرګند) کړی (د الله تعالیٰ) حجت وَ جَاهَدْتَّ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ حَقَّ جِهَادِهٖ او تا مجاهده (او جهاد) وکړی د الله تعالیٰ په لاره کې حقه (او لویه) مجاهده (يا په بله ترجمه: او تا د الله په لاره کې د انتهائي کوشش کولو حق اداء کړی) وَ أَقَمْتَ الدِّيْنَ حَتّٰى أَتَاكَ الْيَقِيْنُ او تا الهي دين قائم (او ښکاره) کړی تر دې چې تا ته يقين (وفات امرګ) راغلی (يعني د وفات تر وخته پورې مو دين قائموی او ښکاره کوی) صَلَّى اللهُ عَلَيْكَ وَ سَلَّمَ پر تا دې (همېشه) د الله درود (رحمت) او سلام وي وَ عَلٰى أَشْرَفِ مَكَانٍ تَشَرَّفَ بِحُلُوْلِ جِسْمِكَ الْكَرِيْمِ فِيْهِ او پر هغه ستر (عظمت والا) ځای کوم چې مشرّفه (او مبارک) سو ستا د ګران (او پاک) جسم په نزول (شوه کېدلو) سره په هغه کې (يعني پر هغه مشرّف او ستر مقام دې هم رحمت الهي او سلام نازل وي کوم چې ستا د پاک جسم سره د متصل کېدلو او ملګرتيا په سبب مشرّفه سو. د کريم اصل معنیٰ ده: سخي، خو د مقام په مقتضا سره يې معنیٰ بدليږي (المعجم الوسيط)) صَلٰوةً وَ سَلَامًا دَائِمَيْنِ مِنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ داسي درود او سلام چې د ربُ العالمين له طرفه همېشه، همېشه وي عَدَدَ مَا كَانَ په شمېر د هغه شيانو (دې درود او سلام وي) کوم چې (په دې عالم کې) دي (يا په بله ترجمه: په شمېره د هغه شيانو کوم چې دې دنيا ته راغلي دي) وَعَدَدَ مَا يَكُوْنُ بِعِلْمِ اللهِ او په شمېر د هغه شيانو کوم چې به وي د الله په علم کې (يعني کوم چې دې دنيا ته راتلونکي دي، د الله په لا متناهي او ابدي علم کې) صَلٰوةً لَا انْقِضَاءَ لِأَمَدِهَا داسي درود (رحمت) چې فنا (او انقطاع) نه وي د هغه پای لره (يعني چې هغه لره انتها او پای نه وي، بلکي همېشه، همېشه وي).

**لغات:** ﴿مزمّل﴾ د دې اصل مُتَزَمِّل دی، تاء يې په زاء سره بدله کړه او زاء يې په زاء کې مدغمه کړل، معنیٰ يې ده: په کپړه کې ځان پېچونکی، ﴿مدثر﴾ په اصل کې مُتَدَثِّر دی، تاء يې په دال سره بدله کړه او دال يې په دال کې مدغم کړی، معنیٰ يې ده: په کمبله کې ځان پېچونکی، ﴿أَمَد﴾ (بفتح الميم): ديو شي انتهاء، غايت، پای، جمع: آماد، وريل کيږي ضَرَبَ لَهُ أَمَدًا (د هغه لپاره يې انتهاء وټاکله).

**تشریح**: له درود او سلام څخه تر فارغېدلو وروسته دي د رسول الله ﷺ ومخ ته ودرېږي او د رسول الله ﷺ په وسیله سره دي خپل مرادونه وغواړي او له الله تعالیٰ څخه دي د بخښنې، ښه خاتمې او رضاء الهي خواست وکړي، بیا دي تر دې وروسته له رسول الله ﷺ څخه د شفاعت خواست وکړي لکه څرنګه چې په را روان عبارت کې ذکر سوي دي.

## د خپلو ګناهونو اقرار او د شفاعت خواست کول

﴿۱۳۶۶﴾ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ نَحْنُ وَفْدُكَ اې د الله رسوله! موږ ستا وفد یو (یعني د خواست لپاره تا ته حاضر سوی جماعت ابله ایو. وفد هغه جماعت او ډلې ته وایي کوم چې د یو خواست اغوښتني او یو کار لپاره د یو چا دربار ته ولاړ او حاضر سي، په بله ترجمه: اې د الله رسوله! موږ د وفد په توګه تا ته راغلي یو) وَزُوَّارُ حَرَمِكَ او ستا د حرم زیارت کونکي یو تَشَرَّفْنَا بِالْحُلُوْلِ بَيْنَ يَدَيْكَ او موږ ستا مخ ته په کښته کېدلو (حاضرېدلو) سره مشرفه سوي یو (تا ته د راتګ شرف مو حاصل کړی دی) وَقَدْ جِئْنَاكَ مِنْ بِلَادٍ شَاسِعَةٍ وَأَمْكِنَةٍ بَعِيْدَةٍ نَقْطَعُ السَّهْلَ وَالْوَعْرَ بِقَصْدِ زِيَارَتِكَ او موږ ستا د زیارت په اراده له ډېر لیري ښارونو او لیري ځایونو څخه د نرمو او سختو ځمکو (ستونزمنو مسافو) په پرېکولو سره تا ته راغلي یو لِنَفُوْزَ بِشَفَاعَتِكَ د دې لپاره (یعني خواست مو دا دی) چې ستا په شفاعت سره کامیابه (بریالي) سو وَالنَّظَرِ إِلٰى مَآثِرِكَ وَمَعَاهِدِكَ او (راغلي یو تا ته) د نظر کولو لپاره ستا وغوره کارنامو (یا آثارو او نښانو) ته او ستا د حاضرېدلو مقاماتو ته (یعني کومو ځایو ته چې تاسي حاضر سوي یي، یا ستاسي کومو ځایو ته چې خلک د مشاهدې او ننداري لپاره حاضرېږي، د هغوی د لیدني لپاره راغلي یو) وَالْقِيَامِ بِقَضَاءِ بَعْضِ حَقِّكَ او (حاضر سوي یو تا ته) ستا د څه حق اداء کولو لپاره (ځکه چې ستا پوره حق او شکر موږ نه سو اداء کولای) وَالْاِسْتِشْفَاعِ بِكَ إِلٰى رَبِّنَا او ستا په ذریعه له خپل رب څخه د شفاعت (سفارش) طلبولو لپاره فَإِنَّ الْخَطَايَا قَدْ قَصَمَتْ ظُهُوْرَنَا ځکه (زباتو) خطاګانو (تېروتنو) زموږ ملاګانې راماتې کړې دي وَالْأَوْزَارُ قَدْ أَثْقَلَتْ كَوَاهِلَنَا او ګناهونو زموږ اوږې را درنې کړې دي وَأَنْتَ الشَّافِعُ ته شفاعت (سفارش) کونکی یې! الْمُشَفَّعُ شفاعت قبول کړی سوی یې! (یعني

ستا سفارش عند الله مبقول دی) اَلْمَوْعُوْدُ بِالشَّفَاعَةِ الْعُظْمٰى وَالْمَقَامِ الْمَحْمُوْدِ وَالْوَسِيْلَةِ وعده
کړل سوی يې! (يعني ستا سره وعده سوې ده) د ستر شفاعت او د مقام محمود او وسيلې وَقَدْ قَالَ
اللهُ تَعَالٰى: ﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذْ ظَلَمُوْا أَنْفُسَهُمْ او الله تعالى (په خپل كلام كي) فرمايلي دي: او كه
چيري دا خلک كله چي دوى پر خپلو ځانو ظلم كړى وو جَاءُوْكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللهَ وَاسْتَغْفَرَ
لَهُمُ الرَّسُوْلُ تا ته راغلي واى او بيا يې له الله تعالىٰ ځخه مغفرت (بخښنه) غوښتې واى او رسول
الله ﷺ هم د دوى لپاره (له الله ځخه) مغفرت غوښتي واى لَوَجَدُوا اللهَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا﴾ (النساء: ۶۴)
نو يقيناً دوى به الله تعالىٰ توبه قبلونكى او ډېر رحم كونكى موندلي واى وَقَدْ جِئْنَاكَ ظَالِمِيْنَ
لِأَنْفُسِنَا او په تحقيق سره موږ تا ته راغلي (حاضر سوي) يو په داسي حال كي چي پر خپلو ځانو
ظلم كونكي يو (ظلم مو كړى دى پر خپلو ځانو. دلويو ګناهونو په كولو سره) مُسْتَغْفِرِيْنَ لِذُنُوْبِنَا
مغفرت غوښتونكي يو د خپلو ګناهونو فَاشْفَعْ لَنَا إِلٰى رَبِّكَ نو ته خپل رب ته زموږ سفارش
وكړه! وَاسْأَلْهُ أَنْ يُّمِيْتَنَا عَلٰى سُنَّتِكَ او له هغه ځخه خواست (دعاء) وكړه! چي موږ ته ستا
پر سنت مرګ راكړي وَأَنْ يَّحْشُرَنَا فِيْ زُمْرَتِكَ او دا چي زموږ حشر ستا په ټولى كي
وكړي (يعني د محشر په ورځ مو ستا په ټولى كي راپورته وكړي) وَأَنْ يُّوْرِدَنَا حَوْضَكَ او دا چي موږ
ستا حوض (حوضِ كوثر) ته ورسوي وَأَنْ يَّسْقِيَنَا بِكَأْسِكَ او دا چي موږ ستا (دحوضِ كوثر)
په جام سره اوبه كړي غَيْرَ خَزَايَا وَلَا نَدَامٰى په داسي حال كي چي نه يو موږ رسوا كړل سوي او
نه پښېمانه (شرمنده) اَلشَّفَاعَةَ الشَّفَاعَةَ الشَّفَاعَةَ يَا رَسُوْلَ اللهِ اې د الله رسوله! شفاعت،
شفاعت، شفاعت يَقُوْلُهَا ثَلَاثًا دا (دعاء) دې درې واره ووايي رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا
الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا بِالْإِيْمَانِ اې زموږ ربه! موږ ته او زموږ هغه ورڼو ته مغفرت (بخښنه) وكړه!
كوم چي مخكي تللي (تېر سوي) دي تر موږ په ايمان سره (يعني تر موږ مخكي چي زموږ كوم مؤمنان ورڼه

تېر سوي دي. مغو ته هم مغفرت وکړه!) وَلَا تَجْعَلْ فِيْ قُلُوْبِنَا غِلًّا لِّلَّذِيْنَ آمَنُوْا او مه ګرځوه (مه ساته)! زموږ په زړونو کې کينه (او پټه دزړه دښمني) د هغه کسانو لپاره چې ايمان يې راوړی دی رَبَّنَا إِنَّكَ رَؤُوْفٌ رَّحِيْمٌ اې زموږ ربه (پروردګاره)! بېشکه ته مهربانه او زيات رحم کونکې يې!.

**لغات:** ﴿وفد﴾ جمع د وَافِد ده: (د يو خواست اغوښتني او يو مناسبت لپاره) راتلونکې جماعت (ډله)، پلاوی، حاضرېدونکې (وارد ېدونکې) جماعت، همدارنګه هغه هيئت او ډله کوم چې د يو مشترک کار لپاره واستول سي، ﴿زوّار﴾ جمع د زَائِرٌ ده: زيارت کونکی، ملاقات کونکی، ﴿شاسعة﴾ د فتح له بابه فاعل دی: ليري، بعيده، ﴿وَعْـرٌ﴾ سخت ستونزمن ځای، بېرونکی ځای، جمع: أَوْعَار، ﴿مآثر﴾ جمع د مَأْثُرَةٌ ده: د خير کار (فعل الخير المتوارث)، قابلِ تحسين کارنامه، ﴿مَعَاهِد﴾ جمع د مَعْهَدٌ ده: هغه ځای چې په هغه کې يو شی معهود او مشهوره وي، د خلکو حاضرېدلو ځای، د مشاهدې او تندارې ځای (تندارتون) (معجم الوسيط بتصرفٍ)، ﴿قصمت﴾ د ضرب له بابه واحدهٔ مؤنثه غائبه ماضي معلومه ده، مصدر: قَصْمًا: ماتول، ﴿أوزار﴾ جمع د وِزْرٌ ده: ګناه، بوج، ﴿كواهل﴾ جمع د کَاهِلٌ ده: د دواړو اوږو مينځ، څټ ته نژدې د ملا پورتنی آخري حصه، ﴿وسيلة﴾ دا په جنت کې يو مقام دی، کوم چې صرف د رسول الله ﷺ لپاره خاص دی، ﴿كأس﴾ ګيلاس، جمع: كُؤُوْس، دلته د نبي کريم ﷺ د حوضِ کوثر اوبه مراد دي، ﴿خزايا﴾ جمع د خزيان دی: شرمنده، رسوا و ذليله، ﴿ندامى﴾ جمع د نَدْمَان ده" پښېمانه، ﴿غِلًّا﴾ (الغِل): کينه او حقد، پټه د زړه دښمني.

**تشريح:** عبارت واضح دی.

## نبي کريم ﷺ ته د نورو امتيانو له طرفه سلام پېښول

﴿۱۳٦٧﴾ وَتُبَلِّغُهُ سَلَامَ مَنْ أَوْصَاكَ بِهِ او سلام به ورسوې (پېش کړې) ونبي کريم ﷺ ته د هغه چا، چې تا ته يې د سلام رسولو وصيت (او خواست) کړی دی فَتَقُوْلُ: اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا رَسُوْلَ اللهِ مِنْ فُلَانِ بْنِ فُلَانٍ يَتَشَفَّعُ بِكَ إِلٰى رَبِّكَ نو ته به (داسې) ووايې: پر تا دې سلام وي اې د الله رسوله! له طرفه د فلانی چې زوی د فلانی دی، هغه ستا په وسيله د شفاعت طلب

کوي (يعني تا شفيع کرځوي) ستا و خپل رب ته فَاشْفَعْ لَهُ وَلِلْمُسْلِمِيْنَ نو دهغه پاره او د (ټولو) مسلمانانو لپاره شفاعت (سفارش) وکړه! ثُمَّ تُصَلِّيْ عَلَيْهِ بيا به پر نبي کريم ﷺ درود ووايې وَتَدْعُوْبِمَا شِئْتَ عِنْدَ وَجْهِهِ الْكَرِيْمِ او دعاء به وکړې د هغه څه چې ته يې غواړې، د نبي کريم ﷺ د منوّر (مبارک) مخ سره مُسْتَدْبِرَ الْقِبْلَةِ په داسي حال کې چې شا کونکې يې و قبلې ته (ځکه چې مخ د نبي کريم ﷺ وطرف ته سي، نو شا قبلې ته راځي).

**اللغات:** ﴿الكريم﴾ صِفَةٌ لكل مَا يُرْضى ويحمد فِي بَابِهِ، وَمِنْهُ وَجه كريم وَكتاب كريم.

**تشريح:** که يو چا دا غوښتنه ځنې کړې وي چې زما له طرفه هم د نبي ﷺ په خدمت کې سلام پېش کړه!، نو د هغه سلام دي هم داسي پېش کړي، څرنګه چې په متن کې راغلي دي.

## په حضرت ابوبکر صديق ﷺ باندي سلام پېښول

﴿۱۳۶۸﴾ ثُمَّ تَتَحَوَّلُ قَدْرَ ذِرَاعٍ بيا به ته وګرځې ديوه (شرعي) ګز په اندازه حَتّٰى تُحَاذِيَ رَأْسَ الصِّدِّيْقِ أَبِيْ بَكْرٍ ﷺ تر دې چې ته دابوبکر ﷺ د سر مبارک سره برابر سې (يعني د هغه د سر مبارک پر برابرۍ به ودرېږې) وَتَقُوْلُ: اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا خَلِيْفَةَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ او ته به ووايې: سلام دي وي پر تا اې د رسول الله خليفه! اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا صَاحِبَ رَسُوْلِ اللهِ وَأَنِيْسَهُ فِي الْغَارِ سلام دي پر تا اې د رسول الله ملګرې! او په غار کې هغه لره اُنس (او سکون) ورکونکې! وَرَفِيْقَهُ فِي الْأَسْفَارِ او په سفرونو کې د هغه رفيقه! (رفيق عموماً د سفر ملګري ته وايي) وَأَمِيْنَهُ عَلَى الْأَسْرَارِ او په رازونو باندي د هغه امانتکاره! (د هغه د پټو خبرو او کارونو ساتونکيه!) جَزَاكَ اللهُ عَنَّا أَفْضَلَ مَا جَزٰى إِمَامًا عَنْ أُمَّةِ نَبِيِّهٖ بدله دي درکړي الله تعالیٰ و تا ته زموږ له طرفه داسي افضله (بهترينه) بدله له هغه (بدلې) څخه کوم چې يې ورکړې وي يو امام ته د خپل نبي دامت له طرفه فَلَقَدْ خَلَفْتَهُ بِأَحْسَنِ خَلْفٍ په تحقيق سره ته خليفه سوې د نبي کريم ﷺ په ډېر ښه خلافت (او نيابت) سره (يعني تا په ډېر ښه او بهترينه توګه نبوي خلافت ترسره کړی) وَ

سَلَكْتَ طَرِيْقَهٗ وَ مِنْهَاجَهٗ خَيْرَ مَسْلَكٍ او تا تګ وکړی د نبي کريم ﷺ په طريقه او لاره باندې ډېر غوره تګ وَ قَاتَلْتَ أَهْلَ الرِّدَّةِ وَالْبِدَعِ او تا قتال (او جهاد) وکړی د مرتدو او بدعتيانو سره وَ مَهَّدْتَ الْإِسْلَامَ وَ شَيَّدْتَ أَرْكَانَهٗ او تا اسلام خپور کړی او د هغه ارکان دې مضبوط (محکم) کړل فَكُنْتَ خَيْرَ إِمَامٍ نو ته غوره امام (او لاربنود) وې وَ وَصَلْتَ الْأَرْحَامَ او تا صله رحمي وکړه (يعني د خپلو قربانو او خپلوانو د حقوقو اداينه او تعلق ساتنه او خيال ساتنه دې وکړه) وَلَمْ تَزَلْ قَائِمًا بِالْحَقِّ او ته همېشه پرحق ولاړ پاته سوې نَاصِرًا لِلدِّيْنِ وَلِأَهْلِهٖ او (ته همېشه وې) مدد کونکی د دين او د دين والا وو حَتّٰى أَتَاكَ الْيَقِيْنُ تر دې چې تا ته يقين (مرګ) راغلی سَلِ اللّٰهَ سُبْحَانَهٗ لَنَا دَوَامَ حُبِّكَ سوال وکړه (وغواړه)! له الله تعالیٰ څخه زموږ لپاره ستا د خپل محبت همېشتوب (چې ستا سره همېشه، همېشه زموږ محبت قائم وي) وَالْحَشْرَ مَعَ حِزْبِكَ او حشر ستا د ډلي سره (چې د محشر په ورځ ستا په ډله او جماعت کي راپورته سو) وَ قَبُوْلَ زِيَارَتِنَا او (وغواړه! له الله تعالیٰ څخه) قبول (قبلول) د زيارت زموږ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ وَ رَحْمَةُ اللّٰهِ وَ بَرَكَاتُهٗ سلام دې وي پر تا او رحمت او برکتونه د الله دې وي (پر تا).

**لغات:** ﴿ذراع﴾ شرعي ګز، کوم چې يولاس کيږي (يعني د ګوتو له سر څخه تر څنګلي پوري). ﴿تتحوّل﴾ د تفعّل له بابه مضارع معلومه ده: ګرځېدل، اوښتل. ﴿أنوس﴾ اُنس او مينه کونکی (په معنیٰ سره د مؤانس دی، يعني داسي کس کوم چې د بل چاړه ته سکون ورکوي، غم او ترهه څني ليري کوي، يا په بله وينا: د ميني محبت او مهرباني معامله ور سره کوي، لکه څرنګه چې د هجرت په سفر کي حضرت ابو بکر ﷺ د سيدُ الانبياء رسولُ الله ﷺ سره وو)، ﴿منهاج﴾ واضحه لاره، څرګنده لاره، جمع: مَنَاهِيْج، ﴿اهل الرِّدَّة﴾ هغه کسان کوم چې د رسول الله ﷺ تر وفات وروسته مرتد سول او حضرت ابو بکر ﷺ د هغو سره قتال وکړی او د دينِ اسلام ريښې يې مضبوطه کړې، ﴿مهّدت﴾ د تفعيل له بابه د واحد مذکر مخاطب ماضي معلومي صيغه ده: هوارول، برابرول، مراد څني غوړول او خپرول دي، ﴿شيّدت﴾ مخکنی صيغه ده: مضبوطول، ټينګ جوړول، ﴿وصلت﴾ د ضرله بابه مخکنی صيغه ده، صلة الارحام: صله

رحمي کول. د دې جملې په راوړلو سره پر هغه خلګو رد کول مقصود دي کوم چې وايي: چې د حضرت ابو بکر رضی الله عنه او حضرت فاطمې رضی الله عنها تر مينځ عداوت او دښمني وه، نو فرمايي چې داسي نه ده بلکې هغه رضی الله عنه صله رحمي کونکی او د قرابت د تعلقاتو پوره خيال ساتونکی وو.

**تشريح**: د نبي کريم ﷺ له مخ مبارک څخه و راسته طرف ته يو ګز (يو لاس) وروسته د حضرت ابوبکر رضی الله عنه مخ او سر مبارک دی، نو ځکه د نبي کريم ﷺ په خدمت کې له سلام پېښولو څخه وروسته دې د يوه ګز په اندازه راسته خوا ته وګرځي او حضرت ابو بکر رضی الله عنه ته دې په مذکوره پورتني الفاظو سره سلام پېش کړي.

## په حضرت عمر فاروق رضی الله عنه باندې سلام پېښول

﴿۱۳۶۹﴾ ثُمَّ تَتَحَوَّلُ مِثْلَ ذٰلِكَ حَتّٰى تُحَاذِيَ رَأْسَ أَمِيْرِ الْمُؤْمِنِيْنَ عُمَرَبْنِ الْخَطَّابِ رضی الله عنه بيا به ته وګرځې د هغه مخکې په شان (يعني ديوه ګز په اندازه) تر دې چې برابر سې د عمر بن خطاب رضی الله عنه د سر مبارک سره فَتَقُوْلُ: اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ نو ته به ووايې: سلام دې وي پر تا اې د مؤمنانو اميره! اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا مُظْهِرَ الْإِسْلَامِ سلام دې وي پر تا اې د اسلام ښکاره کونکې (او غالبونکې)! اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا مُكَسِّرَ الْأَصْنَامِ سلام دې وي پر تا اې د بتانو ماتونکې! جَزَاكَ اللهُ عَنَّا أَفْضَلَ الْجَزَاءِ بدله دې درکړي الله تعالیٰ و تا ته زموږ له طرفه افضله (بهترينه) بدله لَقَدْ نَصَرْتَ الْإِسْلَامَ وَالْمُسْلِمِيْنَ په تحقيق سره چې تا مدد کړی دی د اسلام او مسلمانانو وَ فَتَحْتَ مُعْظَمَ الْبِلَادِ بَعْدَ سَيِّدِ الْمُرْسَلِيْنَ او تا فتح کړي دي زيات ښارونه وروسته تر سردار د رسولانو (يعني د نبي کريم ﷺ تر وفات وروسته تا د کفارو ډېر لو لوی لوی ښارونه فتح کړل) وَ كَفَلْتَ الْأَيْتَامَ او تا کفالت وکړی (کفيل سوې) د يتيمانو (يعني د يتيمانو ضمانت او نمه واري دې واخيستل) وَوَصَلْتَ الْأَرْحَامَ او تا صله رحمي وکړه وَقَوِيَ بِكَ الْإِسْلَامُ او اسلام ستا په ذريعه قوي سو (په تا سره يې قوت وموندی) وَكُنْتَ لِلْمُسْلِمِيْنَ إِمَامًا مَرْضِيًّا او ته وې! د مسلمانانو لپاره خوښ سوی امام (يعني مسلمانان په تا باندې راضي وه) وَهَادِيًا مَهْدِيًّا او (ته وې)

هدايت كونكي (لاربنوود دمسلمانانو) او هدايت موندونكي (هدايت يافته) جَمَعْتَ شَمْلَهُمْ تاد مسلمانانو (متفرق) جماعت سره يو ځاى كړى (يعني دهغو ترمينځ دي تفريق ختم كړى، يا په بله ترجمه: دمسلمانانو متفرق او شكيدلي اُمور دي سره جمع كړل) وَأَغْنَتَ فَقِيْرَهُمْ او تادمسلمانانو دفقير (يعني دهغو دغريبانو) مرسته وكړه وَجَبَرْتَ كَسِيْرَهُمْ او تاد دوى مات (حالتونه) سكينده كړل (يا په بله وينا: ددوى دماتو زړونو ماتوالى دي ليري كړى) اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهٗ سلام دي وي پر تا او رحمت او بركتونه دالله دي وي پر تا.

**لغات:** ﴿مُظهِر﴾ دافعال له بابه فاعل دى: ظاهرونكى او ښكاره كوونكى، اعانت كونكى، ﴿مُكثِر﴾ د تفعيل له بابه فاعل دى: ماتونكى، ﴿مُعْظَم﴾ (دميم په ضمه او دعين په سكون سره): اكثره، زيات، ډېر همدارنګه لوى (معجم لغة الفقهاء. معجم الوسيط)، (دنور الايضاح په نسخه او اكثره شروحو كي دالفظ دعين په فتحه او دظاء په تشديد سره منقول دى. خو په معاجمو كي په سكون دعين سره منقول دى)، ﴿وقوى بك الإسلام﴾ ځكه داسلام په شروع كي نبي كريم ﷺ او صحابه وو په دار أرقم كي په پټه لمنځونه كوله، كله چي حضرت عمر ﷜ مسلمان سو، نو هغه نبي ﷺ ته وفرمايل چي آيا موږ پرحق نه يو، نبي ﷺ وفرمايل: ولي نه! نو حضرت عمر ﷜ وكعبې شريفي ته ولاړى او په ډاګه يې د خپل ايمان اظهار وكړى او له هماغه وخت څخه په حرم كي لمونځ شروع سو، ګواكي د حضرت عمر ﷜ په ايمان راوړلو سره اسلام ته تقويه او مضبوطي حاصله سوه، ﴿هادى﴾ دضرب له بابه اسم فاعل دى: لاربنوونكى (لاربنوود)، ﴿مَهدِى﴾ دضرب له بابه اسم مفعول دى: لار ورښوول سوى. هدايت ورته سوى (هدايت يافته. هدايت موندونكى)، ﴿شمل﴾ شَمْلُ القَوم: دقوم او خلكو جماعت او مجتمع (معجم الوسيط)، همدارنګه متفرق او سره جلا اُمور، لكه څرنګه چي ويل كيږي جَمَعَ اللهُ شَمْلَهُمْ: يعني الله تعالىٰ ددوى متفرق او شكيدلي اُمورو او معاملات سره جمع كړل (معجم الوسيط)، ﴿جبرت﴾ دنصر له بابه دواحد مذكر مخاطب صيغه ده: پر مات ځاى او مات هډوكي جبيره (پټى) اچول، سكينده كول، اصلاح كول، ديو نقصان تلافي كول، نقصان (كمي) پوره كول، ﴿كسير﴾ پر وزن دفعيل په معنىٰ سره دمفعول (مكسور) دى: مات كړى سوى.

**تشريح:** حضرت ابو بكر صديق ﷜ ته له سلام څخه پېشولو څخه وروسته دي يو ګز نور راسته طرف ته وګرځي او پر حضرت عمر فاروق ﷜ دي په هغه الفاظو سره سلام پېش كړي كوم چي په متن كي ذكر سول.

**فايده:** كه كله درش او ګڼي ګوڼي په وجه رسيدګي نه سوه كېدلاى، نو په مسجد نبوي كي چي هر ځاى ترلاسه سي، هلته دي ودريږي او درود او سلام دي پېش كړي، خو ددې هغه فضيلت نه دى كوم

چي د قبر شريف ومخ ته د سلام پېشولو دی، همدارنګه له مسجد نبوي څخه بهر هم که د روضې مبارکي ومخ ته تېر بدل راسي، نو دلږ ګړي لپاره دي دریږي او سلام دي پېشوي. (انوار الايضاح)

﴿۱۲۷۰﴾ ثُمَّ تَرْجِعُ قَدْرَ نِصْفِ ذِرَاعٍ بيا به ته واپس وګرځې (تقريبا) د نيم ګز په اندازه فَتَقُوْلُ: اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمَا يَا ضَجِيْعَيْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ نو ته به ووايې: سلام دي وي پر تاسي دواړو اې دوو د رسول الله ﷺ هَمْ پروتو (همخوابو)! (يعني تاسي دواړه د مبارک ﷺ سره په يوه مقام کي پراته او نژدې ياست) وَرَفِيْقَيْهِ وَوَزِيْرَيْهِ وَمُشِيْرَيْهِ او (سلام دي وي پر تاسي دواړو اې) د نبي کريم ﷺ دوو ملګرو! او د هغه دوو وزيرانو (مرستيالانو)! او د هغه دوو مشاورينو (سلاکارانو)! وَالْمُعَاوِنَيْنِ لَهٗ عَلَى الْقِيَامِ بِالدِّيْنِ او د دين په قايمولو (او نافذولو) باندي د نبي کريم ﷺ دوو مدد ګارانو (اعانت کونکو)! وَالْقَائِمَيْنِ بَعْدَهٗ بِمَصَالِحِ الْمُسْلِمِيْنَ او (سلام دي وي پر تاسي اې) تر نبي کريم ﷺ وروسته د مسلمانانو د مصلحتونو (او ښېګڼو) انتظام کونکو! جَزَاكُمَا اللهُ أَحْسَنَ الْجَزَاءِ بدله دي درکړي الله تعالیٰ تاسي دواړو ته ډېر ښه (بهترينه) بدله جِئْنَا كُمَا موږ تاسي دواړو ته راغلي (حاضر سوي) يو نَتَوَسَّلُ بِكُمَا إِلَى رَسُوْلِ اللهِ ﷺ لِيَشْفَعَ لَنَا (دي لپاره چي) تاسي دواړه وسيله (واسطه) ګرځوو و رسولُ الله ﷺ ته چي هغه زموږ لپاره شفاعت (سفارش) وکړي وَيَسْأَلَ اللهَ رَبَّنَا او (چي نبي کريم ﷺ) سوال وکړي له الله تعالیٰ څخه کوم چي ربّ (پروردګار) زموږ دی أَنْ يَّتَقَبَّلَ سَعْيَنَا چي الله تعالیٰ قبول کړي زموږ کوششونه وَيُحْيِيْنَا عَلَى مِلَّتِهٖ وَيُمِيْتُنَا عَلَيْهَا او (چي) ژوند راکړي د ده (نبي کريم ﷺ) پر دين، او مرګ راکړي د ده پر دين وَيَحْشُرَنَا فِيْ زُمْرَتِهٖ او (چي) موږ راپورته کړي (د حشرګاه په ورځ) د ده په تولی کي ثُمَّ يَدْعُوْ لِنَفْسِهٖ وَلِوَالِدَيْهِ بيا به دعاء وکړي د خپل ځان او د خپل مور و پلار لپاره وَلِمَنْ أَوْصَاهُ بِالدُّعَاءِ او د هغه چا لپاره چي ده ته يې د دعاء کولو وصيت (او خواست) کړی وي وَلِجَمِيْعِ الْمُسْلِمِيْنَ او د ټولو مسلمانانو لپاره.

**لغات:** ﴿ضجيعي﴾ په اصل کې ضَجِيْعَيْنِ دی، نون د اضافت په وجه وغورځېدی، تثنيه د ضَجِيْعٌ ده (په معنیٰ سره د مضاجع دی): هَم پروتي (چې يو ځای ورسره پروت وي)، همخوابه، د دې جملې ترجمه به دا وي: چې اې د رسول الله ﷺ د قبر مبارک سره يو ځای دوو پرېوتونکو او ملګرو!، ﴿رفيق﴾ ملګری، دوست، همسفر، جمع: رُفَقَاء، ﴿وزيريه﴾ تثنيه د وَزِيْرٌ ده: مرستيال او معاون، مددګار، جمع: وُزَرَاء، ﴿مُشِيْرُ﴾ مشوره ورکونکی، ﴿قائمين﴾ د نصر له بابه د جمع مذکر فاعل صيغه ده: د دې په صله کې چې باء ذکر سي، نو د انتظام کولو معنیٰ ورکوي (وګورئ: مصباح اللغات)، ﴿مصالح﴾ جمع د مَصْلَحَةٌ ده: ښېګڼې، منافع (معجم لغة الفقهاء)، ﴿يحشر﴾ د نصر او ضرب له بابه مضارع معلومه ده: پاڅول (پورته کول)، جمع کول، يعني د قيامت په ورځ له خپلو قبرو څخه د خلکو راپاڅول او په يو ځای کې را جمع کول (غونډول).

**تشريح:** په حضرت عمر فاروق رضي الله عنه باندي له سلام ښولو څخه وروسته دي بيا نيم ګز راشا ته سي او په مذکوره الفاظو سره دي وحضرت ابو بکر او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دواړو ته سلام او دعاء وکړي (يا په بله وينا: له نيم ګز راشاته کېدو څخه وروسته دي د دوی دواړو لپاره دعاء وکړي او پر دواړو دي سلام ووايي)، بيا دي د خپل ځان او د خپل مور او پلار او کومو خلګ چې د دعاء خواست کړی دی، د هغو لپاره او د ټولو مسلمانانو لپاره دعاء وکړي.

## د روضې مبارکې ومخ ته د دعاء کولو بيان

﴿۱۳۷۱﴾ ثُمَّ يَقِفُ عِنْدَ رَأْسِ النَّبِيِّ ﷺ كَالْأَوَّلِ بيا به ودرېږي د نبي کريم ﷺ د سر مبارک سره لکه مخکې (يعني د مخکيني طريقې مطابق) وَيَقُوْلُ: اَللّٰهُمَّ إِنَّكَ قُلْتَ وَقَوْلُكَ الْحَقُّ او وايي به: اې الله! تا (په خپل کلام کې) فرمايلي دي او ستا فرمان حق (بالکل صحيح او رېښتونی) دی ﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذْ ظَلَمُوْا أَنْفُسَهُمْ او که چيري دا خلګ کله چې دوی پر خپلو ځانو ظلم کړي وو (ګناهونه يې کړي وه) جَاءُوْكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُوْلُ تا ته راغلي وای (اې رسول الله!) او بيا يې له الله تعالیٰ څخه مغفرت غوښتې وای او رسول الله ﷺ هم د دوی لپاره (له الله څخه) مغفرت غوښتې وای لَوَجَدُوا اللهَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا﴾ (النساء: ۶۴) نو يقيناً دوی به الله تعالیٰ توبه قبلونکی او ډېر رحم کونکی موندلی وای وَقَدْ جِئْنَاكَ سَامِعِيْنَ قَوْلَكَ او موږ تا ته (ستا دربار ته)

حاضر سوي يو (اې الله!) په داسې حال کې چې ستا د قول او رېدونکي (منونکي) يو طَائِعِيْنَ أَمْرَكَ ستا د حکم (او ارشاد) اطاعت کونکي يو مُسْتَشْفِعِيْنَ بِنَبِيِّكَ إِلَيْكَ د شفاعت (سفارش) طلبګاري يو ستا د نبي په واسطه کولو سره و تا ته (يعني نبي کريم ﷺ شفيع ګرځو تا ته) اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَنَا وَ لِآبَائِنَا وَ اُمَّهَاتِنَا اې الله! مغفرت (بخښنه) وکړه! موږ ته او زموږ پلرونو (پلار او نيکه ګڼو) او مندو (مېندو) ته وَ اِخْوَانِنَا الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا بِالْإِيْمَانِ او زموږ هغه ورونو ته کوم چې مخکې تر موږ تللي دي په ايمان سره (يعني تر موږ مخکې زموږ مؤمنانو مردګانو ورونو ته) وَ لَا تَجْعَلْ فِيْ قُلُوْبِنَا غِلًّا لِلَّذِيْنَ آمَنُوْا او مه ګرځوه! زموږ په زړونو کې کينه د هغه کسانو لپاره چې ايمان يې راوړی دی رَبَّنَا اِنَّكَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ اې زموږ ربه! بېشکه ته مهربانه او زيات رحم کونکې يې رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّ فِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً اې زموږ ربه! موږ ته په دنيا کې هم نېکي (ښېګڼه او نعمت) راکړه! او په آخرت کې هم نېکي راکړه وَ قِنَا عَذَابَ النَّارِ او موږ وساته! د دوږخ له عذابه څخه سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ پاکي ده ستا رب لره (پاک دی ستا رب) کوم چې لوی عزت (لوی شان) والا دی له هغه څه څخه کوم چې يې خلک (په غلطه توګه) بيانوي (يعني کوم چې يې کفار د رب تعالیٰ په وصف کې په غلطه طريقه سره بيانوي) وَ سَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ او سلام دې وي په (ټولو) پېغمبرانو باندې وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ او (ټوله) حمد (ټوله تعريفونه) الله تعالیٰ لره دي کوم چې رب د جهانونو دی وَ يَزِيْدُ مَا شَاءَ او زيات دې کړي څه چې وغواړي (يعني که خوښه يې وي. نو د نورو دعاګانو سره نوره دعاء او نور خواستونه هم کولای سي) وَ يَدْعُوْ بِمَا حَضَرَهٗ وَ يُوَفِّقُ لَهٗ بِفَضْلِ اللهِ او دعاء دې وکړي د هغه څه کوم چې ورته حاضر (ياد) سي او چې د الله فضل سره د هغه توفيق ده ته ورکول سي (يعني د کوم څه دعاء چې په ذهن کې ورته راسي او د کومې دعاء چې الله تعالیٰ توفيق ورکړي، هغه دې وکړي).

لغات: ﴿يصفون﴾ د ضرب له بابه د جمع مذکر غائب مضارع صيغه ده. د دې باب له معناو څخه يوه معنىٰ دا ده: بيانول، موصوفول.

تشريح: حضرت ابو بکر او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ته له سلام او دعاء کولو څخه وروسته دې بيا د نبي کريم ﷺ ومخ ته راسي، د الله تعالىٰ حمد او ثناء او درود شريف دې ووايي او د نبي کريم ﷺ په وسيله او توسل سره دې لاس پورته کړي او له الله تعالىٰ څخه دې په دعاء کې خپل مرادونه وغواړي او له نبي کريم ﷺ څخه دې د شفاعت خواست وکړي او د خپل ځان، مور و پلار او د قريبانو، دوستانو او ټولو مؤمنانو لپاره دې د نبي کريم ﷺ په توسل سره دعاګانې وغواړي. (ایضاح المناسک ص. ۱۹۶)

## د اسطوانهٔ ابو لبابه سره دوه رکعته لمونځ او دعاء کول

﴿۱۴۷﴾ ثُمَّ يَأْتِيْ أُسْطُوَانَةَ أَبِيْ لُبَابَةَ بيا دې د ابو لبابه ستني (ميل) ته راسي الَّتِيْ رَبَطَ بِهَا نَفْسَهُ حَتّٰى تَابَ اللهُ عَلَيْهِ (دا هغه ستن ده) چې د هغې سره ابو لبابه خپل ځان تړلی وو تر دې پورې چې الله تعالىٰ د ده توبه قبوله کړه وَهِيَ بَيْنَ الْقَبْرِ وَالْمِنْبَرِ او دا ستن (ميل ایبه) د قبر مبارک او منبر شريف په مينځ کې ده وَيُصَلِّيْ مَا شَاءَ نَفْلًا او څومره چې وغواړي نفل (نفلونه) دې وکړي وَيَتُوْبُ إِلَى اللهِ او د الله وطرف ته دې رجوع وکړي (يا په بله وينا: الله ته دې توبه وکړي) وَيَدْعُوْ بِمَا شَاءَ او دعاء دې وکړي د هغه څه (يعني د کوم څه لپاره) چې وغواړي وَيَأْتِي الرَّوْضَةَ او روضې (رياض الجنة) ته دې راسي فَيُصَلِّيْ مَا شَاءَ نو څومره چې وغواړي لمونځ (نفلونه) دې وکړي وَيَدْعُوْ بِمَا أَحَبَّ او دعاء دې وکړي د هغه څه، چې خوښه يې وي وَيُكْثِرُ مِنَ التَّسْبِيْحِ وَالتَّهْلِيْلِ وَالثَّنَاءِ وَالْاِسْتِغْفَارِ او زياتوب دې کوي (زيات دې وايي) سبحان الله، لا إله إلا الله، ثناء (د الله تعريف) او استغفار.

لغات: ﴿تاب﴾ د نصر د باب ماضي ده؛ دې په صله کې چې "علیٰ" راسي يعني تاب الله عليه. نو معنىٰ يې ده: توبه قبلول، بخښل او دوباره الله مهربانه کېدل. همدارنګه د توبې د توفيق ورکولو په معنىٰ سره هم راځي، او د دې باب په صله کې چې "إلى" راسي لکه ملته يتوب إلى الله نو معنىٰ يې ده: رجوع کول، توبه کول (توبه کېدل). يعني له [illegible] څخه رجوع کول او د الله وطرف ته متوجه کېدل او

په آینده وخت کې د ګناه نه کولو ټینګه اراده کول (مصباح اللغات، معجم الوسیط)، ﴿الروضة﴾ مراد ځني ریاض الجنة ده. (ثمرة النجاح)

**تشریح**: په مسجد نبوي کې ډېري ستني (یا په بله وینا ډېري پایې[تمبې]) دي، په (پخوانۍ) عربي کې ستني اسطوانه ویل کیږي، په هغوی کې د بعضي ستنو (پایو) سره په نبوي دور کې څه واقعې متعلق دي، له هغوی څخه د یو ستني (پایې) نوم اسطوانهٔ ابو لبابه ده، د هغه واقعه داسي ده چې د غزوهٔ تبوک پر موقع له حضرت ابو لبابه رضي الله عنه څخه یوه خطاء سوې وه، نو هغه خپل ځان د مسجد نبوي د دغه ستني سره تړلی وو او دا وعده یې کړې وه چې تر څو رسول الله ﷺ ما معاف نه کړي او په خپل لاس مې خلاص نه کړي، تر هغه وخته به همدلته تړلی پاته یم، نو په آخر کې الله تعالیٰ د هغه خطاء وبخښله او رسول الله ﷺ په خپل لاس مبارک هغه خلاص کړی، دغه ستن (په ریاض الجنة) کې د روضې مبارکي او منبر شریف تر مینځ ده، پر دغه ستن "اسطوانة أبـي لبابـة" لیکل سوي دي، د دې ستني سره که نورو ته له تکلیف رسولو څخه بغیر ځای تر لاسه سي، نو لږ تر لږه دي دوه رکعته لمونځ وکړي، توبه او استغفار دي وکړي او خپل مرادونه دي وغواړي.

ویأتي الروضة إلخ: یعني د اسطوانهٔ ابو لبابه سره تر دوه رکعته لمونځ کولو وروسته دي هلته په ریاض الجنة کې چې څومره د ده وس وي، نفلونه، اذکار، استغفار او دعاګاني دي وکړي؛ ځکه په ریاض الجنة کې دعاء ډېره قبلیږي. (د مسجد نبوي هغه پخوانۍ حصه کوم چې د نبي کریم ﷺ په زمانه کې د مسجد په حیثیت سره وه، هاغه د ریاض الجنة حصه ده کوم چې د رسول الله ﷺ د منبر شریف او روضې مبارکې په مینځ کې واقع ده چې د هغه په هکله رسول الله ﷺ دا زېری ورکړی دی چې دا د جنت باغچه دي، په همدې ریاض الجنة کې اُووه ستني دي او هره ستنه د سرو زرو په اوبو سره ښایسته کړل سوې ده، او په مسجد نبوي کې دا ستني بالکل ښکاره دي او د نبي کریم ﷺ د زماني دي او پر هري یوې نوم هم لیکلی دی، هغوی ته د رحمت ستني ویل کیږي). (شفاء الارواح، انوار الایضاح، ایضاح المناسک)

﴿۱۳۳﴾ ثُمَّ يَأْتِي الْمِنْبَرَ بیا دي منبر شریف ته راسي فَيَضَعُ يَدَهُ عَلَى الرُّمَّانَةِ الَّتِي كَانَتْ بِهِ نو خپل لاس دي په رُمّانه (دانار په شکل دلرګي څخه جوړه غوټۍ) باندي کښېږدي کوم چې پر منبر ده (او اوس وخت کې نسته) تَبَرُّكًا بِأَثَرِ رَسُولِ اللهِ ﷺ د برکت حاصلولو لپاره د نبي کریم ﷺ په اثر (نښي) سره وَمَكَانَ يَدِهِ الشَّرِيفَةِ إِذَا خَطَبَ او (د برکت حاصلولو لپاره) د نبي کریم ﷺ د لاس مبارک (ایښوولو) په ځای سره کله چې به نبي کریم ﷺ خطبه ویله (یعني چې پر هغه به نبي

کریم ﷺ د خطبې ویلو پر مهال خپل لاس مبارک ایښووی) لِيَنَالَ بَرَكَتَهُ ﷺ د دې لپاره چې د نبي کریم ﷺ برکت حاصل کړي وَيُصَلِّيْ عَلَيْهِ او پر نبي کریم ﷺ دې درود شریف وایي وَ يَسْأَلُ اللّٰهَ مَا شَاءَ او سوال (خواست) دې وکړي له الله تعالیٰ څخه د هغه څه، څه چې وغواړي.

**لغات:** ﴿رمانة﴾ د دې اصل معنیٰ "انار" ده، دا د نبي کریم ﷺ په زمانه کې د منبر سره یو قسم لرګی وو (کوم چې غالباً د انار په شکل جوړ وو) چې پر هغه به د خطبې په وخت کې لاس ایښوول کېدی، نو ځکه له هغه څخه د برکت حاصلولو لپاره دې پر هغه لاس اېږدي (ثمرة النجاح). (او بعضو ویلي دي چې غالباً له دې څخه د منبر سر مراد دی کوم چې د انار په څېر جوړول کېږي [شفاء الارواح])، اوس دا شی "رُمانه" نسته.

**تشریح:** نن سبا د نبي کریم ﷺ د زمانې منبر نسته او نه رُمانه سته، خو د منبر پر ځای د محراب په شکل کې څه ځرګند دی، که هلته موقع تر لاسه سي، نو لمونځ دې وکړي او دعاګاني دې وکړي. (انوار الایضاح)

## اسطوانهٔ حنانه

﴿۱۴۷﴾ ثُمَّ يَأْتِي الْأُسْطُوَانَةَ الْحَنَّانَةَ بیا دې حنانه ستني (میل) ته راسي وَهِيَ الَّتِيْ فِيْهَا بَقِيَّةُ الْجِذْعِ الَّذِيْ حَنَّ إِلَى النَّبِيِّ ﷺ او دا هغه ستن ده چې هلته (تر مغې لاندې) د هغه تنې بقیه حصه (ښخ کړل سوې) ده چې هغې نبي کریم ﷺ ته ژړا کړې وه (یعني چې د نبي کریم ﷺ په فراق کې یې ژړلي وه) حِيْنَ تَرَكَهُ وَخَطَبَ عَلَى الْمِنْبَرِ څه وخت چې نبي کریم ﷺ هغه پرېښووله او پر منبر یې خطبه شروع کړه حَتّٰى نَزَلَ فَاحْتَضَنَهُ تر دې چې (بیا) نبي کریم ﷺ (له منبر څخه) کښته سو او هغه یې په غېږ کې ونیوله (د خپل مبارک سینې سره یې ولګوله) فَسَكَنَ نو هغه په سکون (آرامه) سوه.

**لغات:** ﴿جذع﴾ د جیم په کسره او د ذال په سکون سره، د خُرما د درختي تنه، جمع: جُذُوْعٌ. ﴿حَنَّ﴾ د ضرب د باب مصدر دی "د غم یا خوشحالۍ په وجه آواز را ایستل، دلته مراد د غم په وجه ژړل دي. ﴿احتضنه﴾ د افتعال له بابه ماضي معلومه ده، په مجردو کې د نصر له بابه راځي، حَضَنَ يَحْضُنُ حَضْنًا و حِضَانَةً، د دې باب څو معناوې چې له هغوی څخه یوه معنیٰ ده: په غېږ کې نیول (په غوزي کې نیول)، د سینې سره لګول.

**تشریح**: اسطوانهٔ حنانه (ژړونکې ستنه) د محرابُ النبی ﷺ د شا سره متصله ده، د دغه ستنې (پایې) پر ځای مخکې یوه د خرما تنه وه (کوم چې په هغه وخت کې د ستنې [پایې] په څېر استعمالېده)، له منبر شریف جوړېدلو څخه مخکې نبي کریم ﷺ به د خطبې ویلو او د وعظ او نصیحت کولو په وخت کې پر هغې تکیه کوله، او کله چې منبر شریف تیار سو، نو نبي کریم ﷺ پر منبر خطبه ویل شروع کړه او هغه ستنه (د خرما تنه) یې پرېښووله، نو له هغه ستنې څخه ډېر په زوره د ژړا آوازونه شروع سوه، بیا رسول الله ﷺ هغه په خپله مبارکه غېږ کې ونیوله او د خپل جسد اطهر سره یې ولګوله، نو د هغې ژړا بنده سوه، بیا وروسته دا د خرما تنه په هاغه ځای کې پټه (ښخه) کړل سوه او د هغې پر ځای پخه ستنه (پایه) جوړه کړل سوه، چې د هغې نوم اسطوانهٔ حنانه (ژړونکې ستنه) کېښېښودل سو، دلته په دعاء او استغفار سره مشغولېدل پکار دي. (ثمرة النجاح، انوار الایضاح)

## مبارکو ځایو ته او بقیه ستنو ته د ورتللو بیان

﴿۱۲۵﴾ وَيَتَبَرَّكُ بِمَا بَقِيَ مِنَ الْآثَارِ النَّبَوِيَّةِ وَالْأَمَاكِنِ الشَّرِيفَةِ او برکت (تبرّک) دې حاصل کړي په پاتو نبوي آثارو او مبارکو (مقدسو) ځایونو سره (یعني کوم چې تر اوسه پاته دي او زیارت کونکی نه دی ورغلی، نو هغو ته دې هم د تبرّک حاصلولو په غرض سره ورسي).

**تشریح**: له حنانه ستنې (اسطوانهٔ حنانه) څخه وروسته دې پاته ستنو ته هم راسي او هلته دې لمنځونه او دعاګانې وکړي او د مدینې شریفې خاص، خاص مسجدونو او مبارکو ځایونو ته دې د موقع مطابق حاضر سي او د هغه له برکاتو څخه ځان فیضیابه کړي.

(مخکې ذکر سوه چې په ریاضُ الجنة کې اووه ستنې [پایې] دي، له هغوی څخه د دوو بیان مخکې تېر سو، او د پاته پنځو ستنو نومان په دې توګه دي: ③ اسطوانهٔ وُفُود: دا هغه ستن ده چې هلته له بهر څخه راتلونکو قبائلو [وفودو] د نبي کریم ﷺ پر لاس مبارک بیعت کړی دی، او دا ستنه د حضرت عائشې او حضرت فاطمې رضی الله عنهما د دېوال سره متصله ده. ④ اسطوانهٔ حرس: په شروع کې د نبي کریم ﷺ په دروازه باندې پېره داري [چوکیداري] کېدله، نو پیره دار او حفاظت کونکي به د همدې ستنې سره درېدی، بیا وروسته دا آیت نازل سو چې ستاسې حفاظت الله تعالیٰ خپله کوي، تر دې وروسته پېره بنده سوه. ⑤ اسطوانهٔ جبرئیل: یعني هغه ستن چې د وحي د راوړلو په وخت کې به جبرئیل علیه السلام هلته ناست لیدل کېدی، دې ځای ته "مقام جبرئیل" هم وایي، په دې ځای کې هم دعاء زیاته قبلېږي. ⑥ اسطوانهٔ سریر: دلته د نبي کریم ﷺ د اعتکاف ځای دی. ⑦ اسطوانهٔ عائشه: یعني هغه ځای چې نبي کریم ﷺ د هغه په باره کې فرمایلي دي چې زما په مسجد کې یو ځای داسې دی چې هلته د لمونځ کولو فضیلت که خلکو ته معلوم سي، نو هلته به د نوبت اخیستلو لپاره قرعه اندازي کولو ته خبره ورسیږي، د نبي کریم ﷺ له وفات څخه وروسته حضرت عائشې (رض) خپل خوریي عبد الله بن زبیر (رض) ته هغه ځای وروښودی، په دې ځای کې هم دعاء زیاته قبلېږي، لهذا په مذکوره مقاماتو کې دې هیڅ ځای هم دعاء نه پرېږدي). (شفاء الارواح، انوار الایضاح، ایضاح المناسک)

﴿۱۴۷۶﴾ وَيَجْتَهِدُ فِيْ إِحْيَاءِ اللَّيَالِيْ مُدَّةَ إِقَامَتِهِ او کوشش دې کوي په رڼولو د شپو کې د خپل قیام (پاتېدلو) په موده کې وَاغْتِنَامِ مُشَاهَدَةِ الْحَضْرَةِ النَّبَوِيَّةِ وَزِيَارَتِهِ فِيْ عُمُوْمِ الْأَوْقَاتِ او (کوشش دې کوي) په غنیمت ګڼلو (او ګټه حاصلولو) کې د دیدار کولو د نبوي درګاه (روضې مبارکې) او د هغه د زیارت کولو په عامو (اکثره) وختونو کې.

**تشریح**: یعنې تر څو چې په مدینه شریفه کې وي، کوشش دې کوي چې شپې روڼې کړي او په عباداتو مشغوله اوروسي، هسې دې وخت نه ضایع کوي، او مسجد نبوي ته دې له زیاتو څخه زیات د حاضرېدلو کوشش کوي، خصوصاً د رسول الله ﷺ د زیارت لپاره او درود وسلام دې پېشوي، او کوشش دې کوي چې پنځه سره لمونځونه هلته اداء کړي او په عبادت او تنهایۍ کې دې شپې رڼوي.

## د أُحُد د شهیدانو خصوصاً د حضرت حمزه ﷺ د قبر زیارت کول او بقیع ته تلل

﴿۱۴۷۷﴾ وَيَسْتَحِبُّ أَنْ يَّخْرُجَ إِلَى الْبَقِيْعِ او مستحب دې دا چې بقیع ته ووځي (ولاړ سي) فَيَأْتِي الْمَشَاهِدَ وَالْمَزَارَاتِ نو شهادت ګاوو او مزارونو ته دې راسي (حاضر سي) خُصُوْصًا قَبْرَ سَيِّدِ الشُّهَدَاءِ حَمْزَةَ ﷺ په ځانګړې توګه د شهیدانو د سردار حضرت حمزه ﷺ و قبر مبارک ته.

﴿۱۴۷۸﴾ ثُمَّ إِلَى الْبَقِيْعِ الْآخَرِ بیا دې راسي وبل بقیع ته (له دې څخه جنة البقیع مراد دی) فَيَزُوْرُ الْعَبَّاسَ وَالْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ وَبَقِيَّةَ آلِ الرَّسُوْلِ رضي الله عنهم نو زیارت دې وکړي د حضرت عباس، حضر حسن بن علي او د رسول الله ﷺ د نور آل رضي الله عنهم وَيَزُوْرُ أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ ﷺ او زیارت دې وکړي د حضرت عثمان بن عفان ﷺ وَإِبْرَاهِيْمَ بْنَ النَّبِيِّ ﷺ او د نبي کریم ﷺ د زوی حضرت ابراهیم ﷺ وَأَزْوَاجَ النَّبِيِّ ﷺ او د

نبـي کـریم ﷺ د بیبیانو (اوزاج مطهّراتـو) وَعَمَّتَهُ صَفِيَّةَ او د نبـي کـریم ﷺ د عمې مبارکې

وَالصَّحَابَةِ وَالتَّابِعِيْنَ رضي الله عنهم او (همدارنګه زیارت دې وکړي) د صحابه وو او تابعینو رضي الله عنهم.

**لغات:** ﴿البقيع﴾ پراخه ځمکه چې قسما قسم درختې پکښې وي (او بعضو ویلي دي چې هغه ځمکه چې د مختلفو درختو بېخونه پکښې وي)، د مسلمانانو د قبرونو ځای، ﴿مشاهد﴾ جمع د مَشْهَد ده، د دې لفظ څو معناوې نقل سوې دي: د شهادت ځـای (د الله پـه لاره کـې د قتـل کېـدو ځـای)، د خلکـو د حاضرېدو ځای، د خلکو د جمع کېدو ځای. (مصباح اللغات)

**تشریح:** له مدینې شریفې څخه تقریباً د درېو میلو پر فاصله جبلِ اُحُد واقع دی، اُحُد هغه غر دی چې د هغه په باره کې نبي کریم ﷺ څو ځله فرمایلي دي چې دا غر زموږ سره محبت لري او موږ د ده سره محبت لرو، او همدا هغه غر دی چې د هجرت په درېیم کال د هغه په لمن کې غزوۀ اُحُد واقع سوه، چې په هغه کې تقریباً اویا (۷۰) تنه صحابه کرام شهیدان سول او هلته ښخ کړل سو، نو د جبلِ اُحد او د شهداء اُحد د زیارت لپاره تلل خصوصاً د حضرت حمزه رضي الله عنه د قبر زیارت کول مستحب دي.

ثم إلى البقيع الآخر إلخ: له بقیع آخَر څخه مراد جنتُ البقیع دی، جنتُ البقیع د مدینې منوّرې هغه لویه هدیره ده چې په هغه کې په زرهاوو صحابه، تابعین، اولیاء او بزرګان پټ دي، په اوس وخت کې د مسجد نبوي او جنت البقیع تر مینځ هیڅ آبادي یا عمارت حائل نه دی، په دې مبارکه هدیره کې د رسول الله ﷺ له اهل بیتو څخه نهه (۹) اُمّهات المؤمنین مدفونه دي: ① اُم المؤمنین حضرت عائشه رض، ② حضرت حفصه رض، ③ حضرت سوده رض، ④ حضرت اُم سلمه رض، ⑤ حضرت زینب بنت جحش رض، ⑦ حضرت اُم حبیبه رض، ⑨ حضرت صفیه رض، او د نبي کریم ﷺ له اولاد څخه حضرت فاطمه رض، حضرت رقیه رض، حضرت زینب رض، حضرت اُم کلثوم رض او حضرت ابراهیم رض پکښې مدفونه دي، همدارنګه د نبي کریم ﷺ د اکا حضرت عباس رضي الله عنه مزار هم په همدې هدیره کې دی، همدارنګه حضرت ابو سفیان، حارث بن عبد المطلب او د نبي کریم ﷺ رضاعي مور (دایي) حضرت حلیمه سعدیه رض هم په دې هدیره کې مدفونه دي، او د خلیفهٔ ثالث حضرت عثمان ذو النورین رضي الله عنه مزار هم په همدې هدیره کې دی کوم چې تر ټولو ښکاره دی، همدارنګه صاحبِ مذهب امام مالک رحمه الله هم په دې هدیره کې مدفون دی، او د دیوبند له اکابرینو

شخه فقیهُ العصر محدّث کبیر حضرت مولانا خلیل احمد سهارنپوري رَحِمَهُ الله او حضرت شیخ الحدیث مولانا زکریا رَحِمَهُ الله هم په همدې هدیره کي مدفون دي.

حاجیانو او عمره کونکو ته د مدینې منوّرې زیارت ضرور نصیب کیږي، ډېره د سعادت او خوش بختۍ خبره ده چي هغو ته د دې مبارکي هدیري زیارت حاصل سي، لهذا په مدینه شریفه کي د پاتېدلو پر مهال دي حتی الامکان د دغه مبارکي هدیرې د زیات کوشش کوي او موقع دي د لاسه نه ور کوي. (انوار الایضاح، ایضاح المناسک)

﴿۱۳۷۹﴾ وَيَزُوْرُ شُهَدَاءَ أُحُدٍ او زیارت دي وکړي د اُحُد د شهیدانو وَإِنْ تَيَسَّرَ يَوْمَ الْخَمِيْسِ او که مُیسّر سي (د دوی زیارت) د پنجشنبې په ورځ (یا په بله ترجمه: که د پنجشنبې په ورځ د دوی زیارت ته تیار سي او د دوی زیارت وسي) فَهُوَ أَحْسَنُ نو دا به ډېر ښه (بهتره) وي.

﴿۱۳۸۰﴾ وَيَقُوْلُ او (داسي) دي ووایي ﴿سَلَامٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ سلام (سلامتیا) دي وي پر تاسو په بدله کي د هغه صبر چي تاسو وکړی (یا په بله وینا: په سبب د صبر کولو ستاسي. چي تاسو په طاعت او مصیبت باندي او له معصیته صبر وکړی) فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ﴾ (الرعد: ۲۴) نو ډېر ښه دی (ستاسي) د آخرت مقام (د آخرت عاقبت).

﴿۱۳۸۱﴾ وَيَقْرَأُ آيَةَ الْكُرْسِيِّ وَالْإِخْلَاصِ إِحْدٰى عَشْرَةَ مَرَّةً او (بیا) دي ولوستي (ووایي) آیتِ کرسي او سورهٔ اخلاص (قل هو الله شریفه) یوولس (۱۱) واره وَسُوْرَةَ يٰسٓ إِنْ تَيَسَّرَ او سورة یسٓ که آسانه (ممکنه) وي وَيُهْدِيْ ثَوَابَ ذٰلِكَ او هدیه دي کړي (ودي بخښي) د دې ثواب لِجَمِيْعِ الشُّهَدَاءِ و ټولو شهیدانو ته وَمَنْ بِجَوَارِهِمْ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ او هغه مؤمنانو ته کوم چي د دوی په څنګ کي (ور سره) دي.

**لغات:** ﴿تیسّر﴾ د تفعّل د باب ماضي ده، د دې باب دوې معناوي نقل سوي دي: ① آسانه کېدل (قدرت باندي راتلل)، ② یو کار ته تیارېدل (چمتو کېدل)، ﴿نِعْمَ﴾ له افعالِ مدح څخه دی او

غیرِ منصرف دی، وېل کیږي "نِعْمَ الرَّجُلُ زَیْدٌ" (ډېر ښه سړی دی زید)، ﴿عُقْبٰی﴾ آخر انجام، خاتمه (عاقبت).

﴿یُهْدِی﴾ د افعال له بابه مضارع معلومه ده: هدیه کول، تحفه لېږل. ﴿جوار﴾ همسایه والی، څنګ، بغل.

**تشریح**: د اُحُد د شهیدانو یادونه مخکي وسوه، د دوی زیارت خو روزانه کول پکار دي، کنې لږ تر لږه دي یو وار د زیارت لپاره ورسي او که موقع وي، نو د پنجشنبې ورځ زیاته غوره (او باعث د استحباب) ده. (او په انوارُ الایضاح کي د جمعې ورځ غوره ګڼل سوې ده [انوار الایضاح بحوالة فتح القدیر ج: ۲، ص: ۱۸۲])

ویقول سلام الخ: او په مذکوره الفاظو سره دي سلام پېش کړي.

**فایده**: شیخ عبد الحق محدث دهلوي رَحِمَهُ الله نقل کوي چي کوم څوک د اُحُد د شهیدانو سره تېر سي او هغو ته سلام وکړي، نو دوی به د قیامت تر ورځي پوري پر هغه سلام وایي. (عون الفتّاح بحوالهٔ رفیق الحرمین)

## د مسجد قباء د زیارت بیان

﴿۱۳۸۲﴾ وَیَسْتَحِبُّ أَنْ یَأْتِیَ مَسْجِدَ قُبَاءَ یَوْمَ السَّبْتِ أَوْ غَیْرَهٗ او مستحب دي دا چي راسي و مسجدِ قباء ته د شنبې په ورځ یا په بله ورځ وَیُصَلِّيَ فِیْهِ او په هغه کي دي لمونځ وکړي وَیَقُوْلُ بَعْدَ دُعَائِهٖ بِمَا أَحَبَّ او (بیا) دي ووایي وروسته تر خپل دعاء کولو د هغه څه، کوم چي یې خوښه وي (یعني دئ چي د کوم څه مقصد لپاره دعاء کول غواړي، د هغه دعاء تر کولو وروسته دي دا راروانه دعاء ووایي) یَا صَرِیْخَ الْمُسْتَصْرِخِیْنَ اې ناره او رېدونکې! د ناره کونکو (شکایت کونکو) یَا غِیَاثَ الْمُسْتَغِیْثِیْنَ اې فریاد (خواست) پوره کونکې! د فریاد کونکو (یعني کوم چي د مدد خواست او طلب کوي، د هغو د خواست پوره کونکې ذاته!) یَا مُفَرِّجَ کُرَبِ الْمَکْرُوْبِیْنَ اې لیري کونکې! د غمونو (کړاونو) د غم ځپلو (په غم اخته خلکو) یَا مُجِیْبَ دَعْوَةِ الْمُضْطَرِّیْنَ اې قبلونکې! د دعاء د مجبورو (اړمنو، کوم چي ناقراره او لاچاره دي) صَلِّ عَلٰی سَیِّدِنَا مُحَمَّدٍ وَآلِهٖ رحمت نازل کړه! زموږ په سردار

محمد (ﷺ) باندي او د ده په آل (کورنۍ او قرېبانو) باندي وَاكْشِفْ كَرْبِيْ وَحُزْنِيْ او ليري کړه! زما غم او پرېشاني (او که دا لفظ كُرَب سي، لکه بعضو چي همداسي ليکلی دی، نو بيا جمع ده يعني: غمونه) كَمَا كَشَفْتَ عَنْ رَسُوْلِكَ حُزْنَهٗ وَكَرْبَهٗ فِيْ هٰذَا الْمَقَامِ لکه څرنګه چي تا ليري کړې وه د خپل رسول (ﷺ) پرېشاني او غم په دې (مقدس) ځای کي يَا حَنَّانُ اې رحم کونکې (پر بندګانو)! يَا مَنَّانُ اې احسان کونکې! يَا كَثِيْرَ الْمَعْرُوْفِ وَالْإِحْسَانِ اې زيات نېکۍ او احسان کولو والا! (د خپلو بندګانو سره) يَا دَائِمَ النِّعَمِ اې همېشه د نعمتونو ورکونکې! يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ اې د (ټولو) رحم کونکو څخه زيات رحم کونکې! وَصَلَّى اللهُ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ او رحمت دي نازل کړي الله تعالیٰ زموږ په سردار محمد ﷺ باندي وَّعَلٰى آلِهٖ وَصَحْبِهٖ او د ده په آل (اهلِ بيتو او قرېبانو) باندي او د ده په (ټولو) صحابه کرامو باندي وَسَلَّمَ تَسْلِيْمًا دَائِمًا أَبَدًا او سلام (سلامتيا) دي وي (په دوی باندي د الله تعالیٰ) مدام همېشه (تل تر تله) يَا رَبَّ الْعَالَمِيْنَ اې د (ټولو) جهانونو پالونکې! آمِيْنَ اې الله تعالیٰ قبول يې کړه!.

**لغات:** ﴿صريخ﴾ ناره او رېدونکی، چي د چا چيغه او شکايت اوري، مدد ور سره کوي او ستونزه او مصيبت يې ليري کوي، ﴿مستصرخين﴾ جمع د مُسْتَصْرِخٌ ده. د استفعال له بابه اسم فاعل دی: د مدد ناره کونکی او فرياد کونکی (يا په بله وينا: د يو چا له ظلم څخه سر ټکونکی او شکايت کونکی)، د مرستي طلب کونکی، ﴿غياث﴾ چا ته چي فرياد کول کيږي او مدد ځني غوښتل کيږي (يا په بله وينا: څوک چي د بل چا فرياد پوره کوي)، غاورسي، چي د بل په فرياد او شکايت باندي غور کوي، ﴿مستغيثين﴾ جمع د مُسْتَغِيْثٌ ده، دا هم د استفعال له بابه اسم فاعل دی؛ فرياد کونکی، د مدد خواست کونکی، ﴿مفرّج﴾ د تفعيل له بابه اسم فاعل دی؛ د غم ليري کونکی، پراخي پيدا کونکی، ﴿مضطرين﴾ جمع د مُضْطَرٌّ

ده، د افتعال له بابه اسم مفعول دی: مجبوره (مجبور کړل سوی)، محتاجه، ﴿کُرَب﴾ جمع د کُرْبَةٌ ده: غم او کړاؤ، زړه نیونکی غم او پرېشاني، ﴿اکشف﴾ د ضرب له بابه د واحد مذکر امرِ حاضر صیغه ده، کله چي د دې باب په صله کي غم او داسي نور څه ذکر سي، نو معنیٰ یې ده: لیري کول، زائلول، ﴿کَرْبٌ﴾ د کُرْبَةٌ په معنیٰ سره دی، چي د هغه معنیٰ اوس ذکر سوه یعني غم او کړاؤ...، جمع: کُرُوْبٌ، او د کُرْبَةٌ جمع کُرَب راځي، ﴿حُزن﴾ پرېشاني او مصیبت، غم (کَرْب، کُربَة او حُزن عموماً یو د بل پر ځای استعمالیږي او یوه معنیٰ ورکوي یعني غم، پرېشاني او کړاؤ، وګورئ! عربي معاجم)، ﴿آمین﴾ دا لفظ تر دعاء وروسته ویل کیږي په معنیٰ سره د "اللّٰهُمَّ اسْتَجِبْ". (معجم الوسیط، انوار الایضاح)

**تشریح:** مسجدِ قباء له مدینې منوّرې څخه د دریو کیلو مترو پر فاصله واقع دی، له هجرت څخه وروسته تر ټولو مخکي دا مسجد جوړ سوی دی، همدا هغه مسجد دی چي د هغه په هکله په قرآن کي ﴿لَمَسْجِدٌ اُسِّسَ عَلَى التَّقْوٰى﴾ وارد سوي دي، اوس دا مسجد ډېر غټ او پراخه کړل سوی دی، د سړک سره متصل په خلاص میدان کي دی، په حدیث کي راغلي دي چي په دې مسجد کي د یوه لمونځ کولو ثواب د عمرې سره برابره دی (ابن ماجه/ ۱۰۳)، نبي کریم ﷺ به د هري شنبې (هفتې) په ورځ مسجدِ قباء ته راتللو، او دوه رکعته لمونځ به یې اداء کولو، نو ځکه که موقع تر لاسه سي، نو د شنبې په ورځ دي د حاضرېدلو کوشش وکړي، لمونځ او دعاء دي وکړي او که ممکنه وي، نو هغه الفاظ دي ووایي کوم چي دلته په متن کي ذکر سوي دي. او د همدې قباء په علاقه کي "بئر أریس" دی یعني هغه څاه چي په هغه کي د رسول الله ﷺ ګوتمۍ د حضرت عثمان رضی الله عنه له لاس څخه ایله سوه، بیا پیدا نه سوه.

**فایده:** مصنف رَحِمَهُ الله خپل کتاب پر درود شریف ختم کړی، لکه څرنګه چي یې شروع کړی وو، علماؤ فرمایلي دي چي د کوم څه په اول او آخر کي درود وي، هغه مقبول ګرځي.(انوار الایضاح، عون الفتّاح)

## له مدينې شريفې څخه د واپس تللو آداب

کله چې له مدينې شريفې څخه د بيرته تـګ اراده وکړي، نو په رياضُ الجنة کې يا د مسجد نبوي په هسې يو حصه کې دې دوه رکعته نفل وکړي، روضې مبارکې ته دې حاضر سي او د مخکې په څېر دې درود او سلام ووايي، بيا دې دعاء وکړي: "اې الله! زما سفر آسانه کړه! او ما په سلامتي او عافيت سره خپل اهل وعيال ته ورسوه! او ما په دواړو جهانو کې له آفتونو څخه وساته! او ما ته بيا د مدينې شريفې زيارت دوباره را نصيب کړه! او دا زما آخري سفر مه ګرځوه!". (معلم الحجّاج ص: ٣٦٦)

الحمد لله! د الله ﷻ په عظيم فضل او رحمت سره نن د "١۴۴٣" هجري کال د "محرمُ الحرام" په نهه ويشتمه (٢٩) نېټه چې د "٢٠٢١" ميلادي کال د "ستمبر" د شپږمې نېټې سره سمون لري. د دوشنبې په ورځ د مازيګر پر مهال دا کتاب "فتح الايضاح شرح نور الايضاح" پای ته ورسېدی، چې په همدې مياشت د الله ﷻ په نصرت زموږ ګران هيواد له امريکايي او صليبي اشغال څخه آزاد سو او امريکايي بنکېلاک د تاريخي ماتې سره مخ سو او په همدې ورځ (د محرم الحرام په ٢٩) د الله ﷻ په نصرت د مزدور دښمن وروستۍ ځاله (پنجشير ولايت) په بشپړ ډول فتح سو او په ټوله هيواد کې اسلامي حکومت قائم سو، الله ﷻ دې ريښتونی اسلامي شرعي نظام نافذ کړي او الله تعالی دې يې همېشه قائم او آباد ولري، او الله ﷻ دې په خپل فضل او مهرباني سره دا زموږ حقير خدمت مقبولِ عام وګرځوي او دا دې زموږ لپاره او زموږ د مور و پلار، استاذانو او خپروونکي لپاره د آخرت ذخيره وګرځوي.

رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ وَتُبْ عَلَيْنَا إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ

وَصَلَّى اللهُ عَلَى خَيْرِ خَلْقِهِ مُحَمَّدٍ وَّعَلَى آلِهِ

وَصَحْبِهِ وَأَهْلِ بَيْتِهِ وَعِتْرَتِهِ أَجْمَعِيْنَ

بِرَحْمَتِكَ يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ

٢٩/ محرم الحرام/١۴۴٣ ه ق

مطابق ۶/ ستمبر/٢٠٢١ م

